# مظاهر حق جدید

## د مشکوٰة المصابیح پښتو شرحه

لومړی جلد

تالیف:

علامه نواب محمد قطب الدین خان دهلوي رحمة الله علیه

تزئین او ترتیب:

مولانا عبدالله جاوید غازي پوري (فاضل دارالعلوم دیوبند)

صداقت کتب خانه - کندهار

## د کتاب پېژندنه


❁ د کتاب نوم : مظاهر حق (د مشکواة المصابیح پښتو شرحه)

❁ تالیف : علامه نواب محمد قطب الدین خان دهلوي رحمه الله علیه

❁ ترتیب او تزئین : مولانا عبدالله جاوید غازي پوري (فاضل دیوبند)

❁ تصحیح : بسم الله رحیمي، مولوي عبدالکریم کریمي، مولوي عبدالجبار او محمد رسول سعید

❁ خپرندوی : صداقت کتب خانه/ کندهار

❁ جلد : اول

❁ کمپوزر : محمد رسول سعید

❁ ډیزاین : صداقت د کتاب چاپولو اداره

❁ چاپ کال : ۱۳۹۲ ش – ۲۰۱۴ ع

❁ د چاپ شمېر : ۱۰۰۰ ټوکه



**د تر لاسه کولو پته:**

**صداقت کتب خانه**

ارگ بازار، کندهار – افغانستان

تلیفون: ۰۷۰۰۳۰۵٤۰۷

ایمېل ادرس: sadaqat.books@gmail.com

**په هلمند کې د کتاب د تر لاسه کولو ځای:**

**تاج منور کتاب او قرطاسیه- لښکرگاه**

انصاف مارکېټ د زاړه مرکزي ماموریت پر مخامخ

اسدالله نېکزاد

ټلیفون: ۰۷۰٤۱۲٤۲۸

# د مظاهر حق اول جلد فهرست

| مضمون | صفحه |
|---|---|

# مقدمه

## د حضرت مولانا محمد سالم قاسمي شيخ الحديث دار العلوم ديوبند مقدمه

بسم الله الرحمن الرحيم

دا يو تاريخي حقيقت دى چي د حديثو د علم پر قواعدو برابر ترتيب او تدوين درسول كريم ﷺ په زمانه كي نه دى سوى ، حال دا چي ددې پر خلاف د قرآن كريم پر قواعدو برابر ترتيب او تدوين او كتابت په خپله درسول الله ﷺ په حكم كيدى چي دهغه وجه ددې څخه پرته بل هيڅ نه وه چي قرآن كريم د الفاظ او معنى دواړو په اعتبار د حق تعالى جل شانه نازل سوى فرمان دى ، د نوموړي ددې كتابت په توګه توجه كولو وجه هم داده چي ددې د اعجازي الفاظو بدل يا مترادف (يوه معنى درلودونكي الفاظ) راوړل د انساني طاقت څخه وتلې خبره ده ، ارشاد دى :

نَزَلَ بِهِ الرُّوحُ الأَمِينُ عَلَى قَلْبِكَ لِتَكُونَ مِنَ الْمُنذِرِينَ .

(سورة الشعراء: ۱۹۳، ۱۹۴)

ژباړه : (دا قرآن) امانتداره ملائكي جبرائيل ﷺ راوړى ستا پر زړه باندي دپاره ددې چي ته سې د بيرونكو څخه .

يا ارشاد دى :

إِنَّ عَلَيْنَا جَمْعَهُ وَقُرْآنَهُ فَإِذَا قَرَأْنَاهُ فَاتَّبِعْ قُرْآنَهُ ثُمَّ إِنَّ عَلَيْنَا بَيَانَهُ .

(سورة القيامة : ۱۷...۱۹)

ژباړه : بيله شكه ددې را يو ځاى كول او تا ته لوستل زموږ كار دى نو چي موږ يې (تا ته) ولولو ته د هغه پيروي كوه بيا د هغه بيانول هم زموږ پر ذمه دي .

او حديث د رسول ﷺ كلام دى ، كه څه هم د معنى په اعتبار هغه هم له طرفه د الله تعالى دى لكه څرنګه چي خپله صريح آيت پر دې شاهد دى :

وَمَا يَنطِقُ عَنِ الْهَوَى إِنْ هُوَ إِلاَّ وَحْيٌ يُوحَى

ژباړه : او هغه د خپل ځانه خبري نه جوړوي، د هغه هره خبره يوه وحي ده چي ورته لېږل سوې ده .

او يا حضرت عبد الله بن عمر ؓ فرمايي چي ما به د نبوت د ژبي مباركي څخه يو شى اوريدى نو هغه به مي سمدستي ليكى او دا ليكل به د لوستلو لپاره وه ، مګر ځينو قريشو زه ددې څخه

منعه کړم او ویل یې چي رسول الله ﷺ بشر دی، نو موږ ډیري خبري د رضا په حالت کي فرمایي او ډیري خبري د غضب په حالت کي هم فرمایي ، مګر سبا به دا ټولي خبري په دین کي شمیرل کیږي ځکه نو لیکل یې مناسب نه دي، ابن عمر ﷺ فرمایي ، دد ې په اوېدو سره ما لیکل بند کړل او دد ې خبري ذکر مي د رسول الله ﷺ په خدمت کي عرض کړه نو رسول الله ﷺ خپلي خولې مبارکي ته په اشاره کولو سره وَفرمایل چي قسم دی په هغه ذات چي د هغه په واک کي زما ساه ده دد ې خولې څخه هیڅ خبره په هیڅ حال کي د حق خلاف نسي وتلای، دوهم شی دا هم وو چي عرب قوم د خپل ذکاوت او ذهانت په وجه چي د کوم نړیوال امتیاز خاوند وه په دې کي د هغوئ د برابري هیڅ قوم دعوه کونکی هم پیدا نه سو ، هر شی په اورېدو سره بعینه محفوظ کول د نسلونو څخه را روان وو ځکه قوت د حفظ ، فصاحت او بلاغت او ذهني بدلون یې ډېر زیات سوی وه ځکه د هغه زمانې د لحاظ څخه قوت حافظه باندي باور دنن د حفظ پر بې باوری باندي قیاس کړل سي نو دې ته عقل ته نژدې نه سي ویل کیدای، ددغه وجهي څخه په لومړنیو قومونو کي د رسول الله ﷺ د اقوالو او کارونو د ژور تحقیق او تلاش د علم مجلس یو بنیادي رکن ګرځېدلی وو.

د رواة حدیث حال د صحابه او تابعینو په زمانه کي څومره په خپله د رواة اهل شهر ته معلوم وو نورو ته دد ې درجه واقفیت وسائل میسر نه وه ، او بیا په روایت کونکو کي حجازي هم وه ، شامي هم وه، عراقي هم وه او مصري هم وه ، مګر د اختلاف مساکن سربیره په هغوئ کي د هر یوه شمیر په اعیان کي کیدی .

په دې باب کي د محدثینو په نزد په حجازي اسناد د کوم اهمیت او اعتماد خاوند ګڼل سوي دي هغه بهر لحاظ د نل اسناد څخه ممتاز دي ، امام مالک رحمة الله علیه تر ټولو مخکي حجازي اسناد ته بنیادي اهمیت ورکولو سره پر احکام شرعیه باندي مشتمل حدیثونه تدوین او ترتیب سره جمع کړل چي د مؤطا امام مالک په نامه سره مشهور دی، بیا د امام المحدثین محمد بن اسماعیل بخاري دور راغلی هغوئ د خپل سختو شرطونو لګولو سره نه یوازي حجازي، عراقي او د شامي اسنادو ټول روایتونو اخیستلو سره د علم حدیث لمني ته غیر معمولي پراختیا ورکړه بلکه د سیرت او تاریخ، اخلاقیات، عقائد او عبادات، معاملات، عقوبات، تعبیر خواب، تفسیر او قرائیت وغیره پر هر موضوع باندي جمع کړل سوي روایتونه د خپل جمع لپاره وجه امتیاز جوړ کړل او د ټولو عنوانونو لپاره یې ځانګړي بابونه قائم کړل او نن

ورځ دا کتاب اصح الکتاب بعد کتاب الله ګڼل کیږي .
امام مسلم رحمة الله علیه هم د بخاري رحمة الله علیه پر نقش قدم روان سو ، البته په شرائط قبول کي د امام بخاري رحمة الله علیه په مقابله کي في الجمله تسهل او تکرار حذف کولو سره مختلف اسناد یې یو ځای راجمع کړل دا حسن ترتیب دومره مقبول سو چي ځینو حضراتو ددې حسن ترتیب په وجه مسلم ته پر بخاري ترجیح ورکړې وه ، مګر واقعه داده چي د صحت اسناد او متنوع عنوانونو او جامعیت په لحاظ سره بخاري پر مسلم ډیر فائق دی .
په دریم دور کي د علم حدیث په ممتازو خاوندانو کي کي ابوداؤد سجستاني رحمة الله علیه ، ابوعیسی ترمذي رحمة الله علیه او ابوعبدالرحمن نسائي رحمة الله علیه په لومړي صف کي شمیرل کیږي ، دې حضراتو د بخاري او مسلم په نسبت په تنقید او اسناد کي تشدد ډیر کم دی مګر ددې سربیره په دوئ کي هیڅ یو متروک العمل حدیث په خپل مصنفاتو کي هیڅکله نه دی راوړی .
دا شپږ کتابونه دي یعني صحیح بخاري، صحیح مسلم، ترمذي، ابوداؤد، مؤطا امام مالک او نسائي ، چي د علم حدیث په بنیادي او اصل کتابونو کي شمیرل کیږي ، او په طبقات اهل علم کي د صحاح ستة په نامه مشهور دي ، اود ځینو حضراتو په نزد د مؤطا امام مالک پر ځای ابن ماجه په صحاح ستة کي شمیرل کیږي .
صاحب د مشکوة علامه ولي الدین ابوعبدالله محمد ابن عبدالخطیب تبریزي رحمة الله علیه په (۷۳۷ھ) کال کي په صحاح ستة او نورو مشهور کتابونو کي چي کوم حدیثونه قابل اسناد او قابل اعتماد ګڼل سوي دي هغه یې په خپل کتاب کي په جمع کولو سره امت ته د یوه غوره علمي تحفې د استفادې موقع ورکړل، د مشکوة المصابیح د لومړنی زمانې څخه تر نن ورځي پوري د مقبول او متداول کېدل د مصنف د ښه اخلاقی ښکاره دلیل دی، د هندوستان په حدودو کي یو اوږد وخت هم تیر سوی دی چي دلته مدار علم حدیث یوازي پر مشکوة المصابیح او مشارق الانوار ګڼل سوي دي ، حجة الاسلام حضرت مولانا شاه ولي الله الدهلوي رحمة الله علیه چي د علم حدیث اشاعت ته توجه وفرمایل ، ارباب علم ته نور عظیم کتابونه پر حدیثو باندي اطلاع وسوه نو د هغه وخت څخه د صحاح ستة څخه وروسته د مشکوة شریف ثانوي مقام پیدا سو مګر ددې سربیره ددې درسي اهمیت هیڅکله نظر انداز نه کړل سو ، نن هم هر کله چي صحاح ستة او نور بې شمیره د علم حدیث کتابونه په هیواد کي عام دي د مشکوة د

افاديت څخه ناقابل انکار دي، دغه عامې افادې د هر دور ارباب علم ددې کتاب په خدمت مجبور کړل ، ملاعلي قاري رحمة الله عليه مرقاة المفاتيح شرح مشکوة المصابيح ، شيخ عبدالحق محدث دهلوي شرح مشکوة فارسي، او لمعات تنقيح شرح مشکوة عربي ، علامه حسين ابن محمد بن عبدالله الطيبي طيبي شرح د مشکوة، او مظاهر حق شرح مشکوة (اردو) مؤلف نواب قطب الدين خان دهلوي شاګرد د شاه محمد اسحاق صاحب دهلوي د حضرت شاه عبدالعزيز دهلوي لمسی، متن مشکوة مع ترجمه ليکلو سره د شيخ عبدالحق محدث دهلوي ، شرح مشکوة خلاصه په اردو ژبه کي وليکل، چي د هغه دور اردو ويونکو حضراتو لپاره افاديت د هغه وخت څخه تر ننه پوري ناقابل انکار دی ، د ژبي او بيان قدامت هم ډير وخت افاديت کمزوری او نن ورځ هر کله چي ددين او علم دين څخه مخالف قوتونه د خپل قهرمان قوتونو سره مسلط دي نو داهل نظر په نظر کي د داسي خدمتونو ارزښت دوه برابر کيږي او هغوئ په دې کوښښ کي دي چي ددين حقيقتونه د وخت د هغه وسائلو په ذريعه د امت ذهن ته نژدې کړي چي هغه په يو څه نه په يو څه درجه د عوامو ذهن خپل کړی دی او په حقيقت کي د دين د خادمانو د دې جذبې د حالاتو او وخت پر خلاف د هغوئ ناقابل انکار او قابل صد هزار تعجب عظيم خدمات سرته رسولي دي، دغه کار باعث د خوشحالئ دی چي ځوان عزيز مولاناعبدالله جاويد غازي پوري فاضل ديوبند يو ډير لوی او عوامي علمي او ديني خدمت د احساس سره سم (مظاهر حق) ترجمه او شرح مشکوة د وخت په صافه او سليس ژبه کي د وړاندي کولو اراده کړې ده ، الله تعالى دي د هغوئ عزم او همت کي برکت واچوي او د هغوئ دا خدمت دي قبول او مقبول کړي . آمين .

احقر

محمد سالم

مدرس دارالعلوم و ناظم اداره تاج المعارف ديوبند

بسم الله الرحمن الرحيم

(دمظاهر حق د مصنف دیباجه د برکت دپاره د هغه په ژبه کې کتلای سی)

الحمدلله الذي ارسل رسوله الکریم لیهدینا الی الصراط المستقیم وصلی الله تعالی علیه وعلی آله واصحابه اجمعین.

وروسته تر دې! محمد قطب الدین شاه جهان آبادي صاحب عرض کوي چي مشکوة شریف د حدیثو په علم کي یو عجیب او ګټور کتاب دی چي د هر مضمون حدیثونه په دې کي ګڼون لري، ددې ژباړه زما استاد حضرت حاجي محمد اسحاق نواسه او حضرت شیخ عبدالعزیز رحمهما الله تعالی په هندي ژبه کي بین السطور (تحت لفظي) لیکلې وه. مګر د لیکوالانو څخه د هغې په صحیح والي کي فرق راغلی، د محترم خوښه دا وه که دا د شرح په ډول ولیکل سي نو غوره به وي ځکه د هغه ژباړه د عربي عبارت څخه بیل کړه او وه یې لیکله او د لنډي فائدې په مناسب ځای کي د مشکوة د شروحو څخه په مثال د مرقات شرح ملا علي قاري او ترجمه دشیخ عبدالحق او حاشیه د جمال الدین رحمه الله او د دوئ څخه پرته د زیاتوب په اړه مي د دوئ په خدمت کي عرض وکړ او نوموړي هم یو څه فائدې لیکلي وې د تبرک له کبله مي هغه هم پکښي ګډي کړې او ددې نوم مي (مظاهر حق) کښېښودی چي په دې کي تاریخ ددې راووزي.

اې الله! ته دا قبول کړې او موږ ټول ددې څخه په دارین کي ګټور کړې او سند ددې کتاب دادی چي دغه کتاب اضعف العباد محمد قطب الدین بن محي الدین احراري الدهلوي عزلله لهما د حضرت مخدومي معظمي مکرمي مولوي محمد اسحاق څخه او هغوئ د حضرت شیخ عبدالعزیز څخه روایه او هغوئ ته د حضرت شاه ولي الله محدث دهلوي څخه اجازه ده او هغوئ ته د شیخ ابوطاهر مدني رحمه الله او هغوئ ته د شیخ ابراهیم کردي څخه او هغوئ ته د شیخ احمد قشاتسي څخه او هغوئ ته د شیخ احمد بن القدوس شنادي څخه او هغوئ ته د سید غضنفر بن سید جعفر نهرواني څخه او هغوئ ته د شیخ محمد سعید معروف بیمرکلان څخه چي په خپل وخت کي شیخ مکه وو او هغوئ ته د سید نسیم الدین میرک شاه څخه او هغوئ ته د خپل پلار سید جمال الدین عطاء الله بن سید غیاث الدین فضل الله بن سید عبد الرحمن او هغوئ ته د خپل اکا سید اصیل الدین عبدالله بن عبدالرحمن بن عبداللطیف بن جلال الدین یحیی

شيرازي الحسني ثخه او هغوئ ته د مسند وخت او محدث عصر شرف الدين عبدالرحيم الجرهني الصديقي او هغوئ ته د علامه عصر امام الدين مبارک شاه سادجي صديقي او هغوئ ته د مؤلف كتاب ولي الدين محمد عبدالله الخطيب التبريزي ثخه .

اي الله! ما او دوئ ټول و بخښې او زمونږ خطاوي معاف کړې . آمين.

حسبنا الله ونعم الوكيل على الله توكلنا لاحول ولاقوة الا بالله العلى العظيم، اللهم صل على سيدنا محمد وآله واصحابه صلوة تنجينا بها من جميع الاهوال والافات وتقضي لنا بها جميع الحاجات وتطهرنا بها من جميع السيئات وترفعنا بها عندک اعلى الدرجات وتبلغنا بها اقصى الغايات من جيمع الخيرات في الحيوة و بعد اللمات ،انک على كل شئ قدير ۞ .

# د حدیث دیني او تشریعي حیثیت او ارزښت

نبي کریم ﷺ د الله تعالی ﷻ رالیږل سوی آخري پیغمبر او رسول دی، هغوئ د الله تعالی په حکم سره د نړۍ خلک د توحید، الله پرستۍ، او د ایمان او یقین دلاري څخه خبر کړل، د رسول الله ﷺ بعثت په داسي وخت کي وسو چي د دنیا څخه د الله عبادت پورته سوی وو او د بتانو د بندګۍ دور پیل وو، د الله ﷻ د بندګۍ پر ځای د تراشل سوو ډبرو په وړاندي د عزتمند انسان سر کښته کیدی، د ښه خبرو په پرېښودو سره خلک په فسق او فجور کي اخته وه، د ښه اخلاقو او نیکۍ پر ځای د ظلم او فساد دور وو، د سلوک او احسان د ظلم په وړاندي زنګنونه کښته کړې وه.

په داسي نازک او سخت وخت کي الله تعالی ﷻ رسول الله ﷺ د خپل کتاب قرآن مجید سره د دنیا د هدایت لپاره راولیږی، رسول الله ﷺ د قرآن کریم د همیشنۍ رڼا سره خلکو ته صحیح لار وښودل د هغه په تعلیماتو سره یې د کفر اوشرک د سرکښانو سرونه د یوه الله ﷻ په وړاندي کښته کړل، فسق او فجور یې له منځه یوړ، انسانان یې د اخلاق او احسان د ظلم او سختۍ عادي انسانان یې د نه ختمېدونکي آمن، صلحي او میني په ګلزار کي ودرول، همدارنګه دغه رسول ﷺ په نړۍ کي یو ستر انقلاب (بدلون) رامنځته کړ، داسي انقلاب چي د ټولي نړۍ لپاره د رحمت او راحت سبب وو، او یو ستر دین یې پر دغه مځکه خپور کړ، داسي دین چي د پوره انسانیت عین فطرت او عین مزاج وو. هغه دین څه وو؟ قرآن کریم او د هغه ستر هدایت وو او هغه ستر انقلاب وو چي د رسول الله ﷺ پاک تعلیمات او مقدس اخلاق چي هغه د حدیث په نامه سره یادیږي.

ټول امت پر دې متفق دی چي قرآن کریم یو جامع او پوره کتاب د هدایت دی چي په هغه کي اسلامي احکام، هدایات او شریعت په اصولي او اساسي توګه باندي مذکور دی. او څرنګه چي قرآن کریم د اسلام اصولي رهنما او ددین اساسي دستور دی همداسي په ظاهره او په معنا کي یوه معجزه هم ده، مطلب دا څرنګه چي په ظاهره د قرآن کریم فصاحت او بلاغت د ژبي او بیان اعجاز، د الفاظو ترتیب د جملو ترکیب او جوړېدل، د (قل فاتوا بسورة من مثله) د دعوې د دنیا د خلکو د عقل او فهم بېکاره او د عرب فصیحانو د فصاحت او بلاغت بېکاره کېدل، چي د قرآن کریم د یو سورت یا یوې جملې یو مثال هم وړاندي کولای نه سو او نه به یې په وروسته کي وړاندي کړي، همدا رنګه ددې د معنوي پراختیاوو او هر اړخیز ژور والي په وړاندي هم

انساني ذهن او فکر عاجز دی چي د قرآن کریم په ډول جامع علوم او معارف او حاوي احکام او اصول کتاب یا د هغه د یو جز په ډول وړاندي کړي او نه یې څوک وړاندي کولای سي.

دا د قرآن کریم معجزه ده چي ددې په یوه یوه آیت او یوه یوه حرف کي د علوم د معارف بې پایه دریابونه صرف سوي دي چي د هغه د ژوروالو دا عالم دی چي د پرله پسې څلورلسمي صدۍ څخه د علوم معارف او د حکمتونو نکات بې پایه زخیرې پرله پسې زخیرې راوځي او اوس د هغه د ژوروالي لا هیڅ معلومات نسته چي د هغه د جامعیت دا حال دی چي د هغه د یوه یوه لفظ څخه د بې شمیره مسائل او احکام او استنباط په هر وخت کي کیږي بیا هم د هغه هر اړخیز ډول د نور نړۍ لیدني او تحقیق غوښتونکی دی.

ځرګنده ده چي د ومره بې شمیره او په لفظ لفظ کي د ځای سوي علوم او معارف را ایستل د آیاتونو د اجمال تفصیل کول، په عموم کي تقید کول، مراد واضح کول او ابهام لیري کول د ارکان او شرائط او اسباب او مواقع تفصیلات بیانول د هر باب د غیر پایانه جزیات تعین کول، فرضونه، واجبات، مستحبات، سنتونه ټول تفصیلات او د هغه احکام بیانول د اتمام امور چي د قرآن کریم تفصیل او تشریح او د هغه توضیح لپاره ضروري وه د عوام الناس د ناقص فهم څخه لوړ او پورته وو چي هغې ته د هغوئ رسیدل ناممکن وه.

که د ټولي نړۍ انسانان د (قل فاتوا بسورة من مثله) د دعوې جواب ځکه نسي ورکولای او د قرآن په ډول کلام یا د هغه د علومو په ډول معارف ځکه د مثال په توګه هم نسي وړاندي کولای چي د هغوئ محدود ذهن او ذکاء او علم او عقل کي هغه پراختیا او ژوروالی نسته چي د قرآن کریم په ډول د معجزانه کلام د هغوئ څخه صادر سي نو د هغوئ تنګ فهم او د ذهن او فکر محدودیت ددې هم نسي کیدلای چي د هغوئ د قرآن کریم معجزانه بنیادي او اصولي جملو څخه د وتلو حقائق او معارف ادراک او وجهي د معناوو څخه د مراد او غیر مراد تعین صرف د خپل فهم په زور وکړلای سي.

ځرګنده سوه چي هر کله د قرآن کریم د اجمال تفصیل او د هغه د اصول تشریح د عام انسان د عقل او فهم څخه لیري خبره ده نو د قرآن کریم معنا او مطلبونه او د هغه مراد تر لاسه کولو لپاره د رسول الله ﷺ تشریح او د هغوئ د اشاراتو او ارشاداتو اړ کېدل او هغوئ د خپل ځان لپاره د قرآني فهم رهبر ګڼل ضروري کیږي ځکه که د قرآن حیثیت ددې درجې وي چي هر کس او ناکس ته ددې معنا او مقصد پرته د یو لاربنود تر لاسه کیدلای نو د رسول الله ﷺ بعثت به

(نعوذبالله) تر یو حده پوري غیر ضروري وای ، بلکه دا به وای چي د قرآن کریم هدایت به براه راست په دنیا کي نازلیدی او هدایت غوښتونکو به په خپله ددې ځخه ګټه اخیستلای .
حقیقت دادی چي د دنیا د هدایت لپاره درسول الله ﷺ رالیږل یو ضروري او لازمي شی دی ځکه دا ناممکن ده چي د رسول الله ﷺ د لارښووني او واسطې ځخه پرته په کتاب الله پوه سي او د هدایت مقصد تر لاسه سي ځکه الله تعالی خپل کتاب پر رسول نازلوي نو د هغه مخکي د هغه مقصدونه او مطالب د ملائکي په ذریعه هغه ته واضح کوي او د هغه رموز او کنایات او حکمت د وحي په ذریعه منکشف کوي ، بیا رسول په هغه ماموره کیږي چي هغه د الله تعالی مخلوق ته د کتاب تعلیم ورکړي او د هغه تشریح او وضاحت کولو سره هدایت عام کړي ، امام ازاعي رح د حضرت حسان بن عطیه قول نقل کوي فرمایي چي:
(کان الوحي ینزل علی رسول الله صلی الله علیه وسلم ویحضره جبریل بالسنة التي تفسر ذالک ) ترجمان السنة ص ۱۲۳ ج ۱.
ژباړه : پر رسول الله ﷺ به وحي راتلې او جبرائیل ؑ به رسول الله ﷺ ته د هغه سنت راوړلو سره راتلی چي د هغه تفسیر به یې کوی .
په خپله د قرآن کریم ځخه ثابته ده چي د رسول الله ﷺ د بعثت لوی مقصد دادی چي د کلام حمید خپله تلاوت وکړي او بیا د هغه د لارښونو ځخه نړیوال خبر کړي او د هغه معنا او مطلبونه نړیوالو ته ځرګند کړي . په آیت کي ارشاد دی :

لَقَدْ مَنَّ اللّٰهُ عَلَی الْمُؤْمِنِینَ إِذْ بَعَثَ فِیهِمْ رَسُولاً مِّنْ أَنفُسِهِمْ یَتْلُو عَلَیْهِمْ آیَاتِهِ وَیُزَکِّیهِمْ وَیُعَلِّمُهُمُ الْکِتَابَ وَالْحِکْمَةَ . (آل عمران: ۱۶۴)

ژباړه : بیشکه الله تعالی پر مؤمنانو لوی احسان او کرم وکړ چي د هغوئ ځخه یې هغوئ ته پیغمبر راولیږی چي د هغوئ په وړاندي د الله تعالی آیاتونه ووایي او هغوئ پاکوي او هغوئ ته د کتاب او عقل خبري ښیي .
یعني د رسول الله ﷺ د بعثت په مقصدو کي د کلام الله تلاوت او د هغه تعلیم او تعلم یو لوی مقصد دی، نه یوازي مقصد بلکه حاصل نبوت دی ځکه چي نبي د امت هدایت د کتاب د تعلیم په رڼا کي کوې ، د الهي دربار ځخه چي کوم فرمان او کوم احکام د وحي په ذریعه د کتاب په شکل کي راځي هغه امت ته رسول او پر هغه په خپله عمل کولو سره پر نړیوالو باندي عمل کول په اصل کي د نبي فریضه ده ،د اصلاح کونکي او هدایت کونکي لپاره چي دا ضروري ده

چي هغه قوم ته هدايت وکړي نو دا هم ضروري ده چي وړاندي هغه په خپله هم عمل په وکړي چي د هغه په ذريعه هغه خپله فريضه ادا کوي نو بيا نورو ته د عمل کولو دعوت ورکړي ، همداسي الله تعالی ارشاد وفرمايه چي د نبي کريم ﷺ شان دادی چي زموږ د لوري څخه هر کله چي يو حکم يا فرمان ورته ورسيږي نو رسول الله ﷺ وړاندي هغه وايي او په هغه پوهيږي د الله تعالی مراد ونه ترلاسه کوي او پر هغو لومړی خپله عمل کوي بيا هغه تعليم د امت په وړاندي ايږدي د الله تعالی د لوري راغلي احکام خلکو ته رسوي او نه يوازي دا چي رسوي يې بلکه تشريح او توضيح او د هغه تفصيل په خپل عمل سره او په خپل فعل سره او په خپل وينا سره کوي چي قوم ته پر هغه عمل کول آسان سي او که داسي نه وي چي رسول د قرآن تشريح وکړي او د هغه مطلبونه او مفهوم بيانولو سره د مراد او مقصد تعين وکړي بلکه يوازي په عام انساني عقل او فهم باندي هغه پرېښودلای سي نو يقينا هغه خلک چي د هغوئ د هدايت لپاره قرآن نازل سوی وو تهول ژوند کي يې ددې مراد نه سو ترلاسه کولای ، او نه ددې مطلب او مقاصد يې ترلاسه کولای سول او قرآن کريم چي د هدايت چينه ده او يوازي د عمل کولو لپاره نازل سوی وو د محدود انسان د ذکر او فکر لپاره د دماغي هڅي مشغله به پاته سوې وای چي د هغه په نتيجه کي به نسل انساني د هغه مدارج او ترقيات څخه د هميشه لپاره محروم پاته کېدی چي د قرآن د هدايت په ذريعه د هغوئ لپاره مقدر سوی وه .

د پورتني آيت څخه څرګنده سول چي الله تعالی پر مؤمنانو باندي دا احسان او اکرام وکړ چي د ايمان په ډول دولت او د قرآن په ډول هدايت سره يې ونازول نو دا انعام يې هم پر وکړ چي په خپله پر هغوئ يې د خپل منزل د لټولو ذمه داري نه واچول بلکه د هغوئ څخه يې يو رسول ورته راوليږی چي هغه منزل ته د هغوئ لارښونه وکړي او بيا د قرآن کريم د نازليدو سره د هغوئ د مراد تعين او د هغوئ د مقصدونو د وضاحت باريې هم د انسان پر ضعيف او کمزوري فهم او عقل باندي نه واچوی بلکه د عالم د ټولو څخه ستر معلم يې هغوئ ته راوليږی چي د قرآن تعليم هغوئ ته ورکړي او د هغه د معنا او مطلب او مقصد څخه نړيوال خبر کړي چي حديث ، د قرآن کريم شرح او د هغه بيان کېدل قرآن کريم په نورزيات وضاحت سره ثابتوي ، د الله تعالی ارشاد دی :

وَأَنزَلْنَا إِلَيْكَ الذِّكْرَ لِتُبَيِّنَ لِلنَّاسِ مَا نُزِّلَ إِلَيْهِمْ وَلَعَلَّهُمْ يَتَفَكَّرُونَ . (النحل: ۴۴)

ژباړه : او موږ پر تا باندي قرآن ځکه نازل کړ چي ته خلکو ته ددې کتاب معنا او مطالب بيان کړې چي د هغوئ د هدايت لپاره راغلي دي چي خلک په هغه کي غور او فکر وکړلای سي .

یعني اې محمد ﷺ! موږ دغه کتاب چي پر تا نازل کړی دی هغه چي څرنګه د انبیاء کرامو د صحیفو اجمالي یادونه ده همداسي هغه د شریعت اسلامي دستور هم دی چي په هغه کي د دین او شریعت احکام او مسائل او علوم او معارف اعجازي ډول سره د هغه یو یو لفظ او کرښه کي ځای سوي دي هر څوک د هغه ژوروالي او حقیقت ته نسي رسیدلای ځکه د دې د بیان او تفصیل او تشریح ذمه داري هم تا ته سپارل کیږي ځکه چي پر تا د دې ټول رموز، نکات او اسرار د وحي په ذریعه منکشف کیږي او موږ تا ته د حقیقت شناسۍ هغه توان در کړی دی چي د دې شارح ته ورکول پکار دي او ستا د ذهن او فکر او عقل او فهم تربیت موږ په خاصه توګه د دې لپاره کړې ده نو ته د دې د مشکلاتو شرح د دې د علوم تفسیر د دې د مراداتو تعین د دې د مسائل او احکامو استنباط کوه او خداوندي مراداتو اظهار کولو سره د عمل لار پیدا کړه.

دا صحیح ده چي قرآن کریم په عربو کي نازل سوی وو چي د هغوئ مورنۍ ژبه هم عربي وه مګر د دې څخه دا نتیجه اخیستل چي هر کله د قرآن کریم اهل مخاطب عرب وه او قرآن چي د چا په وړاندي خپل دعوت اېښودی هغوئ د فصاحت او بلاغت په لحاظ په اعلی درجه کي وه نو هغوئ ته د قرآن د تشریح او وضاحت لپاره د بل چا ضرورت نه وو، د ناپوهۍ خبره ده دا داسي ده لکه یو ناپوه سړی چي دا ووایي چي هر کله قانون جوړونکو په اصولي توګه سره یو اساسي قانون مرتب او منظور کولو سره پر هیواد باندي جاري کړی دی نو بیا د هغه قانون په موجودګي کي د قانون جوړونکو ادارو او د هیواد د مشر د جاري کړده هغه فرمانونو او هدایاتو ته هیڅ ضرورت نسته چي په هغه سره د حکومت چاري چلیږي او مستقل ځانته یو قانون نه دی بلکه د هغه اساسي قانون تشریح او وضاحت او د هغه تفصیل دی.

څرګنده ده چي داسي خبره د هغه سړي په دماغ کي راتللای سي چي نه یوازي دا چي د علم او عقل څخه په میلونو لیري وي بلکه ماحول او حالاتو څخه قطعا ناآشنا هم وي او بیا دا خو یو مادي او انساني قانون دي چي د انساني دماغ اختراع ده مګر د آسماني قانون اساسي یعني قرآن خو د الله تعالی نازل سوی نظام حیات او قانون دی چي د هغه په اړه مخکي عرض سوی دی چي دا کتاب نه یوازي د الفاظو د لحاظه اعجازي حیثیت لري بلکه په معنوي حیثیت سره هم معجزه ده چي د هغه د یوه یوه لفظ په ژوروالي کي علوم او معارف او احکام د مسائلو هغه خزانې پټې دي چي هغه ته د انساني ذهن او فهم رسیدل ناممکن دي.

د حدیث د دې صفت او بیان په اړه د امام مکحول (رح) قول د امام اوزاعي څخه نقل دی چي

(الكتاب احوج الى السنة من السنة الى الكتاب) ترجمان السنة ص۱۲۲ ج ۱.
ژباړه : د الله كتاب د سنت په لور زيات محتاج دى په نسبت د سنت د كتاب الله و لور ته.
حافظ ابو عمر (رح) ددې مقولې داسي تشريح كوي چي :
(يريد انها تقضى عليه و تبين المراد منه).
ژباړه : ددې مطلب دادى چي سنت د قرآن كريم مراد بيانوي.
امام شاطبي (رح) ددې قول په وضاحت كولو سره په پاى كي داسي ليكي چي :
(فكان السنة بمنزلة التفسير و الشرح المعاني احكام الكتاب) ترجمان السنة ص۲۴ ج ۲.
ژباړه: لكه سنت چي د كتاب الله د احكامو لپاره د تفسير او شرحي په درجه كي دي.
ددې تفصيل څخه دا خبره څرګنده سوه چي د قرآن كريم تفصيل او تشريح چي د حديث او سنت په صورت كي ده هغه د الله تعالى د لوري يوه فريضه ده چي په هغه سره رسول الله ﷺ ماموره كړل سوى وو چي هغه مبارك په ذمه دارى سره دا فرض ادا كړه نو د نبي كريم ﷺ ددغه تفصيل او تشريح نوم كه قولي وي يا فعلي د قرآن په اصلاح كي بيان دى چي (لتبين للناس ما نزل اليهم) څخه استنباط كيږي او خپله د رسول الله ﷺ په اصلاح كي حديث او سنت دي چي د رسول الله ﷺ د ارشاد (حدثوا عني الخ، او عليكم بسنتي الخ) څخه مفهوم اخيستل كيږي ، د قرآن كريم او پورتني قولونو څخه دا ثابته سوه چي حديث په اصل كي د قرآن كريم شارح (تشريح كونكي) دي ځكه چي قرآن كريم متن دى او حديث د هغه شرح، قرآن اصول دي او حديث د هغه تفصيل، نو داسي به ويل كيږي چي حديث د قرآني مبهماتو لپاره ايضاح دي د قرآني مجملاتو لپاره تفصيل دى ، د قرآني مشكلاتو لپاره تفسير دى او د مخفياتو لپاره اظهار دى ، لكه د حديث څخه پرته چي دا ناممكنه ده چي د عام ذهن او فكر رسيدل د قرآن حكيم مضمرات، مرادونه او رموزو ته وسي ځكه چي زموږ دا عقيده ده : څرنګه چي د نبي كريم ﷺ ذات اقدس د ټولي نړۍ لپاره نور او د پوره عالم لپاره رحمت دى همداسي د رسول الله ﷺ حديث د هغه سنت او د هغه مبارك اخلاق د امت لپاره مشعل هدايت دى او د رسول الله ﷺ پر اقوالو او ارشاداتو باندي عمل د رسول الله ﷺ د اخلاق حسنه پيروي د نيكبختۍ باعث او د جنت كيلي ده.

## د حديث حجت

ايمان باالله او ايمان بالرسول د اسلامي شريعت د بنيادو څخه دوې ستني دي يعني د مؤمن او مسلمان جوړېدو لپاره ځرنګه چي د الله تعالى وحدانيت او د هغه الوهيت باندي يقين او د هغه ټول صفاتو باندي راسخ اعتقاد ضروري دی همداسي پر رسول الله ﷺ باندي ايمان راوړل او د هغه د رسالت او نبوت په زړه سره تصديق كول هم لازم دي.

پر رسول الله ﷺ باندي د ايمان راوړلو مطلب دادی چي دا اعتقاد او يقين وي چي رسول الله ﷺ غوره او تر ټولو محبوب بنده دی چي الله تعالى هغه د انسانانو د هدايت لپاره په خپل كتاب وركولو سره دې دنيا ته مبعوث كړی دی ، د ايمان د تكميل لپاره ددې عقيدې او يقين سره دا هم ضروري ده چي د رسول الله ﷺ پوره پوره فرمانبرداري او اطاعت وكړل سي هغه چي څه حكم وركړي هغه ومنل سي ، هغه چي څه فيصله وكړي هغه تسليم كړي او د هغه ښودلي تعليمات او د هغه راوړې اسوه باندي عمل كول د نجات مدار وګڼل سي .

وَمَا آتَاكُمُ الرَّسُولُ فَخُذُوهُ وَمَا نَهَاكُمْ عَنْهُ فَانتَهُوا . (الحشر :۷)

ژباړه: كوم څه چي رسول الله ﷺ دركړي دي هغه ونيسئ او د څه څخه چي يې منعه كړي ياست د هغه څخه منعه سئ.

په قرآن كريم كي چي چيري پر الله تعالى باندي د ايمان راوړلو دعوت وركړل سوی دی هلته پر رسالت باندي ايمان راوړل هم ضروري ګرځول سوي دي ، د الله ﷻ ارشاد دی:

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُواْ آمِنُواْ بِاللّهِ وَرَسُولِهِ وَالْكِتَابِ الَّذِي نَزَّلَ عَلَى رَسُولِهِ وَالْكِتَابِ الَّذِيَ أَنزَلَ مِن قَبْلُ وَمَن يَكْفُرْ بِاللّهِ وَمَلاَئِكَتِهِ وَكُتُبِهِ وَرُسُلِهِ وَالْيَوْمِ الآخِرِ فَقَدْ ضَلَّ ضَلاَلاً بَعِيدًا . (النساء: ۱۴)

ژباړه : اې مؤمنانو ! ايمان راوړئ (يعني پر خپل ايمان باندي ټينګ اوسئ) پر الله او د هغه پر رسول او د هغه پر كتاب كوم چي هغه پر خپل رسول باندي نازل كړ او پر هغه كتاب باندي چي مخكي نازل سوی دی او ياد لرئ څوک چي انكار وكړي د الله تعالى او د هغه د ملائكو او د هغه د كتابونو څخه او د هغه د رسولانو او د آخرت د ورځي څخه نو هغه په ليري ګمراهي كي ولويدی.

وَالَّذِينَ آمَنُواْ بِاللّهِ وَرُسُلِهِ وَلَمْ يُفَرِّقُواْ بَيْنَ أَحَدٍ مِّنْهُمْ أُوْلَـئِكَ سَوْفَ يُؤْتِيهِمْ أُجُورَهُمْ.

سورة النساء ۱۵۲.

ژباړه : او کومو کسانو چي پر الله تعالی او د هغه پر رسولانو ایمان راوړ او په هغوئ کي يې فرق ونه کړنو دغه خلک دي چي ډير ژر به الله تعالی هغوئ ته اجر ورکړي .

إِنَّمَا الْمُؤْمِنُونَ الَّذِينَ آمَنُوا بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ .سورة النور ۶۲

ژباړه : په تحقيق سره مؤمنان هغه کسان دي چي پر الله تعالی او د هغه پر رسول ايمان ولري .

وَمَن لَّمْ يُؤْمِن بِاللَّهِ وَرَسُولِهِ فَإِنَّا أَعْتَدْنَا لِلْكَافِرِينَ سَعِيرًا ۱۳. سورة الفتح

ژباړه : او چا چي پر الله تعالی او د هغه پر رسول ايمان نه راوړ نو موږ د هغه منکرانو لپاره سور اور تيار کړی دی .

يَا أَيُّهَا النَّاسُ قَدْ جَاءَكُمُ الرَّسُولُ بِالْحَقِّ مِن رَّبِّكُمْ فَآمِنُواْ خَيْرًا لَّكُمْ. سورة النساء آية ۱۷۰

ژباړه : اې خلکو بيشکه تاسو ته په حق سره رسول راغلی نو پر هغه ايمان راوړی ځکه چي په دې کي ستاسو خير دی .

د دغه آياتو څخه څرګنده سوه چي څرنګه پر الله تعالی باندي او د هغه پر ملائکو ايمان راوړل ضروري دي همداسي د هغه پر رسول او د هغه پر راليږل سوي کتاب او د هغوئ تصديق کول هم لازم دي او کوم خلک چي پر الله او د هغه پر رسول ايمان نه راوړي يا د رسول تصديق نه کوي هغوئ کافران او منکران دي چي د هغوئ لپاره د الله تعالی د لوري د سخت عذاب او تل خسران او تاوان سزا ده .

او څرنګه چي د رسول الله ﷺ د رسالت تصديق او د هغوئ پر نبوت د ايمان راوړلو قرآن کريم ډير دعوت ورکړی دی همداسي د رسول الله ﷺ د طاعت او فرمانبرداری يې هم تائيد کړی دی او د رسول الله ﷺ هره فيصله او حکم منزل د ايمان لپاره ضروري ګرځول سوی دی ، د الله تعالی ارشاد دی :

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا أَطِيعُوا اللَّهَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ وَلَا تُبْطِلُوا أَعْمَالَكُمْ ۳۳.سورة محمد

ژباړه : اې مؤمنانو د الله تعالی حکم ومنئ او د هغه د رسول اطاعت وکړئ او خپل اعمال مه ضائع کوئ .

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُواْ أَطِيعُواْ اللَّهَ وَرَسُولَهُ وَلَا تَوَلَّوْا عَنْهُ وَأَنتُمْ تَسْمَعُونَ ۲۰. الانفال

ژباړه : اې مؤمنانو ! د الله تعالی او د هغه د رسول حکم ومنئ او مخ مه ځيني اړوئ په داسي حال کي چي تاسو يې اورئ .

مَنْ يُطِعِ الرَّسُولَ فَقَدْ أَطَاعَ اللَّهَ .سورة النساء ۸۰

ژباړه: چا چي د رسول حکم ومنئ نو بلا شکه هغه د الله تعالی اطاعت وکړ .

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُواْ أَطِيعُواْ اللّهَ وَأَطِيعُواْ الرَّسُولَ وَأُوْلِي الأَمْرِ مِنكُمْ فَإِن تَنَازَعْتُمْ فِي شَيْءٍ فَرُدُّوهُ إِلَى اللّهِ وَالرَّسُولِ . سورة النساء آية ۵۹

ژباړه : اې مؤمنانو! د الله تعالی حکم ومنئ او د رسول حکم ومنئ او په خپلو کي د خپل حاکمانو حکم ومنئ که تاسو په یو خبره کي په خپل مینځ کي په جګړه سئ نو الله تعالی او د هغه د رسول په لور رجوع کوئ .

فَلاَ وَرَبِّكَ لاَ يُؤْمِنُونَ حَتَّىَ يُحَكِّمُوكَ فِيمَا شَجَرَ بَيْنَهُمْ ثُمَّ لاَ يَجِدُواْ فِي أَنفُسِهِمْ حَرَجًا مِّمَّا قَضَيْتَ وَيُسَلِّمُواْ تَسْلِيمًا ۶۵ . سورة النساء.

ژباړه : نو قسم دی ستا په پروردګار چي هغه کسان مؤمنان کیدلای نسي تر څو پوري چي هغوئ تا په خپله جګړه کي فیصله کونکی جوړ نه کړي (که هغوئ تا فیصله کونکی جوړ کړي نو د هغه نتیجه به دا وي چي) هغوئ به ستا په فیصلې سره په خپلو زړونو کي تنګي نه تر لاسه کوي او هغه به پوره پوره تسلیم کړي .

وَمَا كَانَ لِمُؤْمِنٍ وَلَا مُؤْمِنَةٍ إِذَا قَضَى اللَّهُ وَرَسُولُهُ أَمْرًا أَن يَكُونَ لَهُمُ الْخِيَرَةُ مِنْ أَمْرِهِمْ وَمَن يَعْصِ اللَّهَ وَرَسُولَهُ فَقَدْ ضَلَّ ضَلَالًا مُّبِينًا ۳۶ . الاحزاب

ژباړه: هیڅ مؤمن او مؤمني ته دا ښکار نه ده چي کله الله تعالی او د هغه رسول یو حکم وکړي نو هغوئ ته دي د خپلي معاملې اختیار پاته سي او څوک چي د الله تعالی او د هغه د رسول نافرماني وکړي نو هغه څرګند ګمراه سو .

د دغه آیاتونو څخه څرګندیږي چي پر الله تعالی د ایمان په اړه دري شیان ضروري دي :

۱. د الله تعالی پر ذات د هغه پر ملائکو او د هغه پر کتابونو باندي د ایمان راوړلو سره دا هم ضروري ده چي د هغه د رسول رسالت او نبوت باندي پوره پوره ایمان راوړل سي که یو سړی پر رسول الله ﷺ ایمان نه راوړي یا د هغوئ د رسالت تصدیق نه کوي نو هغه مؤمن نه دی .

۲. د الله تعالی طاعت او د هغه د احکامو د فرمانبرداري سره سره د رسول الله ﷺ اطاعت او فرمانبرداري هم ضروري ده ، که یو سړی د نبي کریم ﷺ احکام مني یا اطاعت یې کوي نو لکه هغه چي د الله تعالی هم اطاعت او فرمانبرداري کوي او که څوک د رسول الله ﷺ

اطاعت نه کوي او احکام تر شا غورځوي نو ددې مطلب دادی چي هغه د الله تعالی اطاعت هم نه کوي او د الله تعالی احکام هم تر شا غورځوي ، او څرګنده ده چي کوم سړی د الله تعالی احکام نه مني یا د هغه اطاعت نه کوي نو هغه په ضلالت او ګمراهي کي دی.

۳. که په خپل مینځ کي جګړه وي یا دعوه وي نو مسلمانانو ته حکم ورکړل سو چي هغوئ الله تعالی او د هغه د رسول په لور رجوع وکړي، د الله تعالی په لور د رجوع کولو مطلب دادی چي د قرآن کریم په رڼا کي د خپلو جګړو فیصله وکړي ، او د رسول په لور رجوع کولو دا معنا ده چي رسول خپل فیصله کونکی جوړ کړي او هغه چي څه فیصله وکړي هغه تسلیم کړي او د هغه د فیصلې څخه وروسته هیڅ ته څه ویل پاته نه سي ځکه چي د ایمان ننبه داده چي خپله ټولي جګړې او دعوې او اختلافاتو کي نبي کریم ﷺ داسي فیصله کونکی وګرځوي چي د هغوئ د فیصلې څخه وروسته د هیڅ شک ځای پاته نه سي او د هغه په فیصلې سره په خپل زړه کي هیڅ تنګي محسوس نه کړي.

نو ددې څخه یوې خوا ته دا معلومه سوه چي د ایمان د پوره والي لپاره د الله تعالی پر ذات او د هغه پر ملائکو او د هغه پر کتابو باندي ایمان راوړلو څخه وروسته د رسول الله ﷺ پر رسالت هم ایمان راوړل ضروري دي او د بلي خوا دا هم ثابته سوه څرنګه چي د الله کتابونه د الله تعالی د لوري د بندګانو د هدایت لپاره پر رسول نازلیږي او د ملائکو وحي چي د الله تعالی پیغام پیغمبرانو ته رسوي په شریعت کي حجت (دلیل) دی همدارنګه د انبیاء کرامو ارشادات هم قطعا حجت دي ځکه چي پر کوم شي ایمان راوړل ضروري او لازم وګرځول سي هغه به حجت (دلیل) وي همدا رنګه د نبي فیصلې او احکام به هم حجت وي ځکه چي د الله تعالی په څو څو واره بندګانو ته حکمونه ورکول چي تاسو خپل اختلافات او جګړو کي رسول فیصله کونکی جوړ کړی او د هغوئ فیصلې تسلیم کړئ او هغوئ چي څه حکم درکړي په هغه عمل وکړئ. خپله د هغوئ حجیت ثابتوي.

که د رسول الله ﷺ اقوال، افعال او احکام حجت نه وای نو د رسول پر رسالت به ایمان راوړل ضروري نه ګرځیدلای او نه به د هغوئ د احکامو پیروي د ایمان ننبه ښودل کیدلای او دا مخکي ښودل سوي دي چي ایمان پر هغه شي راوړل کیږي کوم چي حجت قاطعه وي او اطاعت او فرمانبرداري د هغه شي کیدلای سي چي واجب التسلیم وي که هغه شي چي پر هغه ایمان راوړل کیږي یا د هغه شي چي پیروي کیږي که هغه حجت قاطعه او واجب التسلیم نه وي نو

ځرګنده ده چې پر هغه د ایمان راوړلو یا د هغه د پیروي کولو هیڅ معنا نه سول، او که دا ومنل سي چې د نبي افعال او اقوال چې د هغه د ټولګي نوم حدیث دي په شریعت اسلام کي حجت نه وای نو هغه خلک چې نبي نه مني یا د نبي د قول او فعل پیروي نه کوي هغوئ ته کافر ویل نه دي پکار ځکه چې کوم شی حجت نه وي او د هغه واجب التسلیم کېدل یقیني نه وي د هغه د انکار څخه کفر ځرنګه لازم کیدلای سي حال دا چې په قرآن کریم کي هغه خلکو ته په ځرګنده کافر او ګمراه ویل سوي دي کوم چې د نبي د احکامو پیروي نه کوي یا د هغه فیصلې چې د اقوالو په شکل کي دي واجب التسلیم نه مني.

نو ځرګنده سوه چې په قرآن کریم سره د نبي ښودل سوي احکام د هغوئ تعلیمات او هدایات او د هغوئ ارشادات چې د حدیث په نامه یادیږي په شریعت کي ځانته حجت دی. نو د هغه منل، واجب التسلیم ګڼل او په هغه عمل کول د ایمان جز دی او د هغه مخ اړول یا د هغه د حجیت څخه انکار کول یا هغه قابل رد ګڼل کفر، نفاق او ضلالت دی چې د هغه په اړه الله تعالی اعلان کوي:

فَإِنَّا أَعْتَدْنَا لِلْكَافِرِينَ سَعِيرًا. سورة الفتح.

ژباړه: بیله شکه موږ کافرانو ته سور اور تیار کړی دی.

# د حدیث تدوین او کتابت

که د تاریخ او سیرت کتابونه مطالعه کړل سي نو ځرګنده به سي چې د حدیث کتابت او د هغه تدوین او ترتیب د نبي کریم ﷺ په ژوند مبارک کي پیل سوی وو، د رسول الله ﷺ اقوال او ارشادات صحابه کرامو قلمبند کول او د حدیث مبارک په لیکلو سره یې هغه د ځان سره خوندي ساتل.

حضرت ابوهریره ﷺ چې د نبوي مدرسې یو ستر زده کونکی او په دربار رسالت کي تل یو حاضر خادم وو د رسول الله ﷺ حدیثونه په زیات شمیر سره روایت کوي د هغه سره د احادیث نبوي سرمایه تر ټولو زیاته وه او هغه په خپله بیان کوي چې په صحابه کرامو کي د عبدالله بن عمرو بن العاص ﷺ څخه پرته د بل چا سره زما څخه زیات حدیثونه خوندي نه دي او د هغې وجه ابو هریره ﷺ دا بیانوي چې:

(فانه کان یکتب ولا اکتب). بخاري ص۲۲ ج۱.

ژباړه: هغه به حدیثونه لیکل او ما به نه لیکل.

د حضرت عبدالله بن عمرو ﷺ په اړه د حضرت ابوهریره ﷺ یو بل بیان دی چي :

(فاني كنت اعي بقلبي وكان يعي بقلبه يكتب بيده) . طحطاوي ص۳۸۴ ج ۲.

ژباړه: عبدالله بن عمرو ﷺ به د رسول الله ﷺ حدیثونه لیکل هم او هغه به یې یادول هم او ما به یوازي یادول.

د روایتونو څخه دا هم ثابتیږي چي د صحابه کرامو د حدیث کتابت په خپله نه وو بلکه د رسول الله ﷺ څخه دوئ د حدیث د لیکلو اجازه اخیستې وه ، هر کله چي د رسول الله ﷺ څخه اجازه تر لاسه سول او د رسول الله ﷺ ارشادات صحابه کرامو لیکل پیل کړل.د ابوهریره ﷺ د دغه روایت آخري الفاظ دادي :

(استاذن النبي صلى الله عليه وسلم في ذلك فاذن له)

ژباړه : حضرت عبدالله بن عمرو ﷺ د حدیثونو د لیکلو اجازه وغوښتل نو رسول الله ﷺ اجازه ورکړه.

همدارنګه په خپله د عبدالله بن عمرو ﷺ څخه روایت دي چي :

(قال رسول الله صلى الله عليه وسلم قيد العلم قلت وما تقييده؟قال الكتابة) .

مجمع الزوائد ص۶۰ ج ۱.

ژباړه : رسول الله ﷺ وفرمایل چي علم قید کړئ ما عرض وکړ چي علم څرنګه قید کیدلای سي ؟ رسول الله ﷺ وفرمایل چي هغه ولیکئ (چي خوندي سي) .

حضرت عبدالله بن عمرو بن العاص ﷺ د حدیث د لیکني په اړه خپل واقعه داډول بیانوي :

كُنْتُ أَكْتُبُ كُلَّ شَيْءٍ أَسْمَعُهُ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أُرِيدُ حِفْظَهُ فَنَهَتْنِي قُرَيْشٌ وَقَالُوا أَتَكْتُبُ كُلَّ شَيْءٍ تَسْمَعُهُ وَرَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَشَرٌ يَتَكَلَّمُ فِي الْغَضَبِ وَالرِّضَا فَأَمْسَكْتُ عَنْ الْكِتَابِ فَذَكَرْتُ ذَلِكَ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَوْمَأَ بِأُصْبُعِهِ إِلَى فِيهِ فَقَالَ اكْتُبْ فَوَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ مَا يَخْرُجُ مِنْهُ إِلَّا حَقٌّ . ابوداؤد ص ۱۵۷ ج ۱.

ژباړه : ما چي به څومره خبري د رسول الله ﷺ د ژبي مبارکي څخه اوریدلې د یاد ساتلو لپاره به مي لیکلې زما د دغه کار څخه چي قریش خبر سول نو هغوئ زه منعه کړم او وه یې ویل چي ته هر څه د رسول الله ﷺ څخه اورې هغه لیکې حال دا چي رسول الله ﷺ بشر دی د غصې په حالت کي هم وي او د خوشحالی په حالت کي هم نو زه د لیکلو څخه منعه سوم او دد یادونه مي رسول الله ﷺ

ته وکړه نو رسول الله ﷺ وفرمایل چي لیکه یې او خپل خولې مبارکي ته په اشاره کولو سره یې وفرمایل : قسم په الله ! ددې څخه په هیڅ حالت کي هم غلطه او ناحقه خبره نسي وتلای .

د حضرت عبدالله بن عمرو ﷺ څخه پرته نورو صحابه کرامو هم چي د رسول الله ﷺ څخه یې د حدیثونو د لیکلو اجازه وغوښتل نو رسول الله ﷺ هغوئ ته اجازه ورکړل ، د یوه صحابي حضرت رافع بن خدیج ﷺ بیان دی چي موږ په نبوي دربار کي درخواست وکړ چي اې دالله رسوله ! موږ ستاسو د پاکي ژبي څخه ډیر څه اورو او هغه لیکو ، زموږ ددې کار په اړه ستاسو څه رایه ده ؟ یعني موږ ستاسو ارشادات لیکو که یا ؟ رسول الله ﷺ وفرمایل (اکتبوا ولا حرج) . یعني لیکئ یې هیڅ پرواه نسته .

او د حضرت انس ﷺ څخه روایت دی چي :

یو سړی د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سو او عرض یې وکړ چي اې دالله رسوله ! زما ستاسو حدیث نه په یاد کیږي نو سول الله ﷺ هغه ته حکم وکړ چي :

(استعن بیمینك ) مجمع الزواید ص ٦٠ ج ١.

ژباړه : یعني د خپل لاس څخه مرسته واخله (وه یې لیکه) .

په هر حال ددې ویناوو په رڼا کي دا خبره روښانه سوه چي د رسول الله ﷺ په ژوند کي د حدیثو لیکنه پیل سوې ده او د رسول الله ﷺ د ارشاداتو او احادیث مقدسه د ساتني لپاره په زیات شمیر صحابه کرامو د هغه لیکنه پیل کړې وه ، او رسول الله ﷺ چي به څه فرمایل یا احکام به یې ورکول نو صحابه کرامو به هغه په لیکني سره خوندي کول .

دا خو د صحابه کرامو عمل وو په خپله د نبي کریم ﷺ څخه نقل دي چي رسول الله ﷺ د مسائلو او احکامو ټولګي تیارولو سره خپل عمالو (دولتي کارکونکو) ته د نورو ځایونو لیږلو حکم کړی وو ، د حضرت عبدالله بن عمرو ﷺ څخه په ترمذي کي روایت دي چي رسول الله ﷺ د خپل ژوند په آخري ورځو کي خپلو عاملانو ته د لیږلو یو کتاب الصدقة لیکلی وو چي په هغه کي د حیوانانو د زکوة په اړه احادیث وه مګر تر اوسه لا د عاملانو لیږلو نوبت نه وو راغلی چي رسول الله ﷺ وفات سو ، کله چي حضرت ابوبکر صدیق ﷺ خلیفه سو نو هغوئ په دغه کتاب عمل وکړ . ترمذي ص ٩٩ ج ١.

د حضرت عبدالله بن عکیم ﷺ څخه روایت دی چي :

(اتانا کتاب رسول الله صلی الله علیه وسلم ان لا تنتفعوا من المیتة باهاب ولاعصب) . ترمذي ص ٢٠٦ ج ١.

ژباړه : د رسول الله ﷺ په زمانه کي د رسول الله ﷺ یو لیک زموږ قبیلې ته را ورسیدی په هغه کي دا حدیث وو چي د مردار حیوان پوست او وړی څخه کار مه اخلئ.
د طحاوي شریف یو روایت دی چي :
(ان رسول الله صلی الله علیه وسلم کتب الی اهل الیمن بکتاب فیه الفرائض والسنن والدیات وبعث به مع عمرو بن حزم). طحاوي ص ۴۱۷ ج ۲.
ژباړه : رسول الله ﷺ د یو کتاب لیکلو سره د عمرو بن حزام ﷺ په لاس اهل یمن ته ولیږی په هغه لیکنه کي د فرضونو، سنتونو او د ویني تویولو مسائل وه.
د رسول الله ﷺ د وفات څخه وروسته چي کله د صحابه کرامو زمانه راغلل نو هغه وخت د حدیثو د لیکني او ترتیب باقاعده کار پیل سو، صحابه کرامو د رسول الله ﷺ ارشادات یو ځای کول او د هغو په ساتنه کي یې د پوره بوختیا ثبوت ورکړ، د حضرت ابو هریره ﷺ په اړه څرګنده سوې ده چي هغه د رسول الله ﷺ په ژوند مبارک کي د حدیثو لیکنه ونه کړل مګر د رسول الله ﷺ د وفات څخه وروسته هغه ټول حدیثونه په خپله او یا په نورو ولیکل، د حضرت عبدالله بن عمر ﷺ څخه روایت دی چي :
(تحدث عند ابي هریرة بحدیث فاخذ بیدي الی بیته فارانا کتبا من حدیث للنبي صلی الله علیه وسلم وقال هذا هو مکتوب عندي) . فتح الباري ص ۱۴۸ ج ۱.
ژباړه : د ابوهریره ﷺ سره چي د حدیث په اړه خبري وسوې نو هغه زما لاس نیولو سره خپل کور ته بوتلم او د حدیث نبوي څو کتابونه ښودلو سره یې راته وفرمایل چي وګوره دا زما سره لیکلي موجود دي.
د حضرت ابوهریره ﷺ د جمع سوو احادیثو د کتابونو په اړه د بشیر ابن نهیک (د شاهدی) هم قول دی :
(کنت اخذ الکتب من ابي هریرة فاکتبها فاذا فرغت قراتها علیه فاقول الذي قراته علیك اسمعته من رسول الله صلی الله علیه وسلم فیقول نعم) . طحاوي ص ۳۸۵ ج ۲.
ژباړه : ما د حضرت ابوهریره ﷺ څخه د احادیثو کتابونه عاریتا اخیستلو سره لیکل، د لیکلو څخه د فارغه کېدو وروسته به ما ټول ابوهریره ﷺ ته اورول او عرض به مي کوی چي ما تاسو ته څه اورولي دي هغه ټول تاسو د رسول الله ﷺ څخه اوریدلي دي هغه به فرمایل هو.

د حضرت ابن عباس رضی الله عنه په اړه روایت دی چي د هغه سره څو ټولګي وي چي په هغو کي د رسول الله ﷺ حدیثونه لیکل سوي وه.

د حضرت عکرمة رضی الله عنه څخه روایت دی چي:

أَنَّ نَفَرًا قَدِمُوا عَلَى ابْنِ عَبَّاسٍ مِنْ أَهْلِ الطَّائِفِ بِكِتَابٍ مِنْ كُتُبِهِ فَجَعَلَ يَقْرَأُ عَلَيْهِمْ فَيُقَدِّمُ وَيُؤَخِّرُ فَقَالَ إِنِّي بَلِهْتُ لِهَذِهِ الْمُصِيبَةِ فَاقْرَءُوا عَلَيَّ فَإِنَّ إِقْرَارِي بِهِ كَقِرَاءَتِي عَلَيْكُمْ. طحاوي ص ۲۳۸ ج ۲.

ژباړه: د طائف یو ډله د حضرت ابن عباس رضی الله عنه په خدمت کي د یو څو لیکنو سره حاضره سول (چي په هغو کي حدیثونه لیکل سوي وه)، حضرت ابن عباس رضی الله عنه لوستل پیل کړل مګر (د هغه نظر کمزوری سوی وو) هغه یې نه سوای لوستلای نو وه یې فرمایل چي تاسو خلک یې په خپله ولولئ ستاسو اورول او زما لوستل د جواز روایت په حق کي دواړه برابر دي.

حضرت عبدالله بن محمد بن عقیل وایي چي:

(کنا ناتي جابر بن عبدالله فنسا له عن سنن رسول الله صلی الله علیه وسلم فنکتبها). طحاوي ص ۳۸۴ ج ۲.

ژباړه: موږ خلک به د حضرت جابر بن عبدالله رضی الله عنه په خدمت کي حاضریدو او د هغوئ څخه به مو د رسول الله ﷺ د حدیثونو پوښتنه کولو سره هغه لیکل.

ددې څخه پرته نور ډیر روایتونه هم نقل دي چي د هغو څخه د ډیرو صحابه کرامو په اړه معلومیږي چي هغو د احادیث نبوي لیکنه کول او هغوئ چي د رسول الله ﷺ څخه کومي ملغلري او ارشادات د احادیث په شکل کي حاصل کړي وه د رسول الله ﷺ د وفات څخه وروسته هغه سرمایه یې سینه په سینه نقل کول.

د صحابه کرامو څخه وروسته چي د تابعینو زمانه راغلل نو د حدیثو لیکنه او ترتیب نور هم زیات سو، تابعینو د احادیثو ذخیرې یو ځای کولې او د هغو ترتیب او لیکنه کي یې په زیات کار کولو کي خپل توان مصرف کړ.

په تذکرة الحفاظ کي د ابوالزناد (تابعي) څخه روایت دي چي:

(کنا نطوف مع الزهري علی العلماء ومعه الالواح والصحف یکتب کلماسمع) ص ۱۰۳ ج ۱.

ژباړه: موږ به د زهري سره علماؤ ته د حدیث اورولو لپاره ورتلو، زهري به د ځان سره تختۍ او کاغذ ساتل او څه چي به یې اوریدل هغه ټول به یې لیکل.

د امام زهري (رح) په اړه د صالح بن کیسان بیان دی چي:

(اجتمعت أنا والزهري ونحن نطلب العلم فقال لي: تعال حتی نکتب السنن فکتبنا ما جاء عن النبي

صلى الله عليه وسلم) ، كنز العمال ص۲۳۸ ج ۵.

ژباړه : د شاګردۍ په زمانه کې زه او زهري ملګري وه ، زهري ما ته وويل چې راځه حديث وليکو نو موږ د نبي کريم ﷺ حديثونه وليکل .

د ترمذي شريف په يوه روايت کې دي چې :

قَالَ رَجُلٌ لِلْحَسَنِ عِنْدِي بَعْضُ حَدِيثِكَ أَرْوِيهِ عَنْكَ فَقَالَ نَعَمْ . ترمذي ص ۲۳۹ ج ۲.

ژباړه : يو سړی حسن بصري (رح) ته راغلی او ورته وه يې ويل چې زما سره ستاسو بيان سوي احاديث ليکل سوي دي ايا زه د هغو روايت ستاسو څخه کولای سم هغوئ ورته وفرمايل : هو .

د حضرت عمر بن عبدالعزيز (رح) په اړه ويل کيږي چې هغه د حديثو د ترتيب او ليکي لپاره يو ځانته لائحه عمل تياره کړه او د خپل خلافت په حدودو کې يې ټولو واليانو او قاضيانو ته يو فرمان وليږی چې په هغه کې د حديثو د ترتيب او د هغو د يو ځای کولو حکم ورکړل سوی وو ، د فتح الباري روايت دی چې :

(کتب عمر بن العزيز الى الافاق انظروا حديث رسول الله صلى الله عليه وسلم فاجمعوه) .

ژباړه : حضرت عمر بن عبدالعزيز د خپل پاچاهي ټولو سيمو ته فرمان وليږی چې د نبي کريم ﷺ ټول حديثونه دي ولټول سي او يو ځای دي کړل سي .

ابو بکر بن حزم چې په هغه وخت کې د خلافت د لوري امير او قاضي وو چې کله هغه ته دا فرمان ورسيدی نو هغه حديثونه يو ځای کول پيل کړل ددې ترتيب او ليکني څخه وروسته د احاديثو څو ټولګي تياري سوې مګر تر اوسه لا د خلافت دربار ته نه وې رسيدلي چې عمر بن العزيز رحمة الله تعالى عليه وفات سو .

د تابعينو د زمانې څخه وروسته د تبع تابعينو زمانه وګورئ دا هغه دور دی چې د حديثو د ترتيب او ليکني لړۍ خپل عروج ته ورسيده او محدثين په کثرت سره د حديثو د ليکني مقدسه فريضه کې بوخت وه او د رسول الله ﷺ د ارشاداتو او حديثونو د يو ځای کولو کار ډير په زور سره جاري وه او د هغو سره هم د حديثونو يوه ډيره لويه سرمايه جمع سول .

د عبدالرزاق بيان دی چې :

(کتبت من معمر عشرة الاف حديث ) تذکرة الحفاظ ص۱۷۵ ج ۱.

ژباړه : ما د معمر څخه لس زره حديثونه وليکل .

په تذکرة الحفاظ کې د حضرت ابن مبارک په اړه روايت دی چې :

(وكانت كتبه التي حدث بها نحو من عشرين الف حديث) ص ۲۴۶ ج۱ .

ژباړه : هغوئ چي خپل ليکل سوي حديثونه خلکو ته روايت کړل نو د هغو شمير شل زره و .

د عبدالسلام په اړه د ابو حاتم رازي بيان دی چي :

(کتب عنه ابو نعيم الوفا من الحديث) . تذکرة الحفاظ ص ۲۴۶ ج۱ .

ژباړه : د عبدالسلام څخه ابو نعيم په زرګونو حديثونه وليکل .

ددې زمانې د حديثو د ليکني پابندي څومره وه ددې اندازه د لاندي روايت څخه معلوميدلای سي :

(قال ابراهيم بن موسى قدم الثوري الى اليمن فقال اطلبوني كتابا سريع الخط) . تذکرة الحفاظ ص ۳۱۷ ج۱

ژباړه : ابراهيم بن موسى وويل چي کله امام ثوري يمن ته ولاړی نو د حديثو د ليکني لپاره هغه ته د يو ليکوال ضرورت وو هغه هلته وويل چي زما لپاره يو ژر ليکونکی ليکوال ولټوئ .

نو په هغه وخت کي چي هشام بن يوسف يو ژر ليکونکی او تيز خط نويس وو د هغه بيان دی چي خلکو زه د امام ثوري په خدمت کي حاضر کړم نو ما د هغوئ جمع سوي حديثونه وليکل .

همدارنګه په تذکرة الحفاظ کي د ابوداؤد روايت دی چي :

(لم يكن لحماد بن سلمة كتاب الا كتاب قيس بن سعد) ص ۱۸۳ ج ۱ .

ژباړه : د حماد بن سلمه سره د قيس بن سعد کتاب وو (چي په هغه کي د هغوئ ټول روايت سوي حديثونه وه) .

د پورتنيو روايتونو څخه څرګنده سوه چي د حديثو کتابونه او د هغو د ترتيب لړۍ چي د نبي کريم ﷺ د زمانې څخه پيل سوې وه او د تبع تابعينو په زمانه کي تکميل ته ورسيده . او ډير علماء او محدثين په دغه کار کي بوخت وه نو د حديثونو د کتابونو تصنيف او تاليف هم په همدغه زمانه کي پيل سو او مختلف علماء د نبي کريم ﷺ د سيرت مبارکه پر متفرق اړخونو باندي کتابونه تصنيف کړل .

د موسى بن عقبه او د ابن اسحاق په باره کي روايت دی چي دوئ بزرګانو په هغه زمانه کي پر غزاګانو او سيرت نبوي ﷺ باندي خپل کتابونه تصنيف کړل ، د هغوئ څخه وروسته د (۱۵۷.... ۱۸۸) په درميانه وخت کي امام اوزاعي رح ، امام ابن المبارک رح ، امام سفيان ثوري رح . حماد بن سلمه او جرير بن عبدالحميد (رح) د حديثونو ستر کتابونه تصنيف کړل او تقريبا دا هغه زمانه ده چي امام مالک (رح) د حديثو عظيم کتاب مؤطا تاليف کړه ، د تذکرة الحفاظ د روايت

ځخه معلومیږي چي په هغه زمانه کي معاني ابن عمران موصلي خپل مهتم بالشان تصانیف .
کتاب السنن. کتاب الزهد . کتاب الادب او کتاب الفتن وغیره ولیکل .
او د امام یوسف رحمه الله علیه تصانیف کتاب الاثار، کتاب الحج، کتاب الخراج، او د امام محمد
رحمه الله علیه تصانیف کتاب الاثار ، مؤطا. کتاب الحج وغیره هغه وخت په وجود کي راغلل . د هغه
ځخه وروسته په تدریج سره د حدیثو د کتابونو تصنیف پیل سو او محدثینو په ډیر کوښښ او
محنت سره نبوي حدیثونه یو ځای کړل چي نن ورځ زموږ په مخ کي د علم او عرفان نور جوړ
سوي دي چي د هغو ځخه شاګردان فیض تر لاسه کوي او د خپل علم لمن د حدیثو د ګران بیه
ملغلرو ځخه شتمن کوي .

# د مشکوة شریف ځانګړتیا او ارزښت

د مشکوة المصابیح په نامه چې د حدیثونو کومه ټولګه سوونه کاله مخکې ترتیب سوې وه د هغه په تازګۍ او غوره والی کې تر اوسه پورې هیڅ فرق نه دی راغلی .

حدیث مبارکه په خپله یو داسې مقدس فن دی چې ددې نسبت یو داسې زنده جاوید شخصیت په لور دی چې تر څو پر دې نړۍ انسانان موجود وي او په دې کې د ژوند اثر او شعور نشو او نما مومي تر هغه وخته پورې به دا فن په تازګۍ او غوره والي سره پاته وي.

بیا په احادیثو کې لکه څرنګه چې څرګنده ده د مصنفاتو او کتابونو درجې دي، هر محدث د خپل ځانګړي نقطه نظر د لحاظ څخه کتاب ته ترتیب ورکړی دی مثلاً امام بخاري رحمة الله علیه د حدیث د روایت اړخ په اړخ د خپل قوت فکري مجتهدانه څرګندونه کوي، امام مسلم رحمة الله علیه د یوه حدیث متعدد د طرف جمع کوي ، همداسې دنورو حدیثونو کتابونه امتیازي ځانګړتیاوي دي او د هریو انفرادي ګټې دي .

مګر د مشکوة المصابیح په نامه سره چې د حدیثونه کومه ګلدسته ده د هغه ځانګړتیاوي دادي چې نه یوازي صحاح ستة بلکه نور موثوق بها کتابونه مثلاً د شعب الایمان، بیهقي، مسند احمد، مسند رزین او داسې نورو ذخیره په دې کې موجود ده .

او دوهم غوره والی چې یو وخت مخته راغي داده چې په دغه کتاب کې د هغه حدیثونه یو ځای کولو التزام نه دی سوی چې د هغه په پوهیدو کې یو عام ویونکی ستونزمن وي بلکه ځیني خلک خو په دې لور تللي دي چې دا ټولګه ابتدائي تعارف یا یو مشغول ژوند لپاره احادیث نبویه سره د علمي او عملي تعلق پیداکولو په غرض سره معرض په وجود کې راوړل سوې وه.

نن هم په عربي مدرسو کې دغه ټولګه د صحاح ستة څخه وړاندې ویل کیږي او ددې سبب دادی چې د تعارف ابتدائي او لومړنۍ مرحله د یو داسې کتاب په ذریعه سره وسي چې په هغه کې نه دومره اوږدوالی وي چې د هغه څخه یوازې منتهي ګټه تر لاسه کړي او نه دومره لنډ وي چې په هغه سره عام ذهن مکدر کېدو سره پاته سي .

پر یو بل حیثیت هم نظر واچوئ چې که چیرې صحیح بخاري ته دا فخر تر لاسه دی چې مشکلات پکښې ختم کیږي نو مشکوة شریف ته دا فخر تر لاسه دی چې هغه د صوفیه حلقه کې زیر درس راغلی دی ، اکابر صوفیه خپل اذکارو اشغال څخه معمور په ژوند کې د حدیث دا ټولګه په دې وجه مخته ایښې ده چې په دې کې د فن د نورو کتابونو په ډول ایجاز او اطناب نسته .

د ليري تللو ضرورت نسته د هندوستان په شمال کي چي د آزادی کومه لومړنی هڅه سوې ده او د هغه مشري د خانواده محمد يو ګل حضرت سيد احمد شهيد بريلوي کول ، د هغوئ د خپل مجاهدينو په لړۍ کي دا معمول وو چي د مشکوة شريف به لازم درس کېدی . د درس حقيقي ذمه داري خو د شاه اسماعيل شهيد پر ذمه وه مګر د نکات او حکماتو اظهار خپله د سيد مرحوم پر ذمه وه، حجة الله البالغة چي د علوم اسرار او حکمات شرعيه پر موضوع يو عديم النظير کتاب دی په دې اړه د اهل نظر دا فيصله ده چي هغه په اصل کي د مشکوة شريف شرح ده ، کوم خلک چي د ترتيب کتاب د استخراج حديث په انداز کي ژور نظر لري هغوئ پوهيږي چي شاه صاحب بالعموم د مشکوة شريف حديثونه مخته په ايښودو سره خپل جواهر د امت مخته ايښي دي .

بيا پر دغه کتاب باندي حاشې تقريبا د بخاري او مسلم څخه وروسته تر ټولو زياتي ليکل سوي دي ځيني شرح کونکو خو مشکوة شريف يوازي د دې لپاره اختيار کړ چي په دې کي هغه جامعيت دی چي د هغه پورته اشاره وسوه .

د مشکوة شريف دا هم ځانګړتيا ده چي هغه حلقې چي په څرګنده دې د مرتب او مدون د مسلک خلاف مسلک لري دغه کتاب يې د سينې سره نيولی دی او د نن څخه نه بلکه د کله څخه چي دغه کتاب خپور سو يعني شائع سوی وو دې د غوره والي دا کيفيت راغلی دی.
په مشکوة شريف کي چي د کتاب الفتن په نامه سره کومه برخه ده هغه خو برابر د اهل نظر توجه خپل لور ته مبذول کړې ده ، که خلکو خالص پر دې موضوع باندي يو څه ليکلي دي نو غالب ګمان دادی چي د مشکوة شريف کتاب الفتن مخته ايښودو سره يې ليکلي دي په دغه باب کي د صحابه کرامو او تابعينو په زيات شمير آثار نقل دي .

عوامي يعني د عملي ژوند په باره کي به تاسو وينئ چي هغه باب ډير تفصيلي دی چي د هغه تل شپه او ورځ ضرورت پېښيږي مثلا دعاء، استغفار، اعتصام بالکتاب والسنة ، اسماء الله او دا سي نور بابونه .

مشکوة شريف په اصل کي د (مصابيح السنة) مکمل او مدون شکل دی چي په هغه کي امام محي السنة ، قامع البدعة ابو محمد حسين بن مسعود الفراء البغوي رحمة الله عليه د فقه د کتابونو د بابونو په ترتيب باندي مهمه او عظيم الشان د حديثونو ذخيره جمع کړې وه ، امام بغوي رحمة الله عليه د مصابيح ترتيب پر دوو فصلونو باندي کړی وو ، په لومړني فصل کي هغوئ د

شیخین یعني امام بخاري او امام مسلم رحمهما الله روایت سوي حدیثونه نقل کړي وه او په دوهم فصل کي د نورو امامانو او محدثینو مثلا امام ابوداؤد، امام ترمذي څخه روایت سوي حدیثونه جمع کړي وه او هغوئ یوازي د حدیثونو په نقل کولو اکتفاء وکړه نه یې د کتاب حواله ورکړې ده او نه د راوي نوم ذکر سوی دی.

د اتمي پیړۍ جلیل القدر عالم او رفیع المرتبت محدث ولي الدین ابو عبدالله الخطیب العمري التبریزي رحمة الله علیه دغه کتاب د نوي سره څخه ترتیب او د تدوین لپاره اختیار کړ، هغوئ تر ټولو وړاندي په دغه کتاب کي د یو دریم فصل اضافه وکړه او په هغه کي نه یوازي دا چي د نورو امامانو او محدثینو حدیثونه نقل کړي بلکه په خپله د شیخینو یعني بخاري او مسلم حدیثونه هم اضافه کړل کوم چي په اصل کتاب مصابیح کي امام محي السنة پرې ایښي وه.

دوهم هغوئ د هر حدیث څخه وروسته د هغه کتاب یا محدث حواله ورکړه د چا څخه چي هغه حدیث نقل سوی وو.

دریم دا چي د حدیث څخه مخکي د راوي نوم یې ذکر کړ د کوم چا څخه چي حدیث روایت سوی وو په همدې ډول د کتاب ارزښت د مځکي څخه آسمان ته ورسیدی.

مشکوة شریف ته چي کوم عظمت او رفعت تر لاسه دی د هغې اندازې ددې څخه لږ کیدلای سي چي د کوم وخت څخه دغه کتاب په وجود کي راغلی دی د هغه وخت څخه تر نن ورځي پوري په عربي مدرسو کي ددغه کتاب په نصاب کي شاملول ضروري ګڼلي دي.

نن هم په ټولو عربي مدرسو کي دغه کتاب د صحاح ستة څخه مخکي ویل کیږي.

په اصل کتاب (مصابیح السنة) کي څلور زره څلور سوه څلور دیرش (۴۴۳۴) حدیثونه نقل سوي وه، وروسته علامه خطیب تبریزي رحمة الله علیه چي د کومو حدیثونو زیاتوالی کړی دي د هغه شمیر یو زر پنځه سوه او یوو لس (۱۵۱۱) دی، په همدې ډول د مشکوة شریف د ټولو حدیثونو شمیر پنځه زره نهه سوه پنځه څلوېښت (۵۹۴۵) سو.

## د مظاهر حق لیکوال او د هغه د شاګرد توب لړۍ

(ولي اللّهي کورنۍ) د اسلامي هند د علمي تاریخ هغه باب دی چي د هغه شغلو تر ټولو مخکي پر هندوستان باندي د علم حدیث رڼا خپره کړل، او د هغوئ وګړي په علم او معرفت کي د لمر او سپوږمۍ په شان وځلېدل، حضرت شاه ولي الله رحمة الله علیه چي د هغوئ وجود د هندوستان د محدثینو لپاره مدار سند دی او د هغوئ د فخر وړ زوی، شاه عبدالعزیز رحمة الله علیه د ولي الله د

خاندان د علم د لوړوالي درجه نوره هم لوړه کړل او حضرت شاه اسحاق چې د شاه عبدالعزیز د درس مسند صدر نشین او د هغوئ جانشین وګرځیدی ددغه ستري کورنۍ هغه هستۍ دي چې د هغوئ یادوني په هندوستان او لروبر کي د خدمت حدیث د هري لړي ځلانده عوان جوړیږي ، او دمظاهر حق مؤلف مولانا نواب محمد قطب الدین خان دهلوي د شاګردۍ لړۍ هم داده .
ددغه سترو هستیو مختصر حالات بیانیږي :

## حضرت شاه ولي الله دهلوي رحمة الله عليه

نومړی پر څلورم شوال (۱۱۱۴هـ) کال کي د چارشنبې په ورځ د صبح صادق په وخت کي وزیږیدی ، د نومړي والد محترم شیخ عبدالرحیم رحمة الله عليه چې د خپل وخت یو جلیل القدر عالم او ستر صوفي وو ، د نومړي روزنه یې په خپل ځانګړي انداز کي وکړه تر ټولو وړاندي یې د پنځه کالو په عمر کي په مدرسه کي داخل کړ ، هلته یې د قرآن کریم تعلیم پیل کړ ، نوموړي په فطري توګه سره د علم سره شوق درلودی او د ازل څخه په فطري رباني قابلیتونو سنبال وو ځکه د اوو کالو په عمر کي یې قرآن کریم ختم کړ ، بلي خوا د والد محترم ځانګړي روزني دا جوهر وښودل چې حضرت په دغه لږ عمر کي د آدب ، اخلاق منزلونه قطع کړل کوم چې د لوی لوی عمرونو والا ورته په مشکله رسیږي ، د هستوګني ، ناستي ولاړي ، او خبرو اترو آداب او طریقې یې د کم عمرۍ په حالت کي تر لاسه کړي دي ، د نومړي عامه قاعده وه چې په دغه عمر کي هم د یو مشر سره به یې خبري کولې که څه هم هغه به د لوړي مرتبې او درجې سړی وو ، د آدب په لحاظ به یې سترګي کښته ساتلې د سوالونو جوابونه به یې په ډیر باوقار او متین لهجه کي ورکول د دوستانو او ملګرو سره به په خبرو اترو کي د تهذیب او ښکلا د حدودو څخه تجاوز نه کوی .
د خپل عمر اووم پړاو ته چې ورسیدی نو د فارسي کتابونه یې پیل کړل په لږ وخت کي یې ټول کتابونه ختم کړل او د فارسي په علومو کي یې رسوخ تر لاسه کړ ، د فارسي کتابونو د فراغت څخه وروسته د صرف او نحوي لومړني کتابونو باندي یې عبور تر لاسه کړ د لسو کالو په عمر کي یې شرح ملا ولوستل .

په سوانح نګار کي لیکي چې د لسو کالو په عمر کي د نومړي د صرف او نحوي په علومو کي داسي حاوي سوی وي چې لوی لوی صرفي او نحویان چې د خپل فضل پر بناء د عظمت او توقیر نظر سره ورته کتل کېدل د نوموړي سره ددې فنون مسائلو باندي خبرو کولو څخه به یې بیره کول ، ددې څخه وروسته یې د معقولاتو کتابونه پیل کړل ، دلته یې د مخکي څخه همدا

طبيعت تر لاسه کړي وو د تيز ذهن او ذکاوت په وجه دا مرحله يې هم په لږ وخت کي تر سره کړه .
د څورلسو کالو په عمر يې واده وسو مګر ددې سربيره د علم د تر لاسه کولو لړۍ روانه وه ، د واده په کال کي يې تفسير بيضاوي پر خپل والد محترم وو ايه او ددې سره په هغه علومو کي يې هم پوره علم تر لاسه کړ کوم چي د هغه وخت په علماؤو کي درس کېدل ، په دغه کال کي يې د خپل والد محترم سره بيعت هم وکړ او د مشائخو نقشبنديه د وظيفو په لړۍ کي بوخت سو ، تصوف پر علم يې باقاعده تحقيق وکړ او په هغه کي يې هم د پوره مهارت تر لاسه کولو وروسته په هغه کي رموز ، نکات او حکمات پيدا کړل چي لوی لوی مشائخ ،صلحاء او علماء ددې کم عمره صوفي په وړاندي د عقيدې مخ کښته کړ .
د څلورلسو کالو په عمر کي يې د ټولو علومو متعارفه او متداوله څخه فراغت تر لاسه کړ او بلي خوا ته د سلوک او طريقت مراحل يې هم قطع کول ، نو دده والد محترم شيخ عبدالرحيم رحمه الله يو عام دعوت وکړ چي په هغه کي د ښار خلک او لوی لوی عالمان او فاضلان په خاصه توګه را وبلل سول او په هغه دعوت کي خپل پلار محترم د خپل لائق زوی پر سر د ستار فضيلت هم وتړی، او د عام درس اجازه يې ورکړه .
د والد صاحب د وفات څخه وروسته نوموړي د هغوئ د مسند درس ځای ناستی وګرځيدی او ددينيات او معقولات د کتابونو درس ورکول يې پيل کړل ، په لږ وخت کي د نوموړي د درس شهرت خپور سو د ليري ليري څخه طالبان د علم لپاره راتلل او د علم د شتمنۍ څخه به يې خپل لمني ډکولې .
په هندوستان کي د حديثو د علم بنياد که څه هم شيخ عبدالحق دهلوي رحمه الله ايښی دی او څکه مؤرخين د لومړنيتوب تاج د هغه پر سر تړي مګر په برصغير کي د علم حديث د رواج کولو او خپرولو اصل تاج د ولي اللهي کورني پر سر دی، که د هندوستان پر تاريخ رڼا واچول سي او د هغه وخت د حالاتو مطالعه وکړل سي نو څرګنده به سي چي هغه وخت پوره هندوستان باندي د جهالت او ګمراهۍ تياره خپره سوې وه ، مسلمانانو نبوي علم بالکل پرې ايښی وو تر دې چي اسلام هم په هغوئ کي يوازي د نامه اسلام پاته سوی وو ، په دې کي شک نسته چي شيخ عبدالحق دهلوي رحمه الله په هغه ماحول کي د حديثو او قرآن کريم د علومو هڅي وکړې مګر حالات دومره خراب سوي وه چي هغه خرابي او تياره ليري نه سوه کومه چي د پيړيو څخه د مسلمانانو په زړونو کي ځای نيولی وو ، مګر د هندوستان مځکه د علم حديث په مقدسو شغلو

سره منور کېدل وه ځکه نو دهغوئ د وفات څخه وروسته الله تعالی د هغه ماڼۍ یو بل معمار را پیدا کړ د کوم بنیاد چي شیخ عبدالحق دهلوي رحمة الله علیه ایښی وو، د شاه ولي الله رحمة الله علیه پلار محترم شاه عبدالرحیم رحمة الله علیه په زاړه دهلي کي په هغه ځای کي چي نن سبا د مهندیانو په نامه سره مشهور دی د رحیمیه مدرسې بنیاد کښېښودی چي په هغې کي د علم حدیث تعلیم پیل سو، شاګردان په ډېر شمیر د حدیثو ویلو لپاره راتلل پیل سول او په خلکو کي د علم حدیث تر لاسه کولو ډېر شوق پیدا سو مګر حضرت شاه عبدالرحیم چي د احادیثو د علم د پراخۍ څومره زیات کوښښ وکړی هغومره کامیابي ورته نصیب نه سول.

په پای کي د شاه ولي الله د محترم پلار د وفات څخه وروسته په مدرسه رحیمیه کي چي د هغې بنیاد خپله د هغوئ پلار محترم شیخ عبدالرحیم رحمة الله علیه ایښی وو شاګردانو ته درس ورکول پیل کړل او تر دوولسو کالو پوري په ذوق او شوق سره د علم نبوي د فیوضاتو د چینې څخه نه یوازي دا چي هندوستان بلکه د عرب او عجم شاګردان هم اوبه کړل.

که څه هم د دولسو کالو په دغه اوږدې موده کي د نوموړي علمي کمال عروج ته رسیدلی وو او په دیني او عقلي علومو کي تر حیرانونکي حده پوري یې ملکه پیدا سوې وه چي د وخت لوی لوی عالمان ورته د عقیدت څخه سر کښته کوی مګر د علم لټونکي طبعیت پر دې بس ونه کړل او د علم حدیث د نور تر لاسه کولو لپاره یې د سفر سامان وتړی او مکې معظمې ته روان سو.

. په کال (۱۱۴۳) هـ کي نوموړي د حرمین شریفین د زیارت څخه فارغ سو، ددې څخه وروسته تر یوه کال پوري یې د حرم محترم او حرم نبوي په خدمت کولو سره روحاني فیوضات او برکات تر لاسه کول، او بیا د علم تر لاسه کولو لپاره د علماؤو او صالحینو په لور متوجه سو، تر ټولو وړاندي د شیخ محمد وفدالله ابن شیخ محمد بن محمد بن سلیمان المغربي په خدمت کي حاضر سو چي د خپل وخت جلیل القدر محدث او په حرمین کي استاذ العلماء بلل کېدی، استاذ ورته په ډېر عزت او احترام سره ښه راغلاست ووایه او شاه صاحب د مؤطا یحیی بن یحیی د پوره اورولو سره ددې او د شیخ محمد بن محمد ابن سلیمان د ټولو روایاتو اجازه تر لاسه کړه.

د دې څخه وروسته شاه صاحب د شیخ ابوطاهر محمد بن ابراهیم کردي مدني په خدمت کي حاضر سو چي په خپل علم، فضل، زهد، تقوا، فصاحت او بلاغت کي په اهل عربو کي د

لوی عظمت خاوند منل کیدی او په علم حدیث کي یې خپل امتیازي مقام درلودی، شاه صاحب د هغوئ څخه یوازي دا چي علم حدیث تر لاسه کړي او علمي مذاکرې سره نور هم فیض تر لاسه کړي بلکه د تصوف او سلوک اعلی منازل یې هم طی کړل ، د هغه ځای څخه د فارغ کېدو وروسته کله چي رخصت کیدی نو استاذ ورته د احادیثو اجازه ورکړه او د خلافت خرقه یې په خپل لاس اغوستلو سره پرنم سترګو سره یې په خپلو قیمتي نصائحو سره رخصت کړ.

په دې لړۍ کي شاه صاحب د شیخ تاج الدین قلعي حلقي په خدمت کي هم حاضر سو او د هغوئ څخه یې د بخاري شریف څخه پرته د حدیثونو نور موثوق بها کتابونو اجازه هم واخیستل.

د حرمین د جلیل القدر محدثینو او علماؤو د روحاني فیضونو څخه او د هغوئ د علم دچینې څخه په پوره توګه اوبه کېدو سره شاه صاحب په (۱۱۴۴) هـ کال کي بیا د حج په نعمت مشرف سو او د (۱۱۴۵هـ) کال په پیل کي خپل هیواد ته راستون سو ، او په (۱۲رجب ۱۱۴۵هـ. کال کي د جمعې په ورځ دهلي ته راورسیدی، د حرمینو شریفینو څخه د ستنېدو وروسته د شاه صاحب د حدیثو درس یو نوی شکل اختیار کړ ، یا داسي به ووایو چي د علم حدیث کومي رڼا سره چي د نومړي زړه او دماغ پوره منور سوی وو د هغه شغلو ددهلي مدرسه رحیمیه څخه اطراف عالم منور کېدل پیل کړل ، همداسي شاه صاحب په پوره شان او شوکت او عزت او عظمت سره د حدیث په مسند درس کښېنستلو سره د حدیث نبوي علوم او معارف په ټول هندوستان کي خپاره کړل او د هغو خپرېدل یې وکړه چي هغه تر نن ورځي پوري هندوستان د نور څخه ډکوي.

د (کل نفس ذائقة الموت) سره سم کله چي د شاه صاحب د ژوند پیمانه ډکه سوه نو د (۶۲) کالو په عمر کي په کال (۱۱۷۶هـ) کي وفات سو او په دهلي کي خاورو ته وسپارل سو.

## حضرت شاه عبدالعزیز رحمة الله علیه

د شاه ولي الله رحمة الله علیه څلور مشهور او جلیل القدر زامن وه :

۱. شاه عبدالعزیز رحمة الله علیه .
۲. شاه عبدالقادر رحمة الله علیه .
۳. شاه رفیع الدین رحمة الله علیه .
۴. شاه عبدالغني رحمة الله علیه .

که څه هم دده څلور سره زامن په علم، فضل، فهم، قوت تقریر، فصاحت، تقوا ،امانت او دیانت

کي يو ډول او بيله مثله ګڼل کيږي ، مګر په دوئ ټولو کي شاه عبدالعزيز رحمة الله عليه د عظمت او منزلت او علم او فضل د لحاظ څخه ممتاز دی او دا هغه ذات دی چي خپل کورنۍ يې په ټولي نړۍ کي ځلانده کړې ده ، په دې کي هيڅ شک نسته که په دغه ستره کورنۍ کي د شاه عبدالعزيز رحمة الله عليه وجود نه وای نو دغه کورنۍ به د عزت، شهرت او عظمت مرتبې ته هيڅکله نه وای رسيدلې او کوم تاريخي شهرت چي نن دوئ ته تر لاسه دی هيڅکله به نه وای تر لاسه سوی .

د نومړي زيږېدنه په (۱۱۵۹هـ) کي وسول او د شاه ولي الله رحمة الله عليه په شان د يو عظيم پلار او مقدس ذات تر روزني لاندي يې د علم او روزني لومړنۍ مرحلې قطع کړې، د پنځو کالو په عمر کي په مدرسه کي داخل کړل سو او د قرآن کريم تعليم يې پيل کړل، نومړي نه يوازي په نسبي توګه بلکه په فطري توګه هم ډير ذهين، سليم الطبع، خوش فهم وو ، په ډير لږ عمر کي يې د قرآن کريم تعليم پوره کړ ، د قرآن کريم دتعليم څخه وروسته يې د فارسي ابتدائي تعليم پوره کړ او د هغه وروسته يې د دوو يا درو کالو په لنډه موده کي د صرف او نحو کتابونه ختم کړل ، ددې څخه وروسته د نومړي تعليم د شاه ولي الله رحمة الله عليه د يو قابل خليفه تر لاس لاندي پيل سو، تقريبا د دوو کالو په وخت کي يې د عربي په مختلفو فنونو کي ترقي او کاميابي تر لاسه کړه . د ديارلسو کالو په عمر کي نومړي د معمولي درسي تعليم څخه پرته د صرف، نحو، فقه، اصول، منطق، عقائدو، هندسه، هيبت، رياضي په ډول عظيم الشان فنونو څخه فراغت تر لاسه کړی وو، ددغه علومو د تر لاسه کولو څخه وروسته نومړي د خپل پلار شاه ولي الله رحمة الله عليه په حلقه درس کي شامل سو او د حديث تعليم تر لاسه کول يې پيل کړل ، په دوو کالو کي شاه عبدالعزيز رحمة الله عليه د حديثو ټول کتابونه د خپل پلار محترم څخه وويل ، د نومړي عمر تقريبا پنځلس کاله وو چي د ټولو علومو او فنونو څخه فارغ سو .

د نومړي په کورنۍ کي د علوم نقليه څخه پرته د علوم عقليوو هم رواج وو او د شاه ولي الله رحمة الله عليه په درس ګاه کي د يوې خوا دحديث او تفسير علوم په پوره پابندي سره ويل کېدل د بلي خوا د منطق او رياضي تعليم هم په لوړه کچه ورکول کيدی ، ځکه شاه عبدالعزيز رحمة الله عليه چي د علوم عقليه او نقليه د تر لاسه کولو او د باطني کمالاتو د تکميل څخه فارغ سو نو پلار محترم يې د آخرت په سفر روان سو ، د هغوئ د وفات څخه وروسته د مسند درس جانشين شاه عبدالعزيز رحمة الله عليه وګرځيدی ، که څه هم د شاه ولي الله رحمة الله عليه د وفات په وخت کي د شاه

عبدالعزیز رحمه الله عمر اووه لس کاله وو مګر د خپل علمي تجربې ، علمي کمالات او باطني رسوخ پر بناء لوی لوی عالمان به د نوموړي په خدمت کي حاضرېدل او په ډیر شمیر سره به شاګردان راتلل او د نوموړي د چینې څخه به یې خپله علمي تنده ماتول .

د نوموړي په اړه د صاحب اتحاف النبلاء ګواهي ده چي په حقیقت کي د علم حدیث تخم د هندوستان په سخته مځکه کي د نوموړي پلار شاه ولي الله رحمه الله وکری، او د خپل ځیګر په وینو سره یې اوبه کړی او د هغه څخه یې شنه بوټي جوړ کړل چي په لږو ورځو کي شنه او سمسوره سول، او په لږ وخت کي د لیري لیري خلک د هغه د ګلونو او میوو څخه په لمنو ډکولو سره ولاړل .

شاه عبدالعزیز رحمه الله د خپلو نورو علمي کمالاتو سره د خطاطۍ په فن کي هم ملکه درلودل ، ددې سربیره نوموړي حافظه لکه د لوح تقدیر څخه نه ورانېدونکې نسخه وه کوم کتاب چي به یې یوځل وواېه یا کومه خبره به یې واورېدل نو په هغه ډول به یې تر تل پوري یاد سوه ، په هر حال د نوموړي صفات ، د ولي اللهي کورني د معدن علم هغه ملغلره وه چي د هغې رڼا د مسلمانانو زړونه منور کړل، او ددې سره د نوموړي قیمتي تصانیف د علم او فضل د هغه قیمتي ملغلرو څخه مزین دي چي هغه د ټولي نړۍ نظرونه برېښنوي .

نوموړي خپل د علم، فضل، زهد، عزت او عظمت څخه ډک ژوند په ډیر ښه شان سره پوره کړ او ۷ شوال ۱۲۴۸هـ کال کي د یکشنبې په ورځ د سهار په وخت کي خپل روح وسپارل.

انا لله وانا الیه راجعون.

## حضرت مولانا شاه محمد اسحاق مهاجر مکي رحمه الله

د حضرت شاه عبدالعزیز رحمه الله نارینه اولاد نه وو ، د نوموړي درې لوڼې وې د دویمي لور نکاح یې د شیخ محمد افضل صاحب سره سوې وه چي د هغې د نس څخه حضرت مولانا محمد اسحاق صاحب پیدا سو .

مولانا محمد اسحاق صاحب په ۶ ذي الحجة ۱۱۹۷هـ کال زیږېدلی دی .

د شاه عبدالعزیز رحمه الله زوی نه وو ځکه نو د هغه زیاته توجه پر ده باندي صرف کېدل او د ده روزنه هم هغوئ په خپل هغه انداز سره وکړل لکه څرنګه چي د ولي اللهي د کورنۍ د نورو وګړو سوې وه .

نوموړی د ابتدائي تعلیم څخه وروسته د علم حدیث د تر لاسه کولو لپاره د شاه عبدالعزیز په

حلقه کي ګډون وکړ ، د تعليم څخه د پوره فراغت وروسته مسند درس ته يې په خپل تمکين سره اعزاز وبخښی او پرله پسې تر شلو کلو پوري د شاه صاحب په مخکې د نوي ذهن او فکر درلودونکو شاګردانو ته د حديث درس په خپل خاص انداز سره ورکوی .

د سنت نبوي اتباع او د رسول الله ﷺ سره زياته مينه د نوموړي دڅوند غوره مقام وو، د نوموړي تاريخ ليکونکی ليکي چې د نوموړي څخه په هيره هم هيڅکله د سنت خلاف کارونه صادر سوي نه وه، د قدرت فياض د حسن سيرت څخه پرته د حسن صورت په دولت هم شتمن وو ځکه د مخ تازګي د نوموړي نجابت او شرافت غمازي کول او د نوموړي مخ ليدوسره به خلکو ته يقين کيدی چې د نبي کريم ﷺ د صحبت څخه چې فيض کومو کسانو تر لاسه کړی دی نو هغه به يقينا دغه صورت او سيرت وي .

کله چې شاه عبدالعزيز رحمه الله د آخرت سفر قبول کړ نو د الله مخلوق د ولي اللهي د کورنۍ د سيادت (مشرتابه) لنګوټه د نوموړي پر سر کښېښودل او د شاه صاحب جانشين وګرځول سو ، ټولو معتقدينو او شاګردانو د نوموړي په لور رجوع وکړل او د دوئ د علومو د چينې څخه يې فيض اخيستل پيل کړل .

د شاه عبدالعزيز رحمه الله د ځای ناستي کېدو په وجه دوئ ته هغه عزت او عظمت حاصل سو کوم چې د دغه ستري کورنۍ نورو امامانو ته حاصل وو مګر د دغه شان او شوکت سربيره صرف د الله تعالی د رضا او د هغه د خوشحاله کولو لپاره نوموړي د مکې مکرمې په لور هجرت اراده وکړه او سره د خپل کورنۍ حجاز ته ولاړی ، هلته يې د حج فرائض ادا کړل او بيرته يې ځو ورځي وروسته هندوستان ته تشريف راوړ .

دلته په را رسيدو سره د الله مخلوق پر را چاپيره سو نو د خپل وعظ او نصيحتو په ذريعه د هغوئ روحاني تربيت يې کول مګر د هندوستان پر پوره فضا باندې د رسمونو، بدعاتو او ګمراهۍ تياره خپره وه او د اسلامي شعار پر ځای بې ديني خپره وه نو نوموړي بالکل بې زغمه سو او ددې ځای څخه يې د هجرت پخه اراده وکړه ، د ښار ټولو اوسيدونکو او خپله د وخت پاچا يې زارۍ وکړې چې تاسو د هندوستان څخه تشريف مه وړئ مګر حضرت ونه منل او د ټولي کورنۍ او لواحقينو سره يې مکې معظمې ته تشريف يووړ او هلته يې اوسيدل غوره کړل او هم هلته په کال (۱۲۶۲هـ) کي وفات سو .

# د مظاهر حق مؤلف

## علامه نواب محمد قطب الدين خان دهلوي رحمه الله

نوموړی د دهلي د يو صاحب حيثيت او باعزته کورنۍ د ستر ګو تور وو، پلار او نيکه يې هميشه د سلطاني دربار مقرب راغلي وه او د خپل خدمات جليله په صله کي يې لوی لوی مناصب او عهدې تر لاسه کړې وې، نوموړي ته هم په دهلي کي د لوی عزت او عظمت په نظر سره کتل کېدل او د وخت د پاچا په نظر کي د درجې خاوند وو، د نوموړي زيږېدنه په (۱۲۱۹هـ) کال کي سوې ده، د لومړنۍ روزني څخه وروسته د علم د تر لاسه کولو لپاره حضرت شاه محمد اسحاق دهلوي رحمه الله په خدمت کي ورکړل سو او د هغوئ څخه يې فيض تر لاسه کړ او د حديثو په علم کي کمال ته ورسيدی، د هغوئ څخه پرته د حرمين شريفين د علماؤ د علم د چينې څخه هم فيض ياب سوی وو.

د شريعت پيروي د نوموړي د ژوند يو امتيازي مقام وو، په وضع او قطع کي د خپل استاذ ريښتوني پيرو وو او د هغوئ سره دومره مشابه وو چي يو چا مولانا اسحاق نه وای ليدلی نو د دوئ په ليدو سره به ورته سکون تر لاسه کېدی، د علم او فضل په لوړه مرتبه کېدو څخه پرته تواضع، خاکساري، زهد، تقوا، عبادت او اخلاقو کي د اعلی درجې خاوند وو.

د نوموړي د علمي ژوند تر ټولو لويه کارنامه د مشکوة شريف اردو ترجمه او شرح په نامه د مظاهر حق ده، ددې څخه پرته د نوموړي د تصانيفو شمير هم ډير زيات دی چي د نوموړي د علم او فضل شاهکار دي، په پای کي نوموړي مکې معظمې ته تشريف يووړ او هم هلته په (۱۲۸۹هـ) کال کي وفات سو.

انالله وانا اليه راجعون.

# صاحب مصابیح السنة

## امام محي السنة قامع البدعة حضرت ابومحمد حسين بن مسعود الفراء البغوي رحمه الله

نوموړی د بغشور او سیدونکی وو چي په خراسان (افغانستان) کي د هرات او مرو په منځ کي یو کلی دی له دې کبله نوموړی د بغوي په نسبت سره مشهوره دی، د امام محي السنة په باره کي ویل کیږي چي نوموړی په خپله زمانه کي یو جلیل القدر عالم ، فقید المثال محدث او رفیع الشان مفسر وو ، په فقه، حدیث او تفسیر کي یې مثال نه درلودی له دې کبله د هغه وخت ټولو محدثینو، مفسرینو او علماؤ حضرت صاحب خپل پیشوا او امام ګڼی او هغه وخت د مفتي اعظم په ستر منصب هم فائز وو .

نوموړی د دغه علومو څخه پرته د قرائت په علم کي هم پوره مهارت درلودی او یو باکمال قاري تسلیم سوی وو ، نوموړی د علم او فضل په دې عظیم منصب د فائز کېدو سربیره او د خپل ټول دیني او دنیاوي عزت سربیره ډیر ساده ، بې تکلفي او انکساري درلودل .

نوموړی د زهد، تقوا او لوړو مرتبو خاوند وو، په زړه کي خشیت الهي او د آخرت بیره ډیره زیاته وه په عشق نبوي سره یې د ژوند هر اړخ منور وو ، د دنیا د عیش او عشرت څخه په میلونو لیري وو حال دا چي په دنیاوي توګه هم د عزت کوم مقام چي نوموړي ته حاصل وو د هغه پر بناء که حضرت غوښتلای نو د دنیا ټول نعمتونه او راحتونه به دده په قدمو کي وای ، مګر د زهد او استغناء یې دا حد وو چي نوموړي همیشه د وچي ډوډی خوړلو سره خپل ورځي پوره کړلې . د نوموړي د کمال ، زهد او استغناء دغه کیفیت لیدو سره شاګردانو ورته عرض وکړ چي تاسو وچه ډوډی خورئ داسي نه سي چي ددې په وجه ستاسو پر زړه او دماغ باندي د ضعف غلبه پیدا نسي او د دین اسلام کوم خدمت چي تاسو سرته رسوئ په هغه کي د عدم قوم او ضعف په وجه کمزوري پیداسي ، نو ددې څخه وروسته نوموړي یوازي دومره تبدیلي وکړه چي وچه ډوډی به یې د زیتون په تیلو سره لړ لندول او خوړل به یې .

د محي السنة عظیم لقب نوموړي ته په خپله د رسول الله ﷺ د لوري ورکړل سوی دی. مؤرخین او محدثین لیکي چي کله نوموړي خپل مشهور کتاب شرح السنة څخه فارغ سو نو یو ځل په خوب کي د رسول الله ﷺ په زیارت مشرف سو ، هغه وخت رسول الله ﷺ په امام صاحب مخاطب کولو سره دغه دعائیه جمله ارشاد وفرمایل څرنګه چي تا زما سنت د خپل تصنیف په ذریعه ژوندي کړل همداسي دي الله تعالی تا هم ژوندی وساتي د هغه وخت څخه وروسته د

نوموړي (محي السنة) لقب سو .

د نوموړي د ژوند تر ټولو مشهوره کارنامه د نوموړي مشهور تصنیف (مصابیح السنة) دی چي د مشکوة شریف بنیاد او متن دی ، نوموړي د صحاح ستة او نورو مستند او معتبرو کتابونو څخه د احادیثو دغه ذخیره جمع کړلو سره د فقه د کتابونو پر بابو باندي ترتیب وفرمایل، د نوموړي دوهم عظیم تصنیف معالم التنزیل دی چي د قرآن کریم په تفاسیرو کي یو وقیع درجه لري . نوموړی په کال (۵۱۶هـ) کي وفات سو . رحمة الله علیه .

# صاحب مشکوة المصابیح

## علامه ولي الدین ابوعبدالله محمد بن عبدالله الخطیب العمري التبریزي رحمة الله علیه

د نوموړي اصلي نوم محمد دی ، ځینو محمود لیکلی دی مګر زیات صحیح او مشهور محمد دی، کنیت یې عبدالله او لقب یې ولي الدین دی، د پلار محترم نوم یې عبدالله دی، په نسب عمري دی او په خطیب تبریزي مشهور دی .

نوموړی د خپل وخت جلیل القدر عالم ، ستر محدث د فصاحت او بلاغت امام، په زهد او تقوا سره متصف او د لوړو اخلاقو او عاداتو خاوند وو، د خپل زمانې د عظیمو شیوخو او استاذانو څخه یې علم تر لاسه کړ او کوم بې شمیره لائق او فائق شاګردان چي یې د خپل علم او فرعان څخه مستفید کړل په هغوئ کي شاه سادي رحمة الله علیه په سر کي دی.

د نوموړی د علم او فضل لویه کارنامه (مشکوة المصابیح) دی چي د مشکوة شریف په نامه سره مشهور دی ، او د حدیث بنیادي کتاب منل کیږي، د نوموړی دغه کتاب ته چي په دنیا کي د اعتبار او قبولیت کوم مقام نصیب سو د هغه یوه اندازه د مشکوة د تراجم پیل او حواشي ددې اوږد فهرست څخه لږ کېدلای سي مثلا :

۱. الکاشف عن حقائق السنن ، از علامه حسن بن محمد الطیبي رحمة الله علیه .
۲. شرح مشکوة از ابوالحسن علي بن محمد علم الدین بخاري رحمة الله علیه .
۳. منهاج المشکوة ، از شیخ عبد العزیز ابهري رحمة الله علیه .
۴. مرقاة شرح مشکوة، از شیخ نورالدین علي بن سلطان محمد هروي معروف به ملاعلي قاري رحمة الله علیه .
۵. شرح مشکوة ، از شیخ شهاب الدین ابو العباس احمد بن محمد بن علي بن جوهشمي.
۶. حاشیه مشکوة ، از سید شریف علي بن محمد جرجاني رحمة الله علیه .

۷. حاشیه مشکوة از شیخ محمد سعید بن المجدد الف ثاني رحمة الله عليه.
۸. هدایة الرواة الی تخریج المصابیح والمشکوة از شیخ ابو الفضل احمد بن علي معروف به ابن حجر عسقلاني رحمة الله عليه.
۹. لمعات التنقیح، عربي.
۱۰. اشعة اللمعات فارسي، از شیخ عبد الحق محدث دهلوي.
۱۱. التعلیق الصبیح از مولانا محمد ادریس کاندهلوي رحمة الله عليه.
۱۲. مرغاة المفاتیح، از مولانا عبید الله رحماني مبارکپوري رحمة الله عليه.
۱۳. ازیقة النجاة شرح مشکوة از شیخ عبد النبي عماد الدین محمد شطاري رحمة الله عليه.
۱۴ زینة النکاة في شرح المشکوة. از سید محمد ابو المجد محبوب عالم احمد آبادي رحمة الله عليه.
۱۵. مظاهر حق (اردو) از علامه نواب محمد قطب الدین خان دهلوي.
۱۶. ترجمه مشکوة (جلد اول) از مولانا کرامت علي جونپوري رحمة الله عليه.

د صاحب مشکوة خطیب تبریزي رحمة الله عليه د وفات کال د تحقیق څخه معلوم نه سو مګر دا یقیني ده چې د (۷۳۷هـ) کال څخه وروسته وفات سوی دی ځکه چې د جمعې په ورځ د روژې په مبارکه میاشت کې په (۷۳۷هـ) کال کي د دغه کتاب د تالیف څخه فارغ سو نو تر دې څو کاله وروسته به د نوموړي وفات سوی وي، ځینو حضراتو د اندازې څخه د وفات کال (۷۴۷هـ) ذکر کړی دی او ځیني حضراتو لیکلي دي چې په (۷۴۰هـ) کي وفات سو.

## د حدیثو امامان

په مشکوة شریف کي چې د کومو امامانو د کتابونو څخه احادیث منتخب سوي دي هغوئ په ځانګړې توګه دیارلس (۱۳) دي، یعني امام بخاري، امام مسلم، امام مالک، امام ابن ماجه، امام دارقطني، امام بیهقي، امام رزین ابن معاویه د دوئ څخه پرته امام نووي او د امام ابن جوزي ذکر هم دی، د دغه ټولو امامانو احوال په لنډه توګه نقل کیږي.

د مصابیح السنة یا مشکوة شریف د یو حدیث روایت یا نقل تعلق که څه هم د حضرت امام ابو حنیفة رحمة الله عليه سره نسته او په پورتني فهرست کي د هغه نوم نسته مګر د دین د امامانو او محدثینو د ذکر جمیل هیڅ لړۍ هم زموږ په نزد تر هغه وخته پوري پوره کیدلای نسي تر څو پوري چې د حضرت امام ابو حنیفة رحمة الله عليه تذکره په هغه کي شامله نسي ځکه د حدیث د امامانو د فهرست په پای کي په اجمالي ذکر کي حضرت امام صاحب رحمة الله عليه هم شامل کړل سوی دئ.

# حضرت امام بخاري رحمة الله عليه

د امام بخاري رحمة الله عليه اصلي نوم محمد بن اسماعيل بن ابراهيم بن مغيره بن بردزبه دی او د روايت په اختلاف په ۱۳ يا ۱۶ شوال (۱۹۴هـ) کال کي د جمعې په ورځ دلمانځه څخه وروسته پيدا سو، نومورى د جعفي قوم څخه مشهور دى ځکه چي د نومورى ورنيکه (دنيکه پلار) مغيره چي د کوم بزرګ په لاس سره په اسلام مشرف سو هغه د جعفي قوم څخه وو او د هغه نوم يمان جعفي وو، يمان جعفي په هغه زمانه کي د بخارا سردار وو ځکه چا به چي د هغوئ په لاس ايمان راوړ نو د هغه د قوم په لوري به يې خپل انتساب کوی ځکه حضرت امام بخاري رحمة الله عليه هم په جعفي مشهور سو، د حضرت امام بخاري رحمة الله عليه بينائي د وړکتوب څخه کمېده چي په هغه سره به دده مور مبارکه ډيره غمجنه او پريشانه وه، يو وار هغې د غم او پريشانۍ په حالت کي حضرت ابراهيم عليه السلام په خوب کي وليدی چي فرمائي خوشحاله سه چي الله تعالى ستا پر فرياد او ژړا باندي رحم وکړ او ستا دعاء قبوله سوه يعني ستا دزوی بينائي بيرته ورکړل سوه ، د هغه مور بي بي چي سهار راکښېنستل نو وه يې ليدل چي د خوږ زوی سترګي يې روښانه سوي دي.

د لسو کالو په عمر کي کله چي بخاري صاحب په مدرسه کي سبق وايه نو د هغه وخت څخه دا کيفيت وو چي يو حديث به يې واوريدی نو سمدستي به يې ياد کړ نو د هم هغه وخت څخه هغه حديثونه په يادول پيل کړي وه.

کله چي د مدرسې د تعليم څخه فارغ سو نو معلومه سوه چي په بخارا کي يو محدث او عالم داخلي رحمة الله عليه ډير شهرت لري نو امام بخاري رحمة الله عليه هغه ته ورتلی ، په هغه ورځو کي داخلي خپل کتاب چي د حديثو په فن کي وو او په هغه کي حديثونه ليکلي وه خلکو ته لوستل. يو وار داخلي د خلکو په مينځ کي ناست د رسول الله ﷺ حديثونه يې لوستل او د حديث بيانولو په وخت چي هغوئ د حديث سند پيل کړ نو وه يې ويل : سفيان عن ابي الزبير عن ابراهيم، امام بخاري بخاري سمدستي وويل چي ابوزبير د ابراهيم څخه روايت نه کوي، داخلي د دغه کم عمره ماشوم د ژبي څخه دا اورېدو سره هک حيران سو او کور ته ولاړی کتاب يې راوړ او وه يې ويل چي واقعي زما څخه غلطي وسوه، اوس ته ووايه چي دا سند څرنګه دی ؟ امام بخاري رحمة الله عليه وويل : داسي دي چي سفيان عن ابي الزبير عن عدي عن ابراهيم، داخلي کتاب وکتی او وه يې ويل چي واقعي ته رېښتيا وايي دا سند همداسي دی، هغه وخت د حضرت امام بخاري رحمة الله عليه عمر يوولس کاله وو، د داخلي د حيرت انتها نه وه چي په دغه ماشوم کي څومره قوي

حافظه او ذهين دی نو هغه خوشحاله هم سو او د امام بخاري رحمة الله عليه ډير تعريف او تحسين يې هم وکړ.

د شپاړلسو کالو په عمر کي يې د ابن مبارک او وکيع کتابونه ياد کړل او د خپل مور او ورور احمد سره د حج لپاره مکې معظمې ته ولاړی، د حج څخه د فراغت وروسته مور او وورر ځيني راغلل مګر نوموړی د حديثو زده کولو په لړه کي په حجاز کي تم سو، د اتلس کالو په عمر کي نوموړي کتابونه تصنيف کول پيل کړل، نوموړي يو کتاب د صحابه کرامو او تابعينو د عظيمو کارمانو او واقعاتو او د هغوئ اقوال او احوال باندي مشتمل تصنيف کړ چي د هغه نوم يې (کتاب التاريخ) کښېښود، نوموړي ددغه کتاب مسوده تياره او بيا يې هغه په مدينه منوره کي د نبي کريم ﷺ روضې مبارکي ته نژدې د سپوږمۍ په رڼا کي صاف کړ، جامعه ابن اسماعيل رحمة الله عليه چي د خپل زمانې رفيع المرتبت محدث وو د هغه بيان دی چي په کومه زمانه کي امام بخاري رحمة الله عليه د حديث تر لاسه کولو لپاره خپلو استاذانو ته ورتلی نو زه به هم د هغه سره اوسيدم، د امام بخاري رحمة الله عليه عادت وو چي هغه به د ځان سره قلم او مشوانۍ نه درلودل، ما هغه ته وويل چي تاسود حديث تر لاسه کولو لپاره استاذانو ته دومره په ذوق او شوق سره راځئ مګر قلم او مشوانۍ د ځان سره نه لرئ نو ددې څخه به څه ګټه تر لاسه سي، ځکه چي تر څو پوري تاسو حديث ونه ليکئ نو ياد نه پاته کيږي، که ته حديثونه ياد ساتل غواړې نو هغه ليکل پکار دي.

د حامد بن اسماعيل بيان دی چي شپاړلس ورځي وروسته امام بخاري رحمة الله عليه ما ته وويل چي په دغه وخت کي څومره حديثونه تا ليکلي دي ټول ما ته راوړه او بيا د خپل ليکل سوو حديثونو زما په ذهن کي حديثونو سره مقابله وکړه، حامد په دغه وخت کي پنځلس زره حديثونه ليکلي وه، بخاري رحمة الله عليه خپل ټول حديثونه د خپل حافظې څخه لوستل پيل کړل، حامد بن اسماعيل رحمة الله عليه وايي پکار خو داوه چي اِمام بخاري رحمة الله عليه خپل ياد کړي حديثونه زموږ د ليکل سوو حديثونو سره سم کړي وای مګر دا وسوه چي موږ خپل ليکل سوي حديثونه د هغه د حافظې او ياد د حديثونو څخه صحيح کړل، او هغه پنځلس زره حديثونه پرته د يو لفظ د فرق واورول سول، د حديثونو اورولو څخه وروسته امام بخاري رحمة الله عليه وفرمايل: ستاسو دا خيال وو چي زه خپل وخت ضائع کوم او هسي دومره هڅه کوم، احمد بن اسماعيل رحمة الله عليه وايي چي ما ته د هغه ورځي څخه يقين وسو چي دا سړی ډير هوښيار او بافضيلت دی دده برابري

هيڅوک نسي کولای.

بخاري شريف چي د امام بخاري رحمه الله تر ټولو لويه کارنامه ده چي د کتاب الله (قرآن کريم) څخه وروسته تر ټولو زيات صحيح کتاب منل سوی دی، ددې د تاليف وجه داسي بيانيږي چي يوه ورځ امام بخاري رحمه الله د خپل استاذ اسحاق بن راهويه رحمه الله په مجلس کي ناست وو، د هغوئ شاګردانو په خپل مينځ کي وويل که الله تعالی يو چا ته د يو داسي کتاب د تصنيف توفيق ورکړی چي په هغه کي په لنډه طريقې سره احاديث يو ځای کړل سي او حديثونه د صحت په اعتبار د باور وړ او د اعلی درجې وي نو ښومره ښه به وي، ددې ګټه به دا وي چي ټول صحيح، معتبر او مستند حديثونه به يو ځای جمع سي بله دا چي د حديثو شاګرد به پرته د يو شک او شبهې څخه هغه تر لاسه کولای سي او عمل به په کولای سي او هغه ته به د يو حديث په باره کي د يو عالم يا محدث څخه د پوښتني کولو ضرورت نه وي چي دغه حديث صحيح دی او که ضعيف.

مجلس خو پای ته ورسيدی ټول خلک ولاړل مګر د بخاري رحمه الله په زړه کي دا خواهش پيدا سو او هغه ددغه مهمي او ستري کارنامې تکميل ته د رسولو اراده وکړل او د کتاب تصنيف يې پيل کړ.

هغه وخت د نوموړي سره د محفوظ احاديثو سرمايه تقريبا شپږ لکه په شمير کي وه نو د هغو څخه يې هغه حديثونه چي د صحت او سند په اعتبار د لوړي درجې وي نوموړي په خپل کتاب کي جمع کړل او کوم حديثونه چي د هغه په معيار صحت پوره نه وه هغه يې پرېښودل، همداسي د ابن راهويه په مجلس کي د امام بخاري رحمه الله د ملګرو د مقدس خواهش نتيجه د جامع بخاري په شکل کي په وجود کي راغلل.

د حضرت امام بخاري رحمه الله ددغه کتاب د تاليف په وخت کي دا عادت وو چي نوموړي به لومړی غسل کوی بيا به يې دوه رکعته نفل کول او د هغه څخه وروسته به يې يو حديث نقل کوی او همدارنګه په بخاري شريف کي داسي يو حديث نسته چي د هغه نقل کولو څخه مخکي امام بخاري رحمه الله غسل او دوه رکعته نفل نه وي کړي، د شپاړلسو کالو په وخت کي نوموړي ددغه عظيم تصنيف څخه فارغ سو، د نوموړي په ژوند کي تقريبا نيوي زرو خلکو بلا واسطه د نوموړي څخه د حديثو تر لاسه کولو شرف تر لاسه کړ.

په دغه وخت کي د بخارا حاکم خالد بن احمد زعلي وو، هغه حضرت امام بخاري رحمه الله ته

پیغام ولیږی چي تاسو زما کور ته تشریف راوړئ چي زما ماشومانو ته خپل کتاب بخاري او نور تصنیفونه مثلا کتاب التاریخ وغیره ووایاست، امام بخاري رحمة الله علیه ورته وفرمایل چي دا د حدیثو علم دی زه دا کار د حدیثو د عظمت خلاف گڼم چي ستاسو کور ته د حدیث ښودلو لپاره راسم که ستا دا شوق وي نو خپل زامن زما مجلس ته راولیږه چي هغوئ هم د نورو په ډول کښېنستو سره د حدیث درس تر لاسه کړي، (ځکه چي علم خلکو ته نه ځي خلک علم ته راځي)، د بخارا د حاکم لپاره د امام بخاري رحمة الله علیه دغه جواب د غمچني د وار څخه کم نه وو. مگر بیا هم هغه دا پیغام ور ولیږی چي ښه دی زه دې ته هم تیار یم مگر دا خیال به ساتې چي کوم وخت زما ماشومان تاسو ته حاضر سي نو هغه وخت به بل څوک تاسو ته نه راځي بلکه پر دروازه به باقاعده پهره وي چي هغه نور خلک په دغه وخت کي درس راتلو څخه منعه کوي دا خبره زما لپاره بالکل د زغم وړ نه ده چي په کوم مجلس کي زما زامن وي په هغه مجلس کي دي عوام او نور کم حیثیته خلک هم راسي او د هغوئ سره دي برابر کښیني، امام بخاري رحمة الله علیه د حاکم د شرط منلو څخه انکار وکړ او وه یې فرمایل دا علم د پیغمبر اسلام ﷺ میراث دی په دې کي ټوله امت یو ډول گډون لري ددې په تر لاسه کولو کي هیچا ته پر بل چا باندي برتري تر لاسه نه ده، د بخارا حاکم د امام بخاري رحمة الله علیه ددغه جواب اوریدو سره سخت په غصه سو او دا فیصله یې وکړه چي هر ډول وي ده ته سزا ورکول پکار دي.

د داسي علماؤ په هیڅ زمانه کي کمي نه ده راغلې چي د دولت او شهرت تر لاسه کولو لپاره خپل ضمیر د وخت د حکومت پر لاس خرڅ کړي او صرف د خپل ذاتي گټي او نفساني غرضونو له کبله نه یوازي دا چي د خپل علم تندی د حکومت په ذلیله درشل کي کښیږدي بلکه د مقصد او کامیابۍ لپاره د نورو حق علماؤ په لنگوټه غورځولو کي هم هیڅ دریغ نه کوي، همداسي دامام بخاري رحمة الله علیه سره وسول، داسي علماء چي په ظاهره د امام صاحب رفیق او همدرد وه مگر د بخارا د سردار د دولت په طمع هر څه کولو ته تیار وه، سردار هغوئ ته د خان سره ملگري کړل او د امام بخاري رحمة الله علیه په علم او فضل کي یې طعن او تشنیع پیل کړل او دامام صاحب رحمة الله علیه پر مسلک او اجتهاد یې تنقید ونه پیل کړل، په پای کي د هغه علماؤ په مرسته یو فهرست الزام یې تیار کړ چي د هغه په وجه امام بخاري رحمة الله علیه د بخارا څخه جلا وطنه کړل سو.

امام بخاري رحمة الله علیه چي کله د ښار څخه وتی نو یوازي دومره یې وفرمایل: اې الله! زه دا معامله تا ته سپارم، تر او سه لا یو میاشت نه وه تیره سوې چي هغه حاکم خالد بن احمد د وخت

د خليفه د حكم سره معزول كړل سو نه يوازي دا بلكه د خليفه حكم وسو چي دی پر خره سپور كړي او په ټول ښار كي يې مشهور كړي نو د هغه همدا پای سو .

همداسي يو بل عالم حريث بن ورقه چي د امام بخاري رحمة الله عليه پر خلاف په سازش كي د حاكم ملګری وو هغه هم په خرابي طريقې سره ذليل او خوار سو او يو بل عالم هم په دغه سازش كي شريک سو د هغه انجام هم دا سو چي د الله تعالى قهر د آفت او بلا په شكل كي هغه ونيوی او د هغه ټول ماشومان مړه سول .

امام بخاري رحمة الله عليه د بخارا څخه ووتی او د نيشاپور ښار ته ولاړی، د نوموړي خود داري او استغناء د نيشاپور حاكم هم ناراضه كړ ځكه نيشاپور هم پرېښودل سو او په آخر كي د سمرقند څخه د شپږ كوسه په فاصله په خرتنګ نامي كلي كي يې هستوګنه اختيار كړه او هم دلته د نوموړي د ژوند پيمانه هم ډكه سوه او د رمضان المبارک د آخري نيټې د اختر په شپه په (۲۵۶هـ) كال كي د (۶۲) كالو په عمر واصل بحق سو . انالله وانا اليه راجعون .

د نوموړي د استاذانو شمير ډير دی په لويو او جليل القدر استاذانو كي په خاصه توګه اسحاق بن راهويه رحمة الله عليه ، علي بن مديني رحمة الله عليه ، احمد بن حنبل او يحيى بن معين رحمهم الله تعالى اجمعين نوم ونه په خاصه توګه د ذكر وړ دي .

خطيب ابوبكر بغدادي د خپل مسند حوالې سره د عبدالواحد طراوي دا قول نقل كړی دی چي ما نبي كريم ﷺ په خوب كي وليد چي رسول الله ﷺ د خپل صحابه كرامو د ډلي سره د يو چا په انتظار كي ولاړ دی ، ما سلام ادا كړ نو رسول الله ﷺ جواب راكړ ، ما عرض وكړ اې د الله رسوله ! تاسو دلته د چا د انتظار لپاره ولاړ ياست ،؟ رسول الله ﷺ وفرمايل: موږ د محمد بن اسماعيل انتظار كوو ، عبدالواحد وايي كله چي د امام بخاري رحمة الله عليه د وفات خبر راورسيدی او ما چي غور وكړ نو معلومه سوه چي عين هغه وخت امام بخاري رحمة الله عليه وفات سوی وو كوم وخت چي ما نبي كريم ﷺ په خوب كي د امام بخاري رحمة الله عليه په انتظار كي ليدلی وو .

شيخ عبدالحق دهلوي په خپل ترجمه كي د خوب ليكلو سره دا هم ليكلي دي چي كله امام بخاري رحمة الله عليه دفن كړل سو نو د هغه د قبر څخه د مشكو بوی راتلی او هغه خوشبوئي تر ډيره وخته پوري د قبر څخه راوتل .

ډيرو كسانو په خوب كي وليدي چي نبي كريم ﷺ بخاري شريف خپل جانب ته منسوب كړی دی، محمد بن احمد مروزي يوه ورځ د ركن او مقام ابراهيم په مينځ كي بيده وو ، په خوب

کي یې نبي کریم ﷺ ولیدی چي فرمایي : اې ابوزید ! ته به د کتاب شافعي درس تر کومه پوري ورکوې آخر زما د کتاب درس ولي نه ورکوې؟ هغه وبیریدی او عرض یې وکړ اې الله رسوله ! زه پر تاسو قربان سم ستاسو کتاب کوم دی چي د هغه درس کول پکار دي، رسول الله ﷺ وفرمایل جامع محمد بن اسماعیل ، یعني بخاري شریف، د امام الحرمین څخه هم دا ډول خوب نقل سوی دی.

د امام بخاري رحمه الله ډیر تصنیفات دي په هغو کي تر ټولو عظیم او جلیل القدر تصنیف خو صحیح بخاري شریف دی چي په ټوله اسلامي نړۍ کي د شهرت مقام لري ، دوهم کتاب التاریخ دی ، دریم کتاب الادب دی، څلورم کتاب رفع یدین ، او همداسي نور هم ډیر کتابونه د امام بخاري رحمه الله تصنیف سوي دي چي د هغه د علم او فضل شاهکار دي

## حضرت امام مسلم رحمه الله

د نوموړي نوم مبارک مسلم بن حجاج دی او کنیت یې ابو الحسین دی ، د قشیري قوم څخه دی، نیشاپور د نوموړي هیواد دی، په کال (۲۰۴هـ) یا (۲۰۶) کي زیږیدلی دی، جلیل القدر محدث وو ، او حدیثو امام منل کیږي، اوبو حاتم رازي ترمذي او ابوبکر بن حزیمه د نوموړي په شاګردانو کي دي ، ابو حاتم رازي امام مسلم رحمه الله د وفات څخه وروسته په خوب کي ولیدی او د هغه څخه یې حالات وپوښتل، امام مسلم رحمه الله وفرمایل : الله تعالی په خپل فضل او کرم سره نازولی یم ما ته یې د جنت دروازې خلاصي کړي دي او د جنت وسعتونه زما لپاره وقف دي چیري چي غواړم هلته یم.

ابو علي زاغني د امام مسلم رحمه الله د وفات څخه وروسته یو معتبر او متقي سړي په خوب کي ولیدی ، پوښتنه یې ځیني وکړه چي ستا خلاصون د کوم شي په وجه وسو ، هغه په خپل لاس کي یو څو ورقې ایښې وې د هغه په وړاندي کولو سره یې وښودل چي ددغه شي په وجه ، او هغه د صحیح مسلم اجزاء وه.

په کتاب التاریخ کي لیکلي دي چي یوه ورځ د امام مسلم رحمه الله په مجلس کي د یو حدیث ذکر وسو ، خلکو دامام مسلم رحمه الله څخه د هغه حدیث په اړه پوښتنه وکړه ، امام مسلم رحمه الله ته هغه حدیث یاد نه وو ، ولاړ سو او سرای ته یې تشریف یووړ یوه ټوکرۍ خرماوې یې د ځان سره کښېښودلې او حدیث یې لټوی ، د ټوکرۍ څخه به یې یوه یوه خرما خوړل ، په پای کي هغه حدیث یې پیدا کړ مګر په دغه دوران کي د خرماوو ټوله ټوکرۍ یې ختمه کړه ، د حدیث په

لټولو کي دومره غرق سو چي دا خیال یې هم نه وو چي دومره خرماوي به څنګه هضم کوي په پای کي د نوموړي وفات هم دغه سبب سو نو په ۱۴رجب ۲۶۱ھ کي د یکشنبې په ورځ د دار فاني څخه رخصت سو او واصل بحق سو. انا لله وانا الیه راجعون.

د امام مسلم رحمۃ اللہ علیہ تر ټولو لویه او عظیمه کارنامه جامع صحیح مسلم شریف دی چي د حدیثو یو عظیم او د بخاري شریف په ډول تر ټولو صحیح کتاب دی، ددې څخه پرته د نوموړي تصنیفات ډیر زیات دي مثلاً مسند کبیر، جامع کبیر، کتاب العلل، کتاب الاوهام محدثین، کتاب تمیز، کتاب من لیس له الاراو واحد، کتاب لطبقات مخضریین، کتب الاسماء والکنی، کتاب الوحدان، کتاب حدیث عمروبن شعیب، کتاب مشائخ مالک، کتاب مشائخ ثوري، او داسې نور ډیر کتابونه دي چي نوموړي تصنیف کړي دي.

## حضرت امام مالک رحمۃ اللہ علیہ

د نوموړي نوم مبارک مالک دی د نسب لړۍ یې داسې ده: مالک بن انس بن مالک بن ابوعامر بن عامر بن المحارث بن غیمان بن خثیل..الخ.

د نوموړي ور نیکه ته د رسول الله ﷺ د صحبت شرف تر لاسه وو، مګر محدث ذهبي په تجرید الصحابه کي د هغوئ په اړه ویلي دي چي ما دا منقول نه دي لیدلي چي ابوعامر صحابي وو مګر دومره ثابته ده چي د هغه زیږېدنه د رسول الله ﷺ په زمانه کي سوې ده.

د ابوعامر زوی مالک تابعي دی، د حضرت عثمان رضی اللہ عنہ او نورو صحابه کرامو څخه د هغه منقول روایتونه راغي، شیخ محمد ابراهیم بن خلیل په شرح مختصر خلیل کي د ابوعامر په اړه لیکلي دي چي د امام مالک رحمۃ اللہ علیہ ور نیکه ابوعامر صحابي دی او د بدر څخه پرته په ټولو غزاګانو کي د نبي کریم ﷺ سره ملګری وو، حضرت امام مالک رحمۃ اللہ علیہ د اصبحي قوم څخه دی د نوموړي زیږېدنه په (۹۳ھ) کال کي سوې ده، ویل کیږي چي امام مالک رحمۃ اللہ علیہ دوه یا درې کاله د حمل په حالت کي پاته سوی دی.

امام مالک رحمۃ اللہ علیہ د حدیثو د علم تر لاسه کولو ډیر حرص او د سنت پیغمبر ﷺ پیروي د هغه د ژوند برخه وه، په پیل کي چي د علم حدیث د طلب شوق یې ډیر زیات وو او په کور کي دومره وسعت نه وو چي باقاعده تعلیم حاصل کړلای سي نو مالک رحمۃ اللہ علیہ د کور کړۍ (زېورات) خرڅي کړې او په هغه روپو یې کتابونه رانیول، وروسته د حضرت امام مالک رحمۃ اللہ علیہ د شهرت ستوری چي عروج ته ورسیدی او د الله تعالی مخلوق خپل مرجع جوړ کړ نو د ژوند هر

راحت او اسانتیا د هغه قدمونه مچول پیل کړل. د نوموړي حافظه ډیره تیزه او قوي وه نوموړی په خپله فرمايي چي کوم شی یو وار یاد کړم نو بیا په ټول ژوند کي را څخه نه هیریږي، امام مالک رحمه الله علیه د اووه لس کالو په عمر کي د حدیثو درس ورکول پیل کړی دي. ویل کیږي چي د نوموړي د درس حدیث په لومړنیو ورځو کي د مدینې یوه نیکه او باعزته ښځه وفات سوه، مړي ته غسل ورکول کېدی چي او د غسل په دوران کي د غسل ورکونکي لاس د مړي شرمګاه ته ورسیدی نو هغه بدبختي وویل چي دا ښځه زناکاره وه او په خپل ژوند کي یې حرام کارونه کول، څرنګه چي هغې دا وویل نو د هغې لاس د مړي د شرمګاه سره موښتي پاته سو، غسل ورکونکې ډیره پریشانه سوه هغې چي هر څومره وغوښتل چي لاس لیري کړي مګر د هغې لاس نه لیري کیدی. دا یوه لویه او عجیبه پېښه وه. خلکو د وخت علماؤو ته رجوع وکړه او تدبیر یې وغوښتی، مګر هیچا یو تدبیر ونه ښودی، په پای کي خلک د امام مالک رحمه الله علیه په خدمت کي حاضر سول او پېښه یې ورته بیان کړل، د امام مالک رحمه الله علیه ذهانت سمدستي علاج تجویز کړ او وه یې فرمایل: غسل ورکونکي ښځي پر یو نیکي او پاک لمني ښځي باندي زنا تهمت لګولی دی چي پر هغې عذاب الهي راغلی دی اوس ددې علاج دادی چي پر دې د تهمت حد جاري کړل سي.

کله چي دغه ښځه د تهمت په تورګه اتیا دورې ووهل سوه نو د هغې لاس د هغه ځایه څخه لیري سو، د هغه وخت څخه خلک د امام مالک رحمه الله علیه د علم او فضل قائل سول او د کمال او فضل آوازه یې هر لوري ته خپره سوه.

امام مالک رحمه الله علیه په خپل لاس سره زر حدیثونه لیکلي وه چي په ټولو محدثینو کي یوازي د هغه امتیاز دی د کما آدب پر بناء نوموړي د مدینې په حرم کي هیڅکله استنجاء نه کول، د قضاء حاجت لپاره به یې دباندي تشریف وړی البته دناروغۍ په حالت کي چي به کله ډیر مجبور سو نو هم هلته به یې استنجاء کول.

په حدیث کي د نوموړي لویه کارنامه (مؤطا) زر کسانو د نوموړي څخه اوریدلې ده او په حدیث کي د حضرت څخه سند اخیستی دی، د نوموړي د وفات څخه وروسته دغه کتاب ته په اسلامي نړۍ کي بې پایه مقبولیت تر لاسه سو او اهل علم ددې څخه فیضاب سول.

# حضرت امام شافعي رحمة الله عليه

د نوموړي نوم محمد او کنیت یې ابوعبدالله دی. د شافعي په نامه سره مشهور دی. د نسب لړۍ یې داسې ده : محمد بن ادریس بن عباس ابن عثمان بن شافع بن سائب بن عبید بن عبدیزید بن هاشم بن مطلب بن عبدمناف القریشي المطلبي . شافع ته مطلبي وایي ځکه چې دده د لوړ نیکه نوم مطلب وو چې د هاشم بن عبدمناف ورور وو یو هغه هاشم چې د مطلب زوی دی د هغه په اولاد کې حضرت امام شافعي دی او هغه هاشم چې د عبدمناف زوی او د مطلب ورور دی د نبي کریم ﷺ اعلی نیکه دی ، همداسې د نبي کریم ﷺ او حضرت امام شافعي رحمة الله عليه د نسب لړۍ پر عبدمناف باندې یو ځای کیږي .

شافع چې د امام شافعي اعلی جد (ور نیکه) دی د رسول الله ﷺ په زمانه کې وو او د هغه پلار سائب هم د نبي کریم ﷺ په زمانه کې وو بلکه په بدر کې د حق او باطل په مینځ کې د جګړې بازار ګرم سو نو د قریشو (کفارو) د لورې د بني هاشم بیرغ پورته کونکی سائب وو ، د بدر په جګړه کې کله چې کفارو ماته وخوړل او بې شمیره خلک بندیان سول نو په هغه بندیانو کې سائب هم وو ، او هغه بیا وروسته په فدیه ورکولو سره خلاص سو او د اسلام په دولت سره شتمن سو .

د حضرت امام شافعي رحمة الله عليه زیږېدنه په کال (۱۵۰ھ) کې د غزه په ځای کې وسول. د ځینو په نزد د نوموړي زیږېدنه په عسقلان نامي ځای کې سوې ده ، همداسې ځیني خلک په منۍ کې د نوموړي د زیږېدني قائل دي بیا مکې ته بوتلل سو هلته یې روزنه وسول او دغه ځای په مقدس چاپیریال کې د نوموړي روزنه وسوه، د اوو کالو په عمر کې نوموړي پوره قرآن کریم یاد کړ، او د لسو کالو په عمر کې مؤطا امام مالک یې یاد کړل ، د فقهي تعلیم نوموړي د مسلم بن خالد څخه تر لاسه کړ چې په هغه زمانه کې مفتي وو . د پنځلس کالو په عمر کې نوموړي ته د مشاهیر علماؤ او د مشائخو څخه د فتوا ورکولو اجازه تر لاسه سوې وه ، وروسته د علم د تر لاسه کولو په شوق کې یې د مدینې منورې سفر غوره کړ او هلته د امام مالک رحمة الله عليه په خدمت کې په علم تر لاسه کولو کې بوخت سو .

حضرت امام شافعي رحمة الله عليه فرمائي چې د عمر له لومړني دور کې ما ته د شعر او شاعري ډیر شوق وو او ډیر زیات شعرونه مې په ذهن کې یاد سوي وه چې هغه به مې هر وخت لوستل، په هغه زمانه کې یوه ورځ زه د کعبې معظمې په سایه کې یوازې ناست وم ناڅاپه د شا څخه یو آواز راغلی، امام صاحب فرمائي ما په ډیر غوره سره واوریدل چې یو څوک وایي (یا محمد علیک

بالثقة ودع الشعر) يعني اې محمده! هغه شی غوره کړه چي ريښتونی او مستحکم دی شعر او شاعري پريږده .

همداسي امام صاحب فرمائي چي د بالغ کېدو څخه مخکي ما يوه ورځ په خوب کي وليدل چي نبي کريم ﷺ ما ته آواز کوي ، ما وويل لبيک يارسول الله، رسول الله ﷺ پوښتنه وکړه چي ته د کومي قبيلې څخه يې ؟ ما عرض وکړ اې دالله رسوله ! ستاسو د قبيلې څخه يم . رسول الله ﷺ ارشاد وفرمايه چي ما ته نژدې راسه او خپله خوله خلاصه کړه، زه سمدستي رسول الله ﷺ ته ورغلم او خپل خوله مي خلاصه کړه رسول الله ﷺ د خپل خولې مبارکي لاړي زما په خوله کي واچولې او وه يې فرمايل ځه الله تعالی دي په برکت او سعادت سره ونازوه، امام شافعي رحمة الله عليه د دغه مبارک خوب اثر بيانولو سره فرمائي چي ددې څخه وروسته زما څخه د حديثو په علم او په عربي ادب کي هيڅکله غلطي ونه سوه .

امام شافعي رحمة الله عليه فرمائي کله چي زه د امام مالک رحمة الله عليه په خدمت کي حاضر سوم نو امام صاحب زما سره د خبرو اترو او پيژندني وروسته پوښتنه وکړه چي ستا نوم څه شي دی ؟ ما عرض وکړ زما نوم محمد دی، ددې څخه وروسته امام مالک رحمة الله عليه ارشاد وفرمايه اې محمد ! تقوا اختيار کړه ، د الله جل جلاله څخه بيره کوه او د ګناهونو څخه ځان ساته ځکه چي الله تعالی به په امت محمديه کي تا د لوی شان او شوکت خاوند جوړ کړي ، په هر حال زه د امام مالک رحمة الله عليه په خدمت کي تر ډيره وخته پوري د علم په ترلاسه کولو کي بوخت وم د علم ترلاسه کولو د فراغت څخه وروسته چي کله ستنېدم او د امام مالک رحمة الله عليه څخه مي د ستنېدو اجازه وغوښتل نو امام صاحب د رخصت په وخت کي ما ته نصيحت وفرمايه چي : اې زلميه ! الله تعالی ستا په زړه کي نور اچولی دی نو پر تا باندي واجب ده چي ددغه نور ساتنه وکړې داسي نه وي چي د ګناه تياره دغه نور پټ کړي او ولاړ سي .

د امام مالک رحمة الله عليه څخه د رخصتېدو سره نوموړي بغداد ته ورسيدی هلته يې د عالمانو څخه د حديث او فقهي نور تعليم ترلاسه کړ، د هغه ځای څخه مکې ته راغلی او د مکې څخه بيا دوهم واري يې بغداد ته تشريف يووړ ، څه وخت وروسته مصر ته ولاړی او هم هلته په درس او تدريس کي بوخت سو ، نوموړي هم هلته د خپل تصنيفو لړۍ پيل کړه ، نوموړي پر اصول دين باندي څورلس کتابونه تصنيف کړل او د فروغ دين په بحث کي يې تقريبا د سلو څخه زيات کتابونه وليکل، د احمد بن حنبل رحمة الله عليه څخه روايت دی چي هغه به ويل ما په حديثو کي د

ناسخ او منسوخ، عام او خاص، مفصل او مجمل علم نه درلودی هر کله چي ما د امام شافعي رحمة الله عليه صحبت اختيار کړنو ما ته دد غه شيانو علم وسو .

د حضرت امام اعظم رحمة الله عليه شاګرد حضرت امام محمد رحمة الله عليه فرمائي چي امام شافعي رحمة الله عليه زما څخه د حضرت امام اعظم رحمة الله عليه تصنيف (کتاب اوسط) عاريتا واخيستی او ټول کتاب يې په يوه شپه او ورځ کي ياد کړ .

د حضرت امام شافعي رحمة الله عليه وفات د رجب په مياشت کي په (۲۰۴ھ) کال کي د جمعې په ورځ په مصر کي وسو او په هغه ورځ دفن کړل سو د نوموړي په (۱۱۴) تصنيفو کي (کتاب الامم) خاص ارزښت لري .

د نوموړي په جليل القدر استاذانو کي حضرت امام مالک رحمة الله عليه او ابوسفيان بن عينيه رحمة الله عليه وغيره زيات مشهور دي ، د دوئ څخه پرته نور استاذان ئې هم سته چي د هغوئ څخه نوموړي د حديثو علم تر لاسه کړی دی .

د نوموړي په شاګردانو کي احمد بن حنبل رحمة الله عليه او سفيان ثوري رحمة الله عليه او مزني وغيره د يادوني وړ دي، د دوئ څخه پرته نورو ډيرو شاګردانو د نوموړي څخه علم تر لاسه کړيدی.

## حضرت امام احمد بن حنبل رحمة الله عليه

د نوموړي نوم احمد او کنيت يې ابوعبدالله دی. د نسب لړۍ يې داسي ده : احمد بن محمد بن حنبل بن حلال بن اسد بن ادريس بن عبدالله ابن حبان بن اسد بن ربيعه بن نزار بن سعد بن عدنان ... الخ .

د نوموړي د علم او فضل په باره کي د دې څخه لږ اندازه کيدلای سي چي په خپل وخت کي د فقه او حديثو امام او مقتدا منل کيدی ، ډير عابد ، زاهد ، متقي او پرهيزګار وو ، د نوموړي په عبادت کي خشوع او خضوع ډيره زياته وه ، د نوموړي روزنه په بغداد کي وسوه او هلته يې د علم د تر لاسه کولو او د حديثو د علم مراحل قطع کړل. د دې څخه وروسته د حديث سماعت او د هغه د تر لاسه کولو په غرض کوفه ، بصره ، مکه ، مدينه ، يمن ، شام او د نورو اوږدو جزيرو سفر يې غوره کړ او د هر ځای د مشهورو علماؤ څخه يې د احاديثو سند تر لاسه کړ .

د نوموړي په استاذانو کي يزيد بن هارون، يحيی بن سعيد قطان، سفيان بن عينيه او امام شافعي دي ، د نوموړي خاص شاګردان امام بخاري، مسلم بن حجاج قشيري، ابوزراع او ابوداؤد سجستاني دي، دغه حضراتو د امام صاحب څخه حديثونه نقل کړي دي .

د حضرت اسحاق بن راهویه رحمه الله د نوموړي په اړه رایه وه چي امام احمد بن حنبل رحمه الله د الله او بندګانو په مینځ کي حجت یعني دلیل دی.

د امام شافعي رحمه الله شاهدي ده چي ما په بغداد کي په پرهیزګاري، تقوا او علم کي د احمد بن حنبل رحمه الله څخه زیات بل څوک نه دی لیدلی.

احمد بن سعید دارمي به فرمایل چي ما د پیغمبر ﷺ حدیثونه زیات یادلرونکی د امام احمد بن حنبل رحمه الله څخه پرته بل سړی نه دی لیدلی.

د حضرت ابوداؤد سجستاني رحمه الله څخه روایت دی چي هغه به فرمایل: د امام احمد بن حنبل رحمه الله په مجلس کي ناسته د آخرت صحبت اختیارولو مترادف ده ځکه چي د هغه په مجلس کي پرته د امور دین د ذکر او خبرو څخه بل څه نه وي.

ویل کیږي چي امام احمد بن حنبل رحمه الله کمال فقر غوره کړ او تر اویا کالو پوري یې په استغناء او توکل سره ژوند تیروی، سره د خپل شان او عظمت هیڅکله یې د عیش او آرام آرزو ونه کړل او نه یې هیڅکله د یو چا څخه یو څه قبول کړل.

محمد بن موسی نقل کوي چي اهل مصر د حسن بن عبدالعزیز لپاره یو لک اشرفۍ د میراث په توګه پر یو څو حیوانانو اچولو سره بغداد ته ولیږلې، حسن بن عبدالعزیز د هغه څخه یو څو کڅوړې د زر زر اشرفیو د امام احمد بن حنبل په خدمت کي ولیږلې او عرض یې وکړ چي دغه مال ما ته په حلاله طریقې سره په میراث کي راغلی دی، ددې څخه یو څه برخه تاسو هم قبوله کړئ او د خپل کورنۍ اړتیاوي په پوره کړئ، امام احمد بن حنبل رحمه الله انکار وکړه او یوه اشرفۍ یې هم ځیني قبوله نه کړه او وه یې فرمایل: ما ته ددې قطعا اجازه نسته. همداسي نوري ډیري پیښي نقل سوي دي چي د هغه څخه د نوموړي د صبر، توکل، استغناء، تقوا او پرهیزګارۍ اندازه لګیدلای سي.

د نوموړي زیږېدنه په کال (۱۶۴هـ) په بغداد کي وسول، او په کال (۲۴۱هـ) د جمعې په ورځ په بغداد کي وفات سو او په هغه ورځ د مازدیګر څخه وروسته خاورو ته وسپارل سو.

د نوموړي په تصنیفونو کي مشهور کتاب (مسند) دی چي د محدثینو په نزد یو ډیر ارزښتناک تصنیف دی چي په هغه کي نوموړي تر دیرش زره زیات حدیثونه نقل کړي دي.

# حضرت امام ترمذي رحمة الله عليه

د نوموړي کنيت ابوعيسى او نوم يې محمد بن عيسى بن سورة بن موسى بن ضحاک ترمذي دی ، د ترمذ ښار د نسبت په وجه د ترمذي په نامه سره مشهور دی، امام ترمذي رحمة الله عليه يو ډېر لوی محدث دی ، د نوموړي د جلالت علم او رفعت شان اندازه د حديثو مشهور او مستند کتاب ترمذي شريف څخه لګول کيدلای سي چي د نوموړي تصنيف دی، ترمذي شريف د محدثينو په نزد د حديثو يو ارزښتناکه او باعظمته کتاب دی او د لاندينيو ځانګړتيا په وجه د صحاح سته پر نورو کتابونو باندي فوقيت لري.

۱. لومړی خو دا چي نوموړي د حديثونو په نقل کولو سره د هغه د روايت کونکو نوم ضرور ليکي چي د هغوئ څخه هغه حديثونه هغه ته تر لاسه سوي دي چي د حديث حيثيت د مشهور ،متواتر او احاد په اعتبار روښانه سي.

۲. دوهم دا چي د حديث نقل کولو سره د هغه څخه په اخيستل سوې مسئله کي د علماؤ اختلاف

او د هغوئ مذهبونه هم نقل کوي..

۳. دريم دا چي پر هره موقع باندي د روايت کونکي احوال هم ليکلي چي دغه راوي ضعيف دی او دغه قوي دی ، همداسي د حديث حال هم بيانوي چي دغه حديث صحيح دی يا حسن دی يا غريب او يا منکر دی ، د روايت حديث په لړۍ کي د امام موصوف او نبي کريم ﷺ په مينځ کي چي کومي واسطي دي هغه کم تر کمه درې دي او زياتي لس دي، يو حديث داسي دی چي په هغه کي يوازي درې واسطې وي د کوم حديث د روايت کولو په وخت کي چي تر نبي کريم ﷺ پوري په مينځ کي درې واسطې وي هغه حديث ته ثلاثي وايي.

کومو محدثينو چي د نوموړي حديثونه روايت کړي دي په هغوئ کي قتيبه بن سعيد. محمود بن غيلان، محمد بن بشار، احمد بن منيع او محمد بن مثنی په خاصه توګه د يادوني وړ دي، د دوئ څخه پرته نور علماء او محدثين هم دي چي د هغوئ څخه نوموړي حديثونه نقل کړي دي.

د نوموړي د شاګردانو شمير زيات دی چي په هغوئ کي محمد بن احمد او حثيم بن کليب په خاصه توګه مشهور دي، نوموړي د خپل جامع ترمذي شريف د تصنيف فرمايلو سره د حجاز، عراق او خراسان علماؤ په خدمت کي وليږی او هلته د وقعت ، احترام او خوبنی په نظر سره

ورته وکتل سول . د نوموړي يو تصنيف شمائل نبوي هم دی چې په هغه کې د نبي کريم ﷺ سيرت مقدس او حليه مبارکې بيان سوی دی د نوموړي زيږېدنه په کال (۲۰۹هـ) کې وسوه او په کال (۲۷۹هـ) کې وفات سو .

## حضرت امام ابوداؤد سجستاني رحمة الله عليه

د نوموړي کنيت ابوداؤد او نوم مبارک يې سليمان بن اشعث بن اسحاق بن بشير دی، نوموړي د سجستان د سيمي او سيدونکی دی ځکه د هغه په لور يې نسبت کيږي .
نوموړي د علم او حديثو د ترلاسه کولو په شوق کې د هيواد څخه په وتلو سره د ډېرو هيوادونو سفر وکړ، عراق، خراسان، شام، مصر او د حجاز د علماؤو او محدثينو په خدمت کې حاضر سو، د هغوئ څخه يې د روايت اجازه واخيستل، نوموړي د ډېرو جليل القدر علماؤو او محدثينو څخه حديثونه روايت کړي دي لکه مسلم بن ابراهيم سليمان بن حرب يحيى بن معين او امام احمد بن حنبل، د نوموړي څخه په روايت کونکو حضراتو کې ابوعبدالرحمن نسائي او د احمد بن محمد نوم په خاصه توګه ياديږي .
د امام ابوداؤد اصلي وطن بصره ده، وروسته يې بغداد ته تشريف يووړ او هلته يې خپل عظيم کتاب (سنن ابوداؤد) تصنف کړ، د هغه ځای خلګو چې سنن ابوداؤد امام احمد بن حنبل رحمة الله عليه ته واوروئ نو هغه زيات خوښ کړ ، خپله امام ابوداؤد رحمة الله عليه فرمائي چې د پيغمبر ﷺ پنځه لکه حديثونه ما د علماؤو او محدثينو څخه نقل کړي دي په هغو کې يې يو زر شپږ سوه (۱۶۰۰) سوه حديثونه د خپل صحت د اعتبار په وجه په خپل کتاب کې جمع کړل، او په هغه کې هم څلور حديثونه داسې دي چې د ټولو حديثونو برابر دي يعني د دين او شريعت ټولې خبري او حکمتونه په مجمله توګه په د غه څلورو حديثونو کې راغلې دي :

۱. انما الاعمال بالنيات .
۲. من حسن اسلام المرء ترکه ما لا يعنيه .
۳. لايکون المؤمن مؤمنا حتى رضي لاخيه ما يرضى لنفسه.
۴. ان الحلال بين وان الحرام بين وبينهما مشتبهات .

د ابوبکر خلال رحمة الله عليه شاهدي د نوموړي په اړه دا وه چې امام ابوداؤد رحمة الله عليه په خپل زمانه کې پيشوا وو او ډېر منصف مزاج او پرهيزګار وو، او د حديثو په فن کې ډېر زيات بصيرت او کمال مهارت درلودی او د حديثو په فن کې د دغه کتاب ډېر جليل القدر مرتبه لري تر دې چې د

بخاري او مسلم څخه وروسته داسي هيڅ يو کتاب نه دی ليکل سوی .
د امام ابوداؤد رحمة الله عليه زيږېدنه په کال (۲۰۲هـ) کي سوې ده او په ۱۶ شوال ۲۷۵هـ کال کي وفات سوی دی .

## حضرت امام نسائي رحمة الله عليه

د نوموړي کنيت ابوعبدالرحمن او نوم يې احمد بن شعيب بن علي بن بحرين سنان دی، نوموړی د خراسان د يو ښار نساء اوسيدونکی وو ځکه په نسائي نامه سره مشهور دی. د نوموړي زيږېدنه په کال (۲۱۴هـ) او يا (۲۱۵هـ) کي سوې ده . ده هم د علم د ترلاسه کولو لپاره د ډيرو هيوادونو سفر وکړ او د خپل وخت د مشهورو او جليل القدر علماء کرامو او محدثينو په خدمت کي په حاضرېدو سره د علم حديث په دولت شتمن سو، په دې اړه دوئ خراسان، حجاز، جزيره شام او مصر ته ولاړل او د هغه ځای د علماؤ څخه يې علم ترلاسه کړ .

تر ټولو مخکي کله چي نوموړی د حديثو د علم لپاره د قتيبه بن سعيد په خدمت کي حاضر سو نو هغه وخت دده عمر پنځلس کاله وو، د قتيبه بن سعيد سره تر يو کال او دوو مياشتو پاته کېدو سره يې د هغوئ څخه فيض ترلاس کړ ، امام نسائي شافعي المذهب وو لکه څرنګه چي دده د تصنيف مناسک الحج څخه معلوميږي .

نوموړي به هميشه صوم داؤدي نيول (يعني يوه ورځ روژه نيول او بله ورځ خوړل). د روژو نيولو سربيره بيا هم نوموړی د ډير قوت خاوند وو، څلور ښځي دده په نکاح کي وې او د هري بي بي سره به يوه شپه پاته کېدی د هغوئ څخه پرته مينځي يې هم درلودې .

کله چي امام نسائي رحمة الله عليه د خپل تصنيف سنن کبری څخه فارغ سو نو يوه ورځ د دده څخه يو امير پوښتنه وکړه چي تاسو دغه کتاب ليکلی دی او په دې کي ټول حديثونه صحيح دي ، نوموړي جواب ورکړ : نه، بلکه ځيني صحيح دي او ځيني حسن، هغه امير غوښتنه ورڅخه وکړه چي په دغه ټولو حديثونو کي چي کوم حديثونه په اعلی درجې صحيح دي تاسو هغه زما لپاره بيل نقل کړئ، نو نوموړي په دې اړه سنن مجتبی تصنيف کړ .

نوموړی په ډير مظلومانه او دردمنه طريقه سره وفات سو، ويل کيږي چي د ده په زمانه کي د بني اميه پاچاهي وه کوم چي د حضرت علي رضي الله عنه خلاف وه، نوموړي يو کتاب تصنيف کړ چي په هغه کي د حضرت علي رضي الله عنه اوصاف، مناقب او د هغه مبارک احوال بيان سوي وه، د کتاب د تصنيف د فراغت څخه وروسته دوئ د جمعې په ورځ په جامع دمشق کي د خلکو په وړاندي

ددغه کتاب لوستلو اراده وکړه چي په دې سره د عامو خلکو فکر او ذهن اصلاح سي، او د حضرت علي رضی الله عنه په اړه چي کوم غلط او ګمراه کونکي خيالونه د خلکو په ذهن کي د سلطنت بني اميه په وجه پيدا سوي وه هغه ليري کړل سي.

يوه ورځ په مسجد کي د خلکو په وړاندي نوموړي هغه کتاب لوستل پيل کړل. لږ کتاب يې ويلی وو چي د خلکو څخه يو سړی را ولاړ سو او پوښتنه يې وکړه چي تاسو خو د حضرت علي رضی الله عنه اوصاف او مناقب په دغه کتاب کي وليکل مګر دا راته ووايه چي د حضرت معاويه رضی الله عنه مناقب دي هم ليکلي دي که يا؟

امام نسائي رحمة الله عليه ورته وويل چي زه د امام معاويه رضی الله عنه عظمت او فضيلت هم تسليموم او د هغوئ د نجات څخه انکار نسته مګر د هغه مناقب د حضرت علي رضی الله عنه په مقابله کي د ومره اهميت نه لري چي زه هغه وليکم، ځيني حضراتو د امام نسائي رحمة الله عليه جواب داسي هم نقل کړی دی چي نوموړي وفرمايل: د حضرت معاويه رضی الله عنه مناقب او فضائل زما په نزد صحيح نه دي، د امام نسائي رحمة الله عليه په دغه جواب سره ټول خلک په غصه سول پر امام صاحب يې حمله وکړه او دومره يې ووهی چي د ولاړېدو توان پکښي پاته نه سو او بيا دده خادمانو په پورته کولو سره تر ځايه پوري بوتلی، خپل ځای ته په را رسېدو سره ده وويل چي ما مکې معظمې ته ورسوی چي زما مرګ په هغه مبارک ځای او يا د هغه په لاره کي راسي، نوموړی مکې مکرمې ته ورسول سو او هلته په ۱۳ صفر ۳۳۰ ه کال کي د دوشنبې په ورځ د شهادت په مرتبه سره وفات سو او د صفا او مروه په مينځ کي خاورو ته وسپارل سو. رحمة الله عليه

## حضرت امام ابن ماجه رحمة الله عليه

د نوموړي کنيت ابوعبدالله او نوم يې محمد بن يزيد بن ماجه دی، د قزوين اوسيدونکی دی چي د عراق او فارس په مينځ کي يو ښار دی. او د ربيعي قبيلې څخه وو کومه ربيعه چي د بالولا په طرف منسوب کيږي، د حديثو د فن مقتدا او امام منل کيږي او د حديثو حافظ ورته ويل کيږي، د امام مالک رحمة الله عليه د شاګردانو څخه يې د حديثو علم تر لاسه کړ او په دې اړه يې د ډيرو هيوادونو سفر وکړ.

د نوموړي د قدر وړ تصنيف (ابن ماجه) چي د نصاب حديث يو مهم کتاب منل کيږي، ابن ماجه شريف هم ځيني محدثينو او علماؤو د صحاح ستة څخه شميرلې دي په دغه کتاب کي د نوموړي څخه ثلاثي حديث هم په ډير شمير کي منقول دي، په ابن ماجه کي يو حديث منکر

بلکه موضوع نقل سوی دی ځکه نو ځيني حضرات يې په صحاح ستة کي نه شميري.
د نوموړي د وطن قزوين د فضيلت په اړه خلکو ډير زيات حديثونه نقل کړي دي مګر د محققينو محدثينو په نزد هغه ټول موضوع دي .
د نوموړي زيږېدنه په کال (۲۰۹ هـ) کي سوې ده او په ۲۷ رمضان المبارک په کال (۲۷۳هـ) کي د دوشنبې په ورځ وفات سوی دی . والله تعالی اعلم .

## حضرت امام دارمي رحمة الله عليه

د نوموړي کنيت ابو محمد او نوم مبارک يې عبدالله بن عبدالرحمن بن فضل سمرقندي الدارمي دی، د سمرقندي نسبت د سمرقند ښار په لور دی چيري چي د نوموړي اوسيدل وه او د دارمي قبيلې سره يې نسبت درلودی .
نوموړی يو جليل القدر محدث او عالم وو ، د تقوا، تقدس او زهد و قناعت په صفتونو سره مزين وو ، د ده تصنيف هم د احاديثو په کتابونو کي يو لوړ مقام لري .
د نوموړي په استاذانو کي ابن ماجه ، حبان بن هلال ، نضربن شميل او حيات بن شريع دي.
دنوموړي د شاګردانو شمير زيات دی چي په هغو کي امام مسلم ، امام ترمذي جليل القدر محدثين هم دي . د نوموړي زيږېدنه په کال (۱۸۱هـ) کي سوې ده او وفات يې په کال (۲۵۵هـ) کي سوی دی .
د اسحاق بن احمد بن خليفه څخه روايت دی چي زه د حضرت امام بخاري رحمة الله عليه په مجلس کي ناست وم چي د حضرت عبدالله بن عبدالرحمن الدارمي رحمة الله عليه د وفات خبر راورسيدی نو امام بخاري رحمة الله عليه د غم څخه سر کښته کړ او اناالله وانا اليه راجعون يې وويل، پر امام بخاري رحمة الله عليه باندي دومره اثر وسو چي د هغه د سترګو څخه اوښکي وبهېدلې .

## حضرت امام دار قطني رحمة الله عليه

د نوموړي کنيت ابوالحسن او نوم يې علي بن عمر دار قطني دی، په علم حديث کي جليل القدر شخصيت او صاحب د فضل او کمال شميرل کېدی. په ځانګړتيا سره د حديث علت او د راويانو د احوال معرفت کي بې مثاله وو، د نوموړي مشهور تصنيف (دار قطني) دی چي د حديثو په فن کي يو معتبر او مستند کتاب منل کيږي ، د نوموړي ځانګړتيا داده چي په خپل تصنيف کي يو حديث په څو څو سندونو سره بيانوي .
دوئ هم د علم تر لاسه کولو په لړه کي يې د ليري ليري هيوادونو سفر غوره کړ ، کوفه،

بصره، شام، واسط، مصر او د اسلامي نړۍ نورو ښارونو ته یې هم تشریف وړی دی او د هغه ځایونو د مشهورو علماء کرامو څخه یې احادیث تر لاسه کړي دي . دارقطني د بغداد د یو سیمي نوم دی چې نوموړی د هغه اوسیدونکی وو ځکه نو په دار قطني سره مشهور دی. په عربي ژبه کې قطني پمبه ته وايي ، دغه سیمه د پمبوو منډۍ وه ځکه نو په دار قطني سره بلل کیږي .

د نوموړي په شاګردانو کې ابونعیم، ابوبکر برقاني، جوهري، قاضي ابو اللطیف طبري، حاکم ابوعبدالله نیشاپوري او داسي نور مشهور عالمان دي .

د نوموړي زیږېدنه په بغداد کې په کال (۳۰۵هـ) یا (۳۰۶هـ) کې سوې ده او ځیني حضراتو د وفات نېټه ۸ ذي قعده د پنجشنبې ورځ ښوولې ده . والله تعالی اعلم .

## حضرت امام احمد بن حسین بیهقي رحمة الله علیه

د نوموړي کنیت ابوبکر او نوم یې احمد بن حسین بیهقي دی، نوموړی د علماء او محدثینو په نزد د یو امام او پیشوا حیثیت لري د دوئ علمي مرتبه او فضل و کمال د علم د خاوندانو په نظر منل سوی دی . .

د نوموړي د تصنیفو شمیر زرګونو ته رسیږي ، د ځینو روایاتو څخه معلومیږي چې نوموړي اووه زره (۷۰۰۰) رسالې د شریعت پر مختلفو اړخونو باندي لیکلي دي چې د هغو څخه د نوموړي علمي وسعت ، تبحر فن او د فضل او کمال اندازه کیږي، د نوموړي په مشهورو تصنیفو کې خاص کتابونه دادي : کتاب مبسوط، کتاب السنن، کتاب دلائل النبوة، کتاب معرفت علوم حدیث، کتاب بعث والنشور، کتاب آداب، کتاب فضائل صحابه، کتاب فضائل اوقات، کتاب شعب الایمان، کتاب اخلاقیات او داسي نور .

د نوموړي زیږېدنه د شعبان په میاشت په کال (۳۸۴هـ) کې سوې ده او وفات یې په کال (۴۵۶هـ) په نیشاپور کې سوی دی .

## حضرت امام رزین معاویه رحمة الله علیه

د نوموړي کنیت ابوالحسین او نوم یې رزین بن معاویه العبدري دی، د قریشو مشهوره قبیله عبدالدار وه، رزین د همدغه قبیلې څخه وو ځکه ددې په لور د نسبت په وجه عبدري بلل کیږي . نوموړی یو جلیل القدر محدث او صاحب د فضل او کمال وو ،نوموړی په کال (۵۳۰هـ) کې وفات سوی دی .

## حضرت امام نووي رحمة الله عليه

د نوموړي کنيت ابوزکريا او نوم يې يحيى بن اشرف حزامي دی ، لقب يې محي الدين دی.
حزام د نوموړي د نيکونو څخه د يوه نوم وو په دې نسبت سره د دوئ کورنۍ سره نوموړی
اوسيدی نو په په دې نسبت سره ورته نووي ويل کيږي.
نوموړی په خپل هيواد (نوو) کي د محرم په لومړۍ لسيزه په کال (۶۳۱هـ) کي پيدا سو او په
۱۴ رجب ۶۷۷ هـ کي د چارشنبې په ورځ وفات سو.

## حضرت امام ابن جوزي رحمة الله عليه

د نوموړي کنيت ابوالفرح او نوم يې عبدالرحمن بن علي بغدادي حنبلي صديقي دی. او
په ابن جوزي نامه سره مشهور دی چي يو مقام د فرضة الجوز طرف ته منسوب دی.
نوموړی يو جليل القدر عالم، صاحب د فضل او کمال، فقيه او باکماله محدث وو. د
نوموړي پر فضل، کمال او وسعت علم باندي د علماؤو اتفاق دی، نوموړی د حديثو، تفسير،
فقه، سيرت، اخبار او مواعظ کي د بې شميره کتابونو مصنف دی، او په دغه ټولو علمونو کي د
خپل وخت امام منل سوی دی، د اهل علم په نزد د نوموړي فصاحت او بلاغت منل سوی دی.
نوموړی پر موضوعات حديث باندي يو کتاب ليکلی دی چي په هغه کي يې موضوع
احاديث را جمع کړي دي، همداسي د نوموړي يو تصنيف (تلبيس ابليس) دی چي په هغه کي پر
بدعت او د سنت خلاف اعمالو باندي بحث سوی دی او د هغو رد کړل سوی دی، په دغه کتاب
کي د اقوام شيطاني په زړه پوري بيان هم دی او د صوفياء، منکرينو، مبتدعينو او ضالينو رد
کړل سوی دی.

امام ابن جوزي رحمة الله عليه ډير ذکي او ذهين وو، د ذهانت او ذکاوت څخه يې د سيرت او
تاريخ کتابونه ډک دي، د نوموړي د ذهانت يوه واقعه د سيرت په کتابونو کي منقول ده چي يوه
ورځ د يو سُني او شيعه په مينځ کي جګړه سوه، د سني دعوه وه چي حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه
زيات افضل دی او شيعه د حضرت علي رضي الله عنه تفضيل ثابتوی، دغه معاملې د مباحثې او اختلاف
څخه د دښمنۍ شکل غوره کړ، په پای کي دواړه دې ته تيار سول چي ابن جوزي خپل حکم
(فيصله کونکی) جوړ کړي، هغه چي څه فيصله وکړي نو هغه به منل کيږي، يوه ورځ چي ابن
جوزي رحمة الله عليه پر منبر باندي وعظ او نصيحت فرمايه، په مينځ کي د دواړو څخه يو سړی ولاړ
سو او د ابن جوزي رحمة الله عليه څخه يې پوښتنه وکړه چي (من افضل الصحابة؟) يعني په صحابه

کرامو کي څوک زیات د فضیلت خاوند دی؟

د ابن جوزي رحمه الله معامله شناس ذهن د سوال په نزاکت پوه سو ، هغه وخت حکومت د شیعه ګانو وو، ابن جوزي په داسي انداز سره جواب ورکړ چي نه د سني خلاف وو چي د حق مخالفت لازم سي او نه شیعه دا وګڼي چي جواب زما خلاف دی او د هغه په نتیجه کي ضرر رسول یا د فتنې او فساد نوبت راسي ، ابن جوزي رحمه الله په ډیر حکمیانه او مدبرانه جواب کي وفرمایل چي :

(افضل صحابه رسول الله الذي بنته في بیته) ، یعني د رسول الله ﷺ په صحابه کرامو کي زیات فضیلت والا هغه څوک دی چي د هغه لور د هغه په کور کي وه .

امام جوزي رحمه الله یوازي په دغه الفاظو ویلو سره سمدستي ولاړی چي ددې جملې د تشریح کول ونه غوښتل سي. هره ډله پر خپل ځای خوشحاله او مطمئنه سوه چي فیصله زما د عقیدې سره سم وسوه ، یعني سني دا وګڼل چي ددې جملې مطلب دادی چي زیات افضل هغه څوک دی چي د هغه لور د نبي کریم ﷺ په کور کي وه او د حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه لور بي بي عائشة رضي الله عنها د نبي کریم ﷺ په کور کي وه ځکه نو حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه افضل سو، او شیعه ددې جملې څخه دغه مطلب واخیستی چي زیات افضل هغه څوک دی چي د هغه په کور د نبي کریم ﷺ لور وه، او د رسول الله ﷺ مبارکه لور بي بي فاطمة رضي الله عنها د حضرت علي رضي الله عنه په نکاح کي وه ځکه نو حضرت علي رضي الله عنه زیات افضل سو .

په هر حال دا د حضرت ابن جوزي رحمه الله ذکي ذهن دی په جمله کي د ضمیرو څخه په کار اخیستلو سره یې بلیغانه جواب ورکړ چي د هغه څخه فتنه او فساد پیدا کېدو والا بحث په ښه نتیجه باندي ختم سو او د خطرناکو نیتجو ته رسیدونکی دا شر هم هلته دفع سو .

د نوموړي زیږیدنه په کال (۵۱۷هـ) کي سوې ده او وفات یې په (۵۹۷هـ) کي وسو .

## حضرت امام اعظم ابو حنیفة رحمه الله

د نوموړي نوم نعمان دی، ابو حنیفة یې کنیت دی او امام اعظم یې لقب دی، د پلار محترم نوم یې ثابت او د نیکه نوم یې زوطي دی .

زوطي د فارس (ایران) اوسیدونکی وو او مذهبًا فارسي وو، د اسلام رڼا چي د عربو د حدودو څخه عجمو ته ورسیدل او د هغه شغلو د فارس مځکه منوره کړل نو د ډیرو فارسیانو سره زوطي هم اسلام قبول کړ، د اسلام راوړلو څخه وروسته کله چي د کورنۍ ځینو کسانو

پرېشان کړ او پر دين باندي د عمل کولو په لاره کي يې بنديزونه ورته پيدا کړل نو زوطي هم د هجرت په نيت سره هيواد پرېښودی ، د خپل بي بي او يو څه نقدي سرمايې سره د مکې معظمې په لور روان سو ، دا د حضرت علي ﷺ د خلافت زمانه وه او د کوفې ښار د ارالخلافت په حيثيت سره د اسلام د عظمت او جلالت ځای جوړ سوی وو .

زوطي د خپل سفر په دوران کي کوفې ته ورسيدی او د مکې معظمې د ارادې موقوف کولو سره يې دلته هستوګنه غوره کړه ، او د ګزارې کولو لپاره يې د ټوکرانو تجارت پيل کړ ، په کال (۴۰هـ) کي د زوطي په کور کي يو ماشوم پيدا سو چي د هغه نوم يې ثابت کښېښودی ، د ثابت په وړکتوب کي زوطي وفات سو ، او بيا د ثابت په کور کي يو ماشوم پيدا سو چي مور او پلار د هغه نوم نعمان کښېښودی ، وروسته د غه ماشوم د ابو حنيفه کنيت پيدا کړ ، په دغه وخت کي د رسول الله ﷺ د تشريف وړلو تقريبا اويا کاله تير سوي وه ، که څه هم ډېرو صحابه کرامو د دنيا څخه د سفر سامان تړلی وو مګر درې صحابه کرام : حضرت انس بن مالک ﷺ خادم رسول الله ﷺ ، حضرت سهل بن سعد انصاري ﷺ ، او حضرت ابو طفيل عامر واثله ﷺ په دنيا کي ژوندي وه ، حضرت امام اعظم رحمه الله په دوئ کي د دوو صحابه کرامو حضرت انس ﷺ او حضرت ابو طفيل عامر ﷺ سره ملاقات وکړ او د هغوئ د صحبت شرف تر لاسه کولو سره د تابعيت په مرتبه مشرف سو چي په څلورو امامانو کي يوازې د امام اعظم رحمه الله امتياز دی .

امام اعظم رحمه الله ابتدائي تعليم په خپل کور کي تر لاسه کړ ، کله چي هوښيار سو نو پلار محترم د تجارت په کار کي ولېږی ، تر دا مهاله د امام اعظم رحمه الله عمر شپاړس کاله وو چي پلار محترم يې وفات سو ، د ټول تجارتي کاروبار ذمه داري د نوموړي پر اوږو راغلل ، د طبيعت څخه ډېر ذهين او محنتي وو ، ځکه نو ډېر ژر يې په کاروبار کي پرمختګ وکړ ، د دوکان سره د ټوکرانو يوه کارخانه يې هم جوړه کړه او ژوند يې په ډېر آرام او راحت سره تېريدی ، د شلو کالو عمر څخه وروسته د علم تر لاسه کولو شوق يې را پورته سو ، کله چي په يو کار پسي تلی نو په لاره کي د کوفې د يو مشهور عالم او قاضي علامه شعبي سره يې ملاقات وسو . علامه صاحب پوښتنه ځيني وکړه چي زويه تا د چا څخه سبق ويلی دی ؟ ابو حنيفه رحمه الله په افسوس سره جواب ورکړ چي زه د چا څخه سبق نه وايم ، علامه شعبي د ميني په انداز کي ورته وويل زه په تا کي د قابليت جوهر وينم ، ته د علماؤو په صحبت کي کښينه ، دغه نصيحت د امام ابو حنيفه رحمه الله په زړه کي ډېر اثر وکړ ، کور ته راغلی او مور بي بي ته يې ټول حال بيان کړ ، او

د علم تر لاسه کولو لپاره یې مدرسې ته د تللو اجازه وغوښتل، مور بي بي یې د مخکې څخه د علم او اهل علم قدردانه وه ، د دې اورېدو سره ډېره خوشحاله سوه او اجازه یې ورکړه، امام صاحب ابتدائي تعلیم په خپل کور کي تر لاسه کړی وو، د حدیث او فقه تر لاسه کولو لپاره د خپل استاذ په لټه کي سو او د کوفې تر ټولو مشهور عالم او استاذ حضرت حماد په شاګردۍ کي داخل سو، قابل استاذ د لائق شاګرد فطري جوهر پېژندو سره خاصه پاملرنه او توجه ورته وکړه، او امام ابو حنیفه رحمه الله پوره دوه کاله د حضرت حماد رحمه الله په درس کي شاملېدو سره د فقهي پوره تعلیم تر لاسه کړ،

په دغه لنډه زمانه کي امام صاحب د غیر معمولي ذهانت طبع په وجه نه یوازي دا چي په فقه کي پوره علم تر لاسه کړ بلکه د خپل اجتهادي قابلیت مظاهره یې هم کول، د فقهي د تعلیم سره د حدیثو ویلو لړۍ یې هم پیل کړې وه ځکه چي امام صاحب ښه پوهیدی چي د مسائل فقه مجتهدانه تحقیق د حدیث د تکمیل څخه پرته نا ممکن دی نو د کوفې د محدثینو په لور متوجه سو او د علم نبوت د دغه عظیم مرکز هیڅوک داسي محدث پاته نه وو چي د هغه شاګردي یې نه وي کړې ، په محدثین کوفه کي په خاصه توګه سره امام شعبي رحمه الله ، سلمه بن کهیل، محارب بن وثار، ابواسحاق سبعي، عون بن عبدالله، سماک بن حرب ، ابراهیم ابن محمد ، عدي بن ثابت او موسی بن ابي عائشة رحمة الله تعالی علیهم اجمعین ډېر مشهور دي. د دوئ څخه امام صاحب د حدیثو علم تر لاسه کړ ، د کوفې څخه وروسته یې بصرې ته تشریف یوور، هلته یې د مشهور امام حدیث او تابعي حضرت قتاده او اَمیرالمؤمنین في الحدیث حضرت شعبه رحمه الله په درس کي د شاملیدو سره د هغوئ د فیض صحبت څخه ډېره لویه ګټه پورته کړه، د بصرې په محدثینو کي د دغه دواړو حضراتو څخه پرته د امام صاحب په استاذانو کي د عبدالکریم بن امیه او عاصم بن سلیمان نومونه هم یادیږي.

د کوفې او بصرې څخه د فارغه کېدو سره امام ابو حنیفه رحمه الله د حرمین شریفین لپاره د سفر سامان وتړی، په دغه وخت کي د نوموړي عمر تقریبا (۲۴) کاله وو، مخکي مکې معظمې ته ورسیدی او د حضرت عطاء بن ابي رباح رحمه الله په درس کي شریک سو، دغه حلقه درس ډېره وسیع او مشهوره وه او په خاص عظمت او شهرت سره د اعتبار وړ وه، ځکه چي حضرت عطاء رحمه الله ته د دوو سوو صحابه کرامو د خدمت او صحبت شرف تر لاسه وو چي د هغوئ فیض په درجه اجتهاد فائز کړی وو، امام ابو حنیفه رحمه الله د حضرت عطاء رحمه الله څخه پرته په مکه

معظمه کي د نورو محدثينو څخه هم د حديثو سند تر لاسه کړ، چي په هغوئ کي د حضرت عکرمة رحمه الله نوم ډير ځلانده دی، په مکې معظمې کي د فارغ کېدو څخه وروسته د مدينې منورې په لور روان سو او د رسول الله ﷺ د روضې مبارکي په شرف برخمن کېدو سره د مدينې منورې د علماؤو او شيوخو په خدمت کي حاضر سو، په خاصه توګه د حضرت امام باقر رحمه الله او د هغه زوی حضرت امام جعفر صادق رحمه الله د درس او مجلس څخه يې زيات علم او فيض تر لاسه کړ او د حضرت سالم بن عبدالله او حضرت سليمان رحمه الله څخه يې د روايت حديث شرف تر لاسه کړ، په حديثو کي د حضرت امام ابوحنيفه رحمه الله د استاذانو او شيوخو فهرست ډير اوږد دی او ځيني حضراتو تر څلور زرو پوري بيان کړی دی.

په ځينو خلکو کي دا خبره هم مشهوره ده چي د امام ابوحنيفه رحمه الله د حديثو په فن کي هيڅ يو تصنيف نسته او له دې وجه هغه اهل الرايه وو ددې مطلب دادی چي د حديث سره يې څه تعلق نه وو، نو حقيقت دادی چي دا شهرت بې بنياده دی او دا پر غلطۍ باندي مبني دی. في الواقع امام ابوحنيفه رحمه الله ته چي په علم حديث کي کومه مرتبه تر لاسه وه د هغه اندازه ددې څخه کيدلای سي چي په کوم کثرت سره د هغه مسندونه ليکل سوي دي دومره د هيچا څخه نه دي ليکل سوي دي او هغه د وخت امامانو او دحديثو حافظانو ليکلي دي چي خپله ددې قابل وه چي د هغوئ مسندونه ليکل سوي وای، په دغه ځانګړتيا کي که يو څوک د امام ابوحنيفه رحمه الله هم مثله کيدلای سي نو هغه يوازي امام مالک رحمه الله دی، دا ټول مسندونه د کتاب الاثار څخه علاوه دي چي په علم حديث کي د امام اعظم رحمه الله ډير مشهور او د لوړي مرتبې تصنيف دی، ددې څخه پرته دا خبره ټولو تسليم کړې ده چي مجتهد هغه سړی کيدلای سي چي قرآن کريم، حديث، آثار، تاريخ لغت او قياس، پر دغه پنځو شيانو باندي پوره غبور ولري، ځرګنده ده چي د امام اعظم رحمه الله مجتهد مطلق کېدل يو داسي حقيقت دی چي په هغه کي د امت اجماع ده، په داسي صورت کي پر هغوئ د قلت حديث طعن لګول د ناپوهۍ څخه پرته بل هيڅ نسي کيدلای.

حافظ ذهبي د امام اعظم رحمه الله د درس د ملګري مسعر بن کرام قول نقل کړی دی چي ما او امام ابوحنيفه رحمه الله يو ځای د حديثو علم تر لاسه کړ مګر هغه پر ما غالب سو او په زهد کي پر ما فائز سو.

امام جرح وتعديل حضرت يحيی بن سعيد قطان رحمه الله فرمائي قســــم په خدای امام

ابو حنيفه رحمة الله عليه په دغه امت کي د هغه امت تر ټولو لوی عالم دی چي الله او د هغه رسول څخه وارد سوی دی ، مکي بن ابراهيم رحمة الله عليه امام ابو حنيفه رحمة الله عليه اَعلَمِ اهل زمانه ښودلی دی . ابو المحاسن شافعي رحمة الله عليه د خپل کتاب په يو باب کي د امام صاحب د لوړ حيثيت په ښه ډول اندازه کيدلای سي .

حضرت امام صاحب په (۱۴۲هـ) کال کي بغداد ته تشريف يووړ او دريم عباسي خليفه منصور د امام صاحب په خدمت کي د قضا دنده وړاندي کړه ، په پيل کي امام صاحب ددغه دندي قبلولو څخه انکار وکړ مګر د منصور د لوړي د زيات جبر کېدو په وجه امام صاحب دغه جليل القدر دنده قبوله کړه او بيا په لومړۍ ورځ د دازالقضاء څخه په ولاړېدو سره منصور ته راغلی او هغه ته يې صاف صاف وويل چي زه دا کار نسم کولای ، پر منصور دغه خبره ډيره ګرانه پريوتل او هغه وخت يې بنديخانې ته وليږی ، پر له پسې څلور کاله امام صاحب په بنديخانې کي وو ، ددغه بند په دوران کي منصور په کال (۱۵۰هـ) کي امام صاحب ته زهر ورکړل ، کله چي امام صاحب د زهرو اثر محسوس کړ نو سمدستي پر سجده پريوتی او په همدې حالت کي وفات سو ، د نوموړي د وفات نيټه ۱۵ رجب ۱۵۰هـ ده ، اوْ مزار مبارک يې نن هم د بغداد په ښار کي د خلکو د ورتلو ځای دی .

# د حديثو اصطلاحات او د هغو تعريفونه

## د حديثو تعريف

تر ټولو وړاندې په دې پوهېدل پکار دي چې د حديث تعريف څه شی دی؟ يعني د علماؤ په نزد حديث څه ته وائي ؟

د علماؤ او محدثينو په اصطلاح کې د نبي کريم ﷺ قول، فعل، سيرت، احوال او تقرير ته حديث وايي. د قول او فعل معنا خو څرګنده ده يعني د نبي کريم ﷺ ارشادات او د هغه ﷺ افعال مقدسه. سيرت: يعني د نبي کريم ﷺ عادتونه او د هغه ﷺ د شکل او صورت تفاصيل. احوال: يعني د رسول الله ﷺ د ژوند حالات او واقعات.

تقرير دې ته وايي چې يو صحابي د رسول الله ﷺ په مخکې يو کار يا يو خبره وکړه نو نبي کريم ﷺ پر هغه سکوت (چپ والی) وفرمايه او نه يې د هغه توثيق وفرمايه همدې ته د محدثينو په اصطلاح کې تقرير ويل کيږي، د دغه ټولو شيانو ټولګي ته حديث ويل کيږي، او د حديث په ټولو کتابونو کې پر دغه شيانو باندې مشتمل روايتونه دي، د ځينو علماؤ او محدثينو په نزد د صحابه کرامو او تابعينو قول، فعل او تقرير ته هم حديث وايي.

**صحابي**: هغه بختور انسان ته صحابي وايي چې هغه د ايمان په حالت کې د نبي کريم ﷺ د ملاقات شرف حاصل کړی وي او د ايمان په حالت کې وفات سوی وي.

**تابعي**: هغه بختور انسان ته تابعي وايي چې هغه ته د ايمان په حالت کې د يو صحابي د ملاقات شرف تر لاسه سوی وي او پر ايمان باندې وفات سوی وي.

**تبع تابعي**: هغه حضراتو ته ويل کيږي چې هغوئ د ايمان په حالت کې د يو تابعي سره ملاقات سوی وي او پر ايمان باندې وفات سوی وي.

حديث د الفاظو په اعتبار پر دوو شيانو باندې مشتمل دي (۱) سند يا اسناد، (۲): متن.

**سند يا اسناد**: د متن حديث لړی، روات يعني د نبي کريم ﷺ څخه تر صاحب کتاب پوري د حديث روايت کونکو لړی ته سند يا اسناد وايي.

**متن**: د حديث هغه الفاظو ته وايي چې د نبي کريم ﷺ څخه تر اوسه پوري بجنسه نقل راغلي دي مثلا: (حَدَّثَنَا أَبُو الْيَمَانِ قَالَ أَخْبَرَنَا شُعَيْبٌ قَالَ حَدَّثَنَا أَبُو الزِّنَادِ عَنْ الْأَعْرَجِ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ فَوَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ لَا يُؤْمِنُ أَحَدُكُمْ حَتَّى أَكُونَ

أَحَبَّ إِلَيْهِ مِنْ وَالِدِهِ وَوَلَدِهِ ) .
په دغه حديث شريف کي د (حدثنا څخه تر ابي هريرة ) پوري اسناد دی، او ددې څخه وروسته ، تر ايه پوري متن دی .
د اسناد په لحاظ د حديث دري ډوله دي (۱): مرفوع (۲) موقوف (۳) مقطوع .
**مرفوع** : د کوم حديث د روايت لړۍ چي نبي کريم ﷺ ته رسيږي هغه حديث ته مرفوع وايي لکه چي وويل سي چي نبي کريم ﷺ ارشاد وفرمايه، نبي کريم ﷺ دا کار وکړ، يا نبي کريم ﷺ پر هغه قول او فعل باندي تقرير وفرمايه، يا سکوت يې وفرمايه، يا داسي وويل سي چي دغه حديث دنبي کريم ﷺ څخه مرفوعا ثابت دی، يا حضرت ابن عباس ﷺ دغه حديث رفع کړ، نو داسي حديث چي د هغه سند نبي کريم ﷺ باندي ختم سوی وي هغه ته حديث مرفوع ويل کيږي .
**موقوف** : د کوم حديث د روايت لړۍ چي يو صحابي ته په رسيد و سره ختميږي نو هغه حديث ته موقوف وايي، مثلا داسي ووايي چي ابن عباس ﷺ وفرمايل، يا ابن عباس ﷺ داسي وکړل . يا داسي وويل سي چي دغه حديث پر ابن عباس ﷺ باندي موقوف دی .
**مقطوع** : همدارنگه که د يو حديث سند تر تابعي پوري په رسيد و سره ختم سي نو هغه ته حديث مقطوع وايي، د ځينو حضراتو په نزد موقوف او مقطوع ته اثر هم وايي يعني د داسي حديث اطلاق خو به يوازي د نبي کريم ﷺ پر اقوال، افعال او تقرير کيږي او د صحابي او تابعي اقوال، افعال او تقرير ته به اثر ويل کيږي .
د روات په اعتبار د حديث پنځه ډوله دي :
(۱): متصل، (۲): منقطع، (۳): معضل، (۴): معلق، (۵): مرسل .
**حديث متصل** : هغه حديث ته وائي چي د هغه راويان د پيل څخه تر پايه پوري پوره وي او په مينځ کي يې يو راوي هم نه وي پاته سوی .
**حديث منقطع** : هغه حديث ته ويل کيږي چي د هغه د اسناد څخه يو يا ډير راويان د متفرق مقام څخه ساقط سوي وي .
**حديث معضل** : هغه حديث ته ويل کيږي چي د هغه د اسناد څخه دوه يا زيات روايت کونکي د يو مقام څخه د مصنف له طرفه يا بغير د مصنف له تصرفه پرېښود ی سوی وي.
**حديث معلق**: هغه حديث ته وايي چي د هغه د اول سند له طرفه د مصنف يو يا ډير روايت کونکي پرېښودل سوي وي .

**حدیث مرسل**: هغه حدیث ته ویل کیږي چي د هغه د آخر سند څخه د تابعي څخه یو څوک راوي ساقط وي لکه یو راوي چي د تابعي په روایت کولو سره ووایي: قال رسول الله صلی الله علیه وسلم..... الخ.

د مرتبې او درجې په لحاظ د حدیث درې ډوله دي:

۱. صحیح: چي د اعلی مرتبې حدیث وي.
۲. حسن چي د اوسط مرتبې حدیث وي.
۳. ضعیف چي د ادنا درجې حدیث وي.

**صحیح حدیث**: هغه حدیث دی چي د هغه ټول راویان د مصنف د کتاب څخه تر رسول الله ﷺ پوري ټول صاحب عدالت او صاحب ضبط او د حدیث د روایت پر وخت مسلمان، عاقل او بالغ وي. د صاحب عدالت مطلب دادی چي هغه صاحب د تقوا او تقدس وي دروغ نه وائي، د ګناه کبیره مرتکب نه وي که د بشریت پر تقاضا یو لویه ګناه ځیني وسي نو د هغې څخه توبه کاږي؛ د کوچني ګناهو څخه تر خپل وس پوري پرهیز کوي او پر هغو دوام نه کوي، د فسق او فجور د اسبابو څخه پرهیز کوي، صاحب مروت وي یعني داسي کار نه کوي چي په اسلامي ټولنه کي معیوب ګڼل کیږي مثلا په بازار کي لوڅ سر ګرځېدل، په لاره کي د خلکو په مخ کي تشي بولي کول، پر لاره تلو کي او یا په بازار کي په ولاړه سره خوراک او څښناک کول او داسي نور....

د صاحب ضبط: معنا داده چي ډیر هوښیار او پوه وي، قوي حافظه لري د حدیث الفاظ بجنسه یاد ساتلای سي او د روایت حدیث په وخت د هیڅ ډول هیري یا شک او شبهې ګنجائش ځیني نه وي.

د مصنف کتاب څخه تر رسول الله ﷺ پوري چي څومره راویان وي که دوئ پر دغه صفاتو او خصوصیاتو باندي پوره وي نو د هغوئ روایت سوی حدیث به صحیح بلل کیږي.

اوس که دغه ټول صفتونه په یو راوي کي پوره پوره تر لاسه سي نو د هغه روایت سوی حدیث ته به صحیح لذاته وایو مګر په راوي کي په دغه صفاتو کي څه کمي یا قصور وي او هغه کمي او قصور په کثرت طرق سره پوره کیږي نو هغه روایت سوی حدیث ته به صحیح لغیره وایو.

**حدیث حسن**: د کتاب د مصنف څخه تر رسول الله ﷺ پوري په دغه راویانو کي که یو راوي د پورتنیو صفاتو څخه څه کمي یا قصور وي او هغه په کثرت طرق سره هم نه پوره کیږي نو د هغه روایت سوی حدیث ته حدیث حسن ویل کیږي.

**حديث ضعيف** : د حديث صحيح او حديث حسن د پورتنيو شرطونو څخه که يو يا زيات شرطونه په راوي کي مفقود (نيستي) وي ، مثلا د حديث راوي صاحب عدالت نه وي . يا صاحب ضبط نه وي نو د هغه روايت سوی حديث ته به ضعيف ويل کيږي .

په دې حيثيت سره چي موږ ته رسيږي د حديث څلور ډوله دي :

(۱): متواتر ، (۲) مشهور ، (۳): عزيز (۴) : غريب .

**متواتر** هغه حديث دی چي د پيل څخه تر پايه پوري يو ډول د حديثو د کتابونو د شمېر د تعين څخه ماسوا دومره راويانو روايت کړی وي چي د هغوئ پر درواغو متفق کېدل يا د هغوئ څخه په اتفاق سره هم درواغ صادر کېدل عقلا محال (ګران) وي .

**مشهور** : هغه حديث غير متواتر چي د هغه راوي په هره طبقه کي کم تر کمه درې يا زيات وي . د ځينو محدثينو په نزد مشهور ته مستفيض هم وايي .

**عزيز** : هغه حديث دی چي د هغه راوي په هره طبقه کي کم تر کمه دوه خامخا وي .

**غريب** : هغه حديث دی چي د هغه په اسناد کي يو ځای يوازي يو راوي وي چي د هغه يو ملګری نه وي ،غريب ته (فرد) هم وائي .

د اختلاف په اعتبار د حديث څلور ډوله دي :

(۱): شاذ ، (۲): محفوظ ، (۳): منکر ، (۴): معروف .

**شاذ** : هغه حديث دی چي د هغه راوي خو ثقه (معتبر) وي مګر د يو داسي ثقه راوي د حديث خلاف وي چي په ضبط وغيره وجوه ترجيح کي زيات وي .

**محفوظ** : هغه حديث دی چي د هغه راوي اوثق وي مګر هغه د داسي راوي د حديث خلاف وي چي په ضبط وغيره وجوه ترجيح کي تر هغه کمتر وي .

**منکر** : هغه حديث دی چي د هغه راوي ضعيف وي او هغه د داسي راوي د حديث خلاف وي چي قوي راوي دی .

**معروف** : هغه حديث دی چي د هغه راوي قوي وي او هغه د داسي راوي د حديث خلاف وي چي ضعيف دی .

د حديثو د اصطلاحاتو دغه اجمالي پيژندنه ده. هسي خو د حديث اصطلاحات ډېر زيات دي چي د حديث مختلف قسم باندي مبني دي مګر د هغه ټولو دلته ذکر کول به د طوالت (اوږدوالي) باعث وي او بله دا چي يوازي پر دغه اصطلاحاتو باندي اکتفاء وکړل سي چي په

دغه کتاب د پوهیدلو او د حدیث حقیقت پیژندلو لپاره کافي وي، په نورو ټولو اصطلاحاتو پوهیدل د عوامو لپاره هم ډیر مشکل وي ځکه دلته د دغه اصطلاحاتو پر تعریف باندي اکتفاء وکړل سول.

# صـــحاح ســـتة

د حدیث د فن هغه شپږ کتابونه چي د نقل حدیث په اعتبار د لوړي درجې دي او د هغه نقل سوي حدیثونه د محدثینو د تحقیق په نظر تر ټولو اعلی او د صحیح مرتبې ثابت سوي دي هغه ته (صحاح ستة) ویل کیږي:

۱. بخاري شریف.
۲. مسلم شریف.
۳. ترمذي شریف.
۴. ابوداؤد شریف.
۵. نسائي شریف.
٦. ابن ماجه شریف.

یعني دغه شپږ سره د حدیثو کتابونه په صحاح سته کي شامل دي.

ځینو حضراتو د ابن ماجه شریف پر ځای مؤطا امام مالک په صحاح ستة کي شمیري، د بخاري او مسلم څخه پرته په نورو کتابونو کي صحیح، حسن او ضعیف درې سره حدیثونه وي چي د هغه تشریح او وضاحت هر یو صاحب کتاب پر خپل خپل ځای کړې ده.

# د مشکوة شريف مقدمة

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

اَلْحَمْدُللهِ نَحْمَدُهُ وَ نَسْتَعِيْنُهُ وَنَسْتَغْفِرُهُ

ټول تعريفونه الله تعالى ته بنائي موږ د هغه تعريف کوو او د هغه څخه مرسته او بخښنه غواړو .

**تشريح** : د الله ﷻ تعريف او د هغه توصيف لکه څرنګه چي د هغه د شان مناسب او وړ دی هيڅ بنده نه سي ادا کولای ځکه نو مصنف د الله تعالى څخه د مرستي غوښتونکی دی چي د هغه ژبي او بيان ته دومره طاقت او قوت ورکړي چي په هغه سره هغه د خپل پروردګار حقيقي تعريف او توصيف وکړلای سي که د بشريت په غوښتنه د هغه په تعريف او توصيف کي کوتاهي وسي چي د شان الوهيت خلاف وي نو د هغه څخه مصنف د بخښني او معافي غوښتونکی دی .

وَنَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ شُرُوْرِ اَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّئَاتِ اَعْمَالِنَا

او موږ د خپل نفس د بديو څخه او د خپلو بدو اعمالو څخه د الله تعالى پناه غواړو .

**تشريح** : يعني دا چي زموږ دغه حمد او تعريف چي يوازي د الله لپاره او د سعادت تر لاسه کولو لپاره دی داسي نه وي چي په دې کي د نفس شرارت سره د ريا دخل وسي . همداسي هغه خراب اعمال چي د بشريت په غوښتنه صادريږي لکه باطل کلام خرابي خبري د الله تعالى د ياد څخه غفلت ، په طاعت او عبادت کي سستي ، د حرام او مکروه کارونو کېدل ، نو دغه ټولو شيانو څخه موږ د الله تعالى پناه غواړو .

مَنْ يَّهْدِهِ اللهُ فَلاَ مُضِلَّ لَهُ وَمَنْ يُّضْلِلْهُ فَلاَ هَادِيَ لَهُ

چا ته چي الله تعالى سيده لار وښيي نو هغه بيا څوک ګمراه کولای نسي او الله تعالى چي يو څوک ګمراه کېدو ته پرېږدي نو هغه ته هيڅوک سيده لار ښودونکی نسته .

وَاَشْهَدُ اَنْ لاَّاِلٰهَ اِلاَّاللهُ شَهَادَةً تَكُوْنُ لِلنَّجَاةِ وَسِيْلَةً وَلِرَفْعِ الدَّرَجَاتِ كَفِيْلَةً وَاَشْهَدُ اَنْ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُوْلُهُ الَّذِيْ بَعَثَهُ وَطُرُقُ الْاِيْمَانِ قَدْ عَفَتْ آثَارُهَا وَخَبَتْ اَنْوَارُهَا وَهَنَتْ اَرْكَانُهَا وَجُهِلَ مَكَانُهَا

او زه شاهدي ادا کوم چي د الله ﷻ څخه پرته بل معبود نسته هغه شاهدي چي د نجات لپاره وسيله او د درجو د لوړتيا لپاره ضامن ده او زه شاهدي ورکوم چي محمد ﷺ د الله ﷻ بنده او د هغه رسول دی چي الله تعالى هغه وخت په خپل رسول جوړولو سره راوليږی چي د ايمان د لارو نښي خرابي سوي دي د هغې رڼاوي مړې سوي

وې د هغه آثار کمزوری سوي وه او د هغه ښودل سوی منزل د نظرونو څخه غائب سوی وو .

**تشریح** : د ایمان د لاري څخه مراد انبیاء کرام او د هغوئ پیروان یعني علماء او صلحاء دي . د هغه رڼاوي مړې کېدل او د هغه آثار کمزوري کېدل څخه مراد دادی چي د ایمان او دین رڼا خپرونکي هغه تعلیمات او هدایت چي انبیاء کرامو دې دنیا ته راوړي وه هیر کړي وه ، د هغه ریښتوني تعلیمات او هدایات حاصل علماء او صلحاء وجود له مینځه تللی وو ، که په شمیر یو څو عالمان او نیکان انسانان هم وه نو په ټولنه کي هغو ته ارزښت نه ورکول کیدی هغو چي به خلکو د نیکۍ او خیر نصیحت کوی او د ښو خبرو تعلیم به یې ورکوی نو د هغه اورېدو ته هیڅوک هم تیار نه وه ، همداسي د دین او دنیا څخه کرکه د ګناه او معصیت ډېر والی او د ظلم او جهالت تیاره د انسان پر پوره کائنات باندي داسي خپره سوې وه چي دنیاوي فلاح او سعادت او اخروي نجات هغه منزل د عام نظرونو څخه پناه سوی وو کوم چي د بني ادم د تخلیق مقصد او ددین او ایمان اصلي مقصد دی .

فَشَيَّدَ صَلَوَاتُ اللهِ وَسَلَامُهُ عَلَيْهِ مِنْ مَعَالِمِهَا مَا عَفٰى وَشَفٰى مِنَ الْعَلِيْلِ فِيْ تَاْيِيْدِ كَلِمَةِ التَّوْحِيْدِ مِنْ كَانَ على شفَا

نو نبي کریم ﷺ هغه نړېدلي نښې د نوي سره جوړي کړې او دکلمه توحید سره یې هغه ناروغو ته شفاء ورسول کوم چي د هلاکت غاړې ته رسیدلي وه .

**تشریح** : یعني ټول انسانیت د کفر او شرک، معصیت او بدو اعمالو په ګناه کي په اخته کېدو سره په روحاني توګه ناروغ سوي وه او نژدې وه چي د هلاکت کندې ته لویدلي وای چي نبي کریم ﷺ د ایمان او توحید د تعلیم په ذریعه هغه د پوره تباهۍ څخه وژغورل او د فلاح او نجات پر لاره یې ولیږل .

وَ اَوْضَحَ سُبُلَ الْهِدَايَةِ لِمَنْ اَرَادَ اَنْ يَّسْلُكَهَا وَاَظْهَرَ كُنُوْزَ السَّعَادَةِ لِمَنْ قَصَدَ اَنْ يَّمْلِكَهَا.

او د هغه سړي لپاره یې د هدایت لار څلانده کړه چي پر هغه د تلو اراده وکړي او د هغه لپاره د نیک بختۍ خزانې څرګندي کړي چي د هغه د مالک کېدو قصد وکړي.

**تشریح** : د نیک بختۍ د خزانې څخه مراد ایمان، نیک اعمال، عبادات او معارف دي چي د آخرت لپاره د خزانو درجه لري څوک چي دغه خزانه تر لاسه کړي نو هغه په دغه دولت سره مشرف کېږي او ددې په بدله کي دآخرت ابدي سعادت یعني د الله ﷻ رضا او د جنت حقدار کیږي .

اَمَّا بَعْدُ! فَاِنَّ التَّمَسُّكَ بِهَدْيِهٖ لاَ يَسْتَتِبُّ اِلاَّ بِالْاِقْتِفَاءِ لِمَا صَدَرَ مِنْ مِشْكٰوتِهٖ وَالْاِعْتِصَامَ بِحَبْلِ اللهِ لاَ يَتِمُّ بِبَيَانِ كَشْفِهٖ

د دې څخه وروسته، په تحقيق سره د نبي كريم ﷺ نمونه (هغه صحيح لار چي ده موږ ته ښودل ده) اختيارول هغه وخت معتبر كيدلاى سي چي د هغه شي پوره اتباع وكړل سي چي د رسول الله ﷺ د سينې مباركي څخه څرګند سوي وه، يعني د رسول الله ﷺ ارشـــادات او احكام، همداسي د الله ﷻ رسۍ يعني پر قرآن كريم باندي اعتماد او پر هغه عمل هلته ممكن كيدلاى سي چي د هغه شرح او وضاحت د احاديث نبوي څخه وي.

**تشريح**: د نبي كريم ﷺ سنت او د هغه پر لاره تلل تر هغه وخته پوري ممكن نه دي تر څو پوري چي د هغوئ د احكامو او هداياتو پيروي ونه كړل سي او د هغه ﷺ په حديثو يې پوره عمل نه وي كړى، كه د هغه د احكامو پيروي نه وي، په ارشاداتو يې عمل نه وي، نقش قدم يې اختيار نه كړل سي نو د هغه ﷺ پر لاره تلل څرنګه نصيب كيدلاى سي، او كوم سړى چي د رسول الله ﷺ پر لاره روان نه سي هغه ته سنت نبوي او د اسوه رسول د پيروي مقام نسي تر لاسه كيدلاى، همداسي د قرآن كريم تعليمات او د هغه احكامو باندي عمل او په هغه پوهېدل هلته ممكن دي چي رسول الله ﷺ د قرآن كريم د احكامو او فرمانونو كومه تشريح او توضيح په خپل اقوالو او افعالو سره فرمايلي دي لومړى په هغه ځان پوه كړي، په قرآن كريم كي احكامات په اجمالي او اصولي طريقې سره بيان سوي دي او د هغه اجمال تفصيل او د اصولو تشريح نبي كريم ﷺ كولاى سي ځكه نو ضروري ده چي لومړى د حديثو علم تر لاسه كړل سي او بيا د هغه په ذريعه د قرآن پاک د تعليماتو څخه ګټه او په هغه عمل وكړل سي:

وَكَانَ كِتَابُ الْمَصَابِيْحِ الَّذِيْ صَنَّفَهُ الْاِمَامُ مُحْيِ السُّنَّةِ قَامِعُ الْبِدْعَةِ اَبُوْمُحَمَّدِ الْحُسَيْنِ ابْنُ مَسْعُوْدِ الْفَرَّاءُ الْبَغَوِيُّ رَفَعَ اللهُ دَرَجَتَهٗ اَجْمَعَ كِتَابٍ صُنِّفَ فِيْ بَابِهٖ وَاَضْبَطَ لِشَوَارِدِ الْاَحَادِيْثِ وَ اَوَابِدِهَا،

او كتاب المصابيح هغه چي امام محي السنة (سنت ژوندى كونكى) قامع البدعة (د بدعت ليري كونكى) ابو محمد حسين الفراء بغوي الله دي دده درجات لوړ كړي، تاليف فرمايلي دى هغه د خپل فن يو جامع كتاب وو چي په هغه كي نوموړي ډير په ښه او غوره طريقه سره پاشلي او متفرق حديثونه را جمع كړي وه.

**تشريح**: شوارد د شارد جمع ده، او د هغه معنا ده تښتېدونكى اوښ، همداسي د اوابد معنا د

وحشي حيوان ده، دلته دغه الفاظ د استعارې په توګه استعمال کړل سوي دي ، د شوارد څخه مراد هغه حديثونه دي چي د اصولو په کتابونو کي نقل وه او هغه کتابونو ته د هر شاګرد رسېدل مشکل وه ځکه د يو حديث په باره کي دا معلومول چي په کوم کتاب کي او په کوم ځای کي نقل دی ډېر مشکل کار وو ، يعني هغه حديث د شاګرد د نظر څخه تښتېدلی يعني پټ وو ځکه هغه يې د (شوارد) په لفظ سره تعبير کړل، همداسي د (اوابد) څخه مراد هغه حديثونه دي چي د هغه معنا او مقصد د شاګرد د فهم څخه ډېر لوړ وو او په هغه پوهېدل د شاګردانو لپاره مشکل وه ځکه دغه حديثونه د (اوابد) په لفظ سره تعبير کړل سول، دغه مشکلات د يو شاګرد لپاره ډېر پريشان کونکي وه او په دې وجه حديث تر لاسه کول د هر سړي د وس کار نه وو ځکه امام محي السنة دغه پاشلي حديثونه راجمع کړل او په خپل کتاب مصابيح کي چي د کوم باب مناسب کوم حديث وو هلته يې نقل کړ چي د حديثو يو شاګرد د يو حديث په لټولو کي د اصول لوی لوی کتابونو کي سرګردان نسي او د هغه معنا او مقصد پوهېدو کي ورته اساني وي .

وَلَمَّا سَلَكَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ طَرِيْقَ الْاِخْتِصَارِ وَحَذَفَ الْاَسَانِيْدَ تَكَلَّمَ فِيْهِ بَعْضُ النُّقَّادِ .

او کله چي مصنف (د حديث د نقلولو په وخت کي) د اختصار طريقه غوره کړه او اسناد يې حذف کړل نو پر دې باندي ځينو محدثينو او فاقدينو اعتراض وکړ .

**تشريح** : د اسناد څخه مراد دادی چي کله حديث بيانيږي يا نقل کيږي نو د حديث څخه مخکي د هغه صحابي نوم ياديږي کوم چي د حديث روايت کړی دی همداسي د صحابي څخه تر مصنف پوري چي څومره روايت کونکي وي د هغوئ لړۍ ته هم سند او اسناد ويل کيږي. مصنف په مصابيح کي د حديثونو په جمع کولو د اختصار (لنډوالي) څخه کار اخيستی وو او يوازي د حديث پر نقل کولو يې بس والی کړی وو او د حديث سند يې پرې ايښی وو ، د محدثينو د خوا اعتراض پر وسو ځکه چي د حديث د پېژندلو دار او مدار يوازي پر سند باندي وي تر څو پوري چي سند ونه کتل سي چي دغه حديث کوم راوي روايت کړی دی تر هغو پوري د حديث په اړه دا حکم کول چي دا صحيح دی ، حسن دی او که ضعيف ډېر مشکل دی .

وَاِنْ كَانَ نَقْلُهُ وَاِنَّهُ مِنَ الثِّقَاتِ كَالْاَسْنَادِ لٰكِنْ لَيْسَ مَا فِيْهِ اِعْلَامٌ كَالْاَغْفَالِ فَاسْتَخَرْتُ اللّٰهَ تَعَالٰى وَاسْتَوْفَقْتُ مِنْهُ فَاَوْدَعْتُ كُلَّ حَدِيْثٍ مِنْهُ

که څه هم د مصنف د حديثونو بغير سند نقل داسي دي لکه په سند سره چي يې نقل کړي وي ځکه چي هغه د حديث د نقل کولو په معامله کي د ثقه او معتمدو محدثينو څخه شميرل

فِيْ مَقَرِّهِ فَاعْلَمْتُ مَا اَغْفَلَهُ كَمَا رَوَاهُ الْاَئِمَّةُ الْمُتْقِنُوْنَ وَالثِّقَاتُ الرَّاسِخُوْنَ مِثْلُ اَبِيْ عَبْدِاللهِ مُحَمَّدِ بْنِ اِسْمَاعِيْلَ الْبُخَارِيُّ وَاَبِيْ الْحُسَيْنِ مُسْلِمِ بْنِ الْحُجَّاجُ الْقُشَيْرِيِّ وَاَبِيْ عَبْدِاللهِ مَالِكِ بْنِ اَنَسِ الْاَصْلَحِيْ وَاَبِيْ عَبْدِاللهِ مُحَمَّدِ بْنِ اِدْرِيْسِ الشَّافِعِيِّ وَاَبِيْ عَبْدِاللهِ اَحْمَدِ بْنِ حَنْبَلِ الشَّيْبَانِيِّ وَاَبِيْ عِيْسٰى مُحَمَّدِ بْنِ عِيْسٰى التِّرْمِذِيِّ وَاَبِيْ دَاوُدَ سُلَيْمَانَ ابْنِ الْاَشْعَثِ السَّجِسْتَانِيِّ وَاَبِيْ عَبْدِالرَّحْمٰنِ اَحْمَدَ بْنِ شُعَيْبِ النَّسَائِيِّ وَاَبِيْ عَبْدِاللهِ مُحَمَّدِ بْنِ يَزِيْدَ ابْنِ مَاجَةَ الْقَزْوِيْنِيْ وَاَبِيْ مُحَمَّدِ عَبْدِاللهِ بْنِ عَبْدِالرَّحْمٰنِ الدَّارِمِيِّ وَاَبِيْ الْحَسَنِ عَلِيِّ ابْنِ عُمَرَ الدَّارَ قُطْنِيِّ وَاَبِيْ بَكْرِ اَحْمَدَ بْنِ الْحُسَيْنِ الْبَيْهَقِيِّ وَ اَبِيْ الْحَسَنِ رَزِيْنَ ابْنِ مُعَاوِيَةَ الْعَبْدَرِيِّ وَغَيْرِهِمْ وَقَلِيْلٌ مَّا هُوَ .

کیږي مګر بیا هم کوم شی چي بې نښي وي هغه د نښي والا شی په درجه کي نسي کیدلای ځکه نو ما د الله تعالی څخه مرسته وغوښتل او د هغه د توفیق غوښتونکی سوم ، ما هر حدیث چي د کوم باب سره د هغه تعلق وو په هغه باب کي نقل کړ او علماء او محدثین چي څرنګه هغه روایت کړ ما هم هغسي د سند او حواله کتاب ذکر وکړ مثلا امام بخاري، امام مسلم، امام مالک، امام شافعي، امام احمد بن حنبل، امام ترمذي، امام ابوداؤد، امام نسائي، امام ابن ماجه ، امام دارمي، امام دارقطني، امام بیهقي، امام رزین بن معاویه عبدري، دغه امامانو او محدثینو چي څرنګه په خپلو کتابونو کي حدیث نقل کړی دی همداسي ما د هغه کتابونو څخه په اخیستلو سره په دغه کتاب کي جمع کړل ، ددغه امامانو او محدثینو څخه پرته نور محدثین هم سته چي د هغوئ د کتابونو څخه حدیثونه نقل کړل سوي دي مګر د هغوئ شمیر ډیر کم دی .

**تشریح** : لکه څرنګه چي وړاندي وښودل سول چي د مصابیح لیکوال په خپل کتاب کي د حدیثونو یو ځای کولو په وخت کي د هغه سند او د کتاب دحوالو ذکر کول پرې ایښي وه نو پر دې باندي ځینو محدثینو او ناقدینو اعتراض وکړ ، ځکه صاحب مشکوة چي په مصابیح کي د نورو حدیثونو اضافه وکړه نو هغوئ دا کار هم وکړ چي د هر حدیث سند یې خامخا ولیکی د هر حدیث سره د هغه کتاب حواله یې هم ولیکل ، او دا طریقه یې هم غوره کړه چي د هغه کتابونو مصنفینو مثلا امام بخاري، امام مسلم او داسي نورو اختیار کړې وه همداسي په نوي ترتیب سره دغه کتاب معرض په وجود کي راغلی چي دمشکوة په اوسني شکل کي موجود دی .

وَ اِنِّيْ اِذَا نَسَبْتُ الْحَدِيْثَ اِلَيْهِمْ كَاَنِّيْ اَسْنَدْتُ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِاَنَّهُمْ قَدْ فَرَغُوْا مِنْهُ وَاَغْنَوْنَا عَنْهُ

او حقيقت دادی چي هر کله ما ددغه حديثونو نسبت د هغه امامانو او محدثينو په لور وکړ نو لکه د هغه سند چي مي تر رسول الله ﷺ پوري رسولی دی ځکه چي دغه امامانو په خپلو کتابونو کي د سند ذکر کولو سره موږ ددې څخه مستغني کړي يو .

**تشريح** : دلته شک پيدا کيدی چي محدثينو پر صاحب مصابيح باندي دغه اعتراض کړی وو چي هغوئ د حديث د نقل کولو په وخت کي د ټول سند ذکر ونه کړ نو اوس هم هغه خبره پاته سوه ځکه چي صاحب د مشکوة هم د صحابي او د کتاب د حوالې ذکر کافي ګڼلی دی ټول سند يې نه دی ذکر کړی ، ددې جواب مصنف ورکړی دی چي د کومو امامانو او محدثينو څخه دغه حديثونه را اخيستل سوي دي هغوئ خپل د سند په لړه کي د لټي او هڅو څخه وروسته دغه مرحله قطع کړې وه او هغه حضراتو په خپلو کتابونو کي دغه اسناد کړی دی ځکه د هغوئ ذکر سوی سند کافي ګڼلو سره اوس موږ د ټول اسناد ذکر کولو ضرورت پاته نه سو .

وَسَرَدْتُ الْكُتُبَ وَالْاَبْوَابَ كَمَا سَرَدَهَا وَاقْتَفَيْتُ اَثَرَهُ فِيْهَا

او ما دغه کتاب ته هغه ترتيب ورکړ کوم چي صاحب د مصابيح اېښی وو او په دې اړه مي د هغه پيروي کړې ده .

**تشريح** : عامه طريقه داده چي په کوم کتاب کي مختلف موضوعات او مباحث سره اړوند مضامين وي هغه د هغه موضوعات او مباحث د اعتبار څخه په کتاب او بابونو کي ويشل کيږي، د لفظ (کتاب) په ذريعه چي کوم عنوان اېښودل کيږي تر هغه لاندي مختلف بابونه وي که څه هم د يوې موضوع سره اړه لري مګر د هغه د مضامينو او مباحثو نوعيت او تفصيل بيل بيل وي، مثلا طهارت يوه موضوع ده او ددې موضوع سره اړوند مختلف صورتونه او د هغه احکام او مسائل دي لکه اودس، غسل، تيمم او داسي نور، نو د ټولو څخه مخکي د (کتاب الطهارت) عنوان قائميږي بيا تر هغه لاندي د هغه مختلف صورتونه او د هغه احکام او مسائل باندي مشتمل مضامين باندي نقل کولو لپاره بابونه قائميږي لکه (باب الوضوء) ، باب الغسل، باب التيمم او داسي نور .

نو د مصابيح ليکوال په خپل تصنيف کي چي په کوم ترتيب سره د کتاب او بابونو عنوان قائم کړی وو په هغه ترتيب سره صاحب د مشکوة هم د کتاب او بابونو عنوان قائم کړی دی.

وَقَسَّمْتُ كُلَّ بَابٍ غَالِبًا عَلٰى فُصُوْلٍ ثَلَاثَةٍ اَوَّلُهَا مَا اَخْرَجَهُ الشَّيْخَانِ اَوْ اَحَدُهُمَا وَاكْتَفَيْتُ بِهِمَا وَاِنْ اشْتَرَكَ فِيْهِ الْغَيْرُ لِعُلُوِّ دَرَجَتِهِمَا فِي الرِّوَايَةِ

او ما هر باب پر درو فصلونو باندي ويشلی دی. په لومړي فصل کي مي هغه حديثونه جمع کړي دي چي د شيخينو يعني امام بخاري او امام مسلم روايت کړي دي يا په دوئ دواړو کي يو چا روايت کړی دی که څه هم په هغه حديثونو کي ځيني داسي هم دي چي نورو محدثينو هم روايت کړي دي مګر په دغه فصل کي ما يوازي د شيخينو ذکر باندي اکتفاء کړې ده ځکه چي د شيخينو درجه پر ټولو محدثينو باندي لوړه ده.

**تشريح**: په مشکوة شريف کي د (متفق عليه) اصطلاح د هغه حديث لپاره ده چي د يو صحابي څخه په بخاري او مسلم دواړو کي ذکر وي، که د صحابي اختلاف وي يعني په بخاري کي د يو صحابي څخه منقول وي او په مسلم کي د بل صحابي څخه نو داسي روايت ته به (متفق عليه) نه وايو که څه هم حديث يو وي.

وَثَانِيْهَا مَا اَوْرَدَهُ غَيْرُ هُمَا مِنَ الْاَئِمَّةِ الْمَذْكُوْرِيْنَ ، وَثَالِثُهُمَا مَا اشْتَمَلَ عَلٰى مَعْنَى الْبَابَ مُلْحَقَاتٍ مُنَاسِبَةٍ مَعَ مُحَافَظَةٍ عَلَى الشَّرِيْطَةِ وَاِنْ كَانَ مَاثُوْرًا عَنِ السَّلَفِ وَالْخَلَفِ

او په دوهم فصل کي مي هغه حديثونه جمع کړي دي چي د شيخينو يعني بخاري او مسلم څخه پرته په نورو ذکر سوو امامانو کي يو چا روايت کړی وي ، او په دريم فصل کي د حديثو څخه پرته د صحابه کرامو او تابعينو هغه اقوال او آثار مي هم جمع کړي دي چي د باب مناسب او وړ وه، مګر د آثار او خبر شاملولو سره د حديث شرائط په نظر کي ساتل سوي دي.

**تشريح**: په مصابيح کي دوه فصلونه وه مګر دريم فصل صاحب د مشکوة زيات کړی دی: صاحب د مصابيح د حديثونو جمع کولو په وخت کي دغه ترتيب غوره کړی وو چي په لومړي فصل کي هغوئ د صحاح حديثونه جمع کړي وه او صحاح هغه حديثونه دي چي په بخاري او مسلم کي مذکور دي ، په دوهم فصل کي هغوئ (حسان) يعني هغه حديثونه چي د بخاري او مسلم څخه پرته نورو مستندو، ثقه او معتبرو امامانو روايت کړي وي لکه ترمذي، ابوداؤد،

نسائي او داسي نور، د حديثو دغه اصطلاح يوازي د صاحب مصابيح په نزد ده، د نورو محدثينو او علماؤو په نزد دغه اصطلاح نشته.

دريم فصل صاحب د مشكوة زيات كړى دى په دغه فصل كي صاحب د مشكوة د دې التزام نه دى كړى چي مرفوع حديث د رسول الله ﷺ څخه نقل كړل سي بلكه د صحابه كرامو او تابعينو داسي اقوال او افعال او تقرير هم په دغه فصل كي نقل كړى دى چي مخكي يې د راوي نوم خامخا ليكلى دى كه هغه صحابي وي او يا تابعي، همداسي د حديث په پاى كي يې د كتاب حواله هم وركړې ده چي د كوم كتاب څخه دغه حديث اخيستل سوى دى.

| ثُمَّ اِنَّكَ اِنْ فَقَدْتَّ حَدِيْثًا فِيْ بَابٍ فَذَالِكَ عَنْ تَكْرِيْرِ اُسْقِطُهٗ | بيا كه چيري په يو باب كي يو حديث ته نسې تر لاسه كولاى نو داسي ګڼه چي هغه ما د تكرار په وجه نه دى نقل كړى. |
|---|---|

**تشريح**: يعني كه چيري داسي وي چي حديث د مصابيح په يو باب كي خو موجود وي مګر په مشكوة كي په هغه باب كي نشته نو دا ځكه چي صاحب مشكوة هغه حديث په يو بل باب كي د ذكر كېدو په وجه دلته نه دى نقل كړى.

| وَاِنْ وَجَدْتَ آخَرَ بَعْضَهٗ مَتْرُوْكًا عَلٰى اِخْتِصَارِهٖ اَوْ مَضْمُوْمًا اِلَيْهِ تَمَامُهٗ فَعَنْ دَاعِيْ اِهْتِمَامٍ اَتْرُكُهٗ وَ اَلْحِقُهٗ | او كه ته يو حديث ووينې چي د هغه ځيني برخه د اختصار په وجه حذف كړل سوې ده يا په هغه كي د بل حديث يو برخه يو ځاى كړل سوې ده نو دغه حذف كول او يو ځاى كول د يو خاص مقصد لپاره دي. |
|---|---|

**تشريح**: مطلب دا چي د يو خاص مقصد لپاره په يو ځاى كي حذف او الحاق ضروري ګڼل سوى دى نو هلته داسي وكړل سول مثلاً يو لوى حديث دى د هغه يو څه برخه خو اخيستل سوې ده چي د باب مناسب ده نو هغه هلته نقل كړل سوه او ځيني برخه داسي ده چي د باب مناسبه نه وه نو هغه پرېښودل سول يا د يو حديث يوه ټوټه د هغه باب مناسب ده او دويمه ټوټه د بل باب سره مناسب ده نو په داسي شكل كي هلته حديث د اختصار سره چي د باب متعلق وي بيان كړل سوى دى، په دغه حالت كي هم د صاحب مصابيح پيروي كړل سوې ده مګر چيري چي په دواړو صورتونو كي هيڅ يو صورت نشته نو پوره حديث نقل كړل سوى دى كه څه هم هلته صاحب د مصابيح د اختصار څخه كار اخيستى دى.

وَاِنْ عَثَرْتَ عَلٰى اِخْتِلَافٍ فِي الْفَصْلَيْنِ مِنْ ذِكْرِ غَيْرِ الشَّيْخَيْنِ فِي الْاَوَّلِ وَ ذِكْرِهِمَا فِي الثَّانِيْ فَاعْلَمْ اَنِّيْ بَعْدَ تَتَبُّعِيْ كِتَابَيْ الْجَمْعِ بَيْنَ الصَّحِيْحَيْنِ لِلْحُمَيْدِيِّ وَجَامِعِ الْاُصُوْلِ اِعْتَمَدْتُ عَلٰى صَحِيْحَيِ الشَّيْخَيْنِ وَ مَتْنَيْهِمَا

او که په دواړو فصلونو کي اختلاف ووينې يعني د شيخينو پرته نور حديثونه په اول فصل کي ذکر سوي دي او د شيخينو حديثونه په دوهم فصل کي نقل سوي وي نو پوهېدل پکار دي چي دغه اختلاف د غلطۍ يا غفلت په وجه نه دی سوی بلکه دغه ما د حميدي کتاب جمع بين الصحيحين او په کتاب جامع الاصول کي ډيره پلټنه او تحقيق څخه وروسته کړي دي او په دې لړۍ کي ما د بخاري او مسلم پر نسخو او د هغو پر متن اعتماد کړی دی.

**تشريح**: صاحب د مصابيح خو دا طريقه غوره کړې وه چي په اول فصل کي هغه حديثونه نقل کړل چي شيخين يعني امام بخاري او امام مسلم څخه د هغوئ په کتاب کي روايت سوي دي او په دوهم فصل کي هغه حديثونه جمع کړي دي چي د شيخين څخه پرته نور امامانو څخه ذکر دي مګر په مشکوة کي ځيني ځايونه داسي هم دي چي په اول فصل کي هغه حديثونه چي صاحب مصابيح د شيخينو طرف ته په منسوب کولو سره نقل کړي دي ، صاحب مشکوة هغه د نورو امامانو په لور منسوب کولو سره نقل کړي دي لکه د باب سنن وضوء په اول فصل کي يا باب فضائل القرآن کي ، همداسي ځيني ځايونه د دوهم فصل حديثونه يې شيخينو ته منسوب کړي دي لکه باب ما يقرا لتکبير يا باب الموقوف او داسي نورو کي ،

نو ددغه رد او بدل او فرق په باره کي صاحب مشکوة وايي چي دا زما غلطي يا سهوه نه ده بلکه ما په کتاب جمع بن الصحيحين او کتاب جامع الاصول او د بخاري او مسلم د اصلو نسخو او د هغه په متن کي پوره پلټنه او تحقيق وکړ په هغه کتابونو کي چي کوم حديثونه د شيخينو طرف ته منسوب کړل سوي نه دي او صاحب مصابيح په اول فصل کي د شيخينو طرف ته منسوب کړي دي نو ما هغه حديثونه په مشکوة کي د شيخينو طرف ته د منسوب کولو پر ځای د هغه اصل راوي او ناقل طرف ته منسوب کړي دي ، همداسي کوم حديثونه چي صاحب مصابيح د شيخينو څخه پرته امامانو ته په منسوب کولو سره په دوهم فصل کي نقل کړي وه او هغه حديثونه ما په پورتني ذکر سوو کتابونو کي د شيخينو طرف ته منسوب پيدا کړل نو ما هغه د شيخينو طرف ته منسوب کړل او ما ته پر خپل تحقيق او پلټني باور وو ځکه ما په دې فکر کولو سره د مصابيح د نقل خلاف داسي کړي دي چي کيدای سي د صاحب مصابيح څخه د نقل

کولو په وخت کي سهوه سوې وي.

وَاِنْ رَاَيْتَ اِخْتِلاَفًا فِي نَفْسِ الْحَدِيْثِ فَذَالِكَ مِنْ تَشَعُّبِ طُرُقِ الْاَحَادِيْثِ

او که په اصل حديث کي اختلاف ووينې نو دا به د حديثونو په اسناد کي د اختلاف په وجه وي.

**تشريح**: يعني صاحب د مصابيح يو حديث روايت کړ او هغه حديث چي صاحب مشکوة نقل کړ نو د دواړو په الفاظو کي فرق راغلی يعني د صاحب مصابيح د روايت سوي حديث الفاظ نور دي او د صاحب مشکوة د روايت سوي حديث الفاظ نور دي نو په دې اړه صاحب مشکوة وايي چي دا فرق په اصل کي د سندونو د اختلاف پر بناء سوی دی يعني صاحب مصابيح ته هغه روايت چي په کوم سند سره رسيدلی دی په هغه کي هغه الفاظ دي چي هغوئ نقل کړي دي او ما ته چي په کوم سند سره دغه روايت را رسيدلی دی په هغه کي دغه الفاظ دي چي زه يې نقل کوم.

وَلَعَلِّيْ مَا اطَّلَعْتُ عَلٰى تِلْكَ الرِّوَايَةِ الَّتِيْ سَلَكَهَا الشَّيْخُ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وَقَلِيْلاً مَا تَجِدُ اَقُوْلُ مَا وَجَدْتُ هٰذِهِ الرِّوَايَةَ فِيْ كُتُبِ الْاُصُوْلِ اَوْ وَجَدْتُ خِلاَفَهَا فَاِذَا وَقَفْتَ عَلَيْهِ فَاَنْسُبُ الْقُصُوْرَ اِلَيَّ لِقِلَّةِ الدِّرَايَةِ لاَ اِلٰى جَنَابِ الشَّيْخِ رَفَعَ اللّٰهُ قَدْرَهُ فِي الدَّارَيْنِ حَاشَا لِلّٰهِ مِنْ ذَالِكَ

او کيدای سي چي کوم روايت شيخ رحمة الله عليه نقل کړی دی هغه ما ته نه وي تر لاسه سوی مګر داسي کم پيښيږي چي روايت دي ما ته نه وي تر لاسه سوی يا ما ته د اصولو په کتابونو کي د شيخ نقل سوي روايت خلاف هغه رعايت حاصل سوی وي مګر دغه اختلاف که معلوم وي نو د خطا او قصور نسبت دی زما طرف ته د کوتاهۍ په وجه وکړل سي او شيخ رحمة الله عليه دي ددغه غلطۍ څخه پاک وګڼل سي، الله تعالی دي د شيخ صاحب قدر په دواړو جهانو کي لوړ کړي او الله تعالی لره پاکي ده.

**تشريح**: د اصولو د کتابونو څخه مراد دغه پورتني کتابونه يعني بخاري او مسلم دي. يعني که چيري داسي وي چي په يو روايت صاحب مصابيح نقل کړی دی او ما هغه روايت نه دی تر لاسه کړی يا د هغه په نقل سوي روايت کي څه اختلاف وليدل سي نو په هغه کي دي د غلطۍ او قصور نسبت ما ته وکړل سي، صاحب د مصابيح دي د غلطۍ او خطا مرتکب نسي ګرځول کيدلای او د صاحب مشکوة دا ويل چي د غلطۍ او قصور نسبت دي ما ته وکړل سي د خلوص نيت او د اعتراف حقيقت پر بنا دی. په دې کي د رياء وغيره دخل نسته لکه څرنګه چي په (حاشا

لله من ذالک) کي يې ارشاد کړی دی.

| | |
|---|---|
| رَحِمَ اللّٰهُ مَنْ اِذَا وَقَفَ عَلٰى ذَالِكَ نَبَّهَنَا عَلَيْهِ وَ اَرْشَدَنَا طَرِيْقَ الصَّوَابِ | پر هغه سړي دي د الله ﷻ رحمت وي چي هغه ته روايت معلوم وي او موږ په خبرولو سره حقه لار وښيي. |

**تشريح** : يعني که چيري يو چا ته هغه روايت معلوم وي چي صاحب مصابيح نقل کړی دی او ما ته معلوم سوی نه وي نو هغه ته پکار ده چي که چيري زموږ په ژوند کي هغه ته معلوم سي نو موږ ته دي يې وښيي او که زما د مرګ څخه وروسته ورته معلوم سي نو زموږ په کتاب کي دي اضافه وکړي.

| | |
|---|---|
| وَلَمْ آلُ جُهْدًا فِي التَّنْقِيْرِ وَ التَّفْتِيْشِ بِقَدْرِ الْوُسْعِ وَالطَّاقَةِ وَ نَقَلْتُ ذَالِكَ الْاِخْتِلَافَ كَمَا وَجَدْتُ | ما په خپل تحقيق، پلټني او هڅي کي هيڅ کمي نه ده پرې ايښې او د خپل وس او توان سره سم پوره پلټنه مي وکړه او دغه اختلاف چي مي څرنګه تر لاسه کړ هم هغسي مي نقل کړ. |

**تشريح** : يعني ما چي د اصولو په کتابونو کي څه تر لاسه کړل او څنګه مي نقل وليدی د شيخ رحمة الله تعالى عليه د تقليد څخه آخوا کېدو سره هم هغسي مي دلته ذکر کړ که څوک دغه اعتراض وکړي چي که چيري صاحب د مشکوة زياته تابع داري کړې وای نو هيڅ وجه نه وه چي هغه ته به دغه روايتونه نه تر لاسه کېدلای نو ددې جواب په خپله صاحب مشکوة ورکړ چي تر څو پوري زما وس او توان وو ما د هغه څخه زيات تحقيق او پلټنه وکړه او د خپل طرف څخه مي هيڅ کوتاهي نه ده کړې.

| | |
|---|---|
| وَمَا اَشَارَ اِلَيْهِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ مِنْ غَرِيْبٍ اَوْ ضَعِيْفٍ اَوْ غَيْرِهِمَا بَيَّنْتُ وَجْهَهُ غَالِبًا وَمَا لَمْ يُشِرْ اِلَيْهِ مِمَّا فِي الْاُصُوْلِ فَقَدْ قَفَّيْتُهُ فِيْ تَرْكِهِ اِلَّا فِيْ مَوَاضِعِ لِغَرْضٍ | او پر کوم حديث باندي چي شيخ رحمة الله تعالى عليه د ضعيف يا غريب وغيره حکم کړی دی نو ما د هغه سبب بيان کړی دی او د کوم حديث او اصول امور جانب ته چي شيخ يو اشاره نه ده کړې نو ما هم د شيخ پيروي کولو سره هغه پرې ايښې دی مګر پر ځينو ځايونو باندي د مجبوری په وجه ما د هغه وضاحت کړی دی. |

**تشريح** : يعني صاحب د مصابيح د ځينو حديثونو په باره کي نقل کړي وه چي فلانی حديث غريب دی او فلانی ضعيف دی، او يا د شاذ او منکر حکم يې پر کړی وو، نو صاحب د مشکوة په مشکوة کي د هغه وضاحت کړی دی او ښودلي يې دي چي دغه حديث ولي غريب دی يا

ضعيف ولي دی او هغه حديث ته شاذ يا منكر ولي ويل سوي دي او يو څو داسي حديثونه هم وه چي صاحب مصابيح ورته ضعيف ، غريب، شاذ او يا منكر نه وه ويلي بلكه هغه يې همداسي پرې ايښي وه نو صاحب مشكوة هم د هغوئ پيروي كولو سره د هغه وضاحت ونه كړ بلكه هم هغسي يې نقل كړ البته د ځينو مجبوريو په وجه پر يو څو داسي ځايونو باندي صاحب مشكوة هم وضاحت كړی دی چيري چي صاحب مصابيح سكوت اختيار كړی دی ، مثلا ځينو خلكو خبري كولې او تهمت يې وايه چي فلانی حديث موضوع دی يا باطل دی نو د مجبوری له كبله صاحب د مشكوة د هغه الزام د ترديد كولو په وجه د هغه شرح او وضاحت د ترمذي وغيره حوالې سره وكړ چي دغه حديث ضعيف يا حسن دی او يا دا حديث ضعيف او غريب دی .

| | |
|---|---|
| وَ رُبَّمَا تَجِدُ مَوَاضِعَ مُهْمَلَةً وَذَالِكَ حَيْثُ لَمْ اَطَّلِعْ عَلٰى رِوَايَةٍ فَتَرَكْتُ الْبَيَاضَ فَاِنْ عَثَرْتَ عَلَيْهِ فَالْحِقْهُ بِهِ اَحْسَنَ اللّٰهُ جَزَاءَكَ، | او يو څو داسي ځايونه به هم وي چي هلته د حديث څخه وروسته ما د كتاب حواله نه ده وركړې ځكه چي د پلټني او تحقيق سربيره زه د راوي دنوم څخه خبر |

نه سوم نو ځكه هغه ځای ما پرېښودی كه تاسو ته د راوي نوم معلوم وي نو په هغه ځای كې د هغه حواله وركړئ پر دې به الله تعالی د خير جزا دركړي .

| | |
|---|---|
| وَ سَمَّيْتُ الْكِتَابَ بِمِشْكٰوةِ الْمَصَابِيْحِ | او ما ددغه كتاب نوم مشكوة المصابيح ايښی دی |

**تشريح** : مصابيح د مصباح جمع ده او مصباح څراغ ته وايي او د مشكوة معنا (سرتاخ) ده لكه څرنګه چي سرتاخ كي څراغ ايښودل كيږي همداسي د مصابيح كتاب په مشكوة كي ايښودل سوی دی .

| | |
|---|---|
| وَاَسْاَلُ اللّٰهَ التَّوْفِيْقَ وَالْاِعَانَةَ وَالْهِدَايَةَ وَالصِّيَانَةَ وَتَيْسِيْرَ مَا اَقْصُدُهُ | او ددغه كتاب د تصنيف لپاره زه د الله تعالی څخه نيک توفيق د هغه مرسته او د هدايت غوښتونكی |

يم او ذ خپل مقصد د تكميل لپاره د خطا او سهو ساتنه او د مشكلاتو د آسانی لپاره دعاء كوم .

| | |
|---|---|
| وَاَنْ يَّنْفَعَنِيْ فِي الْحَيٰوةِ وَبَعْدَ الْمَمَاتِ وَجَمِيْعِ الْمُسْلِمِيْنَ وَالْمُسْلِمَاتِ حَسْبِيَ اللّٰهُ وَنِعْمَ الْوَكِيْلُ وَلَاحَوْلَ وَلَاقُوَّةَ اِلَّا بِاللّٰهِ الْعَزِيْزِ الْحَكِيْمِ . | او دعاء كوم چي الله تعالی دي په ژوند كي او د مرګ څخه وروسته ما ته هم او هر مسلمان نارينه او ښځينه ته ګټه ورسوي او الله تعالی زما لپاره كافي او غوره كار ساز دی او د بدی څخه د ژغورني طاقت او د |

نیک کار کولو قدرت د الله تعالی د لوري دی چي پر
ټولو کارونو باندي غالب او د حکمت خاوند دی .

**تشریح** : د ژوند ګټه خو داده چي الله تعالی د دغه کتاب د مطالعې او د دې ځخه د ګټي اخیستلو توفیق راکړي او پر دغه حدیثونو باندي د عمل کولو توفیق راکړي او د مرګ ځخه وروسته ګټه داده چي الله تعالی د دغه کتاب په برکت سره هغه په بخښني او د جنت په نعمتونو سره ونازوي او د خپل بې پایه رحمت دروازې ورته خلاصي کړي .

# د مشکوة شریف لومړنی حدیث

عَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ إِنَّمَا الْأَعْمَالُ بِالنِّيَّاتِ وَإِنَّمَا لِامْرِئٍ مَا نَوَى فَمَنْ كَانَتْ هِجْرَتُهُ إِلَى اللّٰهِ وَرَسُوْلِهِ فَهِجْرَتُهُ إِلَى اللّٰهِ وَرَسُوْلِهِ وَمَنْ كَانَتْ هِجْرَتُهُ إِلَى دُنْيَا يُصِيبُهَا أَوْ امْرَأَةٍ يَتَزَوَّجُهَا فَهِجْرَتُهُ إِلَى مَا هَاجَرَ إِلَيْهِ. متفق عليه.

د حضرت عمر[۱] بن خطاب ﷺ څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: د ټولو کارونو دار او مدار په نیت پوري دی (یعني د عمل ثمره پر نیت باندي ورکول کیږي) نو چا چي د الله ﷻ او د هغه د رسول لپاره هجرت وکړ نو د هغه هجرت به د الله ﷻ او د رسول ﷺ لپاره وي او که د چا هجرت د دنیا ترلاسه کولو لپاره وي نو هغه به ترلاسه کړي او که د چا هجرت د ښځي سره دنکاح کولو لپاره وي نو ښځه به په نکاح کړي نو د هغه هجرت د هغه شي لپاره وي د کوم لپاره چي هغه اراده کړې وي. بخاري او مسلم.

**تشریح**: د مشکوة شریف مصنف دغه حدیث د باب څخه مخکي راوړی دی ددې څخه د هغه مقصد دې ته اشاره ده چي یو طالب د علم ته پکار ده چي دی د علم ترلاسه کولو لپاره خپل نیت یوازي د الله ﷻ لپاره کړي او بیا ددې په ترلاسه کولو کي بوخت سي، د دغه حدیث پر فضیلت او اهمیت باندي د محدثینو اتفاق دی بلکه ځینو علماؤ دغه حدیث ته نصف علم (د نیمائي علم) درجه ورکړې ده.

د هجرت مطلب دادی چي یوازي د الله تعالی د رضا لپاره دار الکفر خپل هیواد پرېښودلو سره دارالاسلام خپل وطن جوړ کړي او هلته هستوګنه غوره کړي که هجرت کونکی په خپل نیت خالص وي او د هغه هجرت یوازي د الله تعالی لپاره وي نو ثواب به ترلاسه کړي او د هغه دغه عمل به د الله تعالی په نزد مقبول وي، مګر که په نیت کي یې خیرنتوب وي او د هجرت څخه د هغه مقصد د دنیا ترلاسه کول کوي نو یقینا هغه به د ثواب څخه محروم وي مګر که د دنیا د غوښتني او خواهش نفس سره یې د رضائي حق نیت هم وي نو ثواب به ترلاسه کړي. په دغه

---

[۱] د نوموړي نوم عمر، کنیت یې ابوحفص او لقب یې فاروق اعظم دی، نوموړی د قریش شام د عدي قبیلې څخه دی، د نبي کریم ﷺ او حضرت عمر فاروق ﷺ د نسب لړی پر کعب بن لوی باندي یو ځای کیږي، د حضرت ابوبکر صدیق ﷺ څخه وروسته په اتفاق سره دوهم خلیفه وټاکل سو. د هجرت په دیرشم کال په ۲۷ ذي الحجة د چارشنبې په ورځ په مسجد نبوي کي د سهار لمونځ یې ورکوی چي یو بدبخت نصراني ابولؤلؤ په خنجر سره حمله پر وکړل او د شهادت درجه یې ترلاسه کړه، د نوموړي عمر ۶۳ کاله وو.

حديث کي هغه واقعې ته اشاره ده چي يو سړی مدينې منورې ته د يوې ښځي په نکاح کولو په غرض په هجرت راغلی وو د هغه ښځي نوم ام قيس وو، ددې کبله هغه سړي ته مهاجر ام قيس وويل سول، څرنګه چي د ابن مسعود ﷺ څخه روايت دی چي يو سړي ام قيس ښځي ته د واده پيغام وليږی، ام قيس په دې شرط قبول کړ چي هغه دي مدينې ته په هجرت راسي نو بيا واده کيدلای سي ، نو هغه سړی مدينې ته په هجرت راغلی او د ام قيس سره يې واده وکړ . ددې وروسته هغه سړی په مهاجر ام قيس سره مشهور سو .

په دغه حديث کي لفظي اختلاف دی چي په ډيرو نسخو کي په څو ډوله راغلی دی، په ځينو ځايو کي (انما الاعمال بالنيات او انما الاعمال بالنية) روايت دی، په هر حال دا اختلاف لفظي دی چي د هغه اثر پر معنا او مفهوم باندي هيڅ نه لويږي .

د حديث د لومړنيو دوو جملو مطلب يو دی او په اصل کي د (انما لامرئ ما نوی) څخه تاکيد کيږي ، د لومړنۍ جملې چي عمل پرته د نيت څخه معتبر نه وي يعني کوم سړی چي څرنګه نيت وکړي هغسي اجر به تر لاسه کوي په يوه عمل کي که څو مره نيتونه کوي هغومره ثواب به هغه ته تر لاسه کيږي ، مثلا :

۱. د يو سړي قريب غريب او مفلس دی ، او دی د هغه غريب په دې نيت سره مرسته کوي چي د الله لپاره د يو غريب مرسته کول د ثواب کار دی نو هغه ته به ددې ثواب ورکول کيږي، مګر که هغه ددې سره د صله رحمۍ نيت هم وکړي چي د هغه سره د الله تعالی لپاره مرسته کول د ثواب کار دی او ددې سره به زما د يو قريب پريشاني هم ليري سي نو اوس يوازي په دغه نيت کولو سره به هغه ته دوه برابر ثواب تر لاسه کيږي .

۲. همداسي مسجد ته د تللو څو نيتونه کيدلای سي او د هر يوه بيل بيل ثواب تر لاسه کيږي، مثلا يو سړی مسجد ته راځي هغه دي نيت وکړي چي فرمايل سوي دي چي مسجد د الله تعالی کور دی دلته راتلونکی لکه د الله تعالی زيارت ته چي راځي او الله تعالی کريم دی او د کريم لپاره د ميلمه ميلمستيا ضروري ده زه هم ددې اميد لرم نو هغه ته به دا ثواب هم تر لاسه کيږي .

او جماعت د انتظار نيت دي وکړي چي فرمايل سوي دي کوم سړی چي د جماعت انتظار کوي هغه لکه د لمانځه په حالت کي چي وي نو په دغه نيت سره به هغه ته ثواب تر لاسه کيږي او دا نيت دي وکړي چي غوږونه، سترګي او ټول د بدن اعضاء په سړک او بازار کي په ګناه اخته

کیږي او دلته مسجد ته په راتلو سره به خوندي سي ، مسجد ته په راتلو سره د اعتکاف نیت دي وکړي ځکه چي علماؤ لیکلي دي چي هر کله په مسجد کي داخل سئ نو پکار ده چي د اعتکاف نیت وکړئ او د کومو علماؤ په نزد چي د اعتکاف وخت کم تر کمه یو ساعت دی نو د هغوئ په نزد هغه اعتکاف به معتبر وي ، نو دا ثواب یې هم تر لاسه کړي او په مسجد کي د داخلېدو پر وخت د اعتکاف نیت کول او بیا پر هغه ثواب تر لاسه کول په حقیقت کي د الله تعالی د لوري د مسلمانانو لپاره یو نعمت دی چي پرته د محنت څخه نه تر لاسه کیږي ، مګر افسوس چي مسلمانانددې څخه غافل دي، او یا مسجد ته د ننوتلو په وخت او یا د وتلو په وخت کي مسنونه دعاوي ویل یا پر نبي کریم ﷺ باندي درود شریف ویل د سعادت باعث دی ، که مسجد ته دداخلېدو په وخت کي ددې هم نیت وکړي نو ددې ثواب به هم تر لاسه کوي .

او دا نیت دي وکړي چي په مسجد کي یوازیوالي او سکون په برخه کیږي ، هلته د الله ﷻ ذکر ، د قرآن کریم تلاوت او یا وعظ او نصیحت په اطمینان سره کیدلای سي نو ددې ثواب به هم تر لاسه کوي ، ځکه چي په حدیث شریف کي راغلي دي چي کوم سړی سهار مسجد ته د ذکر او وعظ لپاره ځي نو هغه د مجاهد في سبیل الله په مرتبه کي دی ، یا یو څوک په مسجد کي ناست د قرآن کریم په تلاوت کي بوخت وي او په خپل مینځ کي تذکیر او نصیحت کوي نو پر هغه ډله باندي د الله تعالی ملائکي راټولیږي او د الله ﷻ د رحمت سایه پر کوي .

داسي نیت دي هم وکړي چي په اودس کولو سره مسجد ته د لمانځه لپاره په تللو کي د حج او عمرې ثواب حاصلیږي .

او داسي نیت دي وکړي چي په مسجد کي خلکو د اجتماع څخه د علم ګټه، امر بالمعروف او نهي عن المنکر مواقع میسر کیږي ، هلته د مسلمانانو وروڼو سره د ملاقات کولو او پر هغوئ د سلام او رحمت لیږلو نیت دي هم وکړي .

او د محاسبه نفس او تفکر في الاخرت او د خپلو ګناهونو څخه د استغفار نیت دي وکړي ځکه چي په مسجد کي په سکون او آرام سره دا کار کیدلای سي کوم چي په بل ځای کي دا کار کول مشکل وي .

په هر حال مسجد ته د راتلو عمل یو دی مګر نیتونه بیل بیل کیدو سره ډیر زیات دی ځکه ثواب به ددغه ټولو نیتونو ورته تر لاسه کیږي . عمل یو دی او د نیت په سبب ثواب دومره زیات دی . او بیا مسجد خو د عبادت ځای دی او ددغه کارونو تعلق هم د عبادت او آخرت سره

دی نو پر دې باندې ثواب تر لاسه کیږي مګر که چیرې په هغه شیانو کې هم نیک نیت وکړي چې د هغه تعلق زینت جسماني یا د دنیاوي کارونو سره وي نو د الله تعالی د دغه بې پایه رحمت څخه هلته هم ثواب ورکول کیږي، مثلا د جمعې په ورځ یا په بله ورځ خوشبوئي ولګوي او په هغه سره دا نیت وکړي چې نبي کریم ﷺ به خوشبوئي ډیره خوښول ځکه نو زه هم خوشبوئي لګوم.

او دا نیت دې وکړي چې کوم سړی زما سره کښیني نو په خوشبوئي محسوس کېدو سره به خوشحاله سي، او نیت دې وکړي چې کوم سړی زما د خوشبوئي نه لګولو په وجه زما د بد بوی په وجه زما غیبت کوي او زه په خوشبو لګولو سره هغه د غیبت د ګناه څخه وساتم. او نیت دې وکړي چې په خوشبوئي سره زما دماغ تازه وي او زه چې د وعظ او نصیحت په مجلس کې کښېنم نو د دې په وجه به خبري په ښه ډول سره په ذهن کې راسي.

دلته هم د خوشبوئي لګولو عمل یو دی چې د هغه اړه صرف د انساني جذبې او خواهش او د دنیاوي کارونو څخه یو کار دی مګر چیرې د دې سره دا ټول نیتونه وکړل سي نو پر هغه به هم د هر یوه بیل بیل ثواب ورکول کیږي، همداسي په هر عمل کې مختلف نیتونه کیدلای سي چې پر هغه د بې شمیره ثواب ثمره مرتب کیږي.

او که یو عمل یوازې د جسماني لذت او نفساني خواهش لپاره وي نو د ثواب د دولت څخه به محروم وي بلکه د ملامتیا او عتاب ور به وي.

نو څرګنده سوه چې د عمل دار او مدار یعني پر هغه ثواب تر لاسه کول یوازې په نیت پوري اړه لري څرنګه چې نیت وکړي هم هغسې به ثواب ورکول کیږي.

## د نیت مسائل

**مسئله**: په دغه حدیث کې چې د کومو عملونو په باره کې نیت ضروري ګرځول سوی دی د هغو څخه اعمال مقصوده مراد دي، یعني داسي عملونه چې د هغه کول په شریعت کې مطلوب او مقصود وي لکه لمونځ، روژه، زکوة، حج، نو دا ډول عملونه به د نیت څخه پرته معتبر نه وي او نه د الله ﷻ په نزد مقبول او صحیح دي. مثلا که یو سړی لمونځ بیله نیته کوي نو نه خو د هغه لمونځ صحیح کیږي او نه د الله ﷻ په نزد مقبول کیږي همداسي بیله نیته نه زکوة ادا کیږي او نه بیله نیته روژه او حج صحیح کیږي، نو څرګنده سوه چې د نیت ضرورت او اړتیا به په اعمال مقصوده کې وي ځکه چې بیله نیته دغه عملونه هیڅ اعتبار نه لري.

د اعمال مقصوده په مقابل کې اعمال غیر مقصوده دي یعني داسي عملونه چې د هغو

کول مقصد نه وي بلکه د هغو کول د يو خارجي امر پر بناء ضروري وي لکه غسل، اودس چي دا في نفسه او بذاته مقصود نه دي بلکه د غسل ضرورت د پاکۍ لپاره وي او د اودا سه ضرورت د لمانځه لپاره وي .

اوس په دې کي دعلماؤ اختلاف دی چي ايا په دغه اعمال غير مقصوده يعني غسل، اودس وغيره کي نيت کول ضروري دي که نه، د امام شافعي رحمه الله په نزد په اودا سه او غسل کي نيت ضروري دی ځکه چي د هغه په نزد دا فرض دي که چيري غسل او يا اودس يې بيله نيته وکړ نو هغه به د اعتبار وړ نه وي ، د امام اعظم رحمه الله په نزد غسل او اودس بيله نيته معتبر دی ځکه چي د هغه په نزد نيت فرض نه دی بلکه سنت او مستحب دی که چيري اودس او يا غسل بيله نيته وکړي نو ادا کيږي .

په شريعت کي د نيت څخه مراد د (قرب الى الله) قصد کول دي يعني کوم کار چي کوي يوازي د الله تعالى د رضا لپاره دي يې کوي او د هغه د حکم پر ځای کول او د هغه د رضا تر لاسه کولو لپاره دي يې کوي .

د نيت معنا په زړه سره قصد کول دي ، په نيت کي يوازي په زړه سره قصد کول کافي کيږي په ژبه سره ويل شرط نه دي ، په عباداتو کي که چيري يوازي په ژبه سره يې وويل او په زړه کي يې نيت ونه کړ نو عبادت به اعتبار نه لري . په کتاب مجمع کي ليکلي دي چي يوازي په ژبه سره د ويلو اعتبار نسته ، او د علماؤ په دې کي اختلاف دی چي په زړه سره قصد او په ژبه سره نيت کول هم سنت دي يا مستحب يا مکروه دي .

او همدا سي په دې کي درې قوله دي: په فتح القدير کي چي د نيت په ژبي سره ويل نه د نبي کريم ﷺ څخه منقول دي او نه د صحابه کرامو څخه او په دې اړه يو صحيح حديث هم ثابت نه دی، او نه هم څلور سره امامان ددې قائل دي .

په کتاب مفيد کي دي چي ځينو مشائخو دې ته مکروه ويلي دي او ځينو مستحب . چا چي مستحب ورته ويلي دي د هغوئ په نزد هم يوازي دومره ويل مستحب دي چي اللهم اني اريد صلوة کذا فيسرها لي وتقبلها مني ، مګر دا ډول هم په حديث شريف کي يوازي د حج نيت منقول دی د نورو عباداتو لپاره دا ثابت او منقول نه دي .

په هر حال د نيت دغه مقدمه او بيان په کتاب اشتباه کي په مفصله توګه ليکل سوی دی، په دې اړه د مترجم (ژباړونکي) پلټنه داده چي هر کله د رسول الله ﷺ د صحابه کرامو او امامانو

څخه په لمانځه یا روژه کي د نیت په ژبي سره ویل منقول نه دي او وروسته د علماؤ په دې کي اختلاف سوی دی چي ایا دا سنت دی. مستحب دی، مکروه دی، او که بدعت دی، نو د فقه قاعده داده چي هر کله د یو شي په سنت یا بدعت کېدو کي د علماؤ اختلاف وي یعني ځیني وایي چي دابدعت دی او ځیني وائي چي دا سنت دی نو احتیاط په دې کي دی چي د داسي شي پرېښودل پکار دي.

په فتاوی عالمګیریه کي هم داسي نقل سوي دي، همداسي که په سنت او مستحب کېدو کي اختلاف وي نو پرېښودل یې غوره دي، شیخ عبدالحق محدث دهلوي رحمه الله د مشکوة شریف په ترجمه کي فرمایلي دي چي علماء پر دې متفق دي چي په لمانځه کي د نیت په زوره ویل مشروع نه دي او فرمائي چي محدثینو ویلي دي چي د حدیث د یو روای څخه دا ثابت نه دي چي رسول الله ﷺ نیت په ژبه سره ویلی دی.

نو د رسول الله ﷺ د سنت اتباع په دې کي ده چي نیت په زړه سره وکړل سي او پر هغه اکتفاء وکړل سي لکه څرنګه چي رسول الله ﷺ د کړي فعل اتباع کول اطاعت رسول دی، همداسي دا هم د رسول الله ﷺ اطاعت او پیروي ده چي کوم کار نبي کریم ﷺ هیڅکله نه وي کړی نو په هغه دي عمل نه کیږي او پکار ده چي پر هغه دوام او ټینګار ونه کړل سي کوم چي د شارع څخه ثابت نه وي.

**مسئله**: د نیت اثر پر عباداتو مرتب کیږي، په حرام کار کي د نیت اعتبار نه وي او نه د هغه ثمره مرتب کیږي که په یو مباح کار کي د عبادت نیت وکړي یا په هغه شي کي نیت وکړي چي د عبادت لپاره وسیله وي نو پر هغه د نیت ثمره مرتب کیږي او ثواب تر لاسه کیږي.

**مسئله**: په اوداسه کي نیت کول سنت دي، اوس په دې کي اختلاف دی چي د اوداسه لپاره دي نیت کله وکړل سي، د ځینو علماؤ په نزد د مخ پرېوللو په وخت کي نیت کول پکار دی، مګر غوره داده چي د اوداسه په پیل کي د لاسو پرېوللو په وخت کي نیت وکړل سي، تر څو د مخ پرېوللو څخه مخکي هم ثواب تر لاسه سي، په غسل کي هم نیت سنت دی، مناسب داده چي په د اوداسه پیل کولو په وخت کي نیت وکړي، په تیمم کي نیت کول فرض دی کله چي د تیمم لپاره لاسونه پر خاورو ایږدي نو هغه وخت نیت کول پکار دی او د هغه وروسته دي لاسونه پر مخ راتیر کړي.

**مسئله**: د نیت لپاره یو څو شیان شرط دي:

۱. اسلام: ځکه چي د مسلمانانو عبادت مقبول وي د کافرانو عبادت نه خو صحیح وي او نه

مقبول وي.

۲. تميز : يعني دومره عقل بايد ولري چي د عبادت او غير عبادت په فرق پوهيږي ځکه چي د ليوني او تميز نه لرونکي ماشوم عبادت معتبر نه دی.

۳. علم : يعني کوم شی چي کوي د هغه حقيقت او اهميت بايد پيژني، يو سړی د لمانځه د اهميت او د هغه د فرضيت څخه خبر نه دی که څه هم نيت کوي مگر د هغه لمونځ نه صحيح کيږي.

۴. څلورم دا چي د نيت منافي دي هيڅ شی نه کوي مثلا يو چا اسلام راوړ او د عبادت کولو څخه وروسته نعوذ باالله مرتد سو نو د هغه ټول عمل او عبادت ضائع کيږي او د هغه څخه هيڅ گټه نه تر لاسه کيږي.

۵. همداسي که يو چا لمونځ پيل کړ يا روژه يې ونيول مگر په مينځ کي يې ماته کړه نو لمونځ او روژه يې دواړه باطل کيږي ځکه چي د عبادت د مينځ څخه بيله پوره کېدو ختمول د نيت خلاف دي.

**مسئله:** په فرض لمانځه کي د څلورو شيانو نيت کيږي :

۱. لومړی د لمانځه نيت.

۲. دوهم د فرض لمانځه ادا کولو نيت.

۳. دريم د وخت ټاکل مثلا د ماپښين، مازديگر يا ماښام لمونځ.

۴. څلورم که چيري مقتدي وي نو د اقتداء نيت دي کوي.

دغه څلور شيان دي د لمانځه پيل کولو په وخت کي په زړه کي ساتي او نيت دي وکړي که په دغه څلورو شيانو کي د يوه خيال هم په زړه کي پاته نه سو نو لمونځ نه صحيح کيږي.

**مسئله:** په واجب عبادت کي د نيت حکم د فرض په ډول دی يعني د واجب متعين کول ضروري دي.

**مسئله:** سنت د مطلق لمانځه په نيت سره او د نفل په نيت سره صحيح کيږي که سنت مؤکده وي او که غير مؤکده وي په دې کي دواړه برابر دي.

**مسئله:** د رمضان المبارک روژه که چيري د نفل روژې نيت سوی وي يا د واجب يا بالکل نيت يې نه وي کړی نو بيا هم د رمضان روژه ادا کيږي، يعني يو خو دا چي د رمضان روژه ده او نيت هم د رمضان د روژې دی په دې کي خو په ادائي روژه کي هيڅ اشکال نسته مگر که يو سړی داسي کوي چي روژه خو د رمضان په مياشت کي نيسي مگر نيت يې د نفل روژې وکړ او د يو واجب روژې لکه نذر وغيره، يا دا چي بالکل نيت يې ونه کړ نو په داسي شکل کي هم فقهاء

ليکي چي د رمضان روژه به اداسي .

**مسئله**: د رمضان د روژې نيت د شپې څخه هم کولای سي او په پيشلمي کي هم ، تر غرمې پوري يعني نصف النهار (د ورځي دنيمايي) څخه مخکي نيت کيدلای سي، په پيل کي د ورځي د ابتداء صبح صادق راختلو او انتهاء يعني لمر لوېدلو باندي کيږي نو نيت د ورځي په لومړنۍ نيمه برخه کي کولای سي ، همداسي د نفل او نذر معين روژې نيت هم په شپه کي او په ورځ کي د نصف النهار څخه مخکي کيدلای سي ، مګر د رمضان د قضا او نذر مطلق او د کفارې د روژو نيت يوازي په شپه کي کول پکار دی ، ددغه روژو نيت په ورځ کي معتبر نه دی .

د نذر معين شکل دادی چي يو سړي يو خاصه ورځ د روژې لپاره ټاکلې وي يعني دا اراده وکړي چي په فلانی جمعه يا دوشنبه او يا په فلاني تاريخ به زه روژه نيسم، يعني هغه د يوې ورځي په ټاکلو سره روژه پر خپل ځان لازم کړه نو دغه صورت ته نذر معين ويل کيږي .

د نذر مطلق صورت دادی چي پر يو سړي باندي يوه يا څو ورځي واجب وي يا دا ووايي چي که چيري زما فلانی کار تر سره سو يا زما فلانی قريب روغ سو نو زه به روژه نيسم نو په دغه شکل کي چي هغه کله غواړي روژه نيولای سي په دې کي د يو ورځي ټاکل نسته نو دې ته نذر مطلق ويل کيږي .

**مسئله**: د زکات د نيت دوه صورته دي يو خو دا چي کله د زکوٰة مال ورکوي نو هغه وخت د زکوٰة ادا کولو نيت دي وکړي ، دوهم صورت دادی چي د خپل مال څخه د زکوٰة لپاره يو برخه بيلوي چي د هغه څخه به زکوٰة ورکوي نو په دغه صورت کي د مال بيلولو په وخت کي د زکوٰة ادا کولو نيت پکار دی ، د زکات د مال ورکولو په وخت کي نيت ضروري نه دی .

**مسئله**: يو چا مستحق ته د زکوٰة مال ورکړی مګر د ورکولو په وخت کي هغه د زکوٰة نيت نه وو کړی نو که چيري وروسته هغه د زکوٰة نيت کوي نو هغه نيت به هغه وخت معتبر وي چي کله د مستحق سره هغه مال موجود وي او هغه مصرف کړی نه وي مګر که چيري د مستحق څخه هغه مال مصرف سوی وي او د هغه سره موجود نه وي نو بيا وروسته د زکوٰة نيت معتبر نه دی او زکوٰة به ادا نه وي .

**مسئله**: صدقه فطر د نيت او مصرف په اعتبار د زکوٰة په ډول ده ، مګر دا فرق دی چي صدقه فطر ذمي يا کافر ته ورکول کيدلای سي مګر زکوٰة ذمي او کافر ته هيڅکله هم ورکول صحيح نه دي .

**مسئله**: د یوه عبادت په مینځ کي د دوهم عبادت نیت کول صحیح دی، مثلا یو سړی فرض یا نفل لمونځ کوي او د لمانځه کولو په دوران کي هغه د روژې نیت هم وکړ نو دا نیت به معتبر وي او لمونځ به فاسد نه وي.

**مسئله**: په عباداتو مثلا لمونځ وغیره کي یوازي په پیل کي نیت کول پکار دی. د هغه د هر هر جز او رکن لپاره نیت ضروري نه دی ځکه چي په دې سره په لمانځه کي خلل لویږي.

**مسئله**: یو سړي فرض لمونځ پیل کړ، په مینځ کي خیال ورته راغلی چي دا نفل دی او بیا په نیت کولو سره یې نفل لمونځ پوره کړ، نو په دغه صورت کي د هغه فرض لمونځ ادا کیږي ځکه چي د لمانځه په مینځ کي شبه واقع کېدل معتبر نه دي، په دې اړه په کتاب اشتباه کي د نهایه څخه داسي منقول دي.

**مسئله**: ځیني عبادتونه داسي دي چي په هغه کي یوازي په زړه سره نیت کول کافي نه دي تر څو پوري چي په ژبه سره هم نیت ونه کړل سي مثلا نذر، که یو سړی د نذر لمونځ کوي یا روژه نیسي او نیت یوازي په زړه سره وکړي نو داسي نذر نه ادا کیږي تر څو پوري چي په ژبه سره ونه وایي چي دومره لمنځونه د نذر زما پر ذمه دي، یا دومره روژې پر ما نیول پکار دي یا مثلا وقف، یو سړی هم خپل ملکیت د الله تعالی په لار کي وقف کوي نو که هغه یوازي په زړه سره نیت وکړي چي زما فلانی شی د الله تعالی په لار کي وقف دی، نو دا وقف به معتبر نه وي تر څو پوري چي هغه په ژبه سره ادا نه کړي چي زه دغه شی د الله تعالی په لار کي وقف کوم.
د عبادت څخه پرته ځیني شیان داسي دي چي په هغه کي په زړه سره د نیت کولو هیڅ اعتبار نسته بلکه د هغه په ژبه سره د ویلو اعتبار به وي او یوازي په ژبه سره ویل به کافي او ضروري وي.

**مسئله**: که یو سړی یو شی د ځان د استعمال لپاره رانیسي، مثلا مینځه یې د خپل خدمت لپاره رانیول، یا یو حیوان یې د خپل سپرلۍ لپاره رانیوی یا جامه یې د خپل اغوستلو لپاره رانیول یا د ویلو لپاره یې کتاب رانیوی او په زړه کي یې دا خیال هم دی چي که چیري د دغه شیانو بیه زیاته په لاس راسي او ګټه وسي نو زه به دا خرڅ کړم نو په داسي صورت کي به پر هغه شیانو باندي زکوة نه وي.

**مسئله**: یو سړي د رمضان د میاشتي لیدو پلټنه ونه کړای سول، په سبا کي هغه ته شک سو چي ایا نن روژه ده او که یا، نو اوس هغه نیت کوي که چیري نن د رمضان لومړۍ ورځ وي نو زما روژه ده او که د شعبان آخري ورځ وي نو روژه مي نه ده، نو د روژې لپاره به د هغه دغه نیت

صحیح نه وي ، هو که چیري هغه ته د روژې په وصف کي شک وي یعني هغه داسي نیت وکړي چي که چیري نن د شعبان ورځ وي نو د نفل روژې نیت کوم او که د رمضان ورځ وي نو د فرض روژې نیت کوم نو داسي نیت معتبر او صحیح دی ، که چیري هغه ورځ د رمضان وي نو د هغه فرض روژه به ادا سي .

**مسئله:** د یو مباح کار وصف د نیت په اعتبار او قصد سره مختلف وي ، که چیري یو مباح د اطاعت په نیت وکړل سي نو هغه مباح هم په اطاعت کي شامل دی، مثلاً خوړل ، بېده کېدل. د حلال مال گټه، یا د خپل بي بي سره کوروالي کول، نو په دغه کارونو کي چي کوم کار مباح وي نو د هغه د کولو په وخت کي د عبادت او د الله تعالی د اطاعت او رضا نیت وکړل سي نو دغه مباح شیان عبادت گرځي او پر هغه ثواب تر لاسه کیږي، مگر که چیري په یو مباح کار کي د اطاعت او د الله د رضا نیت نه کوي نو بیا پر هغه ثواب نسته .

**مسئله:** یو سړي خپل ښځي ته په کنایه الفاظو سره طلاق ورکوي نو په هغه کي د نیت اعتبار کیدای سي یعي که چیري د هغه نیت د طلاق وو نو طلاق به واقع سي او که د طلاق نیت یې نه وو نو طلاق به نه واقع کیږي او که چیري په صراحت سره د طلاق الفاظ ادا کوي نو بیا په هغه کي د نیت ضرورت نسته او طلاق بیله نیته واقع کیږي .

**مسئله:** د جنابت په حالت کي د قرآن کریم تلاوت کول بیله اراده یوازي د ذکر په نیت سره ویل صحیح دي، مگر په ارادې سره بیله نیته تلاوت صحیح نه دی بلکه حرام دی .

**مسئله:** که چیري د تجارت نیت په داسي چاپیریال کي وکړي چي د مځکي حاصلات دي نو که هغه مځکه عشري وي یا خراجي یا د کرائې وي یا عاریتا وي نو په داسي مال کي زکوة نه واجب کیږي .

**مسئله:** د تجارت نیت که یو سړی په داسي جنس کي کوي چي هغه ته د یو مال د عوض څخه پرته تر لاسه سوی وي مثلاً یو چا هغه ته تحفه کړی وي یا صدقه یې ورکړې وي یا هغه ته د خلع یا مهر په ذریعه تر لاسه سوی وي نو په هغه کي زکوة نه واجب کیږي که څه هم چي پر هغه کال تیر سي ، مگر هر کله چي هغه مال خرڅ سي او د هغه په عوض کي یو بل شي تر لاسه سي که هغه د نقدو په صورت کي وي یا د جنس په صورت کي وي نو پر هغه بندي د کال په تیریدو سره زکوة واجب کیږي .

**مسئله:** د یو سړي په ملکیت کي داسي حیوانان وي چي د کال اکثر برخه په ځنگل کي پیول

کیږي نو که د هغه حیوانانو څخه مقصد شیدې او یا بچي تر لاسه کول وي نو په هغه کي د حیوانانو زکوة واجب کیږي او که په هغه حیوانانو کي د تجارت نیت وي نو په هغه به د تجارت زکوة وي په دې شرط چي کله هغه حیوانان رانیول نو د تجارت نیت یې پکښې کړی وو ځکه د هغه حیوانانو رانیولو په وخت کي د هغه نیت د سپرلۍ وغیره وي نو بیا په هغه کي زکوة واجب نه دی.

**مسئله**: که یو سړی په خوښۍ سره زکوة نه ورکوي نو زکوة اخیستونکی ته کوم چي د امام یا خلیفه د خوا ټاکل سوی وي د هغه څخه په زور زکوة اخیستلو حق نه لري که چیري هغه په زور سره زکوة تر لاسه کړ نو زکوة نه ادا کیږي ځکه چي په زکوة کي اختیار شرط دی، مګر هغه سړی چي په خپله زکوة نه ورکوي نو زکوة اخیستونکی بندي کولای سي چي هغه په زکوة ورکولو باندي راضي او زکوة په خپله ادا کړي.

د ځینو روایتو څخه دا هم څرګندیږي چي حاکم دي په زور سره زکوة تر لاسه کړي او هغه دي د زکوة په مصرف کي خرڅ کړي نو زکوة ادا کیږي مګر داسي روایتونه ضعیف دي، معتمد او معتبر روایت دادی چي په زور زکوة اخیستلو سره زکوة نه ادا کیږي.

**مسئله**: د جمعې د خطبې لپاره نیت ضروري دی که یو سړی د خطبې لپاره پر منبر ودریدی او د دریدو وروسته هغه ته ترچی راغلی او الحمدلله یې وویل نو دا الحمدلله ده د ترچي لپاره ویلې ده او د خطبې نیت یې نه دی کړی ځکه هغه به په خطبه کي نه شمیرل کیږي.

همداسي د اخترونو په خطبه کي هم نیت ضروري دی که په اخترونو کي پر منبر باندي د دریدو سره د الله تعالی حمد او ثناء یې بیان کړه نو خطبه نه ادا کیږي تر څو پوري چي د خطبې نیت ونه کړي.

**مسئله**: یو سړی د انګورو تجارت کوي چي د هغه څخه شراب جوړیږي که چیري د هغه نیت یوازي د تجارت وي او د هغه مقصد د تجارت څخه دا نه وي چي هغه ددې څخه شراب جوړ کړي نو دا تجارت به صحیح وي او که د هغه نیت دا وي چي د هغه څخه شراب جوړ کړل سي نو دا تجارت به حرام وي. همداسي که یو سړی د انګورو تاکونه ولګوي او د هغه نیت داوي چي خلک به انګور وخوري یا د انګورو تجارت به کوم نو دا صحیح دی او که هغه د انګورو تاکونه په دې نیت سره لګولي وي چي ددې څخه به شراب جوړیږي نو دا به حرام وي.

**مسئله**: یو سړی د یو مسلمان سره د ناراضګۍ او یا جنګ په وجه ملاقات نه کوي نو دا د هغه لپاره حرام دی مګر که چیري د هغه ملاقات نه کول په دې وجه وي نه وي نو که ډیر وخت هم

ملاقات ونه کړي نو څه پرواه نه لري.

**مسئله:** که چیري یوه ښځه د خپل خاوند څخه پرته د بل مړي د ماتم او غم په وجه د درو ورځو څخه زیات زیب او زینت او سنګار کول پریږدي نو دا د هغې لپاره حرام دی، مګر که دا مقصد نه وي بلکه هسې یې سنګار کول پرې ایښې وي نو څه پرواه نسته.

**مسئله:** د یو مړي په وجه مباح (رواه) شیان پرېښودل مثلاً: څرخه نه کول، دال نه پریول، پر کټ باندي نه بېدېدل یا تر څلوېښتې پوري واده، نکاح، عقیقه، او داسي نور نه کول، نو دا ټول صرف رسمونه دي چي داسي کول حرام دي البته د هغه په پرېښودلو کي که دا نیت نه وي بلکه د یو بل شي په وجه یا همداسي د هغه څخه پرهیز وکړل سي نو څه پرواه نسته، مګر په نکاح او واده کي په هیڅ ډول سره تاخیر (زنډ) کول مناسب نه دی ځکه چي دا یو سنت کار دی او سنت چي څومره ژر اداسي هغومره ښه دی او د ثواب باعث دی.

**مسئله:** د جنازې د لمانځه نیت داسي کیږي چي زه د جنازې لمونځ د الله تعالی لپاره او د عاء ددغه مړي لپاره کوم.

**مسئله:** په سجده تلاوت کي تعین کول چي دا د فلاني تلاوت سجده ده ضروري نه ده.

**مسئله:** د مقتدي لمونځ د امام د نیت څخه پرته نه صحیح کیږي، مګر امامت پرته د نیت څخه صحیح کیږي یعني که یو سړی په یو امام پسي لمونځ کوي نو د هغه لپاره ضروري ده چي هغه د امام د اقتداء نیت وکړي، ددې څخه پرته د هغه لمونځ نه صحیح کیږي مګر د امام لپاره ددې ضرورت نسته چي هغه دي د مقتدي د امام نیت وکړي، هو که چیري امام ته معلومه وي چي تر شا ښځي هم زما په اقتداء کي لمونځ کوي نو بیا د هغه لپاره ضروري ده چي هغه د ښځو د امامت نیت وکړي که امام د ښځو د امامت نیت ونه کړ نو د ښځو لمونځ نه صحیح کیږي. ځیني علماؤ د جمعې او اخترونو لمونځ ددې حکم څخه ایستلی دی یعني که چیري امام د جمعې او اخترونو په لمانځه کي د ښځو د امامت نیت ونه کړي نو د ښځو اقتداء صحیح ده او د هغوئ لمونځ ادا کیږي.

**مسئله:** یو سړي قسم وکړ چي زه به د چا امامت نه کوم، هغه لمونځ پیل کړ وروسته یو سړی راغلی او د هغه په اقتدائ کي یې لمونځ پیل کړ نو د هغه اقتداء صحیح ده او لمونځ یې ادا کیږي، او س پاته سو د قسم سوال چي ایا هغه مات سو که یا، نو د هغه قسم خو قضاءً مات سو مګر دیانةً مات نه سو، یعي قاضي به د هغه د قسم ماتولو حکم کوي مګر عندالله به هغه ګناه

کار نه وي او که هغه سړی د لمانځه څخه مخکي يو څوک پر خپل قسم شاهد جوړ کړ نو بيا قضاءً هم نه ماتيږي ، که هغه قسم اخيستونکی سړی د جمعې په لمانځه کي د خلکو امام جوړ سو نو لمونځ به صحيح سي مګر قضاءً د هغه قسم مات سو ، که دغه سړی د جنازې د لمانځه امامت وکړ نو قسم بالکل نه ماتيږي همداسي په سجده تلاوت کي هم نه ماتيږي .

يو سړی قسم وکړ چي زه به د فلاني سړي امام نه جوړيږم ، په لمانځه کي د نورو خلکو امامت يې وکړ او نيت يې دادی چي د هغه سړی امام نه يم بلکه د نورو خلکو امام يم مګر هغه سړی دده په قسم خبر نه دی او د هغه اقتداء يې وکړه نو د هغه امام قسم به مات سي که څه هم هغه اقتداء د هغه په ناخبرۍ کي کړې وي .

**مسئله**: د تحفې لپاره نيت شرط نه دی که يو سړي يو چا ته د مخصرو په توګه يو شی و بخښي نو هغه شی به د هغه ملکيت سي او تحفه به صحيح سي .

**مسئله**: که يو چا يو ناخبر سړي ته د بخښني الفاظ وښودل او هغه ته معلومه نه وه چي په دغه الفاظو سره تحفه کيږي نو که هغه سړي د هغه الفاظو تلفظ وکړي نو داسي تحفه به نه صحيح کيږي، مګر د تحفې نه صحيح کېدل په دې وجه نه دي چي دلته نيت نه وو بلکه ځکه چي دلته د تحفې شرط مفقود دی او هر کله چي شرط نه وي نو تحفه هم صحيح نه سول او د تحفې شرط خوښي او رضامندي ده .

**مسئله**: که يو سړي د يو چا سره زور وکړ چي فلانی شی ما ته راکړه او په زور يې د هغه څخه واخيستي نو دغه تحفه به هم نه صحيح کيږي ، په خلاف د طلاق او عتاق چي په زور سره هم طلاق او عتاق صحيح کيږي يعني که د يو چا څخه په زور طلاق واخلي نو طلاق به واقع سي (عتاق، د مينځو او مريانو آزادلو ته وايي ) .

**مسئله**: د جنازې په لمانځه کي که مقتدی سورة فاتحه د ذکر په نيت سره ووايي نو دا حرام کار نه دی ، که څه هم د امام اعظم رحمة الله عليه په نزد په امام پسي د مقتدي قرائت ويل حرام دی، مګر دلته هغه سورة فاتحه د قرائت په نيت نه وايي بلکه د ذکر په نيت يې وايي ځکه نو پر هغه د حرمت حکم نسي کيدلای، همداسي دا مسئله هم پر دې بناء ده که يو جنب سړی يا ښځه يا حيض او نفاس والا ښځه د قرآن کريم آيت د ذکر او دعاء په اراده ووايي نو صحيح دی او که چيري د قرائت په اراده يې ووايي نو دا صحيح نه ده .

**مسئله**: يو سړی د يو شي رانيولو لپاره دوکان ته راغلی دوکاندار خپل سامان مثلا تو کر يا د

غلې بورۍ وغیره د هغه په مخکې خلاص کړل او هغه خریدار ته د شوق ورکولو لپاره د خپل سَامان په لېدو سره سبحان الله وویل یا درود شریف یې ووایه نو دا مکروه دی.

**مسئله**: یو سړی د خپل معمولي خوراک څخه زیات خوراک کوي نو که چیري دده زیات خوراک د نفساني خواهش په وجه وي نو دا مناسب نه دی هو که چیري دی په دې نیت سره زیات خوراک وکړي چي سبا روژه نیسم یا د هغه مقصد دا وي چي زما سره کوم میلمه خوراک کوي هغه هم زما په ډول زیات خوراک وکړي او وږی پاته نسي نو دا مستحب دی.

**مسئله**: یو مسلمان د سپر جوړولو لپاره یو کافر مخته ودروي، یو بل مسلمان چي د کافر سره په مقابله کي دی غشي ولي نو د هغه څخه که دده اراده د مسلمان قتل وي نو دا حرام دی او که د هغه مقصد د هغه کافر هلاک کول وي نو دا حرام نه دی.

**مسئله**: که یو سړی په لاره کي یو شی پیدا کړي، نو که چیري هغه سړی دغه شی په دې نیت پورته کړي چي د هغه مالک په لټولو سره به یې ورکړي او که په دې نیت یې پورته کړی چي د هغه مالک ته به یې نه ورکوم بلکه د ځان سره به یې ایږدم نو دا ناجائز دی او دغه سړی د هغه شي په اخیستلو سره غاصب او ګناه کار دی.

**مسئله**: که یو څوک کتاب د ساتني په نیت تکیه جوړوي نو دا مکروه نه دی او که د ساتني نیت نه وي دا مکروه دی.

**مسئله**: که یو سړی پر خورجین [۲] باندي کښېنستی او په هغه کي قرآن کریم وو، نو که چیري هغه سړی د قرآن کریم د ساتني په نیت پر هغه کښیني نو دا مکروه نه دی او که د ساتني نیت نه وي نو دا مکروه دی.

**مسئله**: یو سړی خوراک پرېږدي د هغه دغه خوراک پرېښودل که د پرهیز او دواء په وجه وي یا دا چي هغه ته خواهش او لوږه نسته نو ځکه یې خوراک پرېښودی نو په دغه صورتو کي به د ثواب مستحق نه وي او که چیري هغه د روژې په اراده خوراک پرېښودی نو پر دې به هغه ته ثواب ورکول کیږي.

**مسئله**: یو سړی که په مسجد کي یوازي د آرام لپاره ناست وي نو پر دې هیڅ ثواب نسته او که د لمانځه د انتظار په نیت یا د اعتکاف په نیت ناست وي نو پر دې ثواب سته.

[۲] خورجین هغه کڅوړي ته وایي چي په هغه کي غلداچول کیږي او پر آس یا خره باندي اېښودل کیږي.

**مسئله:** يو حيوان که يوازي د خوراک په نيت حلال کړل سي نو دا به مباح کار وي مګر که هغه حيوان د عبادت په نيت ذبح کړل سي مثلا قرباني وغيره نو د ثواب باعث دی، او که يو حيوان د مړي يا ژوندي سړي د تعظيم په نيت حلال کړل سي نو دا حرام بلکه د يو قول سره سم کفر دی.

**مسئله:** په لمانځه کي د رکعتونو شمير او د سجدو د شمير نيت ضروري نه دی او نه به د هغه نيت اعتبار وي مثلا يو سړی د ماپښين لمونځ کوي او نيت کوي چي زه د ماپښين درې رکعته لمونځ کوم نو د هغه د ماپښين لمونځ صحيح کيږي او د درو رکعتو نيت به لغو سي.

**مسئله:** که يو ثوک د يو ټاکلي امام د اقتداء نيت وکړي مګر وروسته هغه ته معلومه سوه چي دا هغه امام نه دی بلکه بل امام دی نو لمونځ صحيح کيږي په دې کي څه پرواه نسته.

**مسئله:** که يو چا امام وليدی او د اقتداء نيت يې وکړ چي زه په دغه امام پسي چي دده نوم زيد دی لمونځ کوم مګر وروسته معلومه سوه چي دا زيد نه دی نو بيا هم لمونځ صحيح دی. دغسي مقتدی د امام څخه ډېر ليري دی چي امام نسي ليدلای او نيت داسي وکړي چي په امام پسي چي د هغه نوم زيد دی لمونځ کوم ليکن وروسته ورته معلومه سول چي هغه زيد نه دی نو بيا هم لمونځ صحيح دی.

**مسئله:** يو سړي نيت وکړ چي زه په دغه زلمي پسي لمونځ کوم مګر هغه سپين ږيری وو نو لمونځ نه صحيح کيږي البته که ددې برعکس وي چي نيت خو د سپين ږيري وکړي مګر هغه ځوان وي نو لمونځ صحيح کيږي ځکه چي زلمي ته هم په اعتبار د هغه د علم او فضل او بزرګۍ شيخ ويل کيږي پر خلاف د سپين ږيري چي د هغه لپاره د زلمي لفظ نسي استعماليدلای.

**مسئله:** يو سړي خاص د الله تعالی لپاره لمونځ پيل کړ، په مينځ کي د ريا خيال پيدا سو نو د هغه لمونځ د لومړني نيت سره معتبر وي، ريا داده چي که چيري يوازي وي نو لمونځ نه کوي او که د خلګو سره وي نو لمونځ کوي. يا همداسي که يوازي لمونځ کوي نو په ښه ډول يې نه کوي او که د خلکو سره وي نو لمونځ په ښه ډول سره کوي، په هر حال هغه ته به د اصل لمانځه ثواب ورکول کيږي مګر د حسن نماز ثواب به نه ورکول کيږي.

**مسئله:** که چا ته د لمانځه په اړه شک سو چي لمونځ يې کړی دی يا نه، نو هغه ته په وخت کي دننه دوهم وار لمونځ کول پکار دي او که شک واقع سي چي رکوع يا سجده يې کړې ده يا نه، او هغه د لمانځه په حالت کي دی نو هغه ته پکار ده چي رکوع يا سجده دوهم وار وکړي او که دا شک د لمانځه څخه وروسته وسي نو د ويم وار کولو ضرورت نسته.

یا داسي شک پیدا سو چي خبر نه دی چي تکبیر تحریمه یې ویلې ده او که نه، یا اودس یې ستة که یا، یا یې شک پیدا سو چي پر جامو یې نجاست لویدلی دی که یا، یا داسي تردد پیدا سو چي پر سر باندي یې مسح کړې ده که یا، نو په دغه ټولو صورتونو کي به د شک واقع کېدل په لومړني وار دي یا په څو څو واره داسي شک پیداکیږي ، که چیري په لومړي ځل شک ورته پیدا سوی وي نو لمونځ د سره بیرته وکړي او که دغه شک زیات وختونه ورته پیدا کیږي نو دوهم وار د لمانځه کولو ضرورت نسته .

**مسئله**: د یو معصیت او ګناه صرف په زړه کي د خیال راتلو پنځه درجې دي :

۱. هاجس : یعني په زړه کي د یو ګناه خیال اضطرارا راتلل .
۲. خاطر : یعني په زړه کي د یو ګناه خیال قصدا راتلل .
۳. حدیث نفس: یعني د یو ګناه په باره کي تردد کېدل چي ایا دا ګناه وکړي او که یا .
۴. هم : یعني په دغه تردد کي یو جانب ته ترجیح ورکول .
۵. عزم : یعني د ګناه قصد ته تقویت ورکول .

نو په شریعت کي پر هاجس، خاطر او حدیث نفس باندي هیڅ مؤاخذه (نیول) نسته، او نه به ورته څه عذاب ورکول کیږي، پر هاجس باندي که څه هم مؤاخذه نه وي چي په زړه کي د خیال راتلل یا په زړه کي وسوسه پیداکېدل د انسان په اختیار کي نه دی بلکه په دې اړه انسان مجبور دی نو ځکه پر هغه مؤاخذه نسته .

پر خاطر او حدیث نفس باندي مؤاخذه نه کېدل د امت محمدیه د ځانګړتیاوو څخه دی یعني پر دې امت باندي د الله تعالی چي کوم نور ډیر فضل او کرم دی نو د هغه سره دا هم یو لوی فضل دی چي پر دې امت باندي پر دغه دواړو مؤاخذه ختم کړل سوې ده .

په (هم) کي فرق دی یعني که چیري د خیر طرف ته ترجیح ورکوي نو پر هغه به یوه نیکي لیکل کیږي او که بدۍ ته ترجیح ورکوي نو پر هغه به مؤاخذه نه وي دا هم پر دې امت باندي د الله تعالی احسان دی .

د عزم په باره کي د محققینو علماؤ قول دادی چي پر دې به مؤاخذه (نیوکه) کیږي .

بسم الله الرحمن الرحیم

# کِتَابُ الاِیْمَانِ

## (د ایمان بابونه)

**د ایمان مطلب** : د ایمان معنا ده یقین کول، تصدیق کول او منل، د شریعت په اصطلاح کي د ایمان مطلب دا دی چي دا حقیقت تسلیمول او منل چي الله ﷻ یو دی د هغه څخه پرته هیڅ معبود او پروردګار نسته د هغه ټول ذاتي او صفاتي کمالات پر حق دی، محمد ﷺ د الله تعالی آخري رسول او نبي دی د هغوئ ذات صادق او مصدوق دی او دا چي د رسول الله ﷺ د کتاب او سنت په صورت کي د الله آخري دین او شریعت سره دې دنیا ته راغلی دی د هغوئ حقانیت او صداقت د شک او شبهې څخه ډیر لیري دی .

**تکمیل ایمان** : د محدثینو په نزد د ایمان درې اجزاء دي :

۱. تصدیق بالقلب : یعني د الله تعالی وحدانیت، د رسول الله ﷺ رسالت او ددین په حقانیت کي په زړه سره یقین درلودل او پر هغه یقین او اعتماد باندي د زړه او دماغ مطمئن کېدل .

۲. اقرار باللسان : یعني د زړه د یقین او اعتماد په ژبه سره اظهار، اعتراف او اقرار کول .

۳. اعمال بالجوارح : یعني د دین او شریعت د احکامو او هدایاتو د بدن په ذریعه د زړه یقین او عقیدې عملي ښکاره کول .

ددغه درو اجزاؤ په یو ځای کېدو سره د ایمان تکمیل کیږي او کوم سړی چي ددغه ایمان لرونکی وي هغه ته مؤمن او مسلمان ویل کیږي .

**ایمان او اسلام** : ایا په ایمان او اسلام کي فرق سته او که دواړه لفظونه یو ډول دي؟ ددې سوال تفصیلي جواب د تفصیلي بحث متقاضي دی چي د هغه بحث دلته موقع نسته ، د خلاصې په توګه دومره ښودل بس دي چي د ظاهري مفهوم او مصداق په اعتبار سره دواړه لفظونه تقریبا یو ډول مفهوم لپاره استعمالیږي مګر په دې اعتبار سره چي ددغه دواړو په مینځ کي فرق دی چي د ایمان څخه په عامه توګه باندي تصدیق قلبي او احوال باطني مراد اخیستل کیږي ، دې ته داسي هم ویل کیدلای سي چي وحدانیت، رسالت او د شریعت منلو او تسلیم کولو چي کوم باطني تعلق د زړه او دماغ سره قائم دی دا په ایمان سره تعبیر کوي ، د یو محقق عالم قول دی چي د تصدیق قلبي په خپریدو سره پر اندامونو باندي څرګند سي نو ددې نوم اسلام دی او

اسلام چي زړه ته کښته سي نو د ایمان په نامه سره ونومول سي، خلاصه دا چي حقیقت یو دی د مواطنو په اعتبار سره دې ته کله ایمان ویل کیږي او کله اسلام، ځکه ایمان او اسلام د یو بل لپاره لازم او ملزوم دي نه ایمان بیله اسلامه معتبر وي او نه د اسلام څخه پرته د ایمان تکمیل کیږي، مثلا یو سړی پنځه وخته لمونځ هم کوي، هر کال زکوة هم ادا کوي، که توان یې وي نو حج هم کوي او په داسي نورو نیکو کارونو سره یې خپل ظاهري ژوند د اسلام مظهر جوړ کړی وي مګر د هغه باطن د قلبي تصدیق او انقیاد څخه بالکل خالي وي او د کفر او انکار څخه ډک وي نو د هغه دغه ټول اعمال بیکاره دي، همداسي که یو سړی ایمان یعني قلبي تصدیق او انقیاد خو لري مګر په عملي ژوند کي د اسلام مظهر کېدو پر ځای د سرکښۍ او نافرمانۍ ښکارندوی او د کافرانه او مشرکانه اعمالو مجسمه جوړیږي نو د هغه ایمان به د باور وړ نه وي.

ځینو د نظر خاوندانو د ایمان او اسلام مثال د شهادتینو سره ورکړی دی یعني څرنګه چي په کلمه شهادت کي لیدل کیږي چي شهادت وحدانیت بیل دی او شهادت رسالت بیل دی، مګر ددغه دواړو ارتباط او اتحاد ددې درجې دی چي د رسالت د شهادت څخه پرته شهادت د وحدانیت بیکاره دی او د شهادت وحدانیت څخه پرته د شهادت رسالت اعتبار نسته، همداسي ایمان او اسلام ته چي وکتل سي نو په ځیني اعتبار سره فرق محسوس کیږي مګر د دواړو ارتباط او اتحاد ددې درجې دی چي د اعتقاد باطني (یعني ایمان) څخه پرته یوازي اعمال ظاهره (اسلام) څرګندول نفاق وي او د اعمال ظاهره څخه پرته اعتماد باطن د کفر یو صورت دی ځکه ویل کیږي چي د ایمان او اسلام د دواړو د مجموعې نوم (دین) دی.

## د ایمان دار او مدار پر پوهېدلو نه بلکه پر منلو دی

د ایمان په اړه دا حقیقت هم په ذهن کي ساتل پکار دي چي تصدیق یعني د منلو نوم ایمان دی نه چي محض علم یا معرفت، یعني پیژندل، مطلب دا چي یو سړی پوهیږي چي الله ﷻ سته او یوازي یو دی هغه پروردګار او معبود دی، محمد ﷺ د الله تعالی ریښتونی بنده او د هغه رسول دی، هغه ﷺ چي کوم دین شریعت او تعلیمات دنیا ته راوړي دي هغه مبني پر صداقت او حقیقت دي مګر هغه سړی په زړه سره دا خبره نه مني او پر دې اعتماد نه لري، د هغه زړه ددغه خبرو د قبلولو څخه خالي دی نو په هغه سړي کي به د ایمان وجود نه منل کیږي او هغه ته مؤمن نه ویل کیږي، مؤمن خو هغه سړی کیدلای سي چي دغه خبري ریښتیا او حق وګڼي او په زړه سره یې ومني او تسلیم یې هم کړي، کله چي داعي حق ﷺ د اسلام بلنه وړاندي کړل نو ټولو اهل

عرب په خاصه توګه اهل کتاب يهود او نصارا د الوهيت قائل هم وه او په دې خبره هم ښه پوهېدل چي محمد ﷺ د الله تعالى رېښتونى او آخري رسول دى او کوم دين او شريعت چي وړاندي کوي هغه هم حق او رېښتونى دى مګر په دوئ کي چي کومو خلکو د حسد او عناد په سبب دغه حقيقتونه نه تسليمول او د هغوئ په زړه او دماغ کي ايمان داخل نه سو او هغوئ پر کفر پاته سول نو په دغه حقيقتونو پوهېدل د هغوئ په کار نه راغلل.

## په ځينو صورتو کي د اقرار باللسان قيد ضروري دى

کوم حقائق چي په ايمان سره تعبير کيږي د هغو په ژبه سره اقرار کول که څه هم د وجود ايمان لپاره ضروري دي مګر په ځينو حالتونو کي ژبنى اقرار (اقرار باللسان) ضروري نه وي مثلاً يو سړى ګونګى دى او د هغه په زړه کي تصديق خو موجود وي مګر په ژبه سره د لفظ ادا کولو توان نه لري نو د داسي سړي په باره کي دا حکم دى چي د هغه ايمان به د ژبني اقرار څخه پرته هم معتبر ګڼل کيږي، همداسي يو سړى د ځان د بيري يا د يو مجبورۍ په وجه په ژبه سره د خپل ايمان اقرار نسي کولای نو د هغه ايمان به هم د ژبني اقرار څخه پرته معتبر وي.

**د اعمالو حيثيت** : د ايمان د وجود د تکميل (پوره والي) لپاره اعمال هم لازمي شرط دى ځکه چي د زړه تصديق او د ژبي تصديق د صداقت د ثبوت (عملونو) واقعي ثبوت اعمال دي، دغه عملي ثبوت په ظاهري ژوند کي د دې فيصلي بنياد جوړيږي چي هغه ته مؤمن او مسلمان وويل سي، له دې کبله دا حکم دى که يو سړى د ايمان او اسلام د دعوې سربيره داسي اعمال کوي چي د کفر علامت او د ايمان او اسلام خلاف وي يا د هغه په اختيارولو سره د کافر کېدو يقين کيږي نو هغه سړى به کافر ګڼل کيږي او د ايمان او اسلام دعوه به يې غير معتبر منل کيږي.

## الفصل الاول

### د جبرائيل عليه السلام حديث

﴿ ۱ ﴾: عَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ قَالَ بَيْنَمَا نَحْنُ عِنْدَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَاتَ يَوْمٍ إِذْ طَلَعَ عَلَيْنَا رَجُلٌ شَدِيدُ بَيَاضِ الثِّيَابِ شَدِيدُ سَوَادِ الشَّعَرِ لَا يُرَى عَلَيْهِ أَثَرُ السَّفَرِ وَلَا يَعْرِفُهُ مِنَّا أَحَدٌ حَتَّى جَلَسَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَسْنَدَ رُكْبَتَيْهِ إِلَى رُكْبَتَيْهِ وَوَضَعَ كَفَّيْهِ عَلَى فَخِذَيْهِ وَقَالَ يَا مُحَمَّدُ أَخْبِرْنِي عَنِ الْإِسْلَامِ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْإِسْلَامُ أَنْ تَشْهَدَ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللّٰهُ وَأَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَتُقِيمَ الصَّلَاةَ وَتُؤْتِيَ الزَّكَاةَ وَتَصُومَ رَمَضَانَ وَتَحُجَّ الْبَيْتَ إِنِ اسْتَطَعْتَ إِلَيْهِ سَبِيلًا قَالَ صَدَقْتَ قَالَ فَعَجِبْنَا لَهُ يَسْأَلُهُ وَيُصَدِّقُهُ قَالَ فَأَخْبِرْنِي عَنِ الْإِيمَانِ قَالَ أَنْ تُؤْمِنَ بِاللّٰهِ وَمَلَائِكَتِهِ وَكُتُبِهِ وَرُسُلِهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ وَتُؤْمِنَ بِالْقَدَرِ خَيْرِهِ وَشَرِّهِ قَالَ صَدَقْتَ قَالَ فَأَخْبِرْنِي عَنِ الْإِحْسَانِ قَالَ أَنْ تَعْبُدَ اللّٰهَ كَأَنَّكَ تَرَاهُ فَإِنْ لَمْ تَكُنْ تَرَاهُ فَإِنَّهُ يَرَاكَ قَالَ فَأَخْبِرْنِي عَنِ السَّاعَةِ قَالَ مَا الْمَسْئُولُ عَنْهَا بِأَعْلَمَ مِنَ السَّائِلِ قَالَ فَأَخْبِرْنِي عَنْ أَمَارَتِهَا قَالَ أَنْ تَلِدَ الْأَمَةُ رَبَّتَهَا وَأَنْ تَرَى الْحُفَاةَ الْعُرَاةَ الْعَالَةَ رِعَاءَ الشَّاءِ يَتَطَاوَلُونَ فِي الْبُنْيَانِ قَالَ ثُمَّ انْطَلَقَ فَلَبِثْتُ مَلِيًّا ثُمَّ قَالَ لِي يَا عُمَرُ أَتَدْرِي مَنِ السَّائِلُ قُلْتُ اللّٰهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ قَالَ فَإِنَّهُ جِبْرِيلُ أَتَاكُمْ يُعَلِّمُكُمْ دِينَكُمْ (رواه مسلم)

د حضرت عمر بن خطاب رضي الله عنه څخه روايت دى چي يوه ورځ موږ د رسول الله ﷺ په خدمت كي وو چي ناڅاپه يو كس را څرګند سو چي وربښتان يې تك تور وه اوتكي سپيني جامې يې اغوستي وې د سفر څه نښې پر نه وې او نه په موږ كي هغه چا پيژندى هغه د رسول الله ﷺ د زنګنو مباركو سره خپل زنګنونه جخت كړه او كښيې يې ښودل خپل دواړه لاسونه پر خپلو ورنو او كښېناست او وه يې ويل اې محمدﷺ! ما د اسلام د حقيقت څخه خبر كړه، نبي كريم ﷺ ورته وفرمايل اسلام دادى چي ته ددې خبري اقرار او شاهدي وكړې چي د خداى ﷻ څخه پرته بل معبود نشته او محمدﷺ د خداى رسول دى، او بيا ته لمونځ ادا كړې زكوة وركړې د رمضان د مياشتي روژې ونيسې او كه ستا سره د لاري توښه وي نو د خانه كعبې حج وكړې ، هغه سړي ددې په اورېدو سره وويل تاسو رښتيا وفرمايل ، ددې په ليدو سره موږ حيران سو چي دا سړى پوښتنه هم كوي او تصديق هم كوي بيا هغه سړي پوښتنه وكړه د ايمان حقيقت را ته بيان كړه نبي كريم ﷺ ورته وفرمايل : ايمان دادى چي ته په الله، د هغه په ملائكو، د هغه په كتابو، د هغه په رسولانو، د قيامت په ورځي او د تقدير په خير او شر ايمان ولرې چي دا دالله د لوري

وَرَوَاهُ اَبُوْهُرَيْرَةَ مَعَ اِخْتِلاَفٍ وَفِيْهِ وَ اِذَا رَاَيْتَ الْحُفَاةَ الْعُرَاةَ الصُّمَّ الْبُكْمَ مُلُوْكَ الْاَرْضِ، فِيْ خَمْسٍ لَايَعْلَمُهُنَّ اِلَّااللّٰهُ ثُمَّ قَرَاَ : اِنَّ اللّٰهَ عِنْدَهُ عِلْمُ السَّاعَةِ وَيُنَزِّلُ الْغَيْثَ... الاية (متفق عليه)

دي . ددې په اوربدو سره هغه سړي وويل تاسو رښتيا وفرمايل. بيا يې پوښتنه وکړه د احسان په اړه را ته څه وفرماياست، نبي کريم ﷺ وفرمايل احسان دادی چې ته د خدای ﷻ داسې عبادت وکړې لکه ته چې هغه وينې او که ته هغه نه وينې نو هغه خدای ﷻ بيشکه تا ويني . بيا هغه سړي پوښتنه وکړه د قيامت په اړه مې خبر کړه، رسول الله ﷺ وفرمايل د قيامت په اړه زما علم د پوښتني کونکی د علم څخه زيات نه دی (يعني څومره چې ته په خبر يې هغومره زه هم خبر يم) بيا يې پوښتنه وکړه د قيامت څه نښې راته وښيه، رسول الله ﷺ وفرمايل : د قيامت د نښو څخه يوه داده چې وينځه خپل مالك زيږوي او دوهمه نښه داده چې لوڅ پښې او لوڅ بدني مفلس او فقير رمه څروونکي خلك به ته په لوړو او ښو ماڼيو کې د فخر او غرور ژوند تيرونکي ووينې . حضرت عمر ﵁ فرمايي چې ددې وروسته هغه سړی ولاړی او تر يو وخته پوري زه پټه خوله ناست وم بيا نبي کريم ﷺ ما ته وفرمايل اې عمره ! څه پوه سوې چې دا سړی څوك وو، ما عرض وکړ الله او د هغه رسول ښه پوهيږي نو نبي کريم ﷺ وفرمايل دا جبرائيل عليه السلام وو تاسو ته ستاسو ددين ښودلو لپاره راغلی وو. (مسلم) د ابوهريرة ﵁ څخه چې کوم حديث نقل سوی دی په هغه کې د څو الفاظو اختلاف دی يعني په هغه کې دا الفاظ دي چې هر کله ته لوڅې پښې لوڅ بدني کاڼه او گونگيان د مځکې پاچاهان ووينې (او دا الفاظ هم دي چې ) د پنځو خبرو علم يوازې خدای لره دی بيا نبي کريم ﷺ دا ايت تلاوت کړ : ان الله عنده علم الساعة و ينزل الغيث الخ . يعني د قيامت حال خدای ته معلوم دی (چې کله به وي) او دا هم خدای پاك ته معلومه ده چې باران به کله کيږي. دا آيت تر آخري پوري ولوستی بخاري او مسلم.

**تشريح**: دغه حديث ته حديث جبرائيل ﵇ ويل کيږي ځکه چې دغه حديث پر هغه سوال او جواب باندې مشتمل دی چې د هغه په ذريعه حضرت جبرائيل ﵇ په ډيره ښه طريقه سره د اسلام او ايمان حقيقت او ددين د بنيادي خبرو د پېژندګلوی طريقه د رسول الله ﷺ د ژبې مبارکې څخه د نړيوالو په وړاندې وفرمايل.

په حديث کې يې تر ټولو ترمخه د ايمان او اسلام حقيقت بيان کړی دی چې د هغه څخه د ايمان او اسلام دا فرق هم ثابتيږي چې د ايمان تړاو خو د باطن يعني د زړه د تصديق او اعتقاد سره وي او د اسلام تړاو د ظاهر يعني جسماني اعمالو د اطاعت او پيروی سره وي .

د (الله ﷻ د منلو) مطلب په دې خبره کي یقین او اعتقاد ساتل چي الله ﷻ په مختلفو دورونو کي او پر خپلو پیغمبرانو علیهم السلام کوم کتابونه نازل کړي دي چي د هغو شمیر یو سل او څلور دی هغه ټول د الهي کلام او احکامو او الهي فرمانو ټولګه ده او په هغو کي څلور کتابونه تورات، انجیل، زبور او قرآن کریم دي، او بیا په هغه څلورو کي تر ټولو لوړ او افضل قرآن کریم دی.

د (رسولانو دمنلو) مطلب پر دې خبره یقین او اعتقاد ساتل چي د اول نبي حضرت آدم ﷺ څخه تر خاتم النبیین حضرت محمد ﷺ پوري ټول نبیان او رسولان د الله تعالی رېښتوني تر ټولو محبوب او تر ټولو غوره بندګان دي چي هغوئ ته په خپل احکام او هدایات ورکولو سره په مختلفو زمانو ، مختلفو سیمو او مختلفو قومونو کي راولېږل ، او هغوئ د الله تعالی احکام او هدایات نړیوالو ته د ابدي صداقت او خلاصون لار ښودلو او د نیکۍ خپرولو خپله فریضه په پوره توګه سره ادا کړل، او دا چي ددغه ټولو نبیانو او رسولانو سردار پیغمبر آخر الزمان حضرت محمد ﷺ دی چي په یو خاص زمانه او په یو خاص سیمه او یو خاص قوم په لور نه دی لېږل سوی بلکه د الله تعالی ابدي دین (اسلام) سره ټولي نړۍ او پوره کائنات ته رالېږل سوی دی او تر قیامته پوري به د هغه ﷺ نبوت او شریعت جاري او نافذ وي.

د (یوم آخر) یعني د قیامت د ورځي څخه مراد هغه وخت دی چي د مرګ څخه وروسته قائمیږي او بیا په جنت کي د داخلېدو پوري مشتمل دی، د قیامت د ورځي منلو مطلب پر دې خبره یقین او عقیده درلودل دي چي شریعت او شریعت ښودونکی چي د مرګ څخه وروسته یې د اخرت په اړه ښودلي دي او دآخرت په باره کي چي څه ښودلي دي یعني د مرګ څخه وروسته راتلونکي احوال مثلا قبر، دوږخ، نفخ صور (د شپیلۍ پوه کول) قیامت، حشر او نشر، حساب او کتاب، بیا د جزا او سزا او جنت او دوږخ دا ټول حقیقتونه دي چي د هغو واقع کېدل او پېښېدل لازمي دي او په دې کي هیڅ شک او شبه هم نسته.

پر (تقدیر د ایمان لرلو) مطلب دا حقیقت په زړه سره منل دي چي په دغه کائناتو کي څه کیږي هغه ټول د لیکل سوي تقدیر سره سم پر خپل خپل وخت باندي کیږي ، نن چي کوم عمل واقع کیږي که هغه د نیکۍ وي او یا د بدۍ وي د خالق کائنات په علم او تقدیر کي د ازل څخه موجود دي مګر ددې دا مطلب نه دی چي بنده مجبور او مکلف دی ، د تقدیر کاتب انسان مختار پیدا کړی دی یعني د هغه په وړاندي د نیکۍ او بدۍ د دواړو لارو خلاصېدو سره هغه

ته اختيار ورکول سوی دی که غواړي د نیکۍ پر لار روان سي او که غواړي د بدۍ پر لار روان سي، او دا هم څرګنده سوې ده چي د نیکۍ پر لار ځي نو په جزاء او انعام به ونازول سي چي د الله تعالی فضل او کرم به وي، او که د بدۍ پر لار ځي نو د سزا او عذاب مستحق به سي او په دوږخ کي به واچول سي چي د الله ﷻ د عدل سره سم به وي.

د (احسان) څخه مراد هغه اخلاص دی چي په هغه سره د ایمان او اسلام ظاهري صورت یعني د الهي عبادت صحیح معیار او حسن قائمیږي او د عبادت دا صحیح معیار او حسن په حقیقت کي بنده ته د معبود کامل تقرب او د بندګۍ حقیقي مقام په برخه کوي، بنده خپل عبادات په دغه جوهر سره په ښڅنګه ادا او ښکلي کړي، ددې طریقه دا ښودل سوې ده چي هر کله تاسو د خپل پروردګار عبادت کوئ نو داسي یې کوئ لکه څرنګه چي یو مزدور یا غلام د خپل بادار او مالک په خدمت کي د هغه په خپل مخ کي لیدو سره کوي، دا یوه نفساتي نکته ده که شفیق بادار د نظر مخکي وي او غلام هغهویني نو د هغه د فرض د انجام کیفیت به بل وي، هغه وخت غلام نه یوازي دا چي په پوره توګه سره مؤدب او پابند وي بلکه د کار کولو او د هغه انداز هم په پوره توګه سره مخلصانه وي، ددې پر خلاف که د بادار تر نظر لاندي نه وي نو غلام که څه هم ورته فرمایل سوی خدمت سر ته رسوي مګر په دې صورت کي نه دومره ښه کار کوي او نه دومره مؤدب او پابند وي او نه د هغه د کار کولو په انداز کي دومره عاشقانه او مخلصانه مضبوطوالي کیفیت وي، نو ددې سره سم که بنده د عبادت په وخت کي داسي کیفیت او حالت تر لاسه کولو کي کامیاب سي چي هغه الله ﷻ ویني نو د خشوع او خضوع او د تضرع ټول کیفیات به په خپله د هغه په عبادت کي پیدا کیږي او د هغه عبادت د حقیقي عبادت درجه پیدا کوي، او د عبادت بنیادي مقصد هم حاصلوي، د عبادت دغه مرتبې ته حقیقي احسان ویل سوي دي چي ارباب تصوف یې په مشاهده او استغراق سره تعبیر کوي.

ښکاره ده چي د عبادت دا تر ټولو لوړه مرتبه او مقام دی چي هغه ته رسیدل دومره آسان نه دي ځکه نسبتا آسانه طریقه دا ښودل سوې ده چي هر کله تاسو عبادت کوئ نو دا خیال پکښي وساتئ چي د کوم ذات تاسو عبادت کوئ د هغه په مخکي ولاړ یاست او که تاسو هغه نسئ لیدلای نو هغه خو خامخا تاسو ویني ستاسو پر هره خبره د هغه نظر دی او ستاسو ټول حرکات او سکنات هم د هغه څخه پټ نه دي په دغه یقین او اعتقاد سره هم ستاسو په عبادت کي خشوع او خضوع او تضرع تر ډیره حده پوري پیدا کیږي او د عبادت حق ادا کیږي، په حدیث شریف

کي د عبادت دا کیفیت په احسان سره تعبیر کړل سوی دی چي حقیقي احسان یعني د مشاهده او استغفراق ثانوي (دوهمه) درجه ده.

په حدیث شریف کي ددغه څلورو فرضو هم ذکر سوی دی چي پر هر مسلمان او مؤمن باندي په دې تفصیل سره عائد کیږي چي لمونځ او روژه خو دوه بدني فرض عبادتونه دي چي د هغه تړاو د هر عاقل او بالغ مسلمان سره دی کوم سړی چي ایمان او اسلام سره متصف دی (یعني ایمانداره وي) که هغه سړی وي یا ښځه پر هغه فرض دي چي پنځه وخته لمونځونه په پابندي سره ادا کوي او هر کله چي رمضان راسي نو ددې میاشتي پوره روژې ونیسي، او پاته دوه نور فرض عبادتونه یعني زکوة او حج نو هغه مالي عبادتونه دي چي د هغه تړاو یوازي د هغه مؤمن او مسلمان سره دی چي د هغه مالي توان او حیثیت ولري مثلا زکوة پر هغه مسلمان فرض دی چي خاوند د نصاب وي او حج پر هغه مسلمان باندي فرض دی چي یوازي د نصاب خاوند نه وي بلکه خپل ټول ضروریات د ژوند څخه د فارغه کېدو وروسته دومره سرمایه لري چي پرته د یو تنګۍ او پریشانۍ د تګ راتګ او د سفر ټول مصرف برداشت کولای سي، او ددې څخه پرته د حج د سفر په ټول وخت کي به د خپل اهل او عیال او لواحقینو ټول ضروري اخراجات د نقدو په ډول یا سامان او اسباب هغوئ ته په ورکولو سره تللای سي (یعني د هغوئ د مصارفو توان هم ولري)، د لاري توښه او د فرضیت حج داسي نور فرایض پوره سي نو پاته مشکلات لکه د سفر اوږدوالی او د تکلیفو پېښېدل، په مینځ کي د سمندر یا دریاب حائل کېدل وغیره د حج فرضیت نسي ساقط کولای

د قیامت یو څو مهمي نښي ښودل سوي دي چي هر کله دغه آثار څرګند سي او دا نښي ولیدل سي نو پوهېدل پکار دي چي ددې عالم د ختمېدو وخت نژدې راغلی دی او دا دنیا د خپل وجود آخري دور څخه تیریږي، لومړنۍ نښه خو دا ښودل سوې ده چي مینځه خپل بادار وزیږوي.، ددې یو مطلب خو د غلامۍ په زمانه کي او د سیاق په رواج کي اخیستل کیدای سي چي خلک به ډیري مینځي ساتي او د هغو مینځو به اولادونه هم ډیر پیدا کیږي بیا د هغو د اولادو څخه کوم خلک چي په لوی کېدو سره د مال او جائیداد او حکومت او طاقت مالکان جوړ سي هغوئ به په ناخبري کي خپل هغه میندي چي د هغوئ څخه پیدا سوی وي د مینځو په توګه رانیسي او په خپل خدمت کي یې ساتي، ددې جملې دوهم مطلب دا هم کیدای سي چي هر کله په ټولنه کي جنسي اړیکي عامي سي، سړی او ښځه ټول اخلاق او انساني پابندۍ ماتولو

سره ناجائز تعلقات پیدا کړي او د هغه په نتیجه کي ناجائز ماشومان ډیر پیدا کیږي چي د هغوئ نه د پلار خبر وي او نه خپل مور پیژني او بیا هغه ماشوم په لوی کېدو سره په ناخبري کي خپل هغه میندي مزدوري جوړي کړي چي د هغوئ څخه پیدا سوی وو، نو پوه سئ چي قیامت نژدې راغلی دی.

د قیامت دوهمه نښه د لوڅو پښو او لوڅو بدنو، مفلس او فقیر او رمې پیونکو خلکو د حکومت او لوړو ماڼیو مالک کېدل ښودل سوې ده، ددې مطلب دا دی چي هر کله تاسو ووینئ چي شریف النسل، لوړه کورنۍ او معزز خلک د انقلاب عالم ښکاره کېدو سره د غربت او مفلسۍ او بې کارۍ کي اخته وي، خپل حیثیت او عزت یې د لاسه ورکړی دی او په ټولنیزه توګه باندي د اثر او رسوخ خاوند نه دي پاته سوي او د هغوئ په مقابله کي هغه خلک چي تر پرون پوري د حسب او نسب، شرافت او نجابت نسل او کورنۍ تهذیب او ښکلا په اعتبار ډیر بې حیثیته او بې عزته وه، په تعلیمي او اخلاقي توګه کم او تر شا ګڼل کېدل، د غیر منصفانه سیاست او انقلاب په وجه د حکومت او اقتدار خاوندان جوړ سوي دي د فریب او چم په ذریعه د مال او دولت او لوی لوی ماڼیو باندي قبضه کونکي او په لوړ او غوره ماڼیو کي هستوګن سوي دي نه یوازي دا بلکه طاقت او حکومت او د عیش څخه ډک ژوند هغوئ مغرور او متکبر جوړ کړي دي، د حقیقي شرافت او نجابت لرونکو غریب او مفلس خلکو هغوئ مخصرې کوي هغوئ ذلیل کوي او د هغوئ د تباهۍ او رسوائۍ د بدتر حالاتو پیدا کولو هڅه کوي نو پوه سئ چي اوس ددې د نیا د خاتمې وخت نژدې راغلی دی چي هغه ته قیامت ویل کیږي.

خلاصه د خبري دا چي په دغه حدیث شریف کي د شریعت محمدي او د دین بنیادي خبري ښودل سوي دي یعني د ایمان تعریف بیان سوی دی چي دا د هغه عقائدو او نظریاتو څخه پرته دي چي په هغه د پوهېدو او منلو څخه وروسته کوم سړی په دائره د اسلام کي داخلیږي او مؤمن جوړیږي، د اسلام په اړه وښودل سوه چي ددې څخه هغه عملي ذمه داري یعني د فرضونو سرته رسولو پیروي اسلام یعني مسلمان جوړوي، ددې څخه وروسته د احسان وضاحت وسو چي هغه په اخلاص سره (یا تصوف سره هم) تعبیر کړل سو، دا د هغه کیفیت نوم دی چي په صحیح عقائدو او نظریاتو سره تړون او د شریعت اتباع او فرمانبرداري څخه وروسته د توجه الی الله ذریعه پیدا کوي او بنده ته د خپل معبود تقرب په برخه کوي، په حقیقت کي دغه درې سره شیان د یو بل لپاره لازم او ملزوم دي، د الله تعالی قرب او د هغه رضا تر هغه وخته پوري نسي تر لاسه

كيدلاى ترڅو پوري چې د الله او د الله د رسول جاري او نافذ كړي احكام او هداياتو باندي پوره عمل ونه وكړل سي او عمل د الله او رسول په نزد تر هغه وخته پوري د حسن قبول درجه نسي تر لاسه كولاى ترڅو پوري چې د الله په لور پوره توجه نه وي، او پر پوره داخلي او خارجي وجود باندي د خوف او خشيت الهي او حضور قلب كيفيت خپور نسي او ددې دواړو تر هغه وخته پوري اعتبار نه كيږي ترڅو پوري چې فكر او عقيده صحيح نه وي او زړه او دماغ په ايمان او يقين سره روښانه نه وي نو كامل مؤمن يا كامل مسلمان به هغه سړى منل كيږي چې د هغه زړه او دماغ كي ايمان يعني صحيح اسلامي عقائد او د نظرياتو نور موجود وي ، بيا هغه فرضونه په پوره توګه سره ادا كړي او د هغه احكاماتو او هداياتو پوره اطاعت وكړي كوم چې الله ﷻ د خپل رسول په ذريعه جاري او نافذ كړي دي او بيا رياضت او مجاهده يعني ذكر او شغل او د اوراد او وظائف په ذريعه د اخلاص توجه الى الله او د رضا مولى د حصول هڅي وكړي چې په هغه سره په ايمان او اسلام كي حسن كمال او لوړي تر لاسه كيږي .

## د اسلام بنسټ پر پنځو شيانو دى

﴿ ۲ ﴾ :عَنْ اِبْنِ عُمَرَ ﷺ قَالَ: قَالَ : رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بُنِيَ الْإِسْلَامُ عَلَى خَمْسٍ شَهَادَةِ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللّٰهُ وَأَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُوْلُهُ وَإِقَامِ الصَّلَاةِ وَإِيْتَاءِ الزَّكَاةِ وَالْحَجِّ وَصَوْمِ رَمَضَانَ متفق عليه

د حضرت ابن عمر[۱] ﷺ څخه روايت دى چې رسول الله ﷺ وفرمايل د اسلام بنسټ پر پنځو شيانو دى : ۱- ددې شاهدي وركول چې د الله څخه پرته بل معبود نسته او محمد ﷺ د الله ﷻ بنده او رسول دى. ۲- لمونځ كول ۳- زكوة وركول ۴- حج كول ۵- د رمضان د مياشتي روژې نيول . مسلم او بخاري .

**تشريح**: د (اسلام) مثال په ماڼۍ سره وركړل سوى ده ، لكه څرنګه چې يو لوړه او ښكلې ماڼۍ تر هغه وخته پوري نسي قائم كېدلاى ترڅو چې تر هغه لاندي بنيادي ستني نه وي، همداسي د اسلام پنځه ستني دي چې د هغه څخه پرته هيڅ سړى خپل اسلام ته وجود او بقا نسي وركولاى ، دغه پنځه ستني په حديث شريف كي ذكر سوي دي او هغه دادي : (۱) د توحيد او رسالت عقيده (۲) لمونځ (۳) زكوة (۴) حج (۵) روژه . كوم څوك چې ځان مؤمن او مسلمان جوړول

[۱] - نوموړى د اسلام د دوهم خليفه راشد حضرت عمر فاروق ﷺ زوى او د نبي كريم ﷺ جليل القدر صحابي دى ، د نوموړي زيږېدنه د نبوت د كال څخه مخكي په مكه معظمه كي سوې ده ، په كال (۷۳) يا (۷۴هـ) كي وفات سو .

او قائم ساتل غواړي نو د هغه لپاره لازم دی چي هغه د خپل اعتقادي او فکري او عملي او اخلاقي ژوند بنیاد دغه پنځه ستني وګرځوي، بیا څرنګه چي د یو ماڼۍ شان او شوکت او ښکلا ، د دیوالو نقش او نګار او غوره والي باندي منحصر وي همداسي د اسلام د حسن او کمال انحصار هم پر دغه اعمالو دی چي هغه په واجباتو او مستحباتو سره تعبیر کیږي، دلته په حدیث شریف کي د اسلام د بنیادي شیانو ذکر مقصد وو ځکه پر دې موقع د هغه واجباتو او مستحباتو ذکر ونه کړل سو .

## د ایمان ښاخونه

﴿ ۳ ﴾ : وَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ : قَالَ رَسُوْلَ اللهِ صَلى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلم اَلْاِيْمَانُ بِضْعٌ وَ سَبْعُوْنَ شَعْبَةٌ فَاَفْضَلُهَا قَوْلُ لَااِلٰهَ اِلَّااللهُ وَ اَدْنٰهَا اِمَاطَةُ الْاَذٰى عَنِ الطَّرِيْقِ وَالْحَيَاءُ شُعْبَةٌ مِّنَ الْاِيْمَانِ (متفق علیه).

د حضرت ابوهریرة[1] ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: د ایمان د اویا څخه زیاتي څانګې دي په هغو کي د ټولو څخه غوره ددې خبري اقرار کول دي چي د خدای ﷻ څخه پرته بل معبود نسته او د ټولو څخه کمي درجې ایمان د یو ضرري شي د لاري څخه لیري کول دي او حیا د ایمان یوه څانګه ده (بخاري او مسلم).

**تشریح** : په دغه حدیث شریف کي د ایمان د څانګو او برخو شمیر ښودل سوی دی ، یعني هغه شیان چي په یو ځای کېدو سره یو څوک د ایمان او اسلام پوره پیروي او غوره مظهر جوړوي ، دلته خو د هغه څانګو شمیر ښودل سوی دی مګر په ځینو حدیثونو کي د هغو تفصیل هم نقل دی او هغه داسي ذی :

لومړنی شی خو بنیادي دی یعني ددې حقیقت په زړه او دماغ کي عقیده او یقین او په ژبه سره اقرار او اظهار چي د الله ﷻ څخه پرته بل معبود نسته د هغه ذات او صفات پر حق دي ، هغه همیشه دی او همیشه به وي ، بقا او دوام یوازي د هغه ذات لپاره دي هر کله چي د کائناتو ټول شیان فنا کیدونکي دي . همداسي د الله ﷻ د رسولانو. د هغه د کتابونو او ملائکو په اړه ښه عقیده او حسن ظن ساتل او هغوئ حق ګڼل ، د آخرت عقیده درلودل چي د مرګ څخه وروسته په قبر کي پر خرابو او ګناه کارو خلکو به د الله تعالی عذاب وي او پر ښه او نیکو خلکو به د هغه

[1] – اصل نوم یې عبد الرحمن بن صحر دی ، کنیت یې ابو هریره دی ، په کال (۵۷ھ ، یا ۵۸ ھ) کي په مدینه منوره کي وفات سو .

انعام او اکرام وي ، قیامت به راځي او د هغه وروسته به حساب او کتاب ضرور وي، هغه وخت به د هر چا اعمال په ترازو کي تلل کیږي د چا چي عملونه ښه او نیک وي هغه ته به عمل نامه د جنت په راسته لاس ورکړل سي ، د چا اعمال چي خراب وي د هغوئ فرد جرم به په چپه لاس ورکړل سي، ټول خلک به پر پل صراط باندي تیریږي ، مؤمنان او صالحان به د ذات باري عالی په دیدار سره مشرف کیږي ، نیک او ښه خلک به جنت ته ورسول سي او ګناه کار به دوږخ ته واچول سي، لکه څرنګه چي مؤمن به په جنت کي همیشه د الله تعالی په انعام او اکرام او رضا سره خوشحاله وي همداسي دوږخیان به همیشه همیشه د الله ﷻ په مسلط کړي عذاب کي اخته وي.

د ایمان د څانګو څخه دا هم دی چي د الله ﷻ سره هر وخت مینه وساتي او که د غیر الله سره مینه کوي نو هغه هم د الله ﷻ لپاره کوي ، یا د چا سره دښمني کوي نو د الله ﷻ لپاره یې کوي، د نبي کریم ﷺ سره پوره مینه او د هغوئ عظمت او فضیلت باندي پوره یقین ولري، د رسول الله ﷺ په سنت عمل کول، د هغه ﷺ پر ښودل سوو طریقو باندي تلل ، د هغوئ ﷺ ارشادات او تعلیمات خپل رواج جوړول او خپرول هم د رسول الله ﷺ سره د میني دلیل دی، د الله ﷻ او د هغه د رسول ﷺ مینه داسي ځای سي چي ددې مینه په مقابل کي د دنیا د هیڅ شی او هیڅ قرابت مینه ارزښت ونه لري. او ددې مینه علامه اتباع شریعت دی، که یو سړی د الله ﷻ او د هغه د رسول ﷺ د فرمان تعمیل کوي او د شریعت په احکامو عمل کوي نو ددې مطلب به دا وي چي هغه د خپل الله ﷻ او رسول ﷺ سره مینه کوي، مګر کوم سړی چي د الله ﷻ او د رسول ﷺ د احکامو تابعداري نه کوي نو د هغه مطلب به دا وي چي نعوذبالله د هغه زړه د الله تعالی او د هغه د رسول د میني څخه خالي دی.

دا هم د ایمان څانګه ده چي کوم عمل وکړل سي که هغه بدني وي یا مالي وي او یا قولي یا فعلي یا اخلاقي نو هغه یوازي د الله تعالی د رضا او خوښۍ لپاره وي د نوم ښووني او یا د نیاوي مقصد لپاره نه وي، نو تر څو پوري چي کیدای سي په اعمالو کي د اخلاص پیدا کولو هڅه کول پکار ده ، کنه نو د نفاق او ریا اثر دعمل حسن (نیکي)، کمال او تاثیر ختموي، د مؤمن زړه دي هر وخت د الله تعالی د خوف او خشیت الهي څخه ډک وي، او د هغه د فضل او کرم او د رحمت د امیدونو څخه معمول کېدل پکار دي که د انسانیت په غوښتنه یو خراب کار یا خبره څیني وسي نو پر هغه باندي سمدستي د زړه په اخلاص سره د توبې څخه وروسته د

راتلونکي لپاره د ګناهونو څخه د پرهیز وعده دي وکړي او د الله تعالی د عذاب څخه دي وبیرېږي او په خپل ښه او نیک عمل کي دي د الله تعالی د رحمت او د هغه د انعام او اکرام امید ولري، په حقیقت کي دا د ایمان یوه لویه غوښتنه ده چي کله یو ګناه په قصد او یا بیله قصده وسي نو سمدستي د شرمندګی او پښیماني په احساس سره د الله تعالی په حضور کي د خپل ګناه څخه توبه وکاږي او د معافی او بخښني غوښتونکی دي سي ځکه چي د ګناه کولو څخه وروسته توبه کښل شرعا ضروري او لازم دي.

د الله تعالی د ورکړل سوو نعمتونو شکر دي ادا کوي او که الله تعالی اولاد ورکړي نو سمدستي دي عقیقه وکړي، که نکاح یې وکړه نو ولیمه دي وکړي، که قرآن کریم په حفظ یا ناظره ختم کړي نو د خوشحالی اظهار دي وکړي که الله مال ورکړی وي نو زکوة دي ادا کړي، د آختر په مناسبت کي دي سرسایه ورکړي او په لوی اختر کي دي قرباني وکړي.

دا هم د ایمان غوښتنه ده چي وعده وکړي نو هغه دي پوره کړي، پر مصیبت دي صبر وکړي، د اطاعت او فرمانبرداری لپاره دي هره ستونزه وزغمي، د ګناهونو څخه دي ځان وژغوري، د الله تعالی پر تقدیر او خوښی دي راضي سي، پر الله ﷻ دي توکل کوي، د مشرانو او بزرګانو تعظیم او احترام دي کوي، د ماشومانو سره دي مینه او شفقت کوي، او د کبر، غرور او لوئي په پرېښودو سره دي کسرنفسي، تواضع او حلم اختیار کړي.

د حسن اسلام او تکمیل ایمان په درجو کي دا هم دي چي د کلمه توحید او کلمه شهادت ورد دي کوي، قرآن کریم دي وایي، که جاهل وي نو د عالم څخه دي د علم دولت تر لاسه کړي، که عالم وي نو جاهلانو ته دي تعلیم ورکړي، په خپل مقصدونو کي دي د الله تعالی څخه د کامیابۍ غوښتونکی وي او دعاء دي غواړي او د هغه ذکر دي کوي، د خپلو ګناهونو څخه استغفار دي کوي او د فحش خبرو څخه دي ځان ساتي، په هر وخت کي دي د ظاهري او باطني ګناهونو څخه ځان پاک ساتي.

لمنځونه کول که فرض وي یا نفل او پر وخت ادا کول، روژه نیول که نفل وي او که فرض، ستر پټول، صدقه ورکول که نفلي وي او که لازمي، غلامان آزادول، سخاوت او میلمستیا کول، په اعتکاف کي کښېنستل، په شب قدر او شب برات کي عبادت کول، حج او عمره کول، طواف کول، د دارالحرب یا داسي هیواد څخه چي د فسق او فجور، فحش او بې حیائي، منکرات او بدعاتو زور وي د دار الاسلام په لور هجرت کول، د بدعتونو څخه ځان ساتل، خپل

دين د خرابو خبرو څخه خوندي ساتل، نذرونه پوره كول، كفارې ادا كول، د حرام څخه د ځان ساتني لپاره نكاح كول، د اهل او عيال حقوق په پوره توګه ادا كول، د مور او پلار خدمت كول او په هر ډول سره د هغوئ مرسته كول، خپل اولاد ته د شريعت سره سم ترتيبيت وركول، د خپل ماتحت (لاس لانديو) كسانو سره ښه چلن كول، د خپلو حاكمانو، او مسلمان سردارانو او مشرانو پيروي كول، په دې شرط چي هغوئ د شريعت څخه د خلاف كارونو حكم ور نه كړي، د غلام او مينځو سره نرمي كول، كه چيري د اقتدار خاوند او حاكم يا قاضي وي نو انصاف كولو سره په خلكو كي صلح كول، د اسلام څخه د بغاوت كونكو او ددين څخه د اوښتونكو كسانو سره قتل او قتال (جنګ او جګړې) كول، د ښه خبرو تبليغ كول، د خرابو خبرو څخه خلك منعه كول، د الله تعالى د لوري د ټاكل سوو سزاګانو جاري كول، په اسلام كي د غلطو خبرو پيدا كونكو او د الله او رسول انكار كونكو سره د خپل توان سره سم په قلم، ژبه او توري سره جهاد كول، د اسلامي هيوادونو د سرحدونو ساتنه كول، امانت ادا كول، د غنيمت د مال پنځمه برخه په بيت المال كي جمع كول، د وعدې سره سم فرض پوره كول، د همسايه خيال ساتل او د هغه سره ښه چلن كول، د خلكو سره غوره معامله كول، په حلاله طريقه سره مال ګټل او د هغه ساتنه كول، مال او دولت په غوره مصرف كي او په ښه ځاى كي خرڅ كول، اصراف نه كول، سلام كول او د سلام جواب وركول، چا ته چي ترچى راسي نو يرحمك الله ويل، د تهذيب خلاف او خرابو مجلسونو څخه پرهيز كول، خلكو ته تكليف نه وركول، د لاري څخه د تكليف رسونكو شيانو ليري چي تلونكو ته تكليف ونه رسوي دا ټول شيان د ايمان څانګي او ښاخونه دي.

د لاري څخه د تكليف رسونكي شي ليري كولو مطلب دادى كه په لاره كي ډبره، ازغى، وغيره پروت وي چي په هغه سره پر لاره تلونكي ته تكليف رسيږي يا نجاست او مرداري پراته وي يا يو داسي شى پروت وي چي په هغه سره پر لاره تلونكي ته تاوان رسيږي نو د مؤمن دا فريضه ده چي د انساني او اخلاقي همدردى په وجه هغه ليري كړي او لار پاكه كړي، او همداسي په خپله هم داسي يو شى په لار كي ونه غورځوي چي هغه پر لار تلونكو لپاره د تكليف سبب سي، او د عارفينو په نظر كي ددې مطلب دادى چي انسان خپل نفس د هغه ټولو شيانو څخه پاك كړي كوم چي توجه الى الله او د معرفت په لار كي خنډ جوړيږي او د خپل زړه څخه د بدى او معصيت خيال ليري كړي.

د اسلام تكميل او حسن په دغه شيانو سره پيدا كيږي، كه يو سړى ددغه شيانو څخه خالي

وي او ژوند يې په دغه شغلو سره منور نه وي نو پوهېدل پكار دي چې د هغه د ايمان تكميل نه دى سوى ځكه نو هغه ته پكار ده چې د الله ﷻ په مرسته او د هغه په توفيق غوښتلو سره دا ارزښتناكه خبري غوره كړي.

## د مؤمن او مسلم مفهوم

﴿ ۴ ﴾ : وَعَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ قَالَ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّم: اَلْمُسْلِمُ مَنْ سَلِمَ الْمُسْلِمُوْنَ مِنْ لِسَانِهٖ وَ يَدِهٖ وَالْمُهَاجِرُ مَنْ هَجَرَمَا نَهَى اللهُ عَنْهُ هَذَا لَفظُ الْبُخَارِي وَمُسْلم قَالَ اِنَّ رَجُلاً سَاَلَ النَّبِي ﷺ اَيُّ الْمُسْلِمِيْنَ خَيْرٌ ؟ قَالَ مَنْ سَلِمَ الْمُسْلِمُوْنَ مِنْ لِسَانِهٖ وَيَدِهٖ . متفق عليه.

د حضرت عبدالله بن عمرو [۱] ؓ څخه روايت دى چې رسول الله ﷺ وفرمايل (پوره) مسلمان هغه دى چې د هغه د ژبي او لاسونو څخه مسلمان ساتلى او په امان وي او مهاجر هغه دى چې هغه ټول شيان يې پرې ايښي وي د كومو څخه چې خداى پاك منعه فرمايلې وي (دا الفاظ د بخاري دي او په مسلم كي دا الفاظ دي) چې يو سړي د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وكړه په مسلمانانو كي تر ټولو غوره سړى كوم دى رسول الله ﷺ وفرمايل هغه سړى چې د ژبي او لاسونو څخه يې مسلمان په امان وي . بخاري اومسلم.

**تشريح** : د حديث شريف په لومړني برخه كي دې ته اشاره ده چې مؤمن او مسلمان يوازي د دې نوم نه دى چې سړى محض كلمه ووايي او يو څو ټاكلي عملونه او اركان ادا كړي بلكه اسلامي شريعت د خپلو پيروانو څخه د يو داسي ژوند غوښتنه كوي چې د هغه حامل يوې خوا ته د عقائدو او اعمالو د لحاظ څخه د الله تعالى د حقيقي بنده ويل كېدو وړ وي نو بلي خوا ته هغه د انسانيت په تعلق سره په پوره توګه د امن او صلح نمونه او د ميني مظهر وي، امن او امانت، غوره اخلاق په خپل عملي ژوند كي داسي اظهار وكړي چې د دنيا هر انسان د هغه څخه د ببرېدو پر ځاى هغه خپل همدرد او مشفق وګڼي او د مال، ځان او عزت په اړه پر هغه پوره باور او اطمينان ولري. په دغه حديث شريف كي د لاسو او ژبو ځانګړتيا ځكه ده چې په عامه توګه سره د ضرر رسولو دغه دوې ذريعې دي، كنه دلته هر هغه شى مراد دى چې د هغه څخه تكليف رسيدلاى سي كه هغه لاس وي يا ژبه او يا بل يو اندام وي.

---

[۱] حضرت عبدالله بن عمرو بن العاص ؓ يو جليل القدر صحابي ، ستر عالم ، او د لوړي مرتبې مجاهد ، متقي او عابد وو، نوموړى مهاجر دى، د نوموړي د وفات په كال كي ډير اختلاف دى، د تذكرة الفاظ د روايت سره سم نوموړى په مصر كي په كال (۷۵هـ) كي وفات سوى دى.

د حدیث په دوهمه برخه کي د حقیقي مهاجر تعریف سوی دی، هسي خو مهاجر هر هغه سړي ته وایي چي د الله تعالی په لار کي خپل وطن، خپل کور او خپل هیواد پرېښودو سره دارالاسلام خپل هیواد جوړ کړي، دغه قرباني ته اسلام د عزت او رفعت په نظر سره ګوري ددې لپاره د ډیري جزا او انعام حقدار یې ګڼي، مګر د دغه حدیث شریف څخه څرګنده سوه چي د دغه هجرت څخه پرته یو بل هجرت هم دی چي د هغه د ژوند سره همیشني تعلق دی او هغه دادی چي الله ﷻ د کومو شیانو څخه منعه فرمایلې ده مؤمن د هغه څخه پرهیز کوي او د الله تعالی د رضا تر لاسه کولو لپاره نفساني خواهشات بالکل پرېښودلو سره پاک نفسي اختیار کړي ، او همداسي سړی د حقیقي مهاجر ویل کېدو وړ دی .

## د میني درجې

﴿۵﴾: وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : لَا يُؤْمِنُ أَحَدُكُمْ حَتَّى أَكُونَ أَحَبَّ إِلَيْهِ مِنْ وَلَدِهِ وَوَالِدِهِ وَالنَّاسِ أَجْمَعِينَ (متفق علیه).

د حضرت انس ؓ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : تر هغه وخته پوري ځوك پوره مؤمن نه سي کیدلای تر څو چي د هغه په نزد زه د هغه د پلار، زوی او ټولو خلګو څخه زیات محبوب نه سم . بخاري ومسلم .

**تشریح** : مینه خو یو طبعي وي لکه د اولاد سره مینه، د پلار سره مینه، یا د پلار د اولاد سره مینه، ددغه میني بنیاد په طبعي توګه وي ، په دې کي د داخلي یا خارجي ضرورت او زور داخل نه وي، ددې پر خلاف یو عقلي مینه وي چي د یو طبعي او فطري تعلق او غوښتني لاندي نه وي بلکه د یو عقلي ضرورت او مناسبت او خارجي تعلق لاندي کیږي، ددغه مثال ناروغي او دواء ده، یعني ناروغ سړی دوا ځکه نه خوښوي چي ذواء رانیول د هغه طبعي او فطري غوښتنه ده بلکه په اصل کي د عقل غوښتنه وي، که چیري ناروغي ختمول وي او روغتیا یې خوښه وي نو دواء به استعمالوي که څه هم د هغه دواء تریخوالی ناخوښ وي، همداسي که د یو سړي د بدن یو اندام د فاسدې مادې څخه ډک وي نو هغه د عملیات لپاره خپل ځان یو ماهر ډاکټر ته ځکه نه سپاري چي د هغه په نظر کي د جراحي د آلاتو ځلا ښه معلومیږي یا د هغه طبعیت د خپل بدن پر هغه برخه لګېدل خوښوي بلکه دا د عقل او پوهي غوښتنه وي چي بدن د فاسدې مادې څخه پاکول پکار دي، نو ځکه خپل ځان ډاکټر ته سپارل ضروري دي ، یو شی په عقلي توګه سره د غوښتلو او خوښولو هغه کیفیت چي هغه (په عقلي مینه) سره تعبیر کیږي په ځیني حالاتو کي

دومره ټینګ او ارزښتناک جوړیږي چې د لوی څخه لوی طبعي مینه او د لوی څخه لوی فطري غوښتنه باندې هم غالب سي ، نو دغه حدیث چې د رسول اکرم ﷺ سره د کومي مینه او ترون غوښتنه کوي هغه د حدثینو په نزد عقلي مینه ده، مګر د کمال ایمان او یقین پر بناء دا عقلي مینه دومره د اثر څخه ډکه او دومره جذباتي سره وي چې پر طبعي مینه باندې غالب سي، په دې باندې داسې پوهیدلای سي چې که چیري د رسول الله ﷺ یو هدایت او د شرعي حکم تعمیل کې یو قرابت لکه د پلار مینه، د اولاد مینه یا یو بل طبعي تعلق بندیز واچوي نو هغه د رسول هدایت او شرعي حکم پوره کولو لپاره د هغه قرابت او طبعي غوښتني نظر اندازه کول پکار دي، د ایمانیات او شریعت په نقطه نظر کې دا ډیر لوی مقام دی او دا مقام په دې صورت کې تر لاسه کېدلای سي هر کله چې ایمان او اسلام او د حب رسول دعوه کونکي خپل نفس په احکام شریعت او ذات رسالت کې فنا کړي ، د الله ﷻ او د هغه د رسول ﷺ د رضا څخه پرته د هغه بل هیڅ مقصد د ژوند نه وي، د مثال په توګه د نبي کریم ﷺ فرمان جاري کیږي چې د ایمان خاوندان دې د جهاد لپاره ووځي، د دې حکم تعمیل د ایمان خاوندان د دین د دښمنانو سره د جنګ لپاره د جنګ ډګر ته رسوي، هر کله چې د دواړو خواوو څخه صفونه جوړیږي او مقابل فوځونه مخته راځي یو مسلمان خپل زوی د دښمن په صف کېویني او څوک خپل پلار ویني، یوې خوا ته طبعي مینه وي چې څه ډول خپل توره پر خپل پلار یا خپل زوی باندې په وینو رنګ کړي او بلې خوا ته د رسول حکم دی چې د دښمن هیڅ یو کس دې هم د توري د وار څخه خلاصون نه مومي، که څه هم هغه پلار وي یا زوی وي، د تاریخ نه رد کېدونکی صداقت شاهدي ورکوي چې په داسې نازکه موقع باندې د ایمان خاوندان د سترګو د رپ په اندازه هم په شک کې نه اخته کیږي، هغوئ ته په دې پریکړه کولو کې یوه لحظه هم زنډ نه کیږي چې د رسول د حکم په وړاندې د پلار او زوی مینه څه معنا لري، او بیا د جنګ په ډګر کې د پلار توره د اولاد په وینه بهیدلې لیدل کیږي او زوی خپل پلار ته موقع نه ورکوي چې هغه خلاصون ومومي .

په هر حال د حدیث حاصل دا دی چې د ایمان د تکمیل دار او مدار پر حب رسول (د رسول سره مینه) باندې دی ، په کوم سړي کې چې د رسول الله ﷺ سره د دې درجې مینه نه وي چې د هغه په مقابله کې نژدې خپلوي ، لوی لوی ترونونه او د لوی څخه لوی شي مینه هم بې معنا وي ، هغه کامل مسلمان نسي کیدلای که څه هم په ژبه او قول سره هغه د خپل ایمان او اسلام هر څومره لوی دعوه کوي .

د حضرت عمر فاروق ﷛ په اړه نقل سوي دي چي کله هغه دغه حدیث شریف واوریدی نو عرض یې وکړ اې دالله رسوله ! په دنیا کي یوازي د خپل ځان څخه پرته ما ته تاسو زیات محبوب یاست، یعني د دنیا د نورو ټولو قرابتونو او شیانو څخه ستاسو مینه ما ته زیاته ده خو د خپل ځان څخه را ته زیاته نه ده، نبي کریم ﷺ ورته وفرمایل : په هغه ذات دي مي قسم وي د چا په واک کي چي زما روح ده، ته اوس هم پوره مؤمن سوی نه یې، ځکه چي دا مرتبه هغه وخت تر لاسه کیدلای سي هر کله چي زه تا ته د خپل ځان څخه هم زیات خوږ سم، دغه الفاظو د حضرت عمر ﷛ د زړه او دماغ دنیا بدله کړه او بې اختیاره یې وویل : اې دالله رسوله ! پر تاسو دي زما ځان قربان وي، اوس تاسو ما ته تر خپل ځان هم زیات محبوب یاست، رسول الله ﷺ بیا هغه ته دا زیری واوری چي اې عمر ! اوس ستا ایمان پوره سو او ته پوخ مؤمن سوې، یوازي حضرت عمر ﷛ نه بلکه ټول صحابه کرام په دې کیفیت او حب رسول سره آباد وه، د هغوئ د ژوند مقصد د رسول الله ﷺ په یوه اشاره باندي خپل ځانونه قربانول وه، بیشکه د دنیا هیڅ مذهب د خپل رهنما او پیروي کونکو د خپل منځي تعلق او میني داسي مثال نسي وړاندي کولای .

د رسول الله ﷺ مبارک ذات بیشکه د صحابه کرامو لپاره د شمع په ډول وو چي پر هغه د پتنګ په ډول قربانېدل خپل نیک بختي ګڼل، د اسلام ددغه دور ستر تاریخ په خپل لمن کي داسي بې شمیره پېښي ساتلي دي چي د رسول الله ﷺ سره د صحابه کرامو د جذباتي او عاشقانه میني او تعلق ستره غمازي کوي .

د احد د غزا پېښه ده چي د جنګ په ډګر کي کله چي سخت جنګ پیل وو او د حق ډلي د باطل پر لښکر باندي په قهرماني طاقت سره حمله وکړه نو ولیدل سول چي د یوې انصاري ښځي خاوند، پلار او ورور درې سره د شهادت جام وڅښی او د رسول الله ﷺ پر ذات باندي قربان سول، دا خبر چي هغې ښځي ته ورسیدی نو د ایمان د پوخوالي او د رسول الله ﷺ سره د میني د اثر په وجه ددې پر ځای چي هغه ښځي د خپل قریبانو پر شهادت غم او فریاد کړی وای نو هغې تر ټولو وړاندي دا پوښتنه وکړه : د الله په خاطر ما ته دا وواياست چي زما بادار او سردار رسول الله ﷺ (زما ځان دي پر قربان سي) په خیر خو دی ؟

خلکو ورته وویل : هو، رسول الله ﷺ سلامت دی مګر په دې سره د هغې ډاډ ونه سو او په بې تابي یې وویل : راځئ چي زه یې په خپلو سترګو ووینم نو یقین به مي راسي، هر کله چي هغې په خپلو سترګو سره د رسول الله ﷺ د مبارک مخ دیدار وکړ نو هغې وویل : (کل مصیبة

بعدک جلل) یعني هر کله چي رسول الله ﷺ سلامت دی نو هر مصیبت آسان دی .

یو ځل یو سړی د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سو او عرض یې وکړ چي اې دالله رسوله! تاسو ما ته د خپل کورنۍ او مال ټولو څخه زیات محبوب یاست کله چي تاسو را یاد سئ نو صبر مي نه کیږئ تر څو پوري چي په راتلو سره ستاسو د مخ مبارک په زیارت سره خپل سترګي یخي نه کړم، مګر اوس دا غم اخیستی یم چي د وفات څخه وروسته به تاسو د انبیاء علیهم السلام سره یاست هلته به زما سترګي ستاسو دیدار څنګه کوي ؟ نو دغه آیت کریمه نازل سو :

وَمَن يُطِعِ اللَّهَ وَالرَّسُولَ فَأُولَـٰئِكَ مَعَ الَّذِينَ أَنْعَمَ اللَّهُ عَلَيْهِم مِّنَ النَّبِيِّينَ وَالصِّدِّيقِينَ وَالشُّهَدَاءِ وَالصَّالِحِينَ وَحَسُنَ أُولَـٰئِكَ رَفِيقًا . سورة النساء آية ۶۹.

ژباړه : کوم خلک چي د الله ﷻ او رسول ﷺ حکم مني هغوئ به (په آخرت کي) د هغه کسانو سره وي چي پر هغوئ د الله تعالی انعامات دي چي نبیان، صدیقین، شهیدان او نیک خلک دي او ددغه خلکو صحبت لوی غنیمت دی . رسول الله ﷺ هغه صحابي ته دغه زیری واوروئ .

عبدالله بن زید بن عبدربه ﷺ چي د صاحب اذان په لقب سره مشهور وو، په خپل باغ کي کار کوی په دغه حالت کي د هغه زوی راغلی او دغه د غم خبر یې راوړی چي رسول الله ﷺ وفات سو، په عشق نبوي سره سمسور او د رسول ﷺ په مینه کي مست دغه صحابي ددغه وژونکي خبر تاب نه راوړی . بې تابه یې لاس په فضا کي پورته کړ او د ژبي څخه یې دغه د حسرت الفاظ ووتل: اې الله ! اوس ما د لیدلو څخه محروم کړې چي دا سترګي د رسول الله ﷺ په دیدار سره مشرف سوي دي او اوس بل څوک ونه لیدلای سي . ترجمان السنة .

ددغه پېښو څخه څرګنده سوه چي د صحابه کرامو د نبي کریم ﷺ سره د مینه او تعلق هغه مقام وو کوم چي ددغه حدیث منشا ده، ځکه د هر مسلمان لپاره ضروري ده که چیري هغه د ایمان سلامتي او په خپل اسلام کي ټینګوالی پیدا کول غواړي نو د نبي کریم ﷺ په مینه او عقیدت سره دي خپل زړه سمسور کړي او د هغوئ ﷺ په لارښوونو دي عمل کول د خپل نجات ذریعه وګڼي چي رسول الله ﷺ سره دمیني معیار اتباع شریعت او تبارع رسول دی، کوم سړی چي په شریعت باندي عمل نه کوي او د رسول الله ﷺ پر لارښوونو نه چلیږي نو هغه دغه خبره ثابتوي چي نعوذبالله د هغه د رسول الله ﷺ سره مینه نسته .

## د ایمان خوند

﴿ ۶ ﴾ : وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَلٰثٌ مَنْ كُنَّ فِيْهِ وَجَدَ بِهِنَّ حَلَاوَةَ الْإِيْمَانِ مَنْ كَانَ اللهُ وَرَسُوْلُهُ أَحَبَّ إِلَيْهِ مِمَّا سِوَاهُمَا وَمَنْ أَحَبَّ عَبْدًا لَا يُحِبُّهُ إِلَّا لِلّٰهِ وَمَنْ يَكْرَهُ أَنْ يَعُوْدَ فِي الْكُفْرِ بَعْدَ أَنْ أَنْقَذَهُ اللهُ مِنْهُ كَمَا يَكْرَهُ أَنْ يُلْقٰى فِي النَّارِ .(متفق عليه).

د حضرت انس ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل دري شیان داسي دي چي په یو چا کي پیدا سي نوهغه به د ایمان خوند تر لاسه کړي ۱- هغه سړی چي خدای او رسول د ټولو څخه زیات عزیز او محبوب گڼي ۲- هغه سړی چي د یو بنده سره یوازي د الله د رضا لپاره محبت لري ۳- هغه سړی چي د کفر د تیارو وروسته خدای پاك ورته د اسلام نورانیت په برخه کړی وي او هغه بیا کفر ته ستنېدل داسي بد گڼي لکه څرنگه چي دا خبره بده گڼي چي هغه په اور کي وغورزول سي . مسلم اوبخاري

**تشریح** : د ایمان د پوره والي غوښتنه داده چي د مؤمن په زړه کي د الله ﷻ او د هغه د رسول ﷺ مینه دومره ځای سي چي د هغوئ څخه پرته ټوله دنیا د هغه په وړاندي هیڅ هم نه وي.

همدا رنگه دا ډول هم پوره مؤمن کیدلای سي چي هغه د چا سره مینه کوي نو یوازي د الله تعالی د رضاي او د هغه د خوښۍ لپاره مینه ورسره کوي، او که د چا سره بغض او دښمني کوي نو هغه هم د الله تعالی په لار کي کوي، مقصد دا چي د هغه هر عمل وي هغه یوازي د الله تعالی لپاره وي او د هغه د حکم په تعمیل کي وي، همداسي د ایمان په ټینگوالي سره په زړه کي کښېنستل او پر اسلام باندي په ټینگه قائم اوسیدل او د کفر او شرک څخه دومره نفرت او بیزاري کول چي د هغه د تصور او خیال څخه هم زړه پاک وي نو دا د ایمان د پوره کېدو دلیل دی.

همدا رنگه په دغه حدیث شریف کي وفرمایل سول چي د ایمان د دولت حقیقي خاوند او پر دې باندي د جزا او انعام وړ هغه سړی دی چي په دغه دري سره صفتونو سره په پوره توگه متصف وي، او د ایمان خوند هم هغه سړی څکلای سي .

## د ایمان خوند

﴿ ۷ ﴾ : وَعَنِ الْعَبَّاسِ بْنِ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ قَالَ قَالَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ: ذَاقَ طَعْمُ الْاِیْمَانِ مَنْ رَضِيَ بِاللّٰهِ رَبًّا وَّبِالْاِسْلَامِ دِیْنًا وَّبِمُحَمَّدٍ رَّسُوْلاً. رواه مسلم

.د حضرت عباس [۱] ﷜ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل کوم سړی چي په دې خبره راضي سو چي خدای ﷻ د هغه رب، اسلام د هغه دین او محمد ﷺ د هغه رسول دی نو هغه د ایمان خوند و څکی . مسلم

**تشریح** : د الله تعالی ربوبیت او د هغه پر ذات او صفاتو باندي ایمان ، د محمد عربي ﷺ پر رسالت او نبوت باندي یقین او اعتقاد ، ددین او شریعت حقانیت او صداقت باندي پوره باور ، د اسلامي لاربنوونو او احکامو پیروي په دې کیفیت سره کېدل پکار دي چي د زړه او دماغ په هیڅ یو کونج کي د یوې ذرې په اندازه شک او بوج محسوس نسي، رضا، شوق او اطمینان او ددماغي او ذهني سکون څپې د هغه په وجود کي ځای نیولی وي کوم چي د یو غوره شي په تر لاسه کېدو باندي زړه او دماغ او د بدن ټول وجود په خوښي او هوسي سره سمسور کوي ، دا ډیره ارزښتناکه خبره ده او دا په هر حالت کي مدنظر ساتل پکار ده ، په دغه ایمان او یقین او عمل کي که د یو ډول انقباض (یو قسم خرابوالي) او چټلوالی پیداسي نو پوه سئ چي د ایمان روح رخصت سو، پر داسي سړي باندي که څه هم په ظاهري توګه سره د ایمان او اسلام احکام نافذ وي مګر د اخلاص څخه د خالي کېدو په سبب نه د هغه ایمان کامل کمل کیږي ، نه د هغه د اسلام نیکیاني په برخه کیږي او نه د ایمان او یقین حقیقي لذت څخه هغه خوند اخیستلای سي .

## اسلام د خلاصون ذریعه ده

﴿ ۸ ﴾: وَعَنْ أَبِيْ هُرَیْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ وَالَّذِيْ نَفْسُ مُحَمَّدٍ بِیَدِهِ لاَ یَسْمَعُ بِيْ أَحَدٌ مِّنْ هٰذِهِ الْأُمَّةِ یَهُوْدِيٌّ وَلاَ نَصْرَانِيٌّ ثُمَّ یَمُوْتُ وَلَمْ یُؤْمِنْ بِالَّذِيْ أُرْسِلْتُ بِهِ إِلاَّ کَانَ مِنْ أَصْحَابِ النَّارِ . رواه مسلم .

د حضرت ابوهریرة ﷜ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل :په هغه ذات دي مي قسم وي چي د هغه په واک کي د محمد (ﷺ) روح ده چي په دې امت کي کوم څوک که یهودي وي او یا نصراني چي زما د رسالت خبر واوري او دخدای ﷻ کوم پیغام چي ما راوړی دی پر هغه ایمان را نه وړي او مړ سي نو هغه یقینا دوږخي دی . مسلم .

[۱] - حضرت عباس ﷜ د عبد المطلب زوی دی او د نبي کریم ﷺ سکه اکا وو، په ۱۲ رجب په کال (۳۲هـ) کي د جمعې په ورځ وفات سو .

**تشریح**: اسلام یو آفاقي (علمګیر) مذهب دی چي د هغه د اطاعت په دائره کي د ټول کائنات راتلل ضروري دي او د الله تعالی د لوري رالیږل سوی یو داسي بین الاقوامي قانون دی چي د هغه پیروي د دنیا پر هر انسان لازم ده، همداسي د پیغمبر ﷺ رسالت او نبوت هم نړیوال او بین الاقوامي دی، د هر دور لپاره د هر قوم لپاره او د هري طبقې لپاره په دې کي د چا استثناء نسته ځکه د رسول الله ﷺ پر رسالت باندي ایمان راوړل او پر شریعت باندي عمل کول پر ټولو باندي یو ډول فرض دی که هغه څوک د هر قوم د هر وطن او هري طبقې وي.

په دغه حدیث شریف کي د یهودي او نصراني یعني عیسائي ذکر په دې وجه سوی دی چي دغه دواړو قومونو خپل یو دین او یو شریعت درلودی د هغوئ خپل خپل آسماني کتابونه وه چي د هغه د عمل او خلاصون منلو هغوئ ته الهي حکم وو، ځکه د هغوئ په ذکر کولو سره دې ته اشاره سوې ده چي هغه قومونه چي خپله د خپلو پیغمبرانو راوړی شریعت او د الله تعالی د لوري د رالیږل سوو کتابونو تابع دي، او د هغوئ دین هم آسماني دین دی، چي د الله تعالی نازل کړل سوی دی، نو د الله تعالی د آخري دین اسلام نفاذ او د خاتم النبیین ﷺ د همه ګیر بعثت (یعني د ټولي نړۍ دپاره رالیږل سوي) څخه وروسته ددغه قومونو لپاره د آخري پیغمبر ﷺ رسالت تسلیم کېدو څخه پرته چاره نسته او د شریعت اسلام په دائره کي دِ راتلو څخه پرته د هغوئ خلاصون ممکن نه دی نو بیا هغه قومونه د پیغمبر اسلام او شریعت اسلام باندي د ایمان او عمل پرته ابدي خلاصون څنګه تر لاسه کولای سي چي د صحیح آسماني دین پابند هم نه دي چي د هغوئ سره د یو پیغمبر راوړی یو کتاب هم نسته او د الله تعالی د رالیږل سوي یو نبي او رسول پیرو هم نه دي.

یوه بله خبره هم ده چي یهودو او عیسایانو به ویل چي د الله تعالی د غوره پیغمبر موسی ؑ او عیسی ؑ پیروان او د الله تعالی د رالیږل سوي کتابو تورات او انجیل د تابع کېدو په وجه موږ په خپله نجات موندونکي یو، جنت زموږ پیدائشي حق دی موږ ته څه ضرورت دی چي محمد ﷺ خپل رسول ومنو، او اسلام خپل دین ومنو، ددې حدیث په ذریعه د هغوئ ددغه غلطي عقیدې او خیال هم تردید سوی دی او هغوئ ته څرګنده سوې ده چي د پیغمبر اسلام د بعثت څخه وروسته نجات به د هغه خلکو وي چي اسلام خپل دین ومني او پر هغه عمل کوي ځکه چي د محمد عربي ﷺ د بعثیت یو بنیادي مقصد دا هم دی چي پخواني شریعتونه منسوخ سي ټول مذهبونه نیستي سي او ټول کائنات یوازي د یو مذهب دین اسلام په دائره کي راټول سي

سي چي د الله تعالی تر ټولو آخري او تر ټولو جامع او پوره دين دی .

## دوه برابر ثواب تر لاسه کونکی

﴿ ۹ ﴾: وَعَنْ أَبِيْ مُوْسٰى الْأَشْعَرِيِّ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَلَاثَةٌ لَهُمْ أَجْرَانِ رَجُلٌ مِّنْ أَهْلِ الْكِتَابِ آمَنَ بِنَبِيِّهٖ وَآمَنَ بِمُحَمَّدٍ وَّالْعَبْدُ الْمَمْلُوْكُ إِذَا أَدّٰى حَقَّ اللهِ وَحَقَّ مَوَالِيْهِ وَرَجُلٌ كَانَتْ عِنْدَهٗ أَمَةٌ يَّطَؤُهَا فَأَدَّبَهَا فَأَحْسَنَ تَأْدِيْبَهَا وَعَلَّمَهَا فَأَحْسَنَ تَعْلِيْمَهَا ثُمَّ أَعْتَقَهَا فَتَزَوَّجَهَا فَلَهٗ أَجْرَانِ . ( متفق عليه )

د حضرت ابوموسى الاشعري [1] ﷛ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : دري کسانو ته به دوچنده ثواب ورکول کیږي : ۱- هغه اهل کتاب ته چي اول يې پر خپل نبي ایمان راوړی او اوس پر محمد ﷺ باندي ۲- هغه غلام چي د چا په ملکیت کي وي او د خدای ﷻ حق هم ادا کوي او د خپلو مالکانو حق هم ادا کوي ۳- هغه سړي ته چي دهغه سره یوه وینزه وي دی د هغې سره مباشرت هم کوي او هغې ته ادب هم ښيي بیا چي هغې ته ښه ادب وښيي او ښه تعلیم ورکړي آزاده يې کړي او دهغې سره نکاح وکړي نو هغه ته به دوه برابر اجر ورکول کیږي . بخاري او مسلم

**تشریح** : ددغه حدیث شریف مقصد دري ډوله خلکو ته زیری ورکول دي چي هغوئ ته به د نورو په مقابله کي د نیک عمل دوه برابر اجر ورکول کیږي، په دې کي لومړی ډول خلک هغه اهل کتاب (یهود او عیسایان) دي چي مخکي پر خپل دین وه او بیا د اسلام د دعوت په تر لاسه کولو سره د اسلام فرمانبردار سول دوئ ته د دوه برابر اجر (زیری) په دې ورکړل سوی دی چي د هغوئ د مخکي نبي په پاخه یقین سره منل ، د هغه نبي راوړي کتاب او شریعت باندي عمل کول او د هغه نبي سره اعتقادي تړون او تعلق ساتل او بیا د خاتم النبیین ﷺ رسالت او نبوت او د الله تعالی د آخري دین اسلام دعوت تر لاسه کېدو سره د زړه په صدق سره د هغه فرمانبردار کېدل نه یوازي دا چي د هغوئ د کمال انقیاد او اطاعت او د هغوئ د فکري او ذهني سلامتیا نښه ده بلکه په دې معنا کي د هغوئ د قلبي او عملي قرباني نښه هم ده چي د خپل پخواني نبي او پخواني دین سره عقیدت او تعلق سربیره هغوئ د اسلام دعوت او د الله تعالی د حکم په تعمیل کي خپل ژوند تیر کړ او اوس د خپل اعتقاد وا ګي يې دين اسلام ته وسپارلې تر څو پوري چي د هغوئ په وړاندي د اسلام دعوت نه وو راغلی نو هغوئ خپل پخوانی دین د الله تعالی دین ګڼلو

---

[1] نوموړی يو جلیل القدر صحابي دی ، د حبشې په لومړني هجرت کي شریک وو ، نوموړی د ذي الحجې په میاشت کي په کال (۴۴هـ) په مکه مکرمه کي وفات سوی دی .

سره د هغه فرمانبردار وه او هر کله چي د اسلام د عوت د هغوئ مخته راغلی نو هغوئ هغه د الله تعالی آخري دین ګڼلو سره خپل پخواني دین پرېښودلو کي ضد او تعصب ونه کړ بلکه د سلیم فطرت پر آوازیې په لبیک ویلو سره د محمد عربي ﷺ په غلامانو کي شامل سول نو الله تعالی د خاص انعام په توګه د هغوئ هر نیک او بد باندي د دوه برابر اجر ور وګرځول یو اجر خو پر خپل مخکني نبي باندي د ایمان لرلو په سبب او دوهم اجر پر پیغمبر آخر الزمان ﷺ د ایمان راوړلو.

دلته دا خبره په ذهن کي ساتل پکار ده چي د دنیا په ټولو مذهبونو کي دا ځانګړتیا او امتیاز یوازي اسلام ته تر لاسه دی چي هغه د خپل تصورات او اعتقادات او خپل تعلیمات بنیاد پر انکار باندي نه بلکه پر اقرار باندي لري یعني هغه په آسماني دینونو کي رقابت یا په رسولانو کي د هیڅ فرق حائل نه کوي هغه د ټولو آسماني کتابونو پر تصدیق باندي زور ورکوي او د الله تعالی د لوري د ټولو رالیږل سوو رسولانو پر رسالت باندي د ایمان راوړلو تاکید کوي، د اسلام پر خلاف د نورو مذهبو منونکو اعتقادات او نظریات چي وکتل سي نو په دې خبره سره د پوهېدلو وخت نه لګیږي چي د هغوئ په نزد هیڅ سړی تر هغه وخته پوري د مذهب ریښتوني پیرو او حقیقي تابعدار کیدلای نسي تر څو پوري چي هغه ددې څخه پرته د نورو مذهبونو د اعتقاد او تصوراتو بنیادونه بالکل ختم نه کړي او د نورو رسولانو او پیغمبرانو د رسالت بالکل انکار ونه کړي، اسلام خو د ایمان او اعتقاد څخه مخکي مرحله کي د خپل پیروانو څخه ددې خبري اقرار اخلي چي په دنیا کي څومره رسولان د الله تعالی د لوري د مخلوق د هدایت لپاره راغلي دي په هغوئ کي دي هیڅ ډول فرق ونه کړل سي د هغوئ راوړي شریعتونه د خپل خپل زمانې لپاره حق او واجب التسلیم ومنل سي ، هغه خپل منونکي ته د احساس صداقت دا شعور بخښي چي په آسماني مذهبونو کي هیڅ پارټي بندي نسته ټول د یوه صداقت دي او هغه خپل منونکي په واضحه توګه سره خبروي چي د ایمان تکمیل هلته کیږي چي د نورو آسماني مذهبونو تصدیق هم وکړل سي او د پخواني ټولو انبیاء صداقت ومنل سي.

ددغه حدیث څخه دا خبره هم څرګنده سوه که یو یهودي یا عیسائي ایمان راوړي او د رسول الله ﷺ د رسالت په زړه په صدق سره اقرار وکړي نو پر خپل نبي باندي د هغه لومړی راوړی ایمان به نه ضائع کیږي بلکه پر هغه به د اجر او ثواب ور وي مګر که هغه د پیغمبر اسلام ﷺ د رسالت تصدیق نه کوي او د هغوئ راوړی شریعت باندي ایمان نه راوړي نو نه یوازي دا چي هغه به ددې کفر او انکا پر بنا د دائمي عذاب مستحق وګرځول سي بلکه د هغه پر خپل لومړني

نبي ايمان راوړل او د هغوئ د رسالت تصديق کول لازم دي ، همداسي عمل او پيروي د پيغمبر اسلام ﷺ د شريعت هم ضروري ده او د خلاصون لار يوازي د اسلام پر اطاعت او فرمانبرداری باندي دی .

د دوهم کس لپاره د دوهم اجر د زيري سبب هم څرګند دی يعني دا چي د يو غلام لپاره نه يوازي په ټولنيز او دنياوي حيثيت دا ضروري ده چي هغه د خپل بادار او مالک اطاعت او فرمانبرداري وکړي او د هغه د احکامو پوره پوره تعميل وکړي بلکه د اسلامي ښووني غوښتنه هم داده چي هغه د مالک او بادار حقوق ادا کولو کي هيڅ کوتاهي يا سستي ونه کړي هر کله چي يو غلام د خپل بادار د حقوقو پوره کولو پوره پابندي کوي او د حقوقو د ادا کولو ټولي غوښتني پوره کوي او د هغه سره سره هغه د خپل حقيقي بادار او پروردګار رب العالمين د احکامو پر ځای کول هم په پوره توګه سره ادا کوي او د هغه په ټولو فرضونو ادا کولو کي کوتاهي نه کوي نو هغه د دوه برابر اجر او ثواب حق پيدا کوي .

اوس پاته سو دريم سړی، نو هغه هم د دوه برابر اجر وړ په دې وجه ګرځول سوی دی چي لومړی خو هغه يوه مينځه آزاده کړه چي نه يوازي دا چي د انسانيت او فطرت غوښتنه پوره کوي بلکه د اسلامي اخلاق اعلی اصول باندي عمل کول هم دي ، دوهم دا چي هغه د مينځي په آزادولو سره او بيا د هغې سره د واده کولو هغه د انسان همدردي ، اسلامي اخلاق او لوړ اخلاق داسي ثبوت کړ چي يوه داسي ښځه چي په ټولنيز حيثيت سره يوه کمتره او بې حيثيته وه ، نو ده د ښه ترتبيت، اعلی تعليم او بيا د آزادي او واده کولو په لوړ دولت نازولو سره د دنيا عزتمنده او د ټولني شريفو ښځو سره برابره ودرول ، همداسي که هغه يوې خوا ته د اسلامي تعليم روح يې هم را ژوندی کړل نو د هغه د دغه قرباني په وجه شريعت هغه ته هم د دوه برابر اجر حق ورکړ .

شيخ عبدالحق محدث دهلوي رحمه الله د دغه حديث په وضاحت کولو سره د دوه برابر اجر په باره کي ليکلي دي چي د دغه خلکو په اعمال نامه کي د جزاء او ثواب دا دوه برابر زياتوب به داسي وي چي هغوئ ته به پر هر عمل باندي د نورو په مقابله کي دوه برابر ثواب ورکول کيږي، مثلا که يو څوک لمونځ کوي ، روژه نيسي يا يو بل نيک کار کوي نو هغه ته به د عمومي زيري سره سم لس برابر ثواب ورکول کيږي مګر په عمل کولو سره دغه دري کسانو ته به پر هر عمل باندي شل شل ثوابونه ورکول کيږي .

## د كفارو سره د جګړې حكم

﴿۱۰﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ رضي الله عنه قَالَ: قَالَ: رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: اُمِرْتُ أَنْ أُقَاتِلَ النَّاسَ حَتّٰى يَشْهَدُوْا أَنْ لاَ إِلٰهَ إِلاَّ اللهُ وَأَنَّ مُحَمَّدًا رَسُوْلُ اللهِ وَيُقِيْمُوْا الصَّلاَةَ وَيُؤْتُوْا الزَّكَاةَ فَإِذَا فَعَلُوْا ذٰلِكَ عَصَمُوْا مِنِّيْ دِمَاءَهُمْ وَأَمْوَالَهُمْ إِلاَّ بِحَقِّ الإِسْلَامِ وَحِسَابُهُمْ عَلَى اللهِ . إِلاَّ أَنَّ مُسْلِمًا لَمْ يَذْكُرْ إِلاَّ بِحَقِّ الإِسْلَامِ . متفق عليه .

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل :ما ته (د خداى د لوري) داحكم راكول سوى دى چي زه تر هغه وخته پوري د خلګو سره و جنګيږم تر څو چي هغوئ ددې خبري په ژبه او زړه سره اقرار نه وي كړى چي د الله څخه پرته بل معبود نسته او محمد ﷺ دخداى رسول دى او بيا هغوئ لمونځ كوي او زكوة وركوي بيا چي هغوئ داسي كوي نو زما څخه به خپل ځانونه او مالونه خلاص كړي او بيا به پر هغوئ يوازي د اسلام حقوق وي او دهغوئ حساب د خداى پر ذمه دى هغه به يې اخلي او په مسلم كي ددې الفاظو (الا بحق الاسلام) يعني په هغوئ كي به د اسلام حق وي، ذكر نسته . بخاري او مسلم.

**تشريح** : دا دنيا د الله تعالى حقيقي ملكيت دى هغه ددې مځكي پاچا او د ټولو كائناتو حاكم مطلق دى د هغه پر مځكه د اوسېدو حق هغه چا ته تر لاسه دى چي د هغه حاكميت ته په تسليمولو سره د هغه د قوانينو پيروي كوي، د هغه د احكامو تابعداري كوي ، د هغه د نازل سوي نازل نظام شريعت سره سم ژوند تيروي او د هغه د راليږل سوي رسول اطاعت او فرمانبرداري كوي ، په دې دنيا كي د پيغمبرانو د راليږلو اصل مقصد پر مځكه د حقيقي پاچا او حاكم مطلق (الله تعالى) د حاكميت نفاذ كول دي د پيغمبر فريضه وي چي هغه ددين او شريعت په صورت كي د حاكميت الهي كوم عمليات راوړي دي هغه د هري ممكني هڅي په ذريعه خپور كړي ، د خلكو د خپل دين په دائره كي د راويستلو پوره پوره هڅه وكړي او دا خبره يقيني جوړه كړي چي د هغه ددغه هڅي او سعي په نتيجه كي كومه ټولنه جوړه سوې ده په هغې ددنيا د يو غير ديني روايت او قانون او د يو سړي او د يو ډلي حكمراني قائمه نسي بلكه يوازي خدايي حكمراني يعني ددين او شريعت حكومت قائم وي او بيا چا ته ددې خبري اجازه نه وي چي هغه ددين او شريعت دښمن جوړېدو سره په هغه ټولنه (اسلامي امارت) كي پاته سي .

كوم خلك چي سركښي اختيار كړي او د خدايي حكمرانانو لاندي د راتلو څخه منكر وي د هغوئ پر خلاف هغه كاروائي وكړل سي چي په يو ټولنه كي د آئين او حكومت د باغيانو پر

خلاف کیږي ، دا حقیقت رسول الله ﷺ په دغه حدیث کي بیان کړی دی چي ما ته الله تعالی حکم کړی دی چي زه د خدائي حکمرانو د باغیانو او ددین او شریعت ددښمنانو پر خلاف تر هغه وخته پوري جنګ جاري وساتم تر څو پوري چي هغوئ خپله سرکښي او دښمني په پرېښودلو سره زموږ په ټولنه (یعني اسلامي امارت) کي د اوسیدو حق تر لاسه نه کړي او هغوئ ته ددې حق تر لاسه کېدو یو ا صورت دادی چي هغوئ د کفر او عناد پر ځای ایمان او اسلام اختیار کړي یعني د زړه په صدق سره د دې خبري اقرار او په ژبه سره اظهار وکړي چي د الله تعالی څخه پرته بل معبود نسته او محمد ﷺ د الله تعالی رسول دی ، یا په خپل عمل سره دا ثابته کړي چي د هغوئ دغه اقرار او اظهار مخلصانه دی یعني د الله او د هغه د رسول د ټولو حکمونو پیروي وکړي ، په خاصه توګه په پابندي سره لمونځ کوي، زکوة ورکوي او په نورو فرضونو عمل کوي ، دوهم صورت (چي د هغه یادونه په دغه حدیث کي نسته لیکن د نورو ځایو څخه ثابته ده) دادی که هغه خلک د ایمان او اسلام په دائره کي راتلل نه غواړي لیکن په اسلامي ریاست کي خپله هستوګنه جاري ساتل غواړي نو د هغوئ لپاره ضروري ده چي هغوئ په دیني او مذهبي توګه سره نه بلکه په ټولنیز توګه باندي د اسلامي ریاست تابعدار او امن خوښونکي په اوسیدو سره اقرار وکړي چي د هغوئ څخه د هغوئ د جزیې ادا کول په اسلامي حکومت کي د یو غیر مسلم د ټول انساني ټولنیز او ښاري حقوق د تحفظ ضمانت دی ، که یو سړی جزیه ورکول نه غواړي نو د هغه متبادل صورت دادی چي هغه د خپل محکومیت او مغلوبیت اقرار کولو سره د یو خاص معاهدې سره سم د ریاست سره صلح وکړي او په پناه اخیستلو سره په اسلامي ریاست کي اوسي، اسلامي قانون به د خپل خاص رحم او کرم په وجه د هغه د ځان ،مال او عزت د ساتني ذمه داري واخلي .

په هر حال د حدیث شریف څخه څرګنده سوه چي کوم سړی د ایمان او اسلام په دائره کي داخل سي یا په جزیه ادا کولو سره او په پناه اخیستلو سره د اسلامي ریاست اوسیدونکی وي نو د هغه د ځان او مال او د عزت د ساتني ذمه داري به پر ریاست وي او ریاست به د خپل اسلامي قانون سره سم د هغه ټول انساني، ټولنیز او د ښاري حقوقو ساتنه کوي، مګر تر څو پوري چي د قانوني جرمونو ، ټولنیز بې عدالتۍ او بشري خطاو تعلق دی نو د هغوئ څخه به په هر حال کي پوښتنه کیږي، که څه هم د هغه کونکی مسلمان وي یا ذمي که یو څوک په ناحقه قتلوي نو هغه به قصاص کیږي، یا همداسي که یو څوک زنا وکړي نو پر هغه به حد جاري کیږي

او هغه ته به پوره سزا ورکول کیږي، یا د یو چا مال یې په زور واخیستی نو د هغه څخه به د هغه مال خاوند ته ورکول کیږي، لکه د قانون عمل کول چي به په هر حال کي قائمیږي، کوم سړی چي بې قانوني وکړي هغه ته به ضرور سزا ورکول کیږي، د اسلامي حقوقو او قوانینو د نفاذ په اړه د یو خاص او رعایت سوال نه پیدا کیږي.

د حدیث شریف په آخر کي دې خبري ته هم اشاره وسوه چي شریعت د خپل قانون په نفاذ کي په ظاهري توګه سره حکم کوي او باطن حالت الله تعالی ته سپاري، یعني که یو سړی د سر او مال ساتنه یا د یو غرض په وجه په ظاهره مسلمان جوړ سي او په زړه کي یې کفر او عناد وي نو اسلامي قانون به د هغه مسلماني تسلیموي د زړه معامله الله تعالی ته حواله ده، که واقعي د هغه په زړه کي کدورت (چټلي) وي نو په آخرت کي به هغه ته د دغه نفاق سزا یقینا ورکول کیږي هلته به د الهي مؤاخذې څخه خوندي نسي.

دغه حدیث شریف د دې مسئلې هم دلیل دی چي د ملحدینو او زندیقو توبه قبلیدلای سي یعني که ملحد او زندیق دا ووایي چي زه د الحاد او زندقه څخه توبه کوم نو د هغه توبه قبلولو سره د هغه د وژلو څخه به پرهیز کوي.

همدارنګه په دغه مسئله کي ډیر قولونه دي، په هغو کي ظاهري قول دادی که یو سړی د الحاد اظهار وکړي او په خپل ژبه دا الفاظ ووایي چي د هغه څخه د هغه منکر کېدل د الله تعالی څخه او منکر کېدل د دین څخه معلوم سي مګر بیا هغه ژر د الحاد او زندیقي څخه بیزاري وکړي او په رضا او شوق یې توبه وکښل نو د هغه توبه به مقبول وي او که د هغه توبه یوازي د ځان خلاصولو لپاره او د اسلامي قانون د سزا څخه د ساتني لپاره وي نو بیا د هغه توبه نه قبلیږي.

## مسلمان څوک دی؟

﴿ ۱۱ ﴾: وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ أَنَّهُ قَالَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ صَلَّى صَلاَتَنَا وَاسْتَقْبَلَ قِبْلَتَنَا وَأَكَلَ ذَبِيْحَتَنَا فَذٰلِكَ الْمُسْلِمُ الَّذِيْ لَهُ ذِمَّةُ اللّٰهِ وَذِمَّةُ رَسُوْلِه فَلاَ تُخْفِرُوا اللّٰهَ فِيْ ذِمَّتِهٖ. رواه البخاري

د حضرت انس ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: څوك چي زموږ په شان لمونځ کوي زموږ په شان قبلې ته مخ کوي او زموږ حلال سوی (حیوان) وخوري هغه مسلمان دی او هغه د خدای او د خدای د رسول په عهد او امان کي دی نو (خدای ﷻ چي څوك په خپل امان کي اخیستی دی تاسو د هغه عهد مه ماتوئ. بخاري.

**تشریح**: اصل ایمان که څه هم د زړه د تصدیق نوم دی مګر دا یو د ننی کیفیت او قلبي صفت دی

چي د هغه تعلق د باطن سره دی، همداسي اقرار که څه هم دژبې سره تعلق لري مګر هغه هم یو وختي شی دی نو په دوو دینونو کي څرګند امتیاز د هغوئ د بیلو بیلو شعار په ذریعه کیدلای سي، په اسلامي شعار کي لمونځ کول، او بیت الله شریف ته مخ کولو سره عبادت کول د اهل کتاب په مقابله کي تر ټولو زیات امتیازي عمل دی همداسي په ټولنیز لحاظ سره کوم عمل او طریقه کي چي اهل کتاب مسلمانانو څخه په څرګند پرهیز کولو هغه د هغوئ ذبیحه وه چي د مسلمانانو ذبحه کړې غوښه اهل کتابو نه خوړل، نو په دغه حدیث کي وښودل سول که په عباداتو کي هغوئ زموږ په ډول قبلې ته مخ کول پیل کړي او په ټولنیز لحاظ هغوئ موږ ته دومره نژدې سي چي زموږ د لاس ذبیحه خوړل پیل کړي نو دا به ددې خبري دلیل وي چي هغوئ زموږ دین په پوره یقین سره قبول کړی دی او ایمان د هغوئ دغه حد ته رسیدلی دی چي د هغه اظهار نه یوازي دا چي په ژبه سره بلکه د هغوئ د عمل څخه هم کیږي نو اوس مسلمانانو ته پکار ده چي د هغوئ سره هیڅ ډول بد یا خراب چلن ونه کړي، نه هغوئ ته تکلیف ورکړي او نه د هغوئ سره داسي ژوند وکړي چي په هغه سره په هغوئ کي یو ډول بیره یا د زړه ماتېدل پیداسي، د هغوئ سره بد چلن کول په حقیقت کي د الله تعالی د عهد ماتولو او د هغه عهد ماتونکي الزام به پر الله تعالی د عائد کېدو مترادف وي.

## جنت ته بیونکي عملونه

﴿ ۱۲ ﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رضي الله عنه أَنَّ أَعْرَابِيًّا جَاءَ إِلَى رَسُولِ اللّهِ صَلَّى اللّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللّهِ دُلَّنِي عَلَى عَمَلٍ إِذَا عَمِلْتُهُ دَخَلْتُ الْجَنَّةَ قَالَ تَعْبُدُ اللّهَ لَا تُشْرِكُ بِهِ شَيْئًا وَتُقِيمُ الصَّلَاةَ الْمَكْتُوبَةَ وَتُؤَدِّي الزَّكَاةَ الْمَفْرُوضَةَ وَتَصُومُ رَمَضَانَ قَالَ وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ لَا أَزِيدُ عَلَى هَذَا شَيْئًا أَبَدًا وَلَا أَنْقُصُ مِنْهُ فَلَمَّا وَلَّى قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ سَرَّهُ أَنْ يَنْظُرَ إِلَى رَجُلٍ مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ فَلْيَنْظُرْ إِلَى هَذَا. (متفق علیه).

د حضرت ابوهریرة ﷺ څخه روایت دی چي یو صحرایي د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سو او عرض یې وکړ: تاسو ما ته یو داسي عمل راو ښیاست چي زه یې وکړم او جنت ته داخل سم نبي ﷺ ورته وفرمایل: د الله عبادت کوه څوك هغه لره شریك مه نیسه، فرض لمونځ ادا کړه، فرض زکوة ورکړه او د رمضان د میاشتي روژې نیسه، صحرایي چي دا واوریدل نو وه یې ویل قسم دی په هغه ذات چي د هغه په واك کي زما روح ده زه به ددې څخه نه څه زیات کوم او نه به څه کم کوم، کوم وخت چي هغه سړی ولاړی نو رسول الله ﷺ وفرمایل: څوك چي د یو جنتي سړي د لیدو خوشحالي تر لاسه کول غواړي نو هغه دي دا صحرایي سړی وویني. بخاري او مسلم

**تشریح** : دلته شکلونه پیدا کېدلای سي چي رسول الله ﷺ هغه صحرائي د اسلامي تعلیماتو څخه خبر کړ مګر د شهادتین یادونه یې ونه کړه حال دا چي پرته د شهادتینو په جنت کي داخلېدل ناممکن دي ، ددې جواب دادی چي لومړی خو به هغه صحرائي مسلمان وو چي د ایمان راوړلو څخه وروسته په جنت کي د داخلونکي عمل په باره کي یې پوښتنه کول ، دوهم دا چي په دې ټول پوهیږي چي پرته د شهادتین ټول اعمال بیکاره دي او ددې څخه پرته په جنت کي دخول ممکن نه دي ځکه د شهادتین ذکر ضرور ونه ګڼل سو .

دلته یوازي درې فرضونه ذکر سوي دي د پاته فرضونو ذکر ونه کړل سو کوم چي هغه وخت صحرائي پوښتنه کړې وه تر هغه وخته پوري به دا درې شیان فرض سوي وه او پاته فرضونه وروسته مشروع سوي وي، د زیاتي او کمي نه کېدو عهد په حقیقت کي د هغه صحرائي د اعتقاد پوخوالی او قلبي تصدیق د ټېنګېدو دلیل وو، لکه چي د هغه مقصد دا وو چي زما په زړه کي د ایمان او اسلام لذت او د هغه د حقانیت او صداقت کیفیت او د رسول الله ﷺ د احکامو او فرمان د ساتني دا یه هغه ټینګي او پوخوالی سره وه چي نه خو په هغه پوښتنه د یو ډول د کمي رواه دار دی نو د هغه صحرائي او د یقین هغه کیفیت او هغه د احکام او شریعت د هغه جذبه اطاعت لیدو سره لسان نبوت د هغه مخلص انسان د جنتي کېدو زیری واوروی او اعلان یې وکړ که د چا دا خواهش وي چي جنتي سړی ویني او د یو جنتي په لیدو سره خوښي او سعادت تر لاسه کول غواړي نو دغه سړي ته دي وګوري .

## پوره ایمان

| | |
|---|---|
| ﴿ ۱۳ ﴾: وَعَنْ سُفْيَانَ ابْنِ عَبْدِ اللهِ الثَّقَفِيْ قَالَ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللهِ قُلْ لِيْ فِي الإِسْلَامِ قَوْلاً لَا أَسْأَلُ عَنْهُ أَحَدًا بَعْدَكَ وَفِيْ رِوَايَةٍ غَيْرُكَ قَالَ قُلْ آمَنْتُ بِاللهِ ثُمَّ اسْتَقِمْ . رواه مسلم . | د حضرت سفیان ﷺ څخه روایت دی چي ما رسول الله ﷺ ته عرض وکړ چي د اسلام په اړه ما ته یو داسي خبره وښیه چي ستاسو څخه وروسته زه د هغې په اړه د هیچا څخه پوښتنه ونه کړم په یو بل |

روایت کي دي دا الفاظ دي چي بیا ستاسو څخه ماسوا د بل هیچا څخه پوښتنه ونه کړم . رسول الله ﷺ وفرمایل په ژبه او زړه سره ددې خبرې اقرار وکړه چي ما په خدای ایمان راوړی او بیا پر دې اقرار ټینګ اوسه. مسلم .

**تشریح** : یعني تر ټولو لومړی مرتبه خو داده چي د الله تعالی د وحدانیت او د هغه د الوهیت شاهدي وکړي او د هغه پر ذات او صفاتو باندي د زړه په صدق سره ایمان راوړي دا د ایمان

باالله اعتقادي صورت دی او ددې عملي صورت دادی چي الله تعالی د خپل رسول په ذريعه چي کوم شريعت نازل کړی دی د هغه صداقت او حقانيت باندي پوره يقين وساتي او د هغه په قبلولو سره د احکام رسول اطاعت او فرمانبرداري وکړي ، الله او د هغه رسول چي د کوم شي د کولو حکم وکړی په هغه عمل کوي او د کوم شي څخه چي يې منعه وکړه د هغه څخه منعه سي بيا دا چي اعتقاد يو عارضي شی نه وي بلکه پر دې پوخوالي باندي قائم او دائم اوسي او د ژوند په هيڅ يوه لحظه کي ددې څخه مخ کرځول ونه کړي .

## د اسلام فرضونه

﴿۱۴﴾: وَ عَنْ طَلْحَةَ بْنَ عُبَيْدِ اللَّهِ قَالَ جَاءَ رَجُلٌ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ أَهْلِ نَجْدٍ ثَائِرُ الرَّأْسِ نَسْمَعُ دَوِيَّ صَوْتِهِ وَلَا نَفْقَهُ مَا يَقُولُ حَتَّى دَنَا مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَإِذَا هُوَ يَسْأَلُ عَنِ الْإِسْلَامِ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَمْسُ صَلَوَاتٍ فِي الْيَوْمِ وَاللَّيْلَةِ فَقَالَ هَلْ عَلَيَّ غَيْرُهُنَّ فَقَالَ لَا إِلَّا أَنْ تَطَوَّعَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَصِيَامُ شَهْرِ رَمَضَانَ قَالَ هَلْ عَلَيَّ غَيْرُهُ فَقَالَ لَا إِلَّا أَنْ تَطَوَّعَ وَذَكَرَ لَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الزَّكَاةَ فَقَالَ هَلْ عَلَيَّ غَيْرُهَا فَقَالَ لَا إِلَّا أَنْ تَطَوَّعَ قَالَ فَأَدْبَرَ الرَّجُلُ وَهُوَ يَقُولُ وَاللَّهِ لَا أَزِيدُ عَلَى هَذَا شَيْئٍ وَلَا أَنْقُصُ مِنْهُ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَفْلَحَ إِنْ صَدَقَ (متفق عليه)

د حضرت طلحة بن عبيدالله [۱] ﷺ څخه روايت دی چي د نجد يو سړی د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سو د هغه د سر ورېښتان ګډ وډ وه د هغه آواز خو زموږ غوږو ته راتلي خو د هغه په خبره نه پوهيدو . کله چي هغه رسول الله ﷺ ته نژدې سو نو موږ واورېدل چي هغه د اسلام د فرائضو پوښتنه کوي . رسول الله ﷺ (په جواب کي) وفرمايل : په شپه او ورځ کي پنځه لمنځونه فرض دي ،هغه عرض وکړ ددې څخه پرته ايا نور لمنځونه هم فرض دي ؟ رسول ﷺ ورته وفرمايل : نه، خو د نفل کولو تاته اختيار دی ، بيا رسول الله ﷺ ورته وفرمايل او د رمضان د مياشتي روژې (فرض دي) هغه وويل ايا ددې څخه پرته نوري روژې هم پر ما فرض دي ؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : نه . خو د نفلي روژو تاته اختيار دی، طلحه بن عبيدالله وايي ددې وروسته رسول الله ﷺ د هغه سړي په وړاندي د زکوة يادونه وکړه هغه پوښتنه وکړه ايا ددې پرته نور زکوة هم پر ما فرض دی؟ رسول الله ﷺ وفرمايل : نه. خو د نفل

[۱] د نوموړي کنيت ابومحمد قريشي وو او لقب يې طلحة الخير دی ، د (۲۴) کالو په عمر کي په کال (۳۶ھ) کي وفات سوی دی .

خیرات کولو تاته اختیار دی ، د طلحه بیان دی چي ددې وروسته هغه (نجدي) سړی ولاړی او داسي یې وویل: قسم په خدای نه به ددې څخه زیات کوم او نه کم ، ددې په اورېدو سره رسول الله ﷺ وفرمایل: که دې سړي دا وینا رښتیا کړې وي نو کامیاب سو. بخاري ومسلم.

**تشریح** : څرنګه چي په مخکي یو حدیث شریف کي تیر سول دلته هم هغه ویل کیږي چي کله هغه سړي پوښتنه کړې وه نو تر هغه وخته پوري هغو مړه فرضونه مشروع سوي وای، همداسي وتر او د اختر لمنځونه وغیره به هم واجب سوي نه وای ځکه هغه سړي په هغه کي د زیاتي او کمي نه کولو وعده وکړه ، یا دا ویل کیدای سي چي هغه سړی د یو نمائنده کېدو سره د اسلام حقیقت او فرضونه پیژندلو لپاره راغلی وو چي بیرته ولاړ سي او خپل قوم هم د اسلامي تعلیم او فرضونه څخه خبر کړي، ځکه چي هغه د ستنېدو په وخت کي وویل چي نه خو به زه په دې کي زیاتوب کوم او نه کمي، یعني رسول الله ﷺ چي څه فرمایلي دي یا کوم احکام او فرمان چي یې ورکړی دی هغه به هم هغسي خپل قوم ته ورسوم په هغه کي به د خپل ځان څخه نه څه زیاتي او نه څه کمي کوم.

## په اسلام کي د مبلغ مقام

﴿ ۱۵ ﴾: وَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ اِنَّ وَفْدَ عَبْدِ الْقَيْسِ لَمَّا اَتَو رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنِ الْقَوْمُ ؟ اَوْ مَنِ الْوَفْدُ؟ قَالُوا رَبِيعَةَ قَالَ مَرْحَبًا بِالْقَوْمِ اَوْ بِالْوَفْدِ غَيْرَ خَزَايَا وَلَانَدَامٰى قَالُوْا يَارَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّا لَانَسْتَطِيْعُ اَنْ نَّاْتِيْكَ اِلَّا فِي الشَّهْرِ الْحَرَامِ وَ بَيْنَنَا وَبَيْنَكَ هٰذَا الْحَيُّ مِنْ كُفَّارِ مُضَرَ فَمُرْنَا بِاَمْرٍ فَصْلٍ نُخْبِرُ بِهِ مَنْ وَرَاءَنَا وَنَدْخُلَ بِهِ الْجَنَّةَ وَسَاَلُوْهُ عَنِ الْاَشْرِبَةِ، فَاَمَرَهُمْ بِاَرْبَعٍ وَنَهٰهُمْ عَنْ اَرْبَعٍ اَمَرَهُمْ بِالْاِيْمَانِ بِاللّٰهِ وَحْدَهٗ قَالَ اَتَدْرُوْنَ

د حضرت ابن عباس [۱] ﷺ څخه روایت دی چي د عبدالقیس د قبیلې یو ډله ذ نبي کریم ﷺ په خدمت کي حاضر سول ، نو رسول الله ﷺ پوښتنه وکړه دا ډله یا وفد د کومي قبیلې دی؟ هغو وویل موږ د ربیعه د قبیلې څخه یو ، رسول ﷺ وفرمایل :ستا ډلي یا وفد ته دي ښه راغلاست وي نه به تاسو کله رسوا سئ او نه به پښیمانه، هغو خلګو وویل: اې د الله رسوله ! زموږ او ستاسو په منځ کي د مضر قبیلې کفار حائل دي په دې چي موږ ژر ژر نه سو حاضریدلای یوازي د اشهر حرم (ذیقعده، ذالحجة، محرم او رجب) په

---

[۱] د رسول الله ﷺ د سکه اکا حضرت عباس ﷺ زوی دی چي د خیر الامت په لقب سره مشهور دی ، د (۷۰) کالو په عمر کي په طائف نامي ځای کي وفات سوی دی .

ماالایمان باالله وحده ؟ قَالُوْا اَللّٰهُ وَرَسُوْلُهُ اَعْلَمُ، قَالَ شَهَادَةُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَأَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللَّهِ وَإِقَامِ الصَّلَاةِ وَإِيتَاءِ الزَّكَاةِ وَصِيَامِ رَمَضَانَ وَأَنْ تُعْطُوْا مِنَ الْمَغْنَمِ الْخُمُسَ وَنَهٰهُمْ عَنْ اَرْبَعٍ عَنِ الْحَنْتَمِ وَالدُّبَّاءِ وَالنَّقِيْرِ وَالْمُزَفَّتِ وَقَالَ احْفَظُوْهُنَّ وَاَخْبِرُوْابِهِنَّ مَنْ وَّرَآءَكُمْ (متفق علیه) .

میاشتو کي موږ ته د حاضریدو موقع په لاس راځي په دې وجه تاسو موږ ته (د حق او باطل په منځ کي) پريکړه کونکي احکام او هدایات وښیاست چي هغه خلك هم موږ اګاه کړو کوم چي موږ په کورونو کي پرې ایښي دي او په هغې عمل کولو سره موږ په جنت کي داخل سو ، ددې وروسته هغه خلګو د څښلو پــــــه اړه هم لاربښووني و غوښتلې ، نبي کریم ﷺ هغو خلګو ته د څلورو خبرو حکم ورکړ او د څلورو خبرو څخه يې منعه کړل، حکم يې ورکړ هغوئ ته پر یوه خدای دایمان راوړلو حضرت ورته وفرمایل تاسو پوهیږئ چي پر یو خدای د ایمان راوړلو څه مطلب دی ؟ هغو وویل : الله او د هغه رسول ښه پوهیږي ، نبي کریم ﷺ ورته وفرمایل : ددې خبري شاهدي ورکول چي د خدای څخه پرته بل دعبادت وړ نسته او محمد ﷺ د الله رسول دی او لمونځ کول ، زکوة ورکول د رمضان د میاشتي روژې نیول او د غنیمت د مال څخه پنځمه برخه ورکول ، بیا نبي کریم ﷺ هغوئ د څلور ډوله لوښو د استعمال څخه منعه کړل یعني : لاك سوې مرتبانه یا منګی، د کدو لوښي، د ونو د بیخو څخه جوړ سوي لوښي او په تیلو وهل سوي لوښو څخه . ددې څخه وروسته نبي کریم ﷺ هغوئ ته وفرمایل دا خبري په یاد لرئ او هغه خلك خبر کړئ کوم چي تاسو وروسته پرې ایښي دي . بخاري او مسلم . (دغه څلور ډوله لوښو څخه په هغه وخت کي د شرابو جوړولو او ساتلو کار اخیستل کیدی نو په دغه سبب يې منعه ځیني فرمایلې وه ) .

**تشریح** : د اسلام آواز چي د مکې او مدینې د چار دیوالو څخه په وتلو سره نورو سیمو ته ورسیدی نو د مختلفو ځایونو او قومونو خلک د وفد په شکل کي د اسلامي لاربښونو حقیقت او د پیغمبر اسلام ﷺ د دعوت صداقت پیژندلو او پوهېدلو لپاره حاضریدل پیل سول ، ددغه وفدونو دیني تعلیمات او د اسلامي فرضونو د نبي کریم ﷺ څخه تر لاسه کولو او په خپلو سیمو او قبیلو کي په ستنېدو سره د اسلام تبلیغ به یې کوی .

په حدیثونو کي د داسي ډیر وفدو ذکر راغلی دی چي په ددې لپاره د رسالت په دربار کي حاضر سول او د سلام آواز يې تر لیري لیري سیمو او قبیلو ته رسولو ذریعه جوړ سول، همداسي یو وفد د عبدالقیس دی چي د هغه یادونه په دغه حدیث کي کیږي ، عبدالقیس په اصل کي د وفد د مشر نوم وو او د هغه په نسبت سره دا وفد مشهور سو ، دغه خلک د بحرین

اوسیدونکي وه او د رسول الله ﷺ په خدمت کي دوه واره حاضر سول ، په لومړي ځل د مکې مکرمې د فتح څخه مخکي په (۵) هجري کال کي چي د هغوئ شمیر ۱۳ یا ۱۴ وو ، په دوهم ځل په ۸ ھ یا ۹ ھ کال کي چي د هغوئ شمیر ۴۰ وو ، دا هغه وفد دی چي د هغوئ د قبیلې په مسجد کي د مسجد نبوي څخه وروسته تر ټولو لومړی جمعه قائمه سوې ده ، د بخاري شریف روایت دی :

إِنَّ أَوَّلَ جُمُعَةٍ جُمِّعَتْ بَعْدَ جُمُعَةٍ فِي مَسْجِدِ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي مَسْجِدِ عَبْدِ الْقَيْسِ بِجُوَاثَى مِنَ الْبَحْرَيْنِ

ژباړه : د مسجد نبوي څخه وروسته تر ټولو لومړۍ جمعه د بحرین په جواثي نامي ځای کي د عبدالقیس په مسجد کي سوې ده .

ددغه وفد د راتلو په اړه نقل دي چي یوه ورځ رسول الله ﷺ خپل صحابه کرامو ته وفرمایل چي تاسو ته اوس یو داسي ډله راتلونکې ده چي په اهل مشرق کي تر ټولو غوره ده . حضرت عمر ﷺ د هغوئ د لېدو لپاره ودریدی نو د دیارلسو (۱۳) کسانو یوه قافله ورته را روانه معلومه سوه ، کله چي قافله نژدې راغله نو حضرت عمر ﷺ هغوئ ته د رسول الله ﷺ زیری واوروئ او د قافلې سره د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سول ، د قافلې د خلکو نظر چي پر نوراني مخ ولګېدی نو ټولو بې تابه رسول الله ﷺ ته ور منډي کړې او د ډېره شوقه یې خپل سامان همداسي پرېښودی د رسول الله ﷺ لاس مبارک یې مچ کړی ، عبدالقیس چي د قافلې امیر وو ، که څه هم د لږ عمر وو مګر تر ټولو وروسته پاته سوی وو هغه تر ټولو وړاندي اوښان وتړل بیا خپل صندوق یې خلاص کړ او د سفر جامې یې وکښلې او دوهمه جامه یې واغوستل او بیا په آرامه او وقار سره د رسول الله ﷺ په خدمت کي په حاضرېدو سره یې د هغوئ ﷺ لاس مبارک مچ کړ ، سړی بد شکل وه ، رسول الله ﷺ چي هغه ته وکتل نو هغه عرض وکړ اې دالله رسوله ! د سړي مینه یوازي د هغه د صورت سره نه کیږي بلکه د قدر او قیمت د هغه دوه کوچني اندامونه ښیي چي هغه ژبه او زړه دي ، رسول الله ﷺ ورته وفرمایل : په تا کي دوه عادتونه دي چي الله تعالی او رسول ته خوښ دي یعني دانائي او بردباري ، هغه عرض وکړ اې دالله رسوله ! ایا دغه عادتونه په ما کي پیدائشي دي او که کسبي ، رسول الله ﷺ ورته وفرمایل : پیدائشي .

ددغه قبیلې خلکو د خپل هیواد څخه مدینې ته د راتلو لپاره د کفار مضر پر قبیله باندي تیریدل وسول ، او ددغه قبیلې په اړه ویل کیږي چي هغوئ ډیر جنګیان وه د هغوئ د سیمي

نژدې چي به څوک تیریدی نو د هغوي سره جنګ کول ضروري وه ځکه نو هغه وفد وویل چي زموږ لپاره په عامو ورځو کي ډیر مشکل ځکه په وار وار نسو راتللای یوازي په هغه میاشتو کي راتلای سو چي په عربو کي اشهر حرام ګڼل کیږي ، د وفد خلکو ته چي د کومو شیانو تعلیم ورکړل سو هغه څلور دي : پر الله او د هغه پر رسول باندي ایمان راوړل، لمونځ، روژه، زکوة، د حج ذکر ونه کړل مګر ځینو محدثینو په دغه حدیث کي د حج البیت الفاظ هم ذکر کړي دي چي حافظ ابن حجر شاذ ګرځولي دي .

دغه خلکو ته وروسته یو حکم په خاصه توګه ورکړل سو هغه د غنیمت د مال پنځمه برخه ادا کول او هغوئ ته دا حکم ورکړل سوی وو چي دغه خلکو زیات وخت جهاد کوی او د کفارو سره د مقابلې په نتیجه کي به یې د غنیمت مال تر لاسه کوی، د کومو څلورو شیانو څخه چي دغه خلک منعه کړل سوي وه هغه څلور لوښي وه چي د هغو استعمال په هغه ورځو کي منعه وو، په اصل کي هغه خاص لوښي وه چي په عربو کي د شراب جوړلو او شراب اېښودلو لپاره استعمالېدل ، شراب حرام سوي وه ځکه د هغه لوښي د استعمال څخه هم منعه وفرمایل سوه چي په هغه سره د شراب د موجودګی یا د شراب د استعمال شبه پاته نسي، بیا هر کله چي د شرابو حرمت د مسلمانانو په زړونو کي ټینګ سو او د هغه لوښو په اړه دا احتمال پاته نه سو چي دا لوښي په خاصه توګه د شرابو لپاره جوړیږي نو بیا د هغه استعمال رواه وګرځول سو ، نو دا حکم به اوس منسوخ ګڼل کیږي .

## د اسلام حکمونه

﴿۱۶﴾: وَعَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَحَوْلَهُ عِصَابَةٌ مِّنْ أَصْحَابِهِ بَايِعُوْنِيْ عَلَى أَنْ لاَّ تُشْرِكُوْا بِاللهِ شَيْئًا وَّلاَ تَسْرِقُوْا وَلاَ تَزْنُوْا وَلاَ تَقْتُلُوْا أَوْلاَدَكُمْ وَلاَ تَأْتُوْا بِبُهْتَانٍ تَفْتَرُوْنَهُ بَيْنَ أَيْدِيْكُمْ وَأَرْجُلِكُمْ وَلاَ تَعْصَوْا فِيْ مَعْرُوْفٍ فَمَنْ وَفٰى مِنْكُمْ فَأَجْرُهُ عَلَى اللهِ وَمَنْ

د حضرت عباده [۱] رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ د صحابه کرامو هغه ډلي ته کوم چي شاوخوا ناست وه وفرمایل : په دې خبره زما سره بیعت وکړئ چي تاسو به د خدای سره هیڅوك نه شریکوئ، غلا به نه کوئ، زنا به نه کوئ، خپل اولاد به نه وژنئ ( د مفلسی د بیري)، پر چا به د خانه تهمت نه وایاست چي درواغ جوړوئ

[۱] د مشهورو انصاري صحابه کرامو څخه دی چي په بیعت عقبه اولی او ثانیه کي شریک وو ، د اهل صفه معلم وو ، د (۷۲) کالو په عمر کي په کال (۴۳ھ) کي وفات سو .

أَصَابَ مِنْ ذٰلِكَ شَيْئًا فَعُوْقِبَ بِهٖ فِي الدُّنْيَا فَهُوَ كَفَّارَةٌ لَّهُ وَمَنْ أَصَابَ مِنْ ذٰلِكَ شَيْئًا ثُمَّ سَتَرَهُ اللّٰهُ عَلَيْهِ فِي الدُّنْيَا فَهُوَ إِلَى اللّٰهِ إِنْ شَاءَ عَفَا عَنْهُ وَإِنْ شَاءَ عَاقَبَهٗ فَبَايَعْنَاهُ عَلٰى ذٰلِكَ . ( متفق علیه )

مخامخ (یعني ځای پر ځای) او په نیکو کارونو کي به نافرماني نه کوئ، نو کوم سړی چي په تاسو کي دا عهد پوره کړي د هغه ثواب د الله پر ذمه دی او چا چي ددې خلاف وکړل او په دنیا کي هغه ته ددې سزا ورکړل سول نو دا سزا د هغه کفاره ده او چا چي په دې کي د یو خبري خلاف عمل وکړ او خدای ﷻ پر هغه پرده واچول نو هغه د خدای خوښه ده که یې معاف کوي یا د هغې سزا ورکوي ، عباده ؓ وایي موږ ټولو په دې بیعت وکړ . بخاري او مسلم

**تشریح** : د اهل سنت و الجماعت دا مسلک دی چي جزا او سزا د الله تعالی اختیاري افعال دي، یعني که د یو ګناه ځخه هغه معافي وکړي نو دا د هغه فضل او کرم دی او که چا ته د هغه پر ګناه سزا ورکړي نو دا به د هغه د وصف عدل مظهر وي هغه په خپل خوښي کي بالکل مختار دی څرنګه چي غواړي چا ته چي غواړي بخښنه وکړي چا ته چي غواړي سزا ورکړي یعني معتزله وایي چي ګناه کار ته سزا ورکول او نیکان په اجر او انعام سره نازول د الله ﷻ لپاره ضروري دي .

## د ښځو لپاره نبوي فرمان

﴿۱۷﴾: وَعَنْ اَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيْ قَالَ خَرَجَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ اَضْحٰى اَوْ فِطْرٍ اِلَى الْمُصَلّٰى فَمَرَّ عَلَى النِّسَاءِ فَقَالَ يَا مَعْشَرَ النِّسَاءِ تَصَدَّقْنَ فَاِنِّي رَأَيْتُكُنَّ اَكْثَرَ اَهْلِ النَّارِ فَقُلْنَ وَبِمَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ؟ قَالَ تُكْثِرْنَ اللَّعْنَ وَتَكْفُرْنَ الْعَشِيْرَ مَا رَأَيْتُ مِنْ نَاقِصَاتِ عَقْلٍ وَدِيْنٍ أَذْهَب لِلُبِّ الرَّجُلِ الْحَازِمِ اِحْدٰكُنَّ قُلْنَ وَمَا نُقْصَانُ دِيْنِنَا وَعَقْلِنَا يَارَسُوْلَ اللّٰهِ ؟ قَالَ اَلَيْسَ شَهَادَةُ الْمَرْاَةِ مِثْلُ نِصْفِ شَهَادَةِ الرَّجُلِ؟ قُلْنَ بَلٰى قَالَ فَذَالِكَ مِنْ نُقْصَانِ عَقْلِهَا ، قَالَ اَلَيْسَ اِذَا حَاضَتْ لَمْ تُصَلِّ وَلَمْ تَصُمْ قُلْنَ بَلٰى، قَالَ

د حضرت ابوسعید[۱] ؓ ځخه روایت دی چي د لوی اختر او یا کوچني اختر په ورځ رسول الله ﷺ عیدګاه ته تشریف راوړ او د ښځو د یو ډلي سره نږدې تیریدو سره یې هغوئ ته وفرمایل: اې د ښځو ډلي! تاسو صدقه او خیرات کوئ ځکه چي ما ته ښودل سوي دي چي په تاسو کي زیاتي دوږخیاني دي، ښځو عرض وکړ اې دالله رسوله ! ددې سبب څه دی؟ رسول الله ﷺ وفرمایل : تاسو لعنت ډیر وایاست د خاوند ناشکري کوئ او په تاسو کي یوه هم داسي نسته چي سربیره د کم عقلۍ او کم دینۍ یو

[۱] د نوموړي اصلي نوم سعد بن مالک بن شیبان دی ، ابوسعید یې کنیت دی او د خدري په نسبت سره مشهور دی ، په کال (۷۴هـ) کي د جمعې په ورځ د (۸۴) کالو په عمر کي وفات سو .

فَذَالِكَ مِنْ نُقْصَانِ دِيْنِهَا (متفق عليه) . | هوښيار سړی بې عقل نه کړئ ، ښځو عرض

وکړ اې د الله رسوله ! زموږ په دين او عقل کي څه کموالی دی ؟ رسول الله ﷺ وفرمايل : ايا د يوې ښځي شاهدي د سړي په پرته نيمه شاهدي نه ده ، ښځو عرض وکړ اې دالله رسوله ! دا صحيح ده ، رسول الله ﷺ وفرمايل : دا خو ستاسو د عقل کموالی دی او هر کله چي تاسو د حيض په حالت کي ياست نو نه لمونځ کوئ اونه روژه نيسئ. ښځو عرض وکړ هو . نو رسول الله ﷺ وفرمايل دا د هغې په دين کي د نقصان وجه ده . بخاري اومسلم.

**تشريح** : د اسلام په پيل کي به ښځو هم د خلکو سره په مسجد کي لمونځ ادا کوی ځکه د کوچني يا لوی اختر د لمانځه لپاره بيبياني عيدګاه ته راتلې هغوئ به بيلي په يو کونج کي ناستي وې او د خطبې آواز به هغوئ ته نه رسيدی ځکه نو ضروري سوه چي د دين احکام او ضروري خبري هغوئ ته ورسول سي نو رسول الله ﷺ هغوئ ته تشريف يوړ او هغوئ ته يې وعظ او نصيحت وفرمايه .

د اکثر ښځو عادت وي چي يو دوې سره کښيني يا ډيري سره يو ځای سي نو د يو بل غيبت د دنيا بدي او نيکي بيانول او لعنت ويل پيل کړي ، نو زيات وخت يې په دغه خرافاتو کي تيريږي، همدارنګه دا يو لوی نقص هم دی چي په ښځو کي تر سترګو کيږي ، د هغوئ خاوندان د هغوئ د آرام او راحت لپاره ځومره تکليفونه تيروي ، ځومره په محنت او مشقت سره د هغوئ ضروريات پوره کوي او د هغوئ خوشحاله ساتلو لپاره ځومره مصيبتونه پر ځان وړي ، مګر د هغوئ د ژبې ځخه هيڅکله هم د خاوندانو شکر نه ادا کيږي هميشه د ناشکرۍ الفاظ يې د ژبې ځخه راوځي ، پاته سوه د خاوندانو د نافرمانۍ خبره نو دا خرابي په ښځو کي هم کمه نه ده ، ظاهره ده چي دا ټولي خبري د يو لوی عيب غمازي کوي چي په هغه سره د هغه آخرت تباه کيږي چي هغوئ ته د الله تعالی عذاب مستوجب کيږي ځکه نبي کريم ﷺ د هغوئ د دغه خاص عيب ښودنه وفرمايل او هغوئ ته يې وفرمايل چي په تاسو کي دا ډول خبري دي او تاسو يې معمولي مه ګڼئ بلکه دا هغه ګناهونه دي چي د هغه په وجه به پر تاسو د الله تعالی عذاب وي او تاسو به د الله تعالی په قهر کي راګير سئ او دوږخ ته به واچول سئ او تاسو د دې خبرو په سبب په دوږخ کي ستاسو د ښځو اندازه به د خلکو په نسبت زياته وي نو تاسو صدقه او خيرات کوئ چي يوې خوا ته د هغه په برکت په تاسو کي د دغه خبرو کمی راسي او دغه عيب در ځخه ولاړ سي بلي خوا ته د الله رحمت ستاسو په لور متوجه سي چي ستاسو د ګناهونو بخښنه وسي .

د لعنت کولو معنا داده چي د الله تعالی د رحمت څخه لیري کېدل ، د حدیث شریف څخه دا خبره ثابته سوه چي پر چا باندي لعنت ویل ډېر بد عمل دی ، د شریعت حکم دی چي یو څوک د یو سړي په ټاکلو سره پر هغه لعنت ویلو باندي په دې وجه دي نسي ویل کیدلای چي کیدای سي هغه ته د ایمان او اسلام توفیق ورکړل سي او هغه د کفر او شرک د لعنت څخه په وتلو سره د الله تعالی د رحمت تر سایې لاندي راسي ، هو کوم سړی چي د کفر په حالت کي مړ سي او د هغه پر کفر باندي مړ کېدل په یقیني توګه سره څرګند سي نو پر هغه باندي لعنت ویل کیدلای سي ، همدارنګه پر خراب کار باندي لعنت ویل کیدلای سي یا داسي ویل کیدلای سي چي پر کفر دي د الله تعالی لعنت وي یا دا چي پر کافر دي د الله تعالی لعنت وي .

په ښځو کي د عقلي کمی یا د هغوئ د دیني نقصان اظهار د ښځو د تحقیر (سپکتیا) لپاره هیڅکله نه دی بلکه د قدرت د هغه تخلیقي توازن په لور اشاره کولو لپاره دي چي د خلکو او ښځو په منځ کي د بدني او طبعي فرق صنفیت بنیاد دی او دا فرق صنفیت په اصل کي د فطرت غوښتنه ده چي د هغه څخه پرته د انساني ذاتي او ټولنیز ژوند اعتدال نسي پاته کېدلای ، خالق کائنات په بدني ، طبعي ، عقلي او دیني توګه سره خلکو ته د ښځي په نسبت چي کوم غوره والی ورکړی دی او د هغه ثبوت د دغه حدیث څخه څرګند سو نو هغه د انساني ټولني د اعتدال او توازن برقراري لپاره دی نه دا چي په شرف انسانیت کي د فرق د اظهار لپاره دی ، په شرف کي ښځه او سړی دواړه یو ډول حیثیت لري او د دواړو مساوي درجه ده .

## انسان ته سرکښي نه ښائي

﴿۱۸﴾: وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: قَالَ اللّٰهُ كَذَّبَنِي ابْنُ آدَمَ وَلَمْ يَكُنْ لَهُ ذٰلِكَ وَشَتَمَنِيْ وَلَمْ يَكُنْ لَهُ ذٰلك فَأَمَّا تَكْذِيْبُهُ إِيَّايَ فَقَوْلُهُ لَنْ يُعِيْدَنِيْ كَمَابَدَانِيْ وَلَيْس اَوَّلُ الْخَلْقِ بِاَهْوَنَ عَلَيَّ مِنْ اِعَادَتِهِ وَاَمَّا شَتْمُهُ إِيَّايَ فَقَوْلُهُ اِتَّخَذَ اللّٰهُ وَلَدًا وَاَنَا الْاَحَدُ الصَّمَدُ الَّذِيْ لَمْ أَلِدْ وَلَمْ أُوْلَدْ وَلَمْ يَكُنْ لِّيْ كُفُوًا أَحَدٌ وفي رواية ابن عباس وأما شتمه إِيَّايَ فَقَوْلُهُ لِيْ وَلَدٌ وَسُبْحَانِيْ أَنْ اَتَّخِذَ

د حضرت ابوهریرة ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : الله ﷻ فرمایلي دي د آدم زوی ما د روغجن کوي او دا کار د هغه سره مناسب نه دی او ما ته بد وایي او دا د هغه سره نه ښایي . او انسان لره زما دروغجن کول دادي چي هغه دا وایي چي خدای زه څنګه پیدا کړی یم د مرګ څخه وروسته مي دغسي هیڅکله نه سي ژوندی کولای حالنکه د هغه په لومړي وار پیداکول ما ته د هغه د دوهم وار پیداکولو په نسبت زیات

صَاحِبَةً أَوْ وَلَدًا . (رواه البخاري) | آسان دي او د هغه بد ويل دادي چي

هغه دا وايي چي خداى ﷻ خپل ځان لره زوى غوره کړى دى حال دا چي زه يوازي يم نه زه د چا پيدا يم او نه زما څخه څوك پيدا دى او نه څوك زما سيال سته او د حضرت عباس ﷺ څخه چي کوم روايت نقل دى په هغه کي دا الفاظ دي د انسان ما ته بد ويل داسي دي چي هغه زما په باره کي دا وايي چي د خداى زوى سته حالنکه زه د ښځي يا زوى درلودلو څخه پاك يم . بخاري.

**تشريح** : کوم خلک چي دا وايي چي قيامت به نه راځي او دا ممکن نه ده چي په يو وار پيدا کېدو سره مړ کېدونکو او د دې دنيا څخه د خپل وجود ختمېدونکو ته دوهم وار ژوند تر لاسه سي او د يوې نوي دنيا (آخرت) لپاره دي د هغوئ وجود بيا په عمل کي راسي يا داسي کوم خلک چي د الله تعالى لپاره زوى ثابتوي او دا عقيده لري لکه څرنګه چي عيسايان وايي چي حضرت عيسى ؑ د الله زوى دى يا يهوديانو ويل چي حضرت عزير ؑ د الله تعالى اولاد (زوى) دى، دا په حقيقت کي يوازي د فکر او عقيدې بې لاري کېدل نه دي بلکه د الله تعالى په لور د دروغو نسبت کول او د هغه پر ذات باندي بهتان تړل دي، د دروغو نسبت خو په دې اعتبار سره دى چي الله تعالى د خپل ريښتوني کتابونو او پيغمبرانو په ذريعه د قيامت څرګند خبر ورکړى دى او ښودلي يې دي چي هر روح لرونکى به مړ کيږي او بيا په آخرت کي په دوهم وار ژوندي کېدو سره به يو نوى ژوند تر لاسه کوي چي ابدي به وي اوس که يو سړى د قيامت څخه انکار کوي يا د مرګ څخه وروسته ژوند ممکن نه ګڼي نو په اصل کي هغه (نعوذبالله) الله تعالى دروغجن ګڼي چي موږ ته يې د غلطو خبرو خبر راکړى دى ، او همدارنګه دا تصور قائمول او ويل چي کوم سړى د يو ځل پيداکېدو سره نيست او نابود سوى دى هغه دوهم وار په وجود کي نسي راتلاى ، دا په اصل کي د الله تعالى د قادريت صفت څخه انکار کول دي ، ددغه ناپوهو په عقل کي دا لويه خبره نه راځي چي کوم خالق يو شى د عدم څخه په پيداکېدو سره د وجود لباس ور اغوستى دى هغه شى هر کله چي د هغه په ماتولو سره خپل قالب ضائع کړى وي دوهم قالب او وجود نسي ورکولاى ، محدود قدرت لرونکى انسان هم د يو شى په تخلق کي که دقت او مشکل محسوسوي نو په لومړي ځل تخليق کي يې محسوسوي هر کله چي د هغه شي دوهم وار جوړول د هغه لپاره دومره مشکل نه دى ، نو بيا لامحدود طاقت او قدرت لرونکى خلاق عالم خپل تخليق ته په دوهم وار وجود ورکولو کي څه دقت کيداى سي ، څرګنده دي وي چي د لومړي ځل او دوهم ځل دا تفصيل د انسان د اعتبار څخه محض د پوهېدلو لپاره دى ددې تعلق

د حق تعالی د ذات سره هیڅ کله نه دی هغه خو قادر مطلق دی د یو شي پیدا کول د هغه لپاره نه په لومړي ځل مشکل دي او نه په دوهم ځل.

د الله تعالی په اړه د بد ویلو ذریعه د هغه پر ذات باندي بهتان تړل په دې وجه دي چي هر کله هغه په څرګنده توګه ښودلي دي چي هغه یوازي بې نیازه او بې سیاله دی او دا چي نه هغه د چا څخه پیدا دی نو بیا څوک د هغه زوی جوړول یا هغه ته د چا پلار ویل د هغه پر ذات بهتان نه دي نو نور څه دي، دا د انسان ذهني کموالی او د فکر او خیال د کمزورۍ خبره ده چي هغه د خپل خالق او خپل پروردګار په لور د داسي شیانو نسبت وکړي چي د هغه څخه د هغه ذات پاک او بې نیازه دی.

## زمانې ته بد مه وایاست

| | |
|---|---|
| ﴿ ۱۹ ﴾: وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: قَالَ اللهُ تَعَالَى يُؤْذِيْنِيْ ابْنُ آدَمَ يَسَبُّ الدَّهْرُ وَأَنَا الدَّهْرُ بِيَدِيْ الأَمْرُ أُقَلِّبُ اللَّيْلَ وَالنَّهَارَ .( متفق عليه ) | د حضرت ابوهریرة ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: الله تعالی فرمایي: د آدم زوی (انسان) زمانې ته بد وایي نو ما ته تکلیف راکوي خال دا چي زمانه زه یم هر څه زما په واك کي دي زه شپه او ورځ بدلوم را بدلوم. بخاري اومسلم. |

**تشریح**: د جاهلانو عادت دی چي هغوئ د انسانانو خپل پیدا کړي پریشانۍ او مصیبتونه د بدۍ په صورت کي د زمانې او وخت پر سر تپي او په خپل ژبه سره داسي الفاظ وایي چي زمانه خرابه ده، هغه وخت ډېر خراب دی، وخت او زمانې ته بد ویل سخته غلطي ده ځکه چي زمانه او وخت خو هیڅ شی نه دی، اصل متصرف خو د الله تعالی ذات دی چي د هغه په واک کي د شپې او ورځ ګرځېدل دي او د شپې او ورځ د دغه ګرځېدو نوم زمانه او وخت دی، که زمانه او وخت په متصرف ګڼلو سره ورته بد وویل سي نو متصرف حق تعالی دی ځکه هغه بدي د الله تعالی طرف ته ګرځي.

## د الله ﷻ صبر او تحمل

| | |
|---|---|
| ﴿ ۲۰ ﴾: وَعَنْ أَبِيْ مُوْسَى الأَشْعَرِي قَالَ قَالَ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا أَحَدٌ أَصْبَرَ عَلَىٰ أَذًى يَسْمَعُهُ مِنَ اللهِ يَدْعُوْنَ لَهُ الْوَلَدَ ثُمَّ يُعَافِيْهِمْ وَيَرْزُقُهُمْ . ( متفق عليه ) | د حضرت ابو موسی ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: د تکلیف رسونکو خبرو په اوریدو د خدای ﷻ څخه زیات صبرناك بل څوك نسته خلك الله لره زوی ګڼي مګر الله هغوئ روغ جوړ لري او هغوئ ته رزق ورکوي. بخاري او مسلم. |

**تشریح** : د الله تعالی ذات ددې څخه پاک او لوړ دی چې یو انسان په خپل قول او فعل سره هغه ته تکلیف رسول وغواړي نو هغه دي کامیاب سي یا یو څوک هغه ته تاوان رسول غواړي نو هغه ته دي تاوان ورسوي ځکه نو دلته دا ګڼل نه دي پکار چې واقعي هغه ته د انسان د قول او فعل څخه تاوان رسیږي او هغه صبر او تحمل کوي او نه ددې حدیث مقصد دا خبره څرګندول دي ، اصل مقصد انساني زړه او دماغ او شعور بیداره کول دي چې هر کله د الله تعالی خپل جوړ سوی مخلوق د هغه پیدا کړی انسان د هغه د قدرت د خزانو څخه ګټه اخیستونکي خلک په خپل قول او فعل سره الله تعالی ته د تکلیف رسولو سامان تیاروي هغه ته د تکلیف ورکولو اراده کوي لکه د هغه نافرماني کول د هغه د احکامو او هدایاتو او د هغه ددین مخصرې کول او هغه ته د هغه شیانو نسبت کول چې د هغه څخه د هغه ذات بالکل پاک دی مثلاً یو څوک د هغه زوی بلل ، یو څوک د هغه ښځه بلل ، نو دا داسي خبري دي که چیري په دې سره د هغه غضب راوپاریږي نو نه یوازي د هغه خلکو ټول نظام به تباه کړي بلکه پوره کائنات به د سترګو په رپ کي نیست او نابود کړي خو د هغه پرداشت او زغم ته خو وګوري چې هغه پر هر شي د قدرت لرلو سربیره یو انتقامي کاروائي نه کوي د چا رزق او ډوډۍ نه بندوي څوک د ژوند د وسائلو او ذرائعو څخه نه محروم کوي ، څرنګه چې د هغه نیک او فرمانبردار بندګان د هغه د فضل او کرم په سایه کي دي همداسي بدکاره او سرکښان خلک هم د خزانه رحمت څخه پالل کیږي او د هغه د نعمتونو څخه ګټه اخلي .

## د توحید ارزښت

﴿۲۱﴾: وَعَنْ مُعَاذٍ قَالَ كُنْتُ رِدْفَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلٰى حِمَارٍ لَيْسَ بَيْنِي وَبَيْنَهُ إِلَّا مُؤْخِرَةُ الرَّحْلِ فَقَالَ يَا مُعَاذُ: هَلْ تَدْرِي مَا حَقُّ اللّٰهِ عَلَى الْعِبَادِهِ وَ مَا حَقُّ الْعِبَادِ عَلَى اللّٰهِ؟ قُلْتُ اللّٰهُ وَرَسُوْلُهُ أَعْلَمُ قَالَ فَإِنَّ حَقَّ اللّٰهِ عَلَى الْعِبَادِ أَنْ يَعْبُدُوْهُ وَلَا يُشْرِكُوا بِهِ شَيْئًا وَحَقُّ الْعِبَادِ عَلَى اللّٰهِ اَنْ لَّايُعَذِّبَ

د حضرت معاذ[۱] ؓ څخه روایت دی چې یو ځل زه د رسول الله ﷺ سره پر خره شاته سپور وم او زما او د رسول الله ﷺ په منځ کي د زین لرګی وو ، نبي ﷺ وفرمایل : اې معاذ! ایا تاته څرګند ده چې د الله حق پر بندګانو او د بندګانو حق پر الله څه دی ؟ ما وویل الله او د هغه

---

[۱] د نوموړي کنیت ابوعبدالرحمن دی مګر د معاذ بن جبل په نامه سره مشهور صحابي دی د (۴۸) کالو په عمر کي په کال (۱۸ھ) کي وفات سوی دی .

مَنْ لاَّ يُشْرِكُ بِهِ شَيْئًا ، فَقُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللهِ اَ فَلاَ اُبَشِّرُ بِهِ النَّاسَ؟ قَالَ لاَ تُبَشِّرْهُمْ فَيَتَّكِلُوْ (متفق عليه)

رسول ښه پوهيږي ، نبي كريمﷺ وفرمايل : پر بندگانو دالله حق دادی چي هغوئ يوازي د هغه عبادت وکړي او هيڅوك د هغه سره شريك ونه نيسي او پر الله د بندگانو حق دادی چي هغه چا ته سزا ورنه کړي کوم چا چي د هغه سره شريك نه دی نيولی. معاذ وايي ددې په اوريدو سره ما وويل : اې دالله رسوله ! ايا زه خلگو ته ددې خبر ورکړم چي په اورېدو سره يې خوشحاله سي . نبي ﷺ وفرمايل : نه په داسي كولو سره به خلك سست سي په دې به تكيه كوي او عمل كول به پريږدي (حضرت معاذ له دې كبله چي گناه كار نه سم ) د وفات پر وخت دا حديث بيان كړ . بخاري ومسلم.

**تشريح** : د عربو خرونه زموږ تر آسانو هم زيات تيز او طاقتور دي ځكه نو هلته به د سپرلی لپاره خرونه هم استعمالېدل او پر هغوئ به يې سپرتيا كول، ددغه حديث شريف څخه څرگنده سوه چي يو څوک الله تعالی ومنی او د هغه پر ربوبيت او د هغه پر رالېږل سوي رسالت يې ايمان راوړ او د هغه په عبادت كي ورسره څوک شريک نه کړي نو پر هغه به د الله تعالی عذاب نه وي مگر ددې دا مطلب نه دی که يو سړی پر اللهﷻ او د هغه پر رسولﷺ ايمان راوړ او د کفر او شرك مرتكب نه سو نو پر هغه به د دوږخ اور بالكل حرام سي كه څه هم هغه هر څومره بدعمله او بدكاره وي بلكه ددې دا مطلب دی چي د مشركينو او كفارو په ډول به هغه هميشه لپاره په عذاب كي نه وي او نه به هميشه په دوږخ كي پاته كيږي بلكه د خپلو گناهونو د سزا خوړلو څخه وروسته به په پای كي په جنت كي داخل كړل سي .

## د دوږخ څخه خلاصون

﴿ ۲۲ ﴾: وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمُعَاذُ بْنُ جَبَلٍ رَدِيفُهُ عَلَى الرَّحْلِ قَالَ يَا مُعَاذُ قَالَ لَبَّيْكَ رَسُولَ اللّٰهِ وَسَعْدَيْكَ قَالَ يَا مُعَاذُ قَالَ لَبَّيْكَ رَسُولَ اللّٰهِ وَسَعْدَيْكَ قَالَ يَا مُعَاذُ قَالَ لَبَّيْكَ رَسُولَ اللّٰهِ وَسَعْدَيْكَ قَالَ مَا مِنْ اَحَدٍ يَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللّٰهُ وَأَنَّ مُحَمَّدًا رَسُوْلُ اللهِ صِدْقًا مِّنْ قَلْبِهِ إِلَّا حَرَّمَهُ اللّٰهُ عَلَى النَّارِ قَالَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ أَفَلَا أُخْبِرُ بِهِ النَّاسَ فَيَسْتَبْشِرُوا؟ قَالَ إِذًا يَتَّكِلُوا، فَأَخْبَرَ بِهَا مُعَاذٌ عِنْدَ

د حضرت انس ﷺ څخه روايت دی چي يو ځل رسول اللهﷺ پر سپرلي سپور وو او حضرت معاذ وروسته ورسره ناست وو ، نبي كريم ﷺ معاذ ته مخاطب سو او ورته وه يې فرمايل: اې معاذ! نو معاذ عرض وکړ زه حاضر يم اې دالله رسوله ! ستاسو په خدمت مبارك كي حاضر يم، نبي ﷺ بيا وفرمايل اې معاذ! نو معاذ عرض وکړ زه حاضر يم اې دالله رسوله ! ستاسو په خدمت مبارك كي حاضر يم، نبي كريم ﷺ بيا وفرمايل اې معاذ! نو معاذ عرض وکړ زه حاضر يم اې دالله

مَوْتِهٖ تَأَثُّمًا (متفق علیه). | رسوله! ستاسو په خدمت مبارك كي حاضر يم

نبي ﷺ درې ځله دغسي وفرمايل : کوم سړی چي په رښتوني زړه سره ددې امر شاهدي ورکړي چي د الله څخه پرته بل د عبادت وړ نسته او محمد د الله رسول دی نو الله پاك پر هغه باندي د دوږخ اور حرام کړی دی ، معاذ وايي چي ددې په اورېدو سره ما عرض وکړ اې د الله رسوله! ايا په دې خبره خلك خبر کړم چي هغوئ په دې زيري اورېدو سره خوښ سي ، نبي کريم ﷺ وفرمايل : نه، ځکه چي هغوئ دا واوري نو په دې به تکيه وکړي ، د وفات په وخت کي معاذ ﷺ د گناه کار کېدو په خيال سره دا حديث بيان کړ. بخاري ومسلم

**تشريح** رسول الله ﷺ حضرت معاذ ﷺ په وار وار ځکه مخاطب کړ چي د هغه په زړه او دماغ کي د مضمون ارزښت او عظمت کښيني او هغه پوه سي چي کومه خبره ويونکې ده هغه داسي نه ده چي په سرسري توگه واوريدل سي بلکه د هغه د عظمت غوښتنه ده چي هغه په پوره توجه سره واوريدل سي او د زړه او دماغ بيخ ته ورسيږي .

وفرمايل سول چا چي د الله تعالى د وحدانيت او د رسول د رسالت اقرار د زړه په صدق سره وکړ پر هغه د دوږخ اور حرام سو ، مگر يوازي دا تصديق او اقرار د اور د حرمت لپاره کافي نه دی بلکه ضروري ده چي ددې شهادت او تصديق سره سره ددې غوښتني هم پوره کړل سي يعني ددين او شريعت پوره پيروي وکړل سي او د الله تعالى د احکامو او د رسول ﷺ د فرمان فرمانبرداري وکړل سي او دغه شهادت او تصديق چي کوم فرضونه عائد کوي په هغه عمل وکړل سي، همداسي د الله تعالى فضل او کرم به يې د دوږخ د اور څخه وساتي ، ځکه حضرت معاذ ﷺ چي د رسول الله ﷺ څخه ددې خبري زيری عامو خلکو ته د رسولو اجازه وغوښتل نو رسول الله ﷺ ددې فرمايلو سره منعه کړ چي ددې زيري په اوريدو سره به خلك پر دې تکيه وکړي او عمل کول به پرېږدي چي د هغه نتيجه به د الله تعالى عذاب وي يا بيا هغه به تاويل کيږي کوم چي مخکي ذکر سوی دی چي د توحيد او رسالت عقيده د دوږخ د ابدي عذاب څخه د خلاصون ضامن ده يعني څرنگه چي به کفار او مشرکين د دوږخ په اور کي هميشه لپاره سوځل کيږي همداسي د توحيد او رسالت باندي ايمان او يقين لرونکي به د دوږخ په اور کي هميشه لپاره نسي اچول کيدلای په هغوئ کي چي کوم سړي په شريعت عمل نه وي کړی او فرضونه او واجبات يې پوره کړي نه وي نو هغه به تر هغه وخته پوري چي الله غواړي په دوږخ کي وي او کله چي خپل سزا پوره کړي نو بيا به هغه د هميشه لپاره جنت ته وليږل سي .

## خاتمه پر ایمان د جنت ضمانت دی

﴿۲۳﴾: وَعَنْ اَبِيْ ذَرٍ قَالَ أَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ عَلَيْهِ ثَوْبٌ أَبْيَضُ وَهُوَ نَائِمٌ ثُمَّ أَتَيْتُهُ وَقَدْ اسْتَيْقَظَ فَقَالَ مَا مِنْ عَبْدٍ قَالَ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ ثُمَّ مَاتَ عَلَى ذٰلِكَ إِلَّا دَخَلَ الْجَنَّةَ قُلْتُ وَإِنْ زَنَى وَإِنْ سَرَقَ؟ قَالَ وَإِنْ زَنَى وَإِنْ سَرَقَ قُلْتُ وَإِنْ زَنَى وَإِنْ سَرَقَ قَالَ وَإِنْ زَنَى وَإِنْ سَرَقَ عَلَى رَغْمِ أَنْفِ أَبِي ذَرٍّ وَكَانَ اَبُوْ ذَرٍ إِذَا حَدَّثَ بِهٰذَا قَالَ وَإِنْ رَغِمَ أَنْفُ أَبِي ذَرٍّ (متفق عليه).

د حضرت ابو ذر[۱] ﷺ څخه روایت دي چي یوه ورځ زه د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سوم ، نبي کریم ﷺ په دغه وخت کي په سپینه جامه کي بیده وو او زه بیرته ولاړم کله چي دوهم وار راغلم نو رسول ﷺ ویښ سوی وو ، نبي کریم ﷺ چي زه ولیدم نو راته وه یي فرمایل : کوم سړی چي (په ربښتوني زړه) لااله الاالله ، ووایي او پر همدې باندې وفات سي نو هغه به جنت ته داخلیږي ، ابوذر وایي ددې په اوریدو سره ما نبي کریم ﷺ ته وویل: که هغه سړی زنا او غلا وکړي نو هم ، ما بیا عرض وکړ که چیري هغه زنا او غلا وکړي ؟ رسول الله ﷺ وفرمایل که څه هم هغه زنا او غلا وکړي ، ما بیا (دریم وار) عرض وکړ که څه هم هغه زنا او غلا وکړي ، رسول الله ﷺ وفرمایل : هو، که څه هم هغه زنا او غلا وکړي د ابوذر پزه دي په خاورو لړلې وي، کله چي به ابوذر ﷺ دا حدیث بیانوی نو د رسول الله ﷺ دا جمله چي (د ابوذر پزه دي په خاورو وي) هم بیانوله . بخاري ومسلم.

**تشریح** : بیله شکه د الله تعالی ذات بې نیازه دی او د هغه رحمت بې پایه دی د هغه د فضل او کرم څخه هیڅ لیري نه ده چي هغه سړی په جنت کي داخل کړي کوم چي د کبیره ګناه کونکی وي مګر د مرګ په وخت کي د هغه زړه په ایمان او یقین سره منور وي، بیا هم محدثین ددغه شریف په تشریح کي لیکي چي د هغه بخښنه او مغفرت به د ایمان پر بناء خو په هر حال وي یعني هغه به په ابدي نجات سره مشرف کړل سي مګر په دنیا کي چي هغه کوم ګناهونه کړي وي او د کومو بدو أعمالو مرتکب سوی وي مخکي به د هغه سزا څکي ، ابوذر غفاري ﷺ ته ځکه تعجب کیدی چي هغه په وار وار پوښتني کولې چي ایا یو څوک به محض د الله تعالی په وحدانیت او د هغه د رسول پر رسالت د ایمان او اقرار څخه وروسته جنتي کړل سي که څه هم هغه د شریعت اطاعت نه وي کړی او د لویو لویو ګناهو کونکی وي ، مګر په حقیقت کي د نبوت نظر د الله

---

[۱] د نوموړي اصلي نوم جندب بن جناده دی او د ابوذر غفاري په لقب سره مشهور دی ، په مکه مکرمه کي د اسلام په ابتداء کي په ایمان سره مشرف سو ، په کال (۳۲هـ) کي وفات سوی دی .

وسیع او بې پایه رحمت لیدلو چي لوی لوی سرکښه او بدکاره انسانان چي هغوئ ټول ژوند د الله او رسول د احکامو څخه په سرکښئ کي تیر کړ چي د هغوئ د عمر هیڅ برخه د شریعت په اطاعت کي تیره نه سو هغوئ په آخر کي ندامت او شرمندګي او د زړه په اخلاص سره توبه وکاړي او د مرګ په وخت کي د هغه توبې او ایمان او یقین په برکت چي په رینښتیا او اخلاص سره د هغوئ دننه په دنیا کي یو انقلاب راپورته کړی وو د هغوئ د پوره ژوند سرکښي او بدکاری یې معاف کړې او د خپل فضل او حسان په سایه کي اخیستلو سره یې هغوئ په ابدي خلاصون سره مشرف کړل.

## د خلاصون دار او مدار څه دی؟

﴿ ۲۴﴾: وَعَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ شَهِدَ أَنْ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ وَأَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُوْلُهُ وَأَنَّ عِيسَى عَبْدُ اللّٰهِ وَابْنُ أَمَتِهِ وَكَلِمَتُهُ أَلْقَاهَا إِلَى مَرْيَمَ وَرُوحٌ مِنْهُ وَ الْجَنَّةَ وَالنَّارَ حَقٌّ أَدْخَلَهُ اللّٰهُ عَلَى مَا كَانَ مِنَ الْعَمَلِ. (متفق عليه).

د حضرت عباده ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: کوم سړی چي ددې خبري شاهدي وکړي چي د الله څخه پرته بل د عبادت وړ نشته او محمد ﷺ د الله بنده او رسول دی، او دا چي عیسی علیه السلام د الله بنده د هغه رسول د هغه د وینزي زوی او د خدای کلمه ده (عیسی علیه السلام ته ځکه کلمه د خدای وایي چي دی په کلمه د کُنْ سره پیدا سو)، چي خدای د بي بي مریم د لوري پیدا کړ او د خدای را لیږل سوی روح دی (عیسی علیه السلام ته ځکه روح د خدای وایي چي ده به مړي ژوندي کول په ایمان سره) او دا چي جنت او دوزخ حق دي، نو خدای ﷻ به داسي کس جنت ته داخل کړي که څه هم د هغه عمل هر ډول وي. بخاري او مسلم.

**تشریح**: ددغه حدیث شریف خلاصه داده چي د ابدي خلاصون دار او مدار ایمان او د عقائدو پر اصلاح ده، په دې کي کوتاهي د معافۍ وړ نسي کیدلای مګر هو د اعمالو کمزوري د الله تعالی په رحمت سره معاف کیدلای سي.

د ایمان بنیاد توحید منل او د هغه شاهدي ورکړل دي ځکه تر ټولو مخکي دا ضروري ګرځول سوې ده چي د الله تعالی وحدانیت او د هغه الوهیت او ربوبیت باندي د زړه په صدق سره یقین وکړل سي، بیا ددې څخه وروسته د رسالت درجه ده نو ضروري ده چي د رسول پر رسالت ایمان راوړل سي همداسي د ټولو رسولانو پر رسالت باندي ایمان راوړل هم د خلاصون لپاره ضروري ده.

دلته یوازي د حضرت عیسی ؑ یادونه د نبني په توګه هم ده او د یو خاص وجي په وجه هم ، په اصل کي د هغه په باره کي د یوې ډلي (یعني عیسایانو) دا عقیده ده چي عیسی ابن الله (د الله زوی) دی ، ددې باطلي عقیدې د تردید لپاره د هغه ذکر وکړل سو او وضاحت وکړل سو چي عیسی ؑ نه خو د الله زوی دی او نه یې په هغه کي حلول کړی دی بلکه هغه د الله تعالی بنده او د هغه رسول دی چي هغه د خپلي یوې مینځي مریم علیها السلام د نس څخه پیدا کړ ځکه هغه ته کلمة الله ویل کیږي چي د هغه زیږېدنه د پلار څخه پرته یوازي د الله تعالی په حکم (د کن په کلمه) سره وسو ، روح الله هغه ته ددې لپاره نه دي ویل سوي دي چي په هغه کي دننه د الله تعالی یو جز یا د الله تعالی روح شامل ده بلکه روح الله د هغه لقب ځکه وګرځول سو چي هغه به د الله تعالی په حکم سره مړي ژوندي کول او د خاورو مرغۍ به یې جوړلو سره په هغه کي ساه پوه کول او هغه به الوتی ، د توحید او رسالت د عقیدې څخه وروسته د آخرت د تصور عقیده هم بنیادي ده یعني په دې خبره ایمان او یقین راوړل چي د مرګ څخه وروسته دوهم وار ژوندي کېدل حق دي او جنت او دوږخ واقعي شیان دي دا هغه عقیدې دي چي د هغو منل د زړه په صدق سره پر هغه ایمان راوړل او په خاص نیت سره هغه تسلیمول د ابدي خلاصون ضامن دي ، د عقیدو منلو سره که په اعمالو کي کوتاهي هم وي نو په دغه صورت کي هم په دې حدیث کي د جنت زیری ورکړی دی مګر تر څو پوري چي د مسئلې په اړه دا خبره فیصله ده چي کوم عملي کوتاهي او بدعملي د الله تعالی په رحمت سره معاف نسي نو پر هغه به خامخا سزا ورکول کیږي مګر د سزا پوره کولو څخه وروسته به هغه هم په جنت کي داخل کړل سي ، نو ددې حدیث څخه دا مفهوم اخیستل پکار دي چي که چیري د عقیدو منلو څخه وروسته چا نېه اعمال وکړل د شریعت په پیروي کولو سره ټول احکام یې پر ځای کړل او د شریعت خلاف کار یې ونه کړ نو د عذاب څخه پرته به هغه په جنت کي داخل کړل سي او که چا ددغه عقیدو منلو څخه وروسته نیک اعمال ونه کړل او د شریعت پاپندي یې ونه کړل ، د الله ﷻ او د هغه د رسول د احکامو فرمانبرداري یې ونه کړل نو هغه به د خپلو ګناهونو سزا خوري مګر آخر به په جنت کي داخل کړل سي .

## د اسلام په قبلولو سره پخواني گناهونه بخښل کيږي

﴿ ۲۵ ﴾: وَ عَنْ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ قَالَ أَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْتُ ابْسُطْ يَمِينَكَ فَلْأُبَايِعْكَ فَبَسَطَ يَمِينَهُ فَقَبَضْتُ يَدِي قَالَ مَا لَكَ يَا عَمْرُو قُلْتُ أَرَدْتُ أَنْ أَشْتَرِطَ قَالَ تَشْتَرِطُ مَاذَا؟ قُلْتُ أَنْ يُغْفَرَ لِي قَالَ أَمَا عَلِمْتَ يا عَمْرُو أَنَّ الْإِسْلَامَ يَهْدِمُ مَا كَانَ قَبْلَهُ وَأَنَّ الْهِجْرَةَ تَهْدِمُ مَا كَانَ قَبْلَهَا وَأَنَّ الْحَجَّ يَهْدِمُ مَا كَانَ قَبْلَهُ (رواه مسلم) وَلَحَدِيْثَانِ الْمَرْوِيَّانِ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ اللّٰهُ تَعَالٰى اَنَا اَغْنَى الشُّرَكَاءِ عَنِ الشِّرْكِ وَالاٰخَرُ الْكِبْرِيَآءُ رِدَائِيْ سَنَذْكُرُ هُمَا فِيْ (بابي الريآء والكبر)

د حضرت عمرو [۱] ﷺ څخه روایت دی چي زه د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سوم او عرض مي وکړ چي: تاسو خپل لاس راوړاندي کړی چي زه ستاسو په لاس د اسلام بیعت وکړم (یعني اسلام راوړم) رسول الله ﷺ خپل راسته لاس را وړاندي کړ نو ما هغه دم خپل لاس را ایسته کړ. رسول الله ﷺ وفرمایل: عمرو! څه وسول (یعني خپل لاس دي ولي ایسته کړ) ما عرض وکړ زه دا غواړم چي زما (هغه) گناهونه (چي د اسلام وړاندي ما کړي دي) و بخښل سي، نبي کریم ﷺ وفرمایل: عمرو! ایا تاته څرگنده نه ده چي اسلام هغه ټولي خبري (گناهونه) لیري کوي چي د اسلام څخه وړاندي یې کړي وي، او هجرت هغه ټول شیان لیري کوي چي د هغه څخه وړاندي یې کړي وي او حج هغه ټول گناهونه رژوي چي د حج څخه وړاندي یې کړي وي. (مسلم) په مصابیح کي په دې اړه دوه نور حدیثونه د حضرت ابوهریرة ﷺ څخه نقل سوي دي: ویلي دي الله ﷻ چي زه بې پروا یم د شریکانو څخه او د شرك څخه، او بل دادی چي لويي زما څادر دی چي ژر دی مونږ به یې د ریا او کبر په بابونو کي ذکر کړو.

**تشريح**: یو سړی که د خپل ژوند ډیره برخه په کفر او شرک کي د تېرولو څخه وروسته د اسلام په دولت سره مشرف کیږي نو ایا د هغه د اسلام راوړلو څخه مخکي گناهونو باندي به نیول وي، یعني کفر، شرک او گناه چي د هغه څخه مخکي سوي دي پر هغه به عذاب وي او که یا؟

حدیث شریف دا مسئله روښانه کړه چي د اسلام رڼا پخواني تیاره که څه هم هغه تیاره د کفر او شرک وي یا د گناه او معصیت تیاره وي بالکل ختموي او یوازي د یوې کلمې په برکت چي د زړه په اخلاص سره وویل سي د انسان زړه او دماغ بالکل منور کوي او بیا د شرک د تیارو هیڅ نښه نه پاتیږي او نه پر گناه او معصیت باندي د عذاب څه پاته کیږي مگر په دې خبره

---

[۱] نوموړی یو مشهور او معروف صحابي دی کنیت یې ابوعبدالله یا ابو محمد بیان سوی دی، په کال (۴۳هـ) کي وفات سوی دی.

پوهېدل پكار دي چي د بخښني او معرفت تعلق د ګناهونو سره دی د هغه حقوقو سره نه دی چي پور، امانت، عاريت او رانيولو او پلورلو په اړه د هغه پر ذمه تر او سه پاته وي ځکه چي اسلام د هغه ادا کول نه معطل کوي چي د هغه تعلق د حقوق العباد (د بندګانود حقوقو) سره دی بلکه د اسلام راوړلو څخه وروسته پر هغه لازمه ده چي هغه غوښتني پوره کړي کوم چي پر هغه د اسلام راوړلو څخه مخکي واجب سوي وي، البته ددې حديث لاندي داسي حقوق العباد راتلای سي چي زناء، غلا او قتل په صورت کي د اسلام د زمانې څخه مخکي ناحق ضائع کړل سوی وو د اسلام څخه وروسته به پر هغه نيول نه وي.

د اسلام په دولت سره د مستفيد کېدو وروسته هم يو مسلمان د انساني غوښتني سره سم په ګناه سره اخته کيدلای سي ځکه نو د هغه دکفارې لپاره په دغه حديث شريف کي حج او هجرت دوه داسي عملونه وښودل سول که دا دواړه کارونه په خپل ټولو شرطونو سره پوره کړل سي نو دا د حقوق الله لپاره کفاره کيږي بلکه د حج په اړه خو دا هم ويل سوي دي چي د الله تعالی په فضل او کرم سره دا د حقوق العباد لپاره هم کفاره جوړيږي او الله تعالی پر دې قادر دی چي د خپل قدرت د خزانو څخه صاحب حق ته د هغه حقوق ورکولو سره هغه بنده ته د خپل حقوق څخه برخه ورکړي او هغه معاف کړي. (ترجمان السنة).

## الفصل الثاني

### د دين اركان

﴿۲۶﴾: وَعَنْ مُعَاذٍ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللهِ أَخْبِرْنِيْ بِعَمَلٍ يُدْخِلُنِي الْجَنَّةَ وَيُبَاعِدُنِيْ عَنِ النَّارِ قَالَ لَقَدْ سَأَلْتَ عَنْ اَمْرٍعَظِيْمٍ وَإِنَّهُ لَيَسِيْرٌ عَلٰى مَنْ يَسَّرَهُ اللهُ عَلَيْهِ تَعْبُدُ اللهَ وَلَا تُشْرِكُ بِهِ شَيْئًا وَتُقِيْمُ الصَّلَاةَ وَتُؤْتِي الزَّكَاةَ وَتَصُوْمُ رَمَضَانَ وَتَحُجُّ الْبَيْتَ ثُمَّ قَالَ أَلَا أَدُلُّكَ عَلٰى أَبْوَابِ الْخَيْرِ ؟ اَلصَّوْمُ جُنَّةٌ وَالصَّدَقَةُ تُطْفِئُ الْخَطِيْئَةَ كَمَا يُطْفِئُ الْمَاءُ النَّارَ وَصَلَاةُ الرَّجُلِ مِنْ جَوْفِ اللَّيْلِ قَالَ ثُمَّ تَلَا ( تَتَجَافٰى جُنُوْبُهُمْ عَنِ

د حضرت معاذ ﷺ څخه روايت دی چي يو ځل ما رسول الله ﷺ ته عرض وکړ چي تاسو ما ته يو داسي عمل را وښياست کوم چي ما جنت ته بوزي او د دوږخ د اور څخه مي خلاص کړي، رسول الله ﷺ وفرمايل: تا يوه لويه خبره وپوښتل مګر دا پر هغه چا اسانه وي کوم چا ته چي الله ﷻ توفيق ورکړي او دا پر اسانه کړي. نو يوازي د الله ﷻ عبادت کوه د هغه سره څوك شريك مه نيسه، لمونځ کوه، زکوة ورکوه، د رمضان د مياشتي روژې نيسه، او د بيت الله شريفي حج وکړه، معاذ وايي ددې وروسته رسول

الْمَضَاجِعِ ) حَتّٰى بَلَغَ ( يَعْمَلُوْنَ) ثُمَّ قَالَ أَلاَ أَدُلُّكَ بِرَأْسِ الأَمْرِ وَعُمُوْدِهِ وَذِرْوَةِ سَنَامِهِ؟ قُلْتُ بَلٰى يَا رَسُوْلَ اللهِ قَالَ رَأْسُ الأَمْرِ الإِسْلاَمُ وَعُمُوْدِهِ الصَّلاَةُ وَذِرْوَةُ سَنَامِهِ الْجِهَادُ ثُمَّ قَالَ أَلاَ أُخْبِرُكَ بِمِلاَكِ ذٰلِكَ كُلِّهِ قُلْتُ بَلٰى يَا نَبِيَّ اللهِ؟ فَأَخَذَ بِلِسَانِهِ فَقَالَ كُفَّ عَلَيْكَ هٰذَا فَقُلْتُ يَا نَبِيَّ اللهِ وَإِنَّا لَمُؤَاخِذُوْنَ بِمَا نَتَكَلَّمُ بِهِ فَقَالَ ثَكِلَتْكَ أُمُّكَ يَا مُعَاذُ! وَهَلْ يَكُبُّ النَّاسُ فِي النَّارِ عَلٰى وُجُوْهِهِمْ أَوْ عَلٰى مَنَاخِرِهِمْ إِلاَّ حَصَائِدُ أَلْسِنَتِهِمْ . رواه أحمد والترمذي وابن ماجه

الله ﷺ وفرمايل : ايا زه تا ته د نيکئ طريقې ونه ښيم (واوره) روژه ډال دی (چي سړی د دوږخ د اور د حملو څخه ساتي) او صدقه گناهونه داسي رژوي لکه اوبه چي اور وژني او په شپه کي د انسان لمونځ کول گناهونه روژي ، معاذ وايي ددې وروسته رسول الله ﷺ دا آيت (تتجافی جنوبهم عن المضاجع تر يعملون پوري تلاوت کړ، او ددې وروسته يې وفرمايل : ايا زه تا ته ددې مهمي خبري بنياد ، ستن او لوړوالی ونه ښيم، ما عرض وکړ چي اې د الله رسوله ! هرومرو. نبي کريم ﷺ وفرمايل : ددې امر بنياد اسلام دی، ستن يې لمونځ ده او لوړوالی يې جهاد دی، ددې وروسته رسول الله ﷺ وفرمايل: ايا زه تـــاته ددې ټولو خبرو بنسټ ونه ښيم؟ ما عرض وکړ:هو، نو رسول الله ﷺ خپله مبارکه ژبه ونيول او وه يې فرمايل: ته دا په واك کي ساته، ما عرض وکړ اې د الله نبي! ايا موږ به (د هغو الفاظو لپاره هم ) جواب ورکونکي يو کوم چي په خپله ژبه سره وايو؟ نو رسول الله ﷺ وفرمايل : اې معاذ! (مور دي در باندي بوره سي) خلك به په دوږخ کي د خولې يا پزې له کبله وغورزول سي، يعني دوږخ ته به يې الله تعالی پرمخ ور واچوي .احمد ، ترمذي او ابن ماجه.

**تشريح** : په دغه حديث شريف کي د دين تصور په يو لوی نفسياتي انداز کي څرگند کړل سوی دی ، مطلب دا چي څرنگه د بدني وجود دار او مدار پر سر وي که چيري سر پرې کړل سي نو وجود هم نه پاته کيږي همداسي ايمان او اسلام يعني د توحيد او رسالت عقيده هم ددين لپاره د سر په درجه کي ده که چيري د توحيد او رسالت اعتقاد او اقرار ليري کړل سي نو ددين وجود هم نه پاته کيږي ، بيا څرنگه چي د بدني وجود برقرار ساتلو لپاره ستن د لومړني ارزښت خاوند وي همداسي ددين ستن لمونځ دی ، لمونځ هغه بنيادي طاقت دی چي ددين وجود قائم لري که چيري لمونځ ليري کړل سي نو ددين وجود به د خپل أصلي حالت څخه محروم پاته سي او بيا څرنگه چي يو جسماني وجود باعظمت جوړولو او د هغه عظمت او شوکت او پرمختگ او وسعت انحصار دی که جهاد (که هغه په قلم سره وي يا ژبه او يا توره سره وي ) د اهل اسلام د ملي وصف څخه ليري کړل سي نو دين به به يو بې شکوه او بې اثره قالب پاته سي .

د حدیث آخري برخه د ژبي سره اړوند پر هغه هدایاتو مشتمل ده چي دین د کمزورۍ او ددیني چټلۍ د د ساتلو لپاره د یو لوی نفساتي نکتې غماز ده ، مطلب دا چي ددین وجود ددین د بقاء او ددین عظمت او شوکت ته د تاوان رسولو ریښه ژبه ده ، ژبه په واک کي ساتل ددین او دنیا د فلاح او خلاصون ذریعه ده او د ژبې بې واکه پرېښودل خپله ددین او دنیا د تباهۍ په لور تلل دي، نو لازمه ده چي ژبه بنده وساتل سي یعني د خولې څخه داسي الفاظ ونه ایستل سي چي د خرابۍ فحش وي، یا د یو چا غیبت کول ، درواغ ویل، الزام ویل او داسي نور دا داسي خرابۍ دي که د هغه څخه د ژبې او ذهن ساتنه ونه کړل سي نو نو پوه سئ چي د دوږخ عذاب په وړاندي دی ، ددین او دنیا خیر غوښتونکی او ابدي خلاصون او سعادت غوښتونکی څکه پر خپل ژبه واک لري چي معلومه نه ده کله کول لازم سي او بیا د هغه په بدله کي الله تعالی عذاب ورکړي، په حقیقت کي ژبه د سعادت یوه لویه وجه جوړېدلای سي ، هر کله چي د هغه څخه ښه خبري ، د ښېګڼي الفاظ او د وعظ او نصیحت جملې ووځي نو په دنیا او آخرت کي د هغه انسان مرتبه لوړه وي چي د ژبي عظمت او تقدیس په هر حال کي خوندي ساتي ، د بد کلامۍ او بدو خبرو څخه په هر صورت کي پرهیز کوي .

## کامل ایمان څه شي دی ؟

﴿۲۷﴾ : وَعَنْ أَبِيْ أُمَامَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلَ اللهُ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ أَحَبَّ لِلَّهِ وَأَبْغَضَ لِلَّهِ وَأَعْطَى لِلَّهِ وَمَنَعَ لِلَّهِ فَقَدِ اسْتَكْمَلَ الإِيْمَانَ . رواه أبو داود و رواه الترمذي عَنْ مُعَاذِ بْنِ أَنَسٍ مَعَ تَقْدِيْمٍ وَتَأْخِيْرٍ وَفِيْهِ فَقَدِ اسْتَكْمَلَ إِيْمَانَهُ .متفق عليه

د حضرت ابي امامه[۱] ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: چاچي د الله ﷻ لپاره مینه وکړل او د الله ﷻ لپاره یې بغض وکړ او د الله ﷻ لپاره یې ورکړه وکړه او د الله ﷻ لپاره یې بندیز وکړ نو هغه خپل ایمان پوره کړ (ابوداؤد) او په ترمذي شریف کي په الفاظو کي تقدیم او تاخیر دی او د هغه آخري الفاظ دادي : نو هغه یقینا خپل ایمان پوره کړ .

**تشریح** : مطلب دا چي بنده کوم کار کوي نو خاص د الله تعالی د خوښۍ او د هغه د رضا تر لاسه کولو لپاره یې وکړي ، د هغه هیڅ فعل او عمل په دغه فاسد عمل سره نه وي چي د ریا او ځان

[۱] اصل نوم یې صدي بن عجلان بن حارث دی، مګر په خپل کنیت ابو امامه سره مشهور دی او د باهله د قبیلې د سهم د ښاخ سره یې تعلق درلودی ځکه په باهلي او سهمي سره مشهور دی . په (۸۱هـ) کال کي وفات سوی دی.

ښووني په غرض وي، مثلاً که هغه د چا سره مينه او تعلق لري يا د يو چا سره عداوت او دښمني کوي نو د هغه بنياد دي يوازي د نفس خواهش يا يو دنيا وي مقصد او غرض نه وي بلکه دا دي ګوري چي د کوم سړي سره مينه کول د الله په نزد غوره دي او د کوم سړي سره نفرت او دښمني کول الله ته مطلوب دي ، څرګنده ده چي د الله تعالى نيک او صالح بندګانو سره مينه کول د الله تعالى په نزد غوره دي ځکه نو د هغه چا سره دي مينه او تعلق ساتي چي هغه نيک، صالح ، فرمانبردار او مخلص مؤمن وي او د داسي سړي سره بغض او عداوت ساتل الله ﷻ ته مطلوب دي چي سرکښه او نافرمان وي ځکه نو د هغه سره بغض او عداوت کول پکار دي، او د هغه سره دي د ميني تعلق نه قائموي ، همدارنګه د خپل مال په مصرف کولو او د نه مصرف کولو په اړه هم د الله تعالى د رضا او خوښي خيال دي ساتي يعني که مصرف کوي نو په داسي ځای کي دي يې خرڅ کړي چيري چي الله تعالى د خرڅ کولو حکم کړی دی او په کوم ځای کي چي خرڅ کول الله تعالى ته مطلوب او خوښه نه وي نو هلته مصرف نه کول نه يوازي دا چي د ثواب کار نه دی بلکه ګناه لازميږي نو هلته د خرڅ کولو څخه دي ځان وساتي، او د يو داسي سړي يا ډلي سره دي مالي مرسته او کومک نه کوي کوم چي د الله تعالى په نزد مقبول او خوښ نه وي دا هغه شيان دي چي د ايمان د تکميل باعث ګرځول سوي دي .

## تر ټولو غوره عمل

| | |
|---|---|
| ﴿۲۸﴾: وَعَنْ أَبِيْ ذَرٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَفْضَلُ الأَعْمَالِ اَلْحُبُّ فِيْ اللهِ وَالْبُغْضُ فِي اللهِ. رواه ابو داود. | د حضرت ابوذر ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : غوره عمل دادی چي د الله لپاره مينه وسي او دالله لپاره د يو چا سره بغض وسي . |

**تشريح** : که چيري د بنده احساس دومره لطيف او د هغه جذبه دومره پاکه سي نو څرګنده ده چي په قدم قدم به دغه رڼا د هغه لارښوونه کوي او نتيجه به دا وي چي هغه به د خرابو خبرو او ګناهونو څخه خوندي وي او ښه خبري او نيک کارونه به کوي .

## رېښتونی مؤمن څوک دی؟

﴿۲۹﴾: وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: اَلْمُسْلِمُ مَنْ سَلِمَ الْمُسْلِمُوْنَ مِنْ لِسَانِهِ وَيَدِهِ وَالْمُؤْمِنُ مَنْ أَمِنَهُ النَّاسُ عَلٰى دِمَائِهِمْ وَأَمْوَالِهِمْ.رواه الترمذي و النسائي. وَزَادَ الْبَيْهَقِيْ فِيْ شُعَبِ الإِيْمَانِ. بِرِوَايَةِ فَضَالَةَ وَالْمُجَاهِدُ مَنْ جَاهَدَ نَفْسَهُ فِيْ طَاعَةِ اللهِ وَالْمُهَاجِرُ مَنْ هَجَرَ الْخَطَايَا وَالذُّنُوْبَ .

د حضرت ابوهريرة ﷛ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : کامل مسلمان هغه دی چي د هغه د ژبي او لاس څخه مسلمان ساتلی وي او کامل مؤمن هغه دی چي خلگ دی امين وگني په وينو او په مالونو خپلو کي . ترمذي او نسائي، او بيهقي په کتاب (شعب ايمان) کي د فضاله څخه چي کوم حديث نقل کړی دی په هغه کي دا الفاظ هم دي (او کامل مجاهد هغه دی چي هغه د خدای په عبادت کي د خپل نفس سره جهاد وکړي او کامل مهاجر هغه دی چي هغه کوچني او لوی گناهونه پرېږدي) .

**تشريح** : په صحيح معنا کي مؤمن هغه دی چي د هغه وجود د الله تعالی د مخلوق لپاره د اطمينان او راحت باعث وي د خلکو پر هغه پوره باور او اعتماد وي، د هغه امانت،ؤ ديانت ، عدالت ، صداقت، او اخلاق داسي ځرگند وي چي نه چا ته د هغه څخه د خپل مال قبضه کولو بيره وي او نه چا ته د هغه د لوري د خپل ځان او عزت د تاوان انديښنه وي او نه د چا په زړه کي د هغه د لوري يو بل ډول بيره او خوف وي .

حقيقي مجاهد هغه نه دی چي د دښمن سره جگړه کوي بلکه مجاهد هغه دی چي د خپل نفس اماره سره جهاد کوي او د الله تعالی په لار کي د لوی څخه لوی قرباني وړاندي کولو لپاره او د هغه د اطاعت او فرمانبرداری په خاطر د نفس ټول خواهشات تر پښو لاندي کړي .

همدارنگه حقيقي مهاجر هم هغه دی چي هغه ټول هغه شيان پرې ايښي وي د کوم څخه چي هغه الله تعالی او د هغه رسول منعه کړې ده ځکه د هجرت حکمت دادی چي مؤمن په طاعت الهي کي پرته د يو بنديز څخه مصروف وي او الله تعالی چي کوم شيان منعه کړي دي د هغه څخه ځان وساتي د مهاجر حقيقي شان هم دادی .

## د امانت او وعدې پوره کولو ارزښت

﴿۳۰﴾ : وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَلَّمَا خَطَبَنَا رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلاَّ قَالَ لاَ إِيْمَانَ لِمَنْ لاَ أَمَانَةَ لَهُ وَلاَ دِيْنَ لِمَنْ لاَ عَهْدَ لَهُ .رواه البيهقي فِي شعب الإيمان .

د حضرت انس ﷺ څخه روایت دی چي ډېر کم داسي پېښ سوي دي چي رسول الله ﷺ زموږ په وړاندي خطبه ویلې وي او په هغې کي یې دا نه یې فرمایلي چي کوم سړی امانت دار نه وي د هغه ایمان پوره نه دی او کوم سړی چي د وعدې پابند نه وي د هغه دین پوره نه دی .بیهقي.

**تشریح** : امانت، دیانت او د وعدې پوره کول هغه صفتونه دي چي د هغه په هر مسلمان او مؤمن کي راتلل ضروري دي، ددغه صفتونو د ارزښت اندازه ددغه حدیث شریف څخه کیږي چي نبي کریم ﷺ به کله وعظ او نصیحت فرمایه یا خطبه به یې ورکول نو د امانت او دیانت او د وعدې پوره کولو په اړه به یې خامخا تاکید کوی، ځکه چي د مؤمن فطرت د امانت او دیانت په قالب کي جوړ سوی وي په هغه کي دغه صفتونه په فطري توګه سره وي چي د ژوند په هر اړخ کي د نیکۍ او ښېګڼي په لور لارښونه کوي، همدارنګه وعده پوره کول هم د سلیم فطرت او ایمان خاصه ده ځکه وفرمایل سول چي په کوم سړي کي دا صفتونه نه وي نو هغه ددین او ایمان د حقیقي خوند څخه خوند نسي اخیستلای ، مګر بیا هم ددې حدیث مطلب دا نه دی چي د هغه ایمان بالکل ختم دی بلکه ددغه صفتونو د ارزښت او عظمت په وجه د مبالغې څخه کار واخیستل سو او په تاکید سره داسي وفرمایل سول چي د هغه ارزښت په زړونو کي ځای ونیسي :

## الفصل الثالث

### د همیشني خلاصون ضمانت

﴿۳۱﴾: وَ عَنْ عُبَادَةَ بْنِ صَامِتٍ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ مَنْ شَهِدَ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللّٰهُ وَأَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللّٰهِ حَرَّمَ اللّٰهُ عَلَيْهِ النَّارَ .رواه مسلم.

د حضرت عباده ﷺ څخه روایت دی چي ما د رسول الله ﷺ څخه واورېدل چي فرمایل یې : کوم سړی چي (په ژبه او زړه سره ) ددې امر شاهدي ورکړي چي د الله څخه پرته بل د عبادت وړ نسته او محمدﷺ د الله ﷺ رسول دی نو پر هغه د دوږخ اور حرام دی . مسلم.

## د توحید ارزښت

﴿ ۳۲ ﴾: وَعَنْ عُثْمَانَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ مَنْ مَاتَ وَهُوَ یَعْلَمُ اَنَّهُ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ دَخَلَ الْجَنَّةَ (رواه مسلم) .

د حضرت عثمان [1] ﷛ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل: څوک چې مړ سي او په دې یقین لري چې د الله څخه پرته بل د عبادت وړ نسته هغه به جنت ته داخلیږي .

## د جنت او دوږخ واجب کونکي خبري

﴿۳۳﴾ : وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ ثِنْتَانِ مُوْجِبَتَانِ قَالَ رَجُلٌ یَا رَسُولَ اللّٰهِ ما الْمُوجِبَتَانِ؟ قَالَ مَنْ مَاتَ یُشْرِكُ بِاللّٰهِ شَیْئًا دَخَلَ النَّارَ وَمَنْ مَاتَ لَا یُشْرِكُ بِاللّٰهِ شَیْئًا دَخَلَ الْجَنَّةَ . مسلم

د حضرت جابر [2] ﷛ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل : دوې خبري دي چې جنت او دوږخ واجب کوي، یو سړي پوښتنه وکړه کومي خبري دي چې جنت او دوږخ واجبوي، نبي ﷺ وفرمایل: څوک چې د شرک په حالت کي مړ سي نو هغه به دوږخ ته داخلیږي او څوک چې په داسي حال کي مړ سي چې د خدای ﷻ سره څوک شریك نه ګڼي نو هغه به جنت ته ځي . مسلم.

**تشریح** : د دغه حدیثونو مطلب دادی که یو سړي ایمان راوړ او د الله تعالی د وحدانیت او ددې سره سره د رسول د رسالت وعده او اقرار یې وکړ او بیا ددې وعدې او اقرار ټولي غوښتني یې پوره کړې یعني د شریعت او ددین پوره پوره پیروي یې وکړه او بیا پر همدغه عقیدې او طاعت باندي ده ته مرګ راغلی نو هغه یقیني جنتي دی د هغه په خلاصون کي به په څرګنده هیڅ شبه نه وي مګر د ایمان او اسلام څخه وروسته که د هغه څخه د عمل کوتاهي سوې وي یا پر شریعت باندي یې عمل ونه کړ نو خاتمه ئې پر ایمان سول نو د هغه ابدي خلاصون به هم یقیني وي مګر که چیري د هغه څخه په دنیا کي ګناه سوې وي پر هغه به په آخرت کي سزا خوري ، د سزا څخه

---

[1] حضرت عثمان بن عفان ﷛ د رسول الله ﷺ دریم خلیفه او مشهور او پېژندلی صحابي دی، د رسول الله ﷺ دوې لوڼي پرله پسې د نوموړي په نکاح کي راغلي له دې کبله یې لقب ذي النورین دی، د واقدي د بیان سره سم نوموړی د ذي الحجي پر (۸) نېټه په کال (۳۵هـ) کي د جمعې په ورځ د باغیانو د لاسه په مدینه منوره کي شهید کړل سو .

[2] نوموړی یو مشهور او معروف صحابي دی د پلار نوم یې عبدالله او کنیت یې ابوعبدالله بیان سوی دی، نوموړیٰ د ۹۴ کالو په عمر کي په کال (۶۲هـ) کي وفات سوی دی .

وروسته به د همیشه لپاره جنت ته داخل کړل سي ، ددې څخه ثرګنده سوه چي د ابدي خلاصون دار او مدار پر ایمان دی، که ایمان صحیح وي او په دغه حالت کي مرګ واقع سوی وي نو په ابدي خلاصون کي هیڅ شک او شبه نسته او که پر شریعت باندي عمل ونه کړي ، د الله تعالی او د هغه د رسول د احکامو پیروي یې نه وي کړې نو هغه ته سزا ورکول هم یقیني دي مګر ددې سزا تعلق به تر یو ټاکلي وخت پوري وي ، د سزا ورکولو څخه وروسته به هغه په ابدي خلاصون سره ونازول سي .

## د مؤحد لپاره د جنت زیری

﴿ ۳۴ ﴾ : وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ: كُنَّا قُعُودًا حَوْلَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ مَعَنَا أَبُو بَكْرٍ وَعُمَرُ فِي نَفَرٍ فَقَامَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ بَيْنِ أَظْهُرِنَا فَأَبْطَأَ عَلَيْنَا وَخَشِينَا أَنْ يُقْتَطَعَ دُونَنَا وَفَزِعْنَا فَقُمْنَا فَكُنْتُ أَوَّلَ مَنْ فَزِعَ فَخَرَجْتُ أَبْتَغِي رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَتَّى أَتَيْتُ حَائِطًا لِلْأَنْصَارِ لِبَنِي النَّجَّارِ فَدُرْتُ بِهِ هَلْ أَجِدُ لَهُ بَابًا فَلَمْ أَجِدْ فَإِذَا رَبِيعٌ يَدْخُلُ فِي جَوْفِ حَائِطٍ مِنْ بِئْرٍ خَارِجَةٍ (وَالرَّبِيعُ الْجَدْوَلُ) فَاحْتَفَزْتُ كَمَا يَحْتَفِزُ الثَّعْلَبُ فَدَخَلْتُ عَلَى رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ أَبُو هُرَيْرَةَ فَقُلْتُ نَعَمْ يَا رَسُولَ اللّٰهِ قَالَ مَا شَأْنُكَ قُلْتُ كُنْتَ بَيْنَ أَظْهُرِنَا فَقُمْتَ فَأَبْطَأْتَ عَلَيْنَا فَخَشِينَا أَنْ تُقْتَطَعَ دُونَنَا فَفَزِعْنَا فَكُنْتُ أَوَّلَ مَنْ فَزِعَ فَأَتَيْتُ هَذَا الْحَائِطَ فَاحْتَفَزْتُ كَمَا يَحْتَفِزُ الثَّعْلَبُ وَهَؤُلَاءِ النَّاسُ وَرَائِي فَقَالَ يَا أَبَا هُرَيْرَةَ وَأَعْطَانِي نَعْلَيْهِ فَقَالَ اذْهَبْ بِنَعْلَيَّ هَاتَيْنِ فَمَنْ لَقِيكَ مِنْ وَرَاءِ هَذَا الْحَائِطِ يَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللّٰهُ مُسْتَيْقِنًا بِهَا قَلْبُهُ

د حضرت ابوهريرة ﷛ څخه روايت دی چي موږ د رسول الله ﷺ شاوخوا ناست وو او زموږ سره ابوبکر او عمر هم وه چي رسول الله ﷺ زموږ د مينځ څخه ولاړ سو او دباندي ولاړی او هر کله چي يې په راتلو کي ځنډ وکړ نو زموږ سره دا بيره سوه چي خدای مه کړه رسول الله ﷺ ته کوم تکليف نه وي رسېدلی موږ و بيريدو او د ټولو څخه لومړی سړی زه وم چي په دې بيره کي ولاړ سوم او د رسول الله ﷺ په لټون کي ووتم زه د مبارك ﷺ په لټون کي د بني نجار انصارو باغ ته ورسيدم زه د باغ په څلورو طرفو په دروازې پسي وګرزېدم مګر هيڅ دروازه مي پيدا نه کړه ناڅاپه زما نظر په يو لښتي ولوېدی چي د دباندي څاه څخه دننه باغ ته تللی وو ما ځان را ټول کړ او د لښتي په موری باغ ته ننوتلم رسول الله ﷺ هلته تشريف فرما وو ، رسول الله ﷺ چي زه وليدم نو وه يې فرمايل : ابوهريرة (ته يې)؟ ما عرض وکړ هو ، نبي کريم ﷺ وفرمايل څه حال دی ستا ، يعني ته ولي راغلې ؟ ما وويل : تاسو زموږ سره ناست واست او بيا ولاړ سواست او

فَبَشِّرْهُ بِالْجَنَّةِ فَكَانَ أَوَّلَ مَنْ لَقِيتُ عُمَرُ فَقَالَ مَا هَاتَانِ النَّعْلَانِ يَا أَبَا هُرَيْرَةَ فَقُلْتُ هَاتَانِ نَعْلَا رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعَثَنِي بِهِمَا مَنْ لَقِيتُ يَشْهَدُ أَنْ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ مُسْتَيْقِنًا بِهَا قَلْبُهُ بَشَّرْتُهُ بِالْجَنَّةِ فَضَرَبَ عُمَرُ بَيْنَ ثَدْيَيَّ فَخَرَرْتُ لِاسْتِي فَقَالَ ارْجِعْ يَا أَبَا هُرَيْرَةَ فَرَجَعْتُ إِلَى رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَجْهَشْتُ بُكَاءً وَرَكِبَنِي عُمَرُ فَإِذَا هُوَ عَلَى أَثَرِي فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا لَكَ يَا أَبَا هُرَيْرَةَ قُلْتُ لَقِيتُ عُمَرَ فَأَخْبَرْتُهُ بِالَّذِي بَعَثْتَنِي بِهِ فَضَرَبَ بَيْنَ ثَدْيَيَّ ضَرْبَةً خَرَرْتُ لِاسْتِي قَالَ ارْجِعْ فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللّٰهِ يَا عُمَرُ مَا حَمَلَكَ عَلَى مَا فَعَلْتَ قَالَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ بِأَبِي أَنْتَ وَأُمِّي أَبَعَثْتَ أَبَا هُرَيْرَةَ بِنَعْلَيْكَ مَنْ لَقِيَ يَشْهَدُ أَنْ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ مُسْتَيْقِنًا بِهَا قَلْبُهُ بَشَّرَهُ بِالْجَنَّةِ قَالَ نَعَمْ قَالَ فَلَا تَفْعَلْ فَإِنِّي أَخْشَى أَنْ يَتَّكِلَ النَّاسُ عَلَيْهَا فَخَلِّهِمْ يَعْمَلُونَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَخَلِّهِمْ. رواه مسلم

په ستنبهدو کي مو ځنډ وکړ نو زمونږ سره اندېښنه سوه چي کوم تکليف نه وي رسيدلی په دې خيال سره مونږ و بيرېدو او د لټولو لومړی سړی زه وم چي په بيره را ولاړ سم او دې باغ ته راغلم زه د ګيدړې په شان دې باغ ته راغلم او هغه پاته خلك په ما پسي را روان دي، نبي کريم ﷺ (د دې په اورېدو سره) ما ته خپل مبارکي څپلۍ راکړې او بيا يې وفرمايل: زما دا څپلۍ يوسه او کوم سړی چي ددې باغ څخه د باندي وينې او هغه ددې خبري (په ژبه او زړه سره) شهادت وکړي چي د الله څخه پرته بل د عبادت وړ نسته او په زړه سره يې په دې يقين هم وي نو هغه ته د جنت زيری ورکړه (د باغ د باندي) د ټولو لومړی زما سره حضرت عمر ﷺ يو ځای سو او زما څخه يې پوښتنه وکړه دا څپلۍ در سره څنګه دي ؟ ما ورته وويل : دا څپلۍ د رسول الله ﷺ دي د دې په را کولو سره رسول الله ﷺ دا فرمايلي دي چي کوم سړی ستا سره يو ځای سي او هغه ددې خبري شاهدي وکړي چي د الله څخه پرته بل د عبادت وړ نسته او په زړه سره يې ددې يقين هم وي نو زه دې هغه ته د جنت زيری ورکړم (د دې په اورېدو سره) عمر ﷺ زه په سينه (په لاس سره) ووهلم چي زه پر کوناټو پرېوتم (يعني پر شا غوزار سوم) او بيا يې را ته وويل ابوهريرة بيرته ولاړ سه ، زه بيرته راغلم د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سوم او په زوره زوره په ژړا سوم، عمر ﷺ هم په ما پسې وو، (کله چي يې زه په ژړا وليدم) رسول الله ﷺ وفرمايل: ابوهريرة ! ستا څه حال دی ؟ ما عرض وکړ (په لاره کي) زما سره عمر ﷺ يو ځای سو ما هغه د دې خبري څخه خبر کړ چي تاسو زه په امر کړی وم (زما د خبرې په اورېدو سره) هغه زه په سينه کي ووهلم چي پر شا ولوېدم بيا يې ما ته وويل بيرته ولاړ سه ، رسول الله ﷺ (د دې په اورېدو سره) وفرمايل: عمر ! تا داسي ولي وکړل ؟ عمر ﷺ عرض وکړ : اې د الله رسوله ! الله دې

زما مور او پلار تر تا قربان کړي ایا تاسو ابوهریرة ته څپلۍ د دې لپاره ورکړي وې چي کوم سړی درسره یو ځای سي او د دې خبري شاهدي وکړي چي د خدای څخه پرته بل د عبادت وړ نسته او په زړه سره یې په دې یقین هم وي نو هغه ته د جنت زیری ورکړه ؟ نبي کریم ﷺ وفرمایل : هو . عمر ؓ عرض وکړ : اې د الله رسوله ! داسي مه کوئ زما سره بیره ده چي دا خلك به (د دې په اوربدو سره ) په دې تکیه وکړي (او سست به سي) دوئ پرېږدئ چي عمل وکړي ، نو رسول الله ﷺ ورته وفرمایل : ښه ده ، دوئ پرېږدئ چي عمل کوي .مسلم.

**تشریح** : رسول الله ﷺ چي د جنت کوم زیری د حضرت ابوهریره ؓ په ذریعه خلکو ته رسول غوښتل د هغه تعلق د توحید او ایمان بالله کي اخلاص او ټینګوالی سره وو ، مطلب دا چي کوم چا په دغه کیفیت سره الله تعالی یو او خپل معبود او پروردګار ومنی او پر همدغه عقیده تر پایه پوري قائم پاته سو چي نه خو هغه په خپل زړه او دماغ کي یو ډول تنګي محسوسوي او نه په دغه عقیده کي د څه شک او شبې ښکار کیږي بلکه د هغه زړه او ذهن او د احساس او فکر دنیا یقین اعتماد او اطمینان سره سمسور وي ، د یو دنیاوي مقصد او ګټي یا د ریا او ځان ښوونې او نفاق پر ځای د خلصو او الهي رضا په جذبه او غوښتنه د هغه د ایمان او عقیدې بنیاد دی نو داسي سړي به یقینا د جنت د ابدي سعادتونو وړ وي .

پاته سو د حضرت عمر ؓ سوال چي هغه د رسول الله ﷺ قاصد حضرت ابوهریره ؓ د هغه زیري د خپرولو څخه ولي منعه کړ او دا چي د هغه رویه د رسول الله ﷺ د حکم په تعمیل کي د بندیز اچولو او د ذات رسالت پناه د عظمت د حرمت خلاف طرز عمل اختیارولو برابر وو که یا ، نو په دې اړه دا کتل پکار دي چي د دغه زیري تعلق د دین او شریعت د یو حکم او مسئلې نفاذ او خپرېدلو سره وو یا د یو خاص جذبې او احساس د اظهار سره ، ظاهره ده چي هغه د یو مسئلې د مشروعیت خبره نه وه د یو حلال یا حرام حکم بیانول نه وه ، فرض یا واجب نافذ کول نه وه بلکه هغه خو محضې د رحمت دوعالم ﷺ د زیات شفقت او میني یوه جذبه وه چي د اهل ایمان لپاره بې اختیاره راپورته سوې وه او هغه یې د زیري په صورت کي یوه یوه مؤمن ته رسول غوښتل ، دغه زیري چي حضرت عمر ؓ ته ورسیدی نو هغه سمدستي محسوس کړه چي دا زیری پر خپل ځای یو ارزښتناک حقیقت دی مګر د مصلحت غوښتنه دا ده چي په دغه لومړنی مرحله کي هغه عامو مسلمانانو ته ونه رسیږي او د رسول الله ﷺ په خدمت کي په حاضرېدو سره د دغه حکمت اظهار وکړل سي پر کوم چي د رسول الله ﷺ د زیات شفقت او میني جذبه غالبه سوې ده ، نو هغه

لومړنی کار دا وکړ چي حضرت ابوهريره ﷺ يې ستون کړ او بيا سمدستي د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سو ، د پښتي د پلټني څخه وروسته هر کله چي دا اطمينان وسو چي حضرت ابوهريره ﷺ د رسول الله ﷺ د لوري مامور وو او رسول الله ﷺ دا زيری ورکړی وو نو هغه د خپل محسن او رسول ده غه کاز د کاميابي او د مقصد د پوره کېدو لپاره د يو مخلص او بيداد خادم په حيثيت په خپله مشوزه کي د غه حکمت ته توجه وکړل ، نو په خپله د رسول الله ﷺ ذهن هم په دې لور منتقل سو او رسول الله ﷺ خپله هم فرمايلي وه چي که چيري دا ډول زيری عامو مسلمانانو ته ورسيږي نو هغوئ به پر دې باور کولو سره کښني او عمل کول به پرېږدي، نو رسول الله ﷺ د خپل يو صاحب الرايه مشاوير او مخلص خادم د مشورې قدرداني وکړل او ددغه زيري حکم يې بيرته واخيستی .

په دې کي شک نسته که چيري ددغه زيري پر ځای د يو شرعي حکم د خپرېدو معامله وای يا د يو فرض يا واجب شي د نافذ کېدو خبره وای نو حضرت عمر ﷺ به د هغه په منځ کي د خنډ جوړېدو هيڅکله جرئت نه وای کړی او نه به هغه حضرت ابوهريره ﷺ په ستنولو سره د هغه خپرېدل بندولای ، بلکه د يو ريښتوني او مخلص مؤمن او فرمانبردار په حيث تر ټولو مخکي به يې هغه قبول کړی وای او د هغه فرمان په خپرېدو کي به په خپله لګيدلای وای، او که چيري حضرت عمر ﷺ په داسي معامله کي هم هغه رويه اختيارولای نو بيا د رسول الله ﷺ په خدمت کي به نه هغه ددغه رويې څخه ستر کي پټولای او نه به د هغه يو مشورې او رايي ته د ارزښت او قبوليت درجه تر لاسه کيدلای ځکه په ديني احکامو او شرعي هدایاتو کي نه د يو مشورې ځای وي او نه د چا رايه او مشورې ته ارزښت ورکول کيږي ، نو دا خبره چي رسول الله ﷺ د حضرت عمر ﷺ ته ارزښت ورکړ او د هغه مشوره يې قبوله کړه خپله ددې خبري رد عمل دی چي د هغه مذکوره رويې سره نه د هغوئ پر شان صحابيت باندي څه فرق راغلی او نه د رسول الله ﷺ حکم عدولي وسول، ددې حديث څخه که يو شوک داسي خبره ثابتوي نو دا د هغه خپله ناپوهي ده بلکه حقيقت خو دادی چي په دغه حديث کي د يوې خوا څخه د الله تعالی د بې پايه رحمت او د امت لپاره د رسول الله ﷺ د زياتي ميني او شفقت اظهار کيږئ نو بلي خوا ته د حضرت عمر ﷺ اصابت رايه هم او فراست او بصيرت او دانائي کي د هغوئ صاف ګوئي او د اظهار خيال جرئت باندي هم رڼا لويږي چي د هغه ځانګړی صفت دی .

## د جنت کیلي

﴿ ۳۵ ﴾ : وَعَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ قَالَ قَالَ لِيْ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَفَاتِيْحُ الْجَنَّةِ شَهَادَةُ اَنْ لاَّ اِلٰهَ اِلاَّ اللهُ . رواه أحمد .

د حضرت معاذ ﷺ څخه روایت دی چي ما ته رسول الله ﷺ وفرمایل: د جنت کیلیاني د دې خبري شاهدي ورکول دي چي د الله څخه پرته بل د عبادت وړ نسته .

## د توحید کلمه د خلاصون ذریعه

﴿ ۳۶ ﴾ : وَعَنْ عُثْمَانَ بْنِ عَفَّانَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ اِنَّ رِجَالاً مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِيْنَ تُوُفِّيَ حَزِنُوْا عَلَيْهِ حَتّٰى كَادَ بَعْضُهُمْ يُوَسْوِسُ قَالَ عُثْمَانُ وَكُنْتُ مِنْهُمْ فَبَيْنَا أَنَا جَالِسٌ مَرَّ عَلَيَّ عُمَرَ وَسَلَّمَ فَلَمْ أَشْعُرْ بِهِ فَاشْتَكٰى عُمَرُ اِلٰى اَبِيْ بَكْرٍ ثُمَّ اَقْبَلاَحَتّٰى سَلَّمَا عَلٰى جَمِيْعًا فَقَالَ اَبُوْبَكْرٍ مَا حَمَلَكَ عَلٰى اَنْ لاَّ تَرُدُّ عَلٰى اَخِيْكَ عُمَرَ سَلاَمَهُ؟ قُلْتُ مَا فَعَلْتُ ،فَقَالَ عُمَرُ بَلٰى وَاللهِ لَقَدْ فَعَلْتَ، قَالَ قُلْتُ وَاللهِ مَا شَعَرْتُ اَنَّكَ مَرَرْتَ وَ لاَ سَلَّمْتَ، قَالَ اَبُوْبَكْرٍ:صَدَقَ عُثْمَانُ قَدْ شَغَلَكَ عَنْ ذَالِكَ اَمْرٌ، فَقُلْتُ اَجَلْ قَالَ مَاهُوَ؟ قُلْتُ تُوُفِّيَ اللهُ عَزَّ وَجَلَّ نَبِيَّهُ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَبْلَ أَنْ نَّسْأَلَهُ عَنْ نَّجَاةِ هٰذَا الأَمْرِ، قَالَ أَبُوْبَكْرٍ قَدْ سَأَلْتُهُ عَنْ ذٰلِكَ فَقُمْتُ اِلَيْهِ وَقُلْتُ لَهُ بِأَبِيْ أَنْتَ وَأُمِّيْ أَنْتَ أَحَقُّ بِهَا قَالَ أَبُوْبَكْرٍ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللهِ مَا نَجَاةُ هٰذَا الأَمْرِ فَقَالَ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ قَبِلَ مِنِّيْ الْكَلِمَةَ الَّتِيْ عَرَضْتُ عَلٰى عَمِّيْ فَرَدَّهَا فَهِيَ لَهُ نَجَاةٌ . رواه أحمد .

د حضرت عثمان بن عفان ﷺ څخه روایت دی چي د رسول الله ﷺ په وفات سره ځیني صحابه کرام ډیر غمجن وه، او د ځیني په زړو کي (ډول ډول) وسوسې پیداکېدې او زه هم په دغه خلګو کي وم (په دې حال کي) ناست وم چي عمر زما په خوا کي تیر سو او ما ته یې سلام ادا کړ مګر زه خبر نه سوم ، عمر ﷺ زما ددې بې پروایي ابوبکر ﷺ ته شکایت وکړ ، بیا دواړه ما ته راغلل او دواړو ما ته سلام ادا کړ د دې وروسته ابوبکر ﷺ وویل . عثمان ! څه خبره ده تا د خپل ورور عمر د سلام جواب ولي ور نه کړ ؟ ما ورته وویل : ما خو داسي نه دي کړي ، عمر وویل : قسم په خدای تا داسي کړي دي ، ما ورته وویل : په خدای دې مي قسم وي نه خو زما ستا په دې لور تلل یاد دي او نه مي ستا سلام کولو ته خیال سوی دی ، ابوبکر وویل : (اې عمر!) عثمان رښتیا وایي ته یو شغل د سلام د جواب ورکولو څخه منعه کړی وي ، ما ورته وویل : هو، ابوبکر ﷺ پوښتنه وکړه ته په کوم خیال کي وې ؟ما ورته وویل : الله ﷻ خپل نبي وفات کړ د دې څخه وړاندي چي موږ د هغه څخه د دې خبري (یعني د خطرو او وسوسو) څخه د خلاصون لار معلومه کړو ، ابوبکر ﷺ وویل : ما په دې اړه د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه کړې ده (د دې په اوریدو

سره) زه ولاړ سوم او ورته وه مي ویل : زما مور اوپلار دي تر تاسو قربان وي تاسو د دې خبرې د پوښتني کولو په هر ډول حقداره واست ، ابوبکر ﷺ وويل : ما (يوه ورځ) رسول الله ﷺ ته عرض وکړ اې دالله رسوله ! د دې خبرې څخه د خلاصون څه ذريعه ده ؟ نو رسول الله ﷺ راته وفرمايل : کوم سړی چي زموږ څخه دا کلمه قبوله کړي کومه چي ما د خپل اکا ابوطالب په مخکي وړاندي کړې وه او هغه د دې د قبلولو څخه منعه کړې وه نو دا کلمه د هغه دپاره د خلاصون ذريعه ده . (احمد)

**تشريح** : د توحيد کلمې دا فضيلتونه او برکتونه دي چي کوم سړی دغه کلمه د زړه په صدق سره او په پخه عقيدې سره قبوله کړي او ددې غوښتني پوره کولو سره ددين په فرضونو عمل وکړي نو دا کلمه به په آخرت کي د هغه د خلاصون ضامن وي او کلمه ویونکی به ددې د برکتونو په وجه ونازول سي ، که ددې کلمې ورد (وظيفه) وکړل سي او زياته وويل سي او په پابندۍ سره ددې ذکر وکړل سي نو په دنيا کي به هم ددې په برکت دا سي څرګند سي چي ددغه کلمې د برکته به په فکر او خيال او عمل باندي شيطان ته تسلط نه تر لاسه کيږي چي نه به يې وهمونه او وسوسې پيدا کيږي نه به دلمانځه او عبادت په دوران کي خيالات خرابيږي او نه به په زړه او دماغ کي شکونه او شبهې پيدا کيږي بلکه ددغه مبارک ذکر په وجه به د الله تعالی معرفت ورته تر لاسه کيږي ، د آخرت سره به يې مينه او د رسول الله ﷺ سره به يې د ميني او تعلق يو خاص کيفيت پيدا کيږي .

## ټولي نړۍ ته د کلمې رسېدو وړاندوينه

﴿۳۷﴾ : وَعَنِ الْمِقْدَادِ بْنِ الْأَسْوَدِ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ لَا يَبْقٰى عَلٰى ظَهْرِ الْأَرْضِ بَيْتُ مَدَرٍ وَّلَا وَبَرٍ إِلَّا أَدْخَلَهُ اللهُ كَلِمَةَ الْإِسْلَامِ بِعِزِّ عَزِيْزٍ وَ ذُلِّ ذَلِيْلٍ إِمَّا يُعِزُّهُمُ اللهُ عَزَّ وَجَلَّ فَيَجْعَلُهُمْ مِنْ أَهْلِهَا أَوْ يُذِلُّهُمْ فَيَدِيْنُوْنَ لَهَا، قُلْتُ فَيَكُوْنُ الدِّيْنُ كُلُّهُ لِلّٰهِ. رواه أحمد .

د حضرت مقداد[۱] ﷺ څخه روايت دی چي ما د رسول الله ﷺ څخه واوریدل چي فرمايل يې : د مځکي پر مخ به هيڅ يو خام کور، يا دخيمو کور پاته نه سي چي په هغه کي به د اسلام کلمه داخله نه سي ، الله به دا کلمه (په هر کور کي) عزتمند لره په عزت وزکولو سره او ذليل لره په ذلت ورکولو سره داخله کړي يعني الله چي څوک

[۱]- نوموړی په مقداد بن اسود کندي نامه سره مشهور دی او د مخکنيو اسلام راوړونکو څخه دی ، د مدينې منورې څخه په درې ميله فاصله سره په حرف نامي ځای کي د (۷۰) کالو په عمر وفات سو ، دده مبارک مړی د هغه ځای څخه راوړل سو او په جنت البقيع کي دفن کړل سو .

عزت مند کړي هغوئ به د دې کلمې اهل وي او چا ته چې ذلت ورکړي نوهغوئ به د دې کلمې ماتحت وي ، ما وويل نو سي به دين خاص خداى ﷻ لره . احمد

## د جنت کيلي

﴿ ۳۸﴾ : وَعَنْ وَهْبِ بْنِ مُنَبِّهٍ قِيْلَ لَهُ أَلَيْسَ لاَ إِلٰهَ إِلاَّ اللهُ مِفْتَاحُ الْجَنَّةِ؟ قَالَ بَلٰى وَلٰكِنْ لَيْسَ مِفْتَاحٌ إِلاَّ لَهُ أَسْنَانٌ فَإِنْ جِئْتَ بِمِفْتَاحٍ لَهُ أَسْنَانٌ فُتِحَ لَكَ وَإِلاَّ لَمْ يُفْتَحْ لَكَ . رواه البخاري في ترجمة باب .( متفق عليه )

حضرت وهب بن منبه [۱] ؓ ته وويل سول : ايا لااله الاالله د جنت کيلي نه ده ؟ (يعني جنت ته د تلو لپاره يوازي دا اقرار بس نه دی) هغه ورته وويل : هو ، مگر هيڅ کيلي داسي نه وي چي په هغې کي غاښونه نه وي. که ته غاښو والا کيلي راوړې نو د جنت دروازه به ستا لپاره خلاصه سي او که د غاښو والا کيلي را نه وړې نو دروازه به خلاصه نه سي . بخاري او مسلم .

**تشريح** : د (مځکي) څخه مراد جزيره عرب ده، همداسي د خاوري او د خيمې د کور څخه مراد د جزيره عرب ښار او کلی دی يعني په ټول عرب کي به يوازي د يو دين اسلام کلمه لوړه وي او يوازي ددې تابعين به د عرب پر مځکه وي ، داسي يو ځای که په ښار کي وي او که په کلي کي وي داسي پاته نه سي چي هغه ته به د الله تعالی د اسلام کلمه ونه رسيږي ، که يو سړی په خوښي او شوق سره ايمان راوړي او اسلام قبول کړي نو د الله تعالی په نزد به د هغه مرتبه لوړه سي او الله تعالی به په دنيا او آخرت دواړو کي هغه په عزت او شرف سره ونازوي ، مگر کوم خلک چي غرور او سرکښي اختيار کړي يعني د دې کلمې په قبلولو سره د اسلام په دائره کي داخل نسي او په رضا او شوق سره د دين تابعدار نسي نو هغوئ به د ذلت طوق خپل غاړې ته اچوي ، په داسي توگه چي پر ټول جزيره عرب باندي به د دين اسلام عمل کول راسي نو هغه کافر او سرکښ خلک به د جزيې (محصول) ادا کولو په صورت کي د اسلامي حکومت تابعدار کېدو باندي مجبور وي، او دا به يوازي په دنيا کي نه وي چي الله تعالی هغوئ بې حيثيته جوړ کړي بلکه په آخرت کي به هم هغوئ د خپل رحمت څخه ليري کړي او په سخت عذاب کي به يې په اخته کولو سره ذليل او خوار کړي.

---

۱ - وهب بن منبه تابعي دیٔ کنيت يې ابو عبدالله دی په کال (۱۱۴ھ) کي وفات سو .

## د نیکۍ اجر

﴿۳۹﴾: وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِذَا أَحْسَنَ أَحَدُكُمْ إِسْلَامَهُ فَكُلُّ حَسَنَةٍ يَعْمَلُهَا تُكْتَبُ لَهُ بِعَشْرِ أَمْثَالِهَا إِلَى سَبْعِ مِائَةِ ضِعْفٍ وَكُلُّ سَيِّئَةٍ يَعْمَلُهَا تُكْتَبُ بِمِثْلِهَا حَتَّى يَلْقَى اللّٰهَ (متفق عليه)

د حضرت ابوهريرة ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: کوم سړی چي خپل اسلام راوړل ښه جوړ کړي (يعني د اسلام کارونه په صدق او اخلاص سره ادا کوي) نو د هغه د هري نيکۍ اجر به لس چنده وليکل سي تر دې چي د هغه يوه نيکي به د اوو سوو نيکيو برابره وي. او هره بدي به په خپل مثل (يوچند) وليکل سي تر دې چي هغه د خدای ﷻ سره يو ځای سي. بخاري ومسلم.

**تشريح**: دا امت چي الله تعالی په خپل فضل او کرم او په خاص احسان سره په کومو خاصو انعامونو سره نازولی دی په هغو کي يو ډير لوی انعام دا هم دی چي هر کله يو مخلص او صادق مؤمن نيک عمل کوي نو د الله تعالی بې شميره رحمت د هغه پر اجر يوازي د هغه د عمل په اندازه ثواب ورکولو باندي اکتفاء نه کوي بلکه د هغه په ډول د لسو عملونو ثواب هغه ته ورکول کيږي او پر هغه لس کيږي نه بلکه څومره چي په ايمان کي صدق او استقامت او په عمل کي اخلاص او نيک نيت زياتيږي په هغه اندازه اجر او انعامونه هم زياتيږي ، پر يو نيک عمل باندي تر اووه سوه پوري بلکه ددې څخه هم زيات اجر ورکول کيږي بلکه په ځيني حالاتو کي خو دا زياتوب د سوونو او زرګونو د شمير څخه زياتوب کوي ، لکه چي ويل کيږي که يو څوک په حرم شريف کي يو نيک عمل وکړي نو د هغه مقدس ځای په برکت د هغه عمل تر يو لک پوري ليکل کيږي ، ددې پر خلاف که يو د يو مؤمن څخه د بشريت په غوښتني يو بدي وسي نو د هغه ګناه زياتوب نه ليکل کيږي بلکه څومره بدي چي ځيني سوې وي بس هغومره ګناه يې ليکل کيږي ، د الله تعالی د دغه احسان او کرم که هر څومره شکر ادا کړل سي نو بيا هم کم دی.

## د ايمان عظمت

﴿۴۰﴾: وَعَنْ أَبِيْ أُمَامَةَ أَنَّ رَجُلاً سَأَلَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا الإِيْمَانُ؟ قَالَ إِذَا سَرَّتْكَ حَسَنَتُكَ وَسَآءَتْكَ سَيِّئَتُكَ فَأَنْتَ مُؤْمِنٌ قَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ فَمَا الإِثْمُ؟ قَالَ إِذَا حَاكَ فِيْ نَفْسِكَ شَيْءٌ فَدَعْهُ . رواه احمد.

د حضرت ابوامامه ﷺ څخه روايت دی چي يو سړي د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وکړه ايمان څه ته وايي ؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : هر کله چي ستا نيکي تا ته ښه خرګنده سي او ستا بدي تا ته بده محسوس سي نو بيا ته مؤمن يې ، بيا

هغه پوښتنه وکړه اې د الله رسوله ! ګناه څه شي ده ؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : هر کله چي يو شی ستا په زړه کي شك پيدا کړي او مشتبه در ته معلوم سي نو هغه پرېږده .احمد.

**تشريح** : د پوښتني مقصد دا وو چي يو داسي څرګنده نښه وښودل سي چي د هغه په ذريعه د ايمان د سلامتۍ او استقامت اندازه ولګول سي نو رسول الله ﷺ ورته وفرمايل که ته په ځان کي دغه کيفيت ووينې چي کله ته يو نيک کار کوې نو ستا زړه او دماغ د هغه کار خير خپله محسوس کوي او يو ډول اطمينان تر لاسه کوې ، د احسان او شعور د الله تعالی د لوري د نيکۍ توفيق او مرسته تر لاسه کېدو باندي خوښي او د الله تعالی د رضا او قربت اميدواره کيږې يا دا چي هر کله د بشريت په غوښتنه ستا څخه يو داسي کار صادر سي چي په څرګنده توګه د ګناه او معصيت کار ګڼل کيږي نو سمدستي ستا په زړه کي د الله تعالی بيره پيدا سي او د پروردګار د نارضاګۍ احساس کولو سره شرمناک او پښيمان کيږې نو پوه سه چي ايمان ستا په زړه او دماغ کي ځای سوی دی او ته پوخ مؤمن سوی يې ځکه چي د نيکۍ او بدۍ په مينځ کي فرق نه کول او د ثواب او ګناه احساس او شعور پيدا کېدل يوازي د ايمان خاصه ده ، د اخروي جزا او سزا عقيده چي د مؤمن په زړه کي وي هغه د غير مؤمن په زړه کي نه وي .

د دوهمي پوښتني اصلي مقصد دا وو چي مؤمن ته په خپل ورځني ژوند کي ځيني داسي شيانو سره تعلق کيږي چي د هغه په اړه په څرګنده توګه باندي علم نه وي چي ايا دا شی د شريعت په نظر د بدۍ په حکم کي دی او په هغه سره يو ګناه لازميږي يا د هغه په اختيارولو کي بدوالي نسته ، نو د داسي شکمن عمل د بدۍ يا نيکۍ پيژندلو نښه څه ده ؟ ددې په جواب کي رسول الله ﷺ د ارشاد مطلب دادی چي د ريښتوني مؤمن زړه په اصل کي د فطرت يو داسي پاک لوح دی چي پر هغه يوازي د اسلامي اطاعت او فرمانبردارۍ او د نيکۍ او ښېګڼي نقشونه راتللای سي که د ګناه او معصيت معمولي داغ هم ور ورسيږي نو هغه ته هيڅ ځای نسي تر لاسه کيدلای او هغه د تردد او شبهې په صورت کي ګرځي راګرځي ، بيا د کوم عمل او شي په اړه چي دا کيفيت څرګند سي چي فطرت سليم د هغه قبلولو ته نه تياريږي نو زړه د هغه بار محسوس کوي او په دماغ کي تردد پيدا کړل سي نو پوه سه چي هغه عمل د بدۍ خاوند دی او ګناه او معصيت لازمونکی دی او خلاصون په د کي دی چي هغه شی سمدستي پرېښودل سي ، همدا وجه ده چي ارباب باطن او اولياء الله د زړه او دماغ د صفائي او پاکوالي په وجه د يو عمل پټه بدي هم پيژني او هيڅ يو داسي شی ځان ته نژدې نه پريږدي چي د ګناه او معصيت د يوې

ذرې شبه هم لري، د هغوئ په نزد د (مشتبه عمل) څخه هم د هغه درجې پرهيز كوي كوم پرهيز چي هغوئ د څرګند بد عمل څخه كوي ځكه چي د هغوئ زړه او دماغ او د بدن شائبه هم پيژني او هغوئ ته د زړه اطمينان او د عمل خوبني يوازي په هغه صورت كي تر لاسه كيږي هر كله چي د هغوئ هيڅ يو قدم د سيده لاري څخه آخوا سوی نه وي او د هغوئ هيڅ يو كار د دين او شريعت مخالف نه وي.

## د ايمان او اسلام خبري

﴿ ۴۱ ﴾ : وَعَنْ عَمْرِو بْنِ عَبَسَةَ قَالَ أَتَيْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللهِ مَنْ مَّعَكَ عَلَى هٰذَا الأَمْرِ؟ قَالَ حُرٌّ وَّعَبْدٌ، قُلْتُ مَا الإِسْلَامُ؟ قَالَ طِيْبُ الْكَلَامِ وَإِطْعَامُ الطَّعَامِ، قُلْتُ مَا الإِيْمَانُ؟ قَالَ اَلصَّبْرُ وَالسَّمَاحَةُ، قَالَ قُلْتُ أَيُّ الإِسْلَامِ أَفْضَلُ؟ قَالَ مَنْ سَلِمَ الْمُسْلِمُوْنَ مِنْ لِسَانِهِ وَيَدِهِ، قَالَ قُلْتُ أَيُّ الإِيْمَانِ أَفْضَلُ؟ قَالَ خُلُقٌ حَسَنٌ، قَالَ قُلْتُ أَيُّ الصَّلَاةِ أَفْضَلُ؟ قَالَ طُوْلُ الْقُنُوْتِ، قَالَ قُلْتُ أَيُّ الْهِجْرَةِ أَفْضَلُ؟ قَالَ أَنْ تَهْجُرَ مَا كَرِهَ رَبُّكَ، قَالَ قُلْتُ فَأَيُّ الْجِهَادِ أَفْضَلُ؟ قَالَ مَنْ عُقِرَ جَوَادُهُ وَأُهْرِيْقَ دَمُهُ، قَالَ قُلْتُ أَيُّ السَّاعَاتِ أَفْضَلُ؟ قَالَ جَوْفُ اللَّيْلِ الآخِرِ رواه أحمد

د حضرت عمرو [۱] ﷺ څخه روايت دی چي زه د رسول الله ﷺ په خدمت كي حاضر سوم او عرض مي وكړ اې د الله رسوله! ستا سره (د اسلام په پيل كي) په دې (دين) كي څوك وو؟ رسول الله ﷺ راته وفرمايل: يو آزاد (سړی) او يو غلام (يعني ابوبكر صديق ﷺ او حضرت بلال ﷺ) بيا ما پوښتنه وكړه اسلام څه ته وايي؟ رسول الله ﷺ راته وفرمايل: ښه خبري او په خلكو ډوډۍ خوړل، وروسته ما پوښتنه وكړه ايمان څه ته وايي؟ رسول الله ﷺ وفرمايل: صبر او سخاوت. بيا ما پوښتنه وكړه چي د ټولو څخه غوره اسلام د چا دی؟ رسول الله ﷺ وفرمايل: د هغه سړي چي د هغه د ژبي او لاس څخه مسلمان ساتلي وي. بيا ما پوښتنه وكړه چي په ايمان كي څه شي ښه دی؟ رسول الله ﷺ وفرمايل: ښه خوی، بيا ما پوښتنه وكړه په لمانځه كي تر ټولو ښه كوم يو دی؟ رسول الله ﷺ وفرمايل: اوږده ولاړه كول، بيا ما پوښتنه وكړه د ټولو څخه غوره هجرت كوم يو دی؟ رسول الله ﷺ وفرمايل: د هغه كارونو پرېښودل چي هغه ستا د رب خوښ نه وي، وروسته ما پوښتنه وكړه چي په جهاد كونكو كي تر ټولو غوره كوم يو دی؟ رسول الله ﷺ وفرمايل: هغه سړی چي د هغه آس په جهاد كي مړ سي او دی هم شهيد سي، بيا ما پوښتنه وكړه په

[۱] د نوموړي نوم عمرو دی د عنبسه زوی دی او ابونجيح يې كنيت دی، د حضرت علي ﷺ د خلافت په زمانه كي وفات سوی دی.

ساعتونو کي تر ټولو غوره کوم ساعت دی؟ (یعني په شپه او ورځ کي تر ټولو غوره وخت کوم دی) رسول الله ﷺ وفرمایل: د شپې د آخري برخي منځنۍ برخه.

## پر ایمان او سلام قربانېدونکی جنتي دی

﴿ ۴۲ ﴾: وَعَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ مَنْ لَقِيَ اللّٰهَ لاَ يُشْرِكُ بِهِ شَيْئًا يُصَلِّي الْخَمْسَ وَيَصُوْمُ رَمَضَانَ غُفِرَ لَهُ قُلْتُ أَفَلاَ أُبَشِّرُهُمْ يَا رَسُوْلَ اللهِ قَالَ دَعْهُمْ يَعْمَلُوْا . رواه أحمد

د حضرت معاذ رضي الله عنه څخه روایت دی چي ما د رسول الله ﷺ څخه واورېدل چي فرمایل یې: کوم سړی چي د الله پاك سره یو ځای سي (وفات سي) او په خپل ژوند کي تر آخري وخته پوري یې د خدای سره څوك شریك نه وي نیولی پنځه وخته لمونځ یې کړی وي د رمضان د میاشتي روژې یې نیولي وي هغه بخښل کیږي ، د دې په اورېدو سره ما عرض وکړ اې دالله رسوله ! ایا دا زیری خلګو ته واوروم ، نبي کریم ﷺ راته وفرمایل : نه. پرېږده چي هغوئ عمل وکړي .

**تشریح**: ددغه بخښني اړه د صغیره (کوچني) ګناهونو سره ده مګر د الله تعالی په رحم او کرم سره ددې هم امید دی که هغه وغواړي نو لوی ګناهونه به هم وبخښي کنه نو د ګناه کبیره کولو سزا تیرولو څخه وروسته به د بخښني او جنت ور سي ځکه حضرت معاذ بن جبل رضي الله عنه ددې زیري عام کولو اجازه وغوښتل، مګر رسول الله ﷺ منعه کړ چي داسي نه خلک پر دغه زیري باندي تکیه او اعتماد وکړي او عمل کول پرېږدي یا په بدو کارونو کي اخته سي او ګناه او معصیت پیل کړي او بیا د عذاب ور سي .

په دغه حدیث شریف کي د حج او زکوة یادونه ځکه ونه کړل سول چي ددغه فرضونو اړه په خاصه توګه سره د صاحب استطاعت (د توان خاوند) او شتمنو خلکو سره ده ، په عامه توګه باندي هر سړی د زکوة او حج د ادا کولو توان نه لري ځکه یوازي هغه فرضونه ذکر کړل سوي دي د کومو اړه چي د هر سړي سره وي لکه لمونځ، روژه چي په دې کي د امیر او غریب د هیڅا خاصوالی نسته او دا پر ټولو باندي فرض دي .

﴿ ۴۳ ﴾: وَعَنْ مُعَاذٍ أَنَّهُ سَأَلَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ أَفْضَلِ الإِيْمَانِ قَالَ أَنْ تُحِبَّ لِلّٰهِ وَتُبْغِضَ لله وَتُعْمِلَ لِسَانَكَ فِيْ ذَكْرِ اللهِ قَالَ وَمَاذَا يَا رَسُوْلَ اللهِ قَالَ وَأَنْ تُحِبَّ لِلنَّاسِ مَا تُحِبُّ

د حضرت معاذ رضي الله عنه څخه روایت دی چي ما د رسول الله ﷺ څخه د ایمان د غوره خصلتونو په اړه پوښتنه وکړه، نبي کریم ﷺ وفرمایل: (غوره) ایمان دادی چي ته (یوازي) د الله لپاره د یو چا سره مینه

لِنَفْسِكَ وَتَكْرَهُ لَهُمْ مَا تَكْرَهُ لِنَفْسِكَ . رواه أحمد | وکړي او دالله لپاره (دښمني) او بغض وکړې او جاري کړې خپله ژبه په ذکر د خدای ﷻ سره ، معاذ ؓ وويل نور څه دي، رسول الله ﷺ وفرمايل : او دا چي ته خوښوې د نورو خلگو لپاره کوم چي د ځان لپاره خوښوې او د خلگو لپاره بد گڼې کوم چي د ځان لپاره بد گڼې .احمد .

**تشريح** : د ايمان غوره خبري دادي چي په هر حالت کي د الله تعالى خوښي او د هغه رضا مقصد وي يعني کوم کار چي کول کيږي که هغه مالي وي يا بدني او يا اخلاقي وي نو يوازي د الله تعالى د خوښي او د هغه د رضا تر لاسه کولو لپاره وکړل سي ، ددې څخه پرته د مؤمن لپاره ضروري ده چي هغه د اخلاص او انسانيت د لوړي درجې درلودونکی وي چي په دا ډول سره د هر يوه خيرغوښتونکی جوړ سي او د پوره انسانيت خير او بهتري داسي ښه وگڼي لکه څرنگه چي د خپل ځان خير ښه گڼي او د نورو لپاره هغه شی خوښوي کوم چي د خپل ځان لپاره خوښوي ، همداسي کوم شی چي د ځان لپاره تاواني گڼي او نه يې خوښوي نو د نورو لپاره يې هم نه خوښوي او تاواني يې گڼي .

## بَابُ الْكَبَائِرِ وَ عَلاَمَاتِ النِّفَاقِ

## د لويو گناهونو او د نفاق د نښو بيان

د (گناه کبيره) معنا ده لوی گناهونه ، د شريعت په اصطلاح کي گناه کبيره هغه خراب کار او بدي ته وايي چي د هغه کونکی د حد يعني د شريعت د ټاکل سوي سزا وړ بلل کيږي يا د هغه پر کولو باندي په قرآن کريم او حديث کي سخته سزا او زورونه راغلې وي يا د هغه کول شريعت د مبالغې په توگه په کفر سره تعبير کړی وي لکه په قصد سره لمونځ پرېښودلو باندي دا سزا راغلې ده : (من ترک الصلوة متعمدا فقد کفر) کوم چا چي په قصد سره لمونځ پرېښودی نو هغه کافر سو، يا د هغه فساد او نقصان د گناه کبيره د فساد او نقصان برابر يا د هغه څخه زيات وي ، يا د هغه منعه په دليل قطعي سره ثابت وي او د هغه اختيارول د حرمت دين د سپکاوي موجب وي په کوم فعل او خبره کي چي ددې څخه يو شي هم تر لاسه سي هغه ته به گناه کبيره يعني لويه گناه وايو، او په کوم فعل او خبره کي چي ددې څخه هيڅ شی نه پيدا کيږي او هغه د اسلامي لارښونو او ديني غوښتنو خلاف وي هغه ته به گناه صغيره يعني کوچنۍ گناه ويل کيږي، دا خبره په ذهن کي ساتل پکار ده چي په ځيني اعتبار سره که څه هم د گناه کبيره مختلف

درجې دي چي ځيني كبيره ګناوي خو ډيري خرابي او د نفرت وړ دي او ځيني ګناهونه نسبتا د كمي درجې دي مګر د شريعت په نظر كي د نيولو وړ او عذاب موجب كېدو په اعتبار ټول يو ډول دي.

په حديثونو كي پر يو ځاى د ټولو لويو ګناهونو تاكل او تفصيل موجود نه دى بلكه د موقع او محل په مناسبت سره يا د يو پوښتنه كونكي په جواب كي د رسول اللهﷺ د لوري د بيان سوي ګناه كبيره څو څو ځايه په حديثونو او رواياتو كي نقل دي او يو څو پر نورو مواقعو باندي مذكور دي ، ځيني علماؤ مثلا مولانا جلال الدين دواني چي د لويو ګناهونو كوم فهرست ترتيب كړى دى هغه په لنډه توګه دادى :

۱. د الله تعالى سره شريک نيول يعني يو څوک د هغه په عبادت يا صفاتو كي د هغه سره شريكول ، مثلا په مرسته غوښتلو كي ، په علم كي، په قدرت كي ، په تصرف كي ، په تخليق كي ، په بللو كي، په نوم اېښودو كي ، په ذبح كولو كي، په نذر منلو كي، او د خلكو په امور سپارلو كي يو چا ته هغه درجه او حيثيت وركول چي يوازي الله تعالى ته وړ دي .
۲. پر ګناه باندي د دوام او هميشګي نيت كول .
۳. په ناحقه يو څوک وژل .
۴. زنا كول .
۵. لواطت كول . (د هلک سره بدكاري كول ، بچه بازي كوي ) .
۶. غلا كول .
۷. جادو زده كول او جادو كول .
۸. شراب څښل او نشه كونكي شيان استعمالول .
۹. د محارم يعني مور، لور، خور، عمه، انا او خاله وغيره سره نكاح كول .
۱۰. خمار زده كول او خمار كول .
۱۱. د دارالحرب څخه هجرت نه كول . (دارالحرب : هغه هيواد چي په هغه كي د كفارو حكومت وي او مسلمان پكښي د خپل مذهبي فرضونو د ادا كولو څخه منعه كيږي ) .
۱۲. د دين د دښمنانو سره ناروا قرابت او تعلق ساتل .
۱۳. د طاقت او توان او غالب حيثيت لرلو سربيره د دين د دښمنانو سره جهاد نه كول .
۱۴. سود خوړل .

۱۵. د خنزير او مردارو حيوانانو غوښه خوړل.
۱۶. د نجومي او كاهن تصديق كول.
۱۷. په ناحقه د يو چا مال خوړل.
۱۸. پر پاک لمن سړي يا ښځه باندي د زنا تهمت لګول.
۱۹. درواغ ويل.
۲۰. د يو شرعي عذر څخه پرته په قصد سره د رمضان روژې نه نيول يا روژه ماتول.
۲۱. په درواغو سره قسم خوړل.
۲۲. قطع تعلق (يعني د قرابت ختمول).
۲۳. مور او پلار ته تكليف وركول او د هغوئ نافرماني كول.
۲۴. د جنګ په وخت كي د دين د دښمنانو د مقابلې څخه تښتېدل.
۲۵. په ناحقه د يتيمانو مال خوړل.
۲۶. په ناپ او تللو كي خيانت كول.
۲۷. لمونځ پر وخت نه ادا كول.
۲۸. د مسلمانانو سره په ناحقه جګړه كول.
۲۹. پر رسول الله ﷺ باندي درواغ تړل.
۳۰. پر رسول، كتاب الله او د ملائكو څخه انكار كول يا پر هغوئ مخسرې كول.
۳۱. د دين د احكامو او د شريعت د مسئلو څخه انكار كول.
۳۲. پر فرضو باندي عمل نه كول، يعني لمونځ نه كول، زكوة نه ادا كول، د رمضان روژې نه نيول او د قدرت لرلو سربيره حج نه كول.
۳۳. په صحابه كرامو يا يو صحابي پسي بد ويل.
۳۴. بيله عذره شاهدي پټول.
۳۵. رشوت اخيستل.
۳۶. د ښځي او خاوند په مينځ كي نفاق پيدا كول.
۳۷. د حاكم په وړاندي د يو چا چغل ګري كول.
۳۸. غيبت كول.
۳۹. په اسراف كي اخته كېدل، (اسراف: بې ځايه مصرف او پالتو خرڅ كول).

۴۰. لاري شکول، یعني په لاره کي درېدل او د خلکو څخه غلاوي کول یا کورو ته او ښتل.
۴۱. ددین په نامه یا د یو دنیاوي مقصد په وجه د مځکي پر مخ فساد او فتنه خپرول.
۴۲. پر کوچني ګناهونو باندي دوام او اصرار اختیارول.
۴۳. یو چا ته د ګناه شوق ورکول او یاد ګناه په کار کي مرسته کول.
۴۴. هارمونیم، ډول او نور منعه سازونه ږغول.
۴۵. د لمبېدلو په وخت کي د نورو خلکو په وړاندي سېتر لوڅول.
۴۶. په مالي غوښتنو او اداکولو کي بخل کول.
۴۷. د ځان وژل.
۴۸. د خپل بدن د اندامونو څخه یو اندام ضائع کول او تلف کول.
۴۹. د مني او بولو د مرداری څخه پاکي نه تر لاسه کول.
۵۰. تقدیر دروا غ ګڼل.
۵۱. د خپل مشر او حاکم سره وعده خلافي کول.
۵۲. یو چا ته د هغه په ذات او نسب سره پېغور ورکول.
۵۳. د غرور او تکبر په وجه پایڅې تر بجلکو کښته کول.
۵۴. خلک د ګمراهی په لور را بلل.
۵۵. پر مړي باندي ماتم او غم کول.
۵۶. خرابي طریقې او ناروا رسمونه رواج کول.
۵۷. په یو هارداره آلې سره د یو مسلمان په لور اشاره کول.
۵۸. یو څوک خصي کول.
۵۹. د خپل بدن یو برخه پرې کول، مثلا ږیره خریل، پزه وغیره لرېرې کول.
۶۰. د خپل احسان کونکي احسان هېرول.
۶۱. د حرم شریف په حدود کي هغه کارونه کول چي د هغه منعه فرمایل سوې ده.
۶۲. د حرم شریف په حدود کي جاسوسي کول.
۶۳. نرد (زمري) لوبه کول او یا داسي لوبه کول چي هغه په اتفاق سره حرامه وي.
۶۴. یو مسلمان ته کافر ویل یا هغه په داسي الفاظو سره مخاطب کول چي یوازي د کافر لپاره استعمالیږي.

۶۵. كه د يوې ښځه زياتي ښځي يې وي نو د هغوئ په مينځ كي عدل او انصاف نه كول.
۶۶. موټ وهل (يعني په لاس سره د مني ايستل او خوند اخيستل).
۶۷. د غلې وغيره په ګران بيه كېدو سره خوشحاله كېدل.
۶۸. د حيوانانو سره بدكاري كول.
۶۹. د عالم په خپل علم سره عمل نه كول.
۷۰. د دنيا په مينه كي اخته كېدل.
۷۱. آمرد ته په بد نظر كتل (امرد: هغه هلك ته وايي چي نابالغه او ږيره او بريت يې نه وي).
۷۲. د خلكو كورو ته كتل.
۷۳. د كور د خاوند څخه پرته د هغه په كور كي دننه كېدل.
۷۴. ديوسي او قرم ساقي (بړوه توب) كول.
۷۵. امر بالمعروف او نهي عن المنكر، يعني د نيكو كارونو د تبليغ او تلقين او د خرابو كارونو څخه د منعه كولو فريضه د قدرت سربيره نه ادا كول.
۷۶. د قرآن كريم د زده كولو څخه وروسته د هغه هيرول.
۷۷. حيوانان په اوز كي سوځل.
۷۸. د ښځي د يو شرعي عذر څخه پرته د خپل خاوند نافرماني كول.
۷۹. د سړي پر ښځي ظلم كول.
۸۰. د الله تعالى د رحمت او بخښني څخه نا اميده كېدل.
۸۱. د الله تعالى د عذاب څخه نه بېرېدل.
۸۲. د عالمانو او حافظانو سپكاوى او توهين كول.
۸۳. د ښځي سره ظهار كول (ظهار: خپل ښځي ته په مور يا خور سره ويل د طلاق په نيت).

ځيني علماؤ د لويو ګناهونو په فهرست كي د نورو ګناهونو يادونه هم كړې ده مګر دلته د لنډوالي په وجه پر همدې فهرست بسوالى وسو.

# الفصل الاول

## تر ټولو لوی ګناهونه

﴿۴۴﴾: عَنْ عَبْدِاللّٰهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ :قَالَ رَجُلٌ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ أَيُّ الذَّنْبِ أَكْبَرُ عِنْدَ اللّٰهِ قَالَ أَنْ تَدْعُوَ لِلّٰهِ نِدًّا وَهُوَ خَلَقَكَ، ثُمَّ أَيٌّ قَالَ أَنْ تَقْتُلَ وَلَدَكَ خَشْيَةَ أَنْ يَطْعَمَ مَعَكَ قَالَ ثُمَّ أَيٌّ قَالَ أَنْ تُزَانِيَ حَلِيلَةَ جَارِكَ فَأَنْزَلَ اللّٰهُ عَزَّ وَجَلَّ تَصْدِيقَهَا وَالَّذِينَ لَا يَدْعُونَ مَعَ اللّٰهِ إِلٰهًا آخَرَ وَلَا يَقْتُلُونَ النَّفْسَ الَّتِي حَرَّمَ اللّٰهُ إِلَّا بِالْحَقِّ وَلَا يَزْنُونَ..... الاية (متفق عليه)

د حضرت عبدالله بن مسعود[۱] ﷛ څخه روایت دی چي یو سړي د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وکړه اې دالله رسوله ! د الله په نزد کومه ګناه ډیره لویه ده؟ نبي کریم ﷺ وفرمایل: کوم خدای چي ته پیدا کړې يې د هغه سره شریك نیول. بیا يې پوښتنه وکړه ددې وروسته کومه لویه ګناه ده ؟ رسول الله ﷺ وفرمایل : دا چي ته خپل اولاد له دې کبله وژني چي هغه به ستا سره خوراك کوي (یعني په روزي کي به مي کمتوب راولي) ، بیا هغه پوښتنه وکړه ددې وروسته ؟ رسول الله ﷺ وفرمایل : دا چي ته د خپل همسایه ښځي سره زنا وکړې ، او وروسته د نبي کریم ﷺ په تصدیق کي الله تعالی دا ارشاد نازل کړ چي : کوم خلك د الله څخه پرته بل ثوك د عبادت وړ نه بولي او د کوم چا وژل چي الله حرام کړي دي هغه نه وژني مګر پر حق باندي (مثلا قصاص یا شرعي حد) او زنا نه کوي .... بخاري او مسلم .

**تشریح** : په دغه حدیث شریف کي یو څو داسي خبري په نښه سوي دي چي د اخلاق او انسانیت په اعتبار هم د ډیري بې غیرتۍ او رزالت نښه ده او شریعت هم هغه تر ټولو لوی ګناهونه شمیرلي دي او د هغه کونکی د الله تعالی د سخت عذاب وړ ګرځي ، تر ټولو لویه ګناه چي کومه خبره ګرځول سوې ده هغه د خپل خالق او پروردګار سره شرک کول .

او د (ان تدعوا لله اندادا) په شرح کي علماؤ ليکلي دي چي د شریک ګرځولو مطلب په ذات او صفاتو او عبادت کي یو ثوک د الله تعالی سیال او برابر جوړول دي ، مثلا په عبادت او بندګۍ کي او د اظهار عبدیت چي کومي طریقې او افعال د الله تعالی څخه پرته د بل چا لپاره اختیار کړل سي یا څرنګه چي الله تعالی په یا الله ویلو سره یادیږي همداسي بل ثوک د الله

---

[۱] د نوموړي نوم عبدالله بن مسعود او کنیت يې ابو عبدالرحمن دی، رسول الله ﷺ د جنت زیری ورکړی دی ، په (۲۳ه) کال کي تقریبا د (۶۰) کالو په عمر کي په مدینه منوره کي وفات سو .

تعالی څخه پرته بلل او یادول ، یا څرنګه چي الله تعالی د حاجتونو پوره کونکی دی همداسي بل څوک هم حاجت پوره کونکی ګڼلو سره داسي فریاد کول چي اې فلانیه ! زما دا حاجت پوره کړه ،یا زما مرسته وکړه او داسي نور .

دوهمه لویه ګناه دا ښوول سوې ده چي یو څوک خپل اولاد د بیري څخه مړ کړي چي هغه به زما پر سر بار سي د هغه خوراک او څښناک به پر ما سي او د هغه د روزني او ټولنیز ذمه داري به زغمل وي څرنګه چي د جاهلیت په زمانه کي ظالمانه طریقه رواج وه چي خلکو به د غربت په وجه خپل اولادونه وژل .

دریمه لویه ګناه دا ښودل سوې ده چي یو څوک د خپل همسایه ښځي سره زنا وکړي ، هسي خو مطلقا زنا کول یوه لویه ګناه ده او پر دې باندي سخته سزا ټاکل سوې ده مګر د همسایه ښځي سره زنا کول خو ډیره لویه ګناه ده لکه څرنګه چي په ناحقه قتل کول یوه لویه ګناه ده مګر خپل اولاد قتل کول بیخي لویه ګناه ده .

## د مور او پلار نافرماني او د درواغو قسم

﴿ ۴۵﴾ : وَعَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ قَالَ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْكَبَائِرِ اَلْاِشْرَاكُ بِاللّٰهِ وَعُقُوقُ الْوَالِدَيْنِ وَقَتْلُ النَّفْسِ وَالْيَمِيْنُ الْغُمُوْسُ (رواه البخاري) و في رواية انس وَشَهَادَةُ الزُّوْرِ بدل اليمين الغموس . (متفق عليه)

د حضرت عبدالله بن عمرو ﷛ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : لویي ګناوي دادي : د الله سره څوك شريك نيول، د مور اوپلار نافرماني كول، څوك په ناحقه وژل، په درواغو قسم اخيستل، د بخاري او د حضرت انس په روایت کي د درواغو قسم پر ځای د درواغو شاهدي راغلې ده . بخاري او مسلم.

**تشریح** : د عقوق یوه معنی د تکلیف ورکولو هم ده مګر په شریعت کي نه یوازي دا چي د مور او پلار نافرماني لویه ګناه ګرځول سوې ده بلکه دا حکم هم دی چي مسلمان مور او پلار ته دي تکلیف نه ورکول کیږي او نه دي په ناحقه تنګ کړل سي، همداسي کافر مور او پلار ته تکلیف ورکولو څخه هم منعه راغلې ده مګر د هغوئ د کفر څخه را ایستلو او پر اسلام قبلولو باندي اماده کولو لپاره د هغوئ سره د لږ سختي کولو اجازه ده، په دې شرط چي هغه سخت چلن په قطعي توګه باندي ډیر بد نه وي او د اخلاق او انسانیت څخه وتلي نه وي .

په تفسیر عزیزي کي د دغه قرآني آیت (و بالوالدین احسانا) په تفسیر کي لیکلي دي چي د مور او پلار سره احسان او ښه چلن کول په خاصه توګه پر درو خبرو شامل دي :

۱. لومړی دا چي هغوئ ته هیڅ ډول تکلیف ونه رسول سي که هغه په لاس سره وي یا په ژبه سره وي یعني نه خو دي هغوئ ته د وهلو تکلیف ورکړل سي او نه دي د هغوئ سره بدسلوک او بد کلامي کوي.
۲. دوهم دا چي تر څو پوري ممکن وي په سر او مال دي د هغوئ خدمت کوي.
۳. او دریم دا چي د هغوئ اطاعت او فرمانبرداري دي کوي او هغوئ چي کوم وخت او کوم ضرورت لپاره راوبلي سمدستي دي ورته حاضر سي.

مګر بیا هم علماؤ دا وضاحت کړی دی چي د والدین د خدمت حکم په دې شرط سره دی که مور او پلار د اولاد محتاج وي او اولاد دومره قوت او توان ولري چي د هغوئ هر ډول خدمت وکړلای سي نو د هغوئ خدمت پر واجب دی او که دا صورت وي چي نه خو یې مور او پلار محتاج وي او نه اولاد پر دې قادر وي نو پر هغه باندي د هغوئ خدمت واجب نه دی، همداسي د مور او پلار د حکم پر ځای کولو مسئله هم په دغه وضاحت سره ده که هغوئ د ښه کار حکم وکړي یا د شریعت خلاف شیانو څخه یې منعه کړي یا د شریعت خلاف حکم نه ورکوي نو د هغوئ اطاعت کول ضروري دی او که هغوئ د شریعت خلاف شیانو حکم ورکوي مثلا واجبات پرېښودلو لپاره ورته ووایي یا د فرض حج کولو څخه یې منعه کړي نو په دغه شیانو کي د هغوئ اطاعت کول نه دی پکار، که چیري د سنت مؤکده پرېښودو لپاره ورته ووایي مثلا په جماعت سره د لمانځه کولو څخه یې منعه کړي یا د عرفات د ورځي د روژې څخه یې منعه کړي نو په دې کي صحیح قول دادی چي دغسي یو حکم یو دوه واره منلو او د هغوئ په اطاعت کولو کي څه پرواه نسته مګر که چیري ددغه شیانو عادت وي یا همیشه یې منعه کوي نو د هغوئ حکم دي نه مني، مګر که چیري هغوئ یې د یو نفلي عبادت څخه منعه کوي او ورته وایي چي ددې پر ځای زما خدمت کوه نو د هغوئ حکم به مني.

(یمین غموس): هغه درواغ قسم ته وایي چي د هغه تعلق د تیر سوي شي سره وي مثلا یو سړی د یو کار په اړه داسي قسم وخوري چي قسم په خدای ما فلانی کار نه دی کړی حال دا چي هغه دا کار کړی وي نو دې ته یمین غموس ویل کیږي، ددې سخت منعه راغلې ده ځکه چي دا ډېره لویه ګناه ده، همداسي د درواغو شاهدي ورکول هم ډېره لویه ګناه ده چي د الله ﷻ د سخت عذاب وړ ګرځي.

## د هلاکونکو خبرو څخه ځان وساتئ

﴿۴۶﴾: عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: اجْتَنِبُوا السَّبْعَ الْمُوبِقَاتِ قِيلَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ وَمَا هُنَّ قَالَ الشِّرْكُ بِاللّٰهِ وَالسِّحْرُ وَقَتْلُ النَّفْسِ الَّتِي حَرَّمَ اللّٰهُ إِلَّا بِالْحَقِّ وَأَكْلُ الرِّبَا وَأَكْلُ مَالِ الْيَتِيمِ وَالتَّوَلِّي يَوْمَ الزَّحْفِ وَقَذْفُ الْمُحْصِنَاتِ الْمُؤْمِنَاتِ الْغَافِلَاتِ (متفق علیه)

د حضرت ابوهریرة ﷛ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : د اوو هلاکونکو شیانو څخه ځان وژغورئ، خلګو پوښتنه وکړه اې د الله رسوله ! هغه کوم شیان دي؟ رسول الله ﷺ وفرمایل : د الله سره شریك نیول، جادو کول، د هغه چا وژل چي د هغه وژل الله حرام کړي دي مګر په حق سره، سود خوړل، د یتیم مال خوړل، د جګړې په ورځ پر شا تلل، پر پاك لمنو ښځو او ناخبره ښځو باندي د زنا تور لګول .بخاري او مسلم

**تشریح** : اسلامي عقائد، نظریات او ښکاره منل سوي خبري په زړه سره منل، په ژبه سره اقرار کول او مقرر سوي فرضونو باندي عمل کول ایمان دی او ددغه منل سوو خبرو څخه د یوې څخه هم انکار کول کفر دی ، اوس که ددغه خبرو معلومات وکړل سي نو معلومه به سي چي د ایمان یوازي یو صورت دی چي ددین منل سوي خبري په ژبه او زړه سره ومنل سي او پر هغه عمل وکړي ددې پر خلاف د کفر څو صورتونه دي او ددین بدیهیات (هغه خبري چي د دلیل اړتیا نه وي) که د یوې خبري څخه هم انکار وکړل سي که څه هم د پاته ټولو اقرار موجود وي نو هم کفر بلل کیږي ، بیا د علماؤ وضاحت دی چي کفر یوازي په قول سره خاص نه دی بلکه ځیني کارونه هم د کفر سبب کیدلای سي فقهاؤ پر داسي کارونو باندي هم د کفر حکم کوي چي د قلبي او اعتقادي کفر صحیح ترجمان ګڼل کیږي .

هسي خو د کفر هر ډول د انسانیت پر لمن تر ټولو زیات بد داغ دی مګر ددې تر ټولو بد قسم شرک دی یعني د الله تعالی په ذات د هغه په صفاتو او عباداتو کي او د هغه د عظمت په حدودو کي یو څوک شریک جوړول نه یوازي په اعتقادي حیثیت سره د ایمان او اسلام څخه د بیزارۍ اظهار دی بلکه په فطري توګه باندي یو ډیر لوی ظلم او په عقل سره تر ټولو لوی بغاوت هم دی ځکه چي الله تعالی د انسان پیدا کولو سره د هغه فطرت د کفر او شرک د هر ډول چټلۍ څخه پاک کړی دی اوس که انسان خپل فطرت د شرک په نجاست سره خرابول غواړي نو ښکاره ده چي هغه د خپل فطرت او ضمیر د صداقت غاړه خفه کولو سره د مذهب او انسانیت دواړو حیثیتو څخه د تباهۍ او بربادۍ په غار کي لویږي .

ځکه نو د پروردګار عالم ټینګه فیصله ده چي د هغه په دربار کي هره کوتاهي او خطا د معافي وړ کیدلای سي مګر د شرک جرم هیڅکله د معافی وړ نه دی چي پر هغه به مشرک ته سخته سزا ورکول کیږي او د الله تعالی په جنت کي به د هغه لپاره هیڅ ځای نه وي . د الله تعالی ارشاد دی :

إِنَّ اللَّهَ لاَ يَغْفِرُ أَن يُشْرَكَ بِهِ وَيَغْفِرُ مَا دُونَ ذَلِكَ لِمَن يَشَاء. سورة النساء ۴۸

ژباړه : بیله شکه الله تعالی هغه ګناه نه بخښي چي د هغه سره یو څوک شریک جوړ کړل سي او بخښي ددې څخه پرته کومه ګناه چي وغواړي .

شرک د انسان د فطرت څخه د سعادت او نیک بختی تخم د بیخه باسي او د انسان د روحاني پرمختګ ټول استعداد د مرګ په پړ کنده کي اچوي ، په خپله د قرآن کریم په نظر کي د الله تعالی سره شرک نیول تر ټولو لویه افتراء (تهمت) او تر ټولو زیاته بې دلیله او د ضمیر خلاف خبره او د انساني نفس لپاره ابدي مرګ دی ځکه په حدیث شریف کي چي کوم دهلاکت شی په ګوته سوی دی په هغه کي د شرک جرم د فهرست په سر کي دی .

# د شرک تعریف او ډولونه

دلته مناسب ده چي د شرک تعریف او د هغه د ډولونو تفصیل بیان کړل سي ، په شرح عقائد کي دي چي شرک د شریعت په اصطلاح کي دې ته وایي چي په خدائي اختیاراتو کي غیر الله شریک کړي څرنګه چي مجوسیان اهرمن او یزدان مني (مجوسیانو (د اور عبادت کونکو) په دوه خدایان منل یو دنیکی خدای چي هغه ته به یې یزدان ویل او بل د بدی خدای هغه ته به یې اهرمن ویل)، یا دخدای ﷻ څخه پرته بل څوک هم د عبادت وړ ګڼل لکه څرنګه چي د بت پرستو عقیده ده ، دا خبره مخکي ښودل سوې ده چي شرک د کفر یو ډول دی ځکه په شریعت کي شرک د کفر په معنا کي هم راځي ، شیخ عبدالحق د مشکوة شریف په ترجمه کي د عقائدو په شرح کي د شرک د دواړ ډولونو په ذکر کولو سره لیکلي دي چي دلته د شرک څخه مراد کفر دی ، په خیالي کي هم ددې تصریح ده او د مولانا عصمت الله رح څخه هم دا نقل دي .

حضرت شاه ولي الله محدث دهلوي رحمة الله عليه فرمائي چي شرک د شریعت په اصطلاح کي دې ته وایي چي کوم صفات خاص د الله تعالی سره خاص دي هغه د الله تعالی څخه پرته په یو بل چا کي هم ثابت کړي لکه د الله تعالی څخه پرته بل څوک هم عالم الغیب وګڼي یا څرنګه چي د دنیا پر هر شي باندي الله تعالی قادر مني همداسي بل څوک هم قادر وګڼي یا څرنګه چي الله

تعالی په خپل اراده سره د دنیا پر ټولو شیانو متصرف ګڼي همداسي بل څوک هم متصرف وګڼي ، یا مثلاً د چا په اړه دا عقیده ولري چي د فلاني په نظر او کرم سره زما سره چلن وکړ ځکه نو ما ته د مال وسعت او خوشحالي تر لاسه سوه ، یا فلاني راته ښیرا وکړه د هغه په وجه زه ناروغ سوم یا زما مقدر خراب سو او داسي نور.

د الله تعالی په ذات او صفاتو کي او په خدایي اختیاراتو کي د شرک څخه پرته په تفسیر عزیزي کي چي د شرک نور ډولونه ذکر سوي دي په هغو کي یو دادی چي په عبادت کي د الله تعالی سره یو څوک شرک کړل سي یا د یو چا نوم د تقرب او فضیلت په طریقه د الله تعالی د نامه په ډول واخیستل سي او هغه د الله تعالی سیال وګرځول سي ، مثلاً یو څوک په ولاړېدو او کښېنستلو او مصیبتونو او تکلیفونو کي د هغه د نامه اخیستلو سره هغه یاد کړي همدارنګه د یو چا نوم د عبدالله یا عبدالرحمن پر ځای بنده فلان یا عبد فلان کښېښودل سي دې ته شرک في التسمیة وایي یا د غیر الله پر نامه ذبح وکړل سي او د هغه نذر ومنل سي یا بیله وجي د شرک دفعیه او حصول منفعت لپاره د الله تعالی څخه پرته بل څوک یاد کړل سي او د هغه په لور رجوع وکړل سي ، یا په علم او قدرت کي د الله تعالی د نامه سره بل څوک شریک کړل سي لکه یو څوک ووایي چي (ماشاء الله وشئت) ژباړه: یعني څه چي الله غواړي او ته یې غواړې هغه به کیږي.

نقل سوي دي چي یو وار یو ناپوه سړي د رسول الله ﷺ په وړاندي دغه الفاظ وویل، نو رسول الله ﷺ په سخته غصه سو او وه یې فرمایل تا زه د الله ﷻ سره شریک کړم او وه یې فرمایل چي داسي وایه (ماشاء الله وحده) یعني څه چي الله تعالی غواړي هغه به کیږي.

ځیني لویو ګناهونو ته شرک هم ویل سوي دي لکه څرنګه چي په حدیث شریف کي دي چي کوم سړی د الله تعالی څخه پرته د بل چا قسم وکړي نو هغه یقینا شرک وکړ، یا ویل سوي دي چي بدفالي کول هم شرک دی ، یا منقول دي چي ریاکاري شرک دی ، یا داسي نقل سوي دي چي کومه ښځه د خپل خاوند دمیني لپاره ټوټکي (یعني د خاوند دپاره قسم قسم شیان دود کول چي په شریعت کي ناروا دي) کوي دا هم شرک دی لکه دا ګناهونه چي د خپل خطرناکو اثراتو په وجه د شرک په ډول دي ځکه ددې څخه پرهیز کول دومره ضروري دی لکه څومره چي د شرک څخه پرهیز کول ضروري دي.

همدارنګه هغه کارونه که څه هم د شرک په دائره کي نه راځي مګر د مشرکینو او بت پرستو

د کارونو او اعمالو مشابه او د هغه هم مثل گڼل کیږي نو د هغو ځخه هم د شرک په ډول پرهیز کول ضروري دی لکه علماؤ او پاچا په مخکي تندی مږل یا د هغوئ په وړاندي راټلو سره مځکه مچول یا هغوئ ته د تعظیم سجده کول دا کارونه حرام او لوی گناهونه دي، ځکه ددې کونکی به هم گناه کار او د عذاب وړ وي او کوم خلک چي په داسي کارونو سره خوشحاله کیږي او د قدرت سربیره ددغه کارونو بندولو هڅه نه کوي نو هغوئ به هم گناه کار وي.

دلته دا وضاحت ضروري دی که دعلماؤ ، پاچاهانو یا پیرانو په مخکي تندی مږل او مځکه مچول د عبادت او تعظیم په نیت وي نو دې ته به صریحا کفر ویل کیږي او که د عبادت او تعظیم په نیت نه وي بلکه محضي د ادب د اظهار لپاره وي نو پر دې د کفر اطلاق نه کیږي بلکه لویه گناه به ضرور ورته ویل کیږي.

په دغه حدیث شریف کي دوهم هلاکونکی شی سحر (جادو) ښودل سوی دی، د سحر په اړه علماء وایي چي ځرنگه سحر او جادو کول حرام او هلاکونکی شی دی همداسي جادو زده کول او د سحر علم تر لاسه کول هم حرام دی چي په آخرت کي د هلاکت سبب جوړیږي.

د شرح عقائد په حاشیه (خیالي) کي لیکلي دي چي سحر کول کفر دی او د صحابه کرامو یو ډله خو پر دې متفق دي چي ساحر (جادوگر) سمدستي وژل پکار دي، نو هر کله چي د ځینو رایه داده که ساحر دا ډول وي چي د هغه ځخه کفر نه لازمیږي او ساحر د هغه ځخه توبه نه کاږي نو هغه قتلول پکار دی ، همدارنگه نجوم، کهانت او رمل تعلیم تر لاسه کول او ددې شیانو اختیارول او په هغه روزي او روپۍ تر لاسه کول او د نجومي او کاهن وغیره ځخه پوښتني کول او د هغوئ پر ښودلو خبرو باندي عقیده ساتل هم حرام دي.

په حدیث شریف کي د دښمن د مقابلې ځخه د تېښتي کولو بدفعل هم د هلاکت سبب ښودی سوی دی ځکه کوم سړی چي دومره بې غیرتي او بزدلي وښیي چي پر هغه موقع باندي چي هلته د هغه د ایماني میړاني او شجاعت ځرگندول پکار وه نو ده دښمن ته شا کولو سره وتښتیدی او هغه په اصل کي ددغه بد حرکت په ذریعه د اهل اسلام د رسوائي سبب جوړ سو نو هغه به د آخرت په عذاب او هلاکت وړ وگرځول سي ، په دې اړه چي د تفصیلي مسئلې تعلق دی هغه دادی که د یو مسلمان په مقابله کي دوه کافران وي نو هغه ته د هغوئ د مقابلې ځخه تښتېدل گناه کبیره ده مگر که چیري په مقابله کي د دښمن شمیر د دوو ځخه زیات سو نو بیا تښتېدل حرام نه دي بلکه جائز دي ، مگر په دې کي هم غوره خبره داده چي په هغه صورت کي هم

ونه تښتي بلکه مقابله وکړي که څه هم خپل سر وبایلي .

## هغه بده گناه چي د کولو په وخت کي ایمان نه پاته کیږي

﴿۴۷﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا يَزْنِي الزَّانِي حِينَ يَزْنِي وَهُوَ مُؤْمِنٌ وَلَا يَسْرِقُ السَّارِقُ حِينَ يَسْرِقُ وَهُوَ مُؤْمِنٌ وَلَا يَشْرَبُ الْخَمْرَ حِينَ يَشْرَبُهَا وَهُوَ مُؤْمِنٌ وَلاَ يَنْتَهِبُ نُهْبَةً يَرْفَعُ النَّاسُ إِلَيْهِ فِيْهَا أَبْصَارَهُمْ حِيْنَ يَنْتَهِبُهَا وَهُوَ مُؤْمِنٌ وَلاَ يَغُلُّ أَحَدُكُمْ حِيْنَ يَغُلُّ وَهُوْ مُؤْمِنٌ فَإِيَّاكُمْ إِيَّاكُمْ (متفق عليه) وَفِيْ رِوَايَةِ ابْنِ عَبَّاسٍ لاَ يَقْتُلُ حِيْنَ يَقْتُلُ وَهُوْ مُؤْمِنٌ . قَالَ عِكْرَمَةُ قُلْتُ لِابْنِ عَبَّاسٍ كَيْفَ يُنْزَعُ الإِيْمَانُ مِنْهُ ؟ قَالَ هٰكَذَا وَشَبَّكَ بَيْنَ أَصَابِعِهِ ثُمَّ أَخْرَجَهَا قَالَ فَإِنْ تَابَ عَادَ إِلَيْهِ هٰكَذَا وَشَبَّكَ بَيْنَ أَصَابِعِهِ وَقَالَ أَبُوْ عَبْدِ اللهِ لاَ يَكُوْنَ هٰذَا مُؤْمِنًا تَامًّا وَلاَ يَكُوْنُ لَهُ نُوْرُ الإِيْمَانِ . هذا لفظ البخاري .

د حضرت ابوهريرة ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : زنا کونکی د زنا پر وخت پوره مؤمن نه پاته کیږي ، غلا کونکی د غلا پر وخت پوره مؤمن نه پاته کیږي، شراب چښونکی د شراب چښلو پر وخت پوره مؤمن نه پاته کیږي، د نورو مال لوټونکی د لوټولو پر وخت چي پورته کوي خلك ده ته په هغه کي سترگي خپلي چي هغه لوټ کوي پوره مؤمن نه پاته کیږي، او په تاسو کي چي کوم سړی خیانت کوي هغه د خیانت په وخت کي پوره مؤمن نه پاته کیږي نو تاسو خلك د دې ټولو شیانو څخه ځان وژغورئ،(بخاري اومسلم) او د ابن عباس په روایت کي دا الفاظ هم دي او قاتل کوم وخت چي هغه څوك وژني مؤمن نه پاته کیږي، د عکرمه راوي بیان دی چي د دې روایت پـه اورېدو سره ما د ابن عباس څخه پوښتنه وکړه چي ایمان څنگه (د خلکو د زړونو) څخه وځي ؟ ابن عباس په خپلو گوتو کي گوتي ننه ایستلې او بیا یې را وایستلې او وه یې فرمایل نو که توبه یې وکښله بیا به راسي ایمان ده ته داسي او په یو بل کي یې ننه ایستلې گوتي خپل ، د دې وروسته ابن عباس وفرمایل : او هر کله چي سړی د دې ټولو گناهونو څخه توبه وکړي نو دا ډول ایمان په زړونو کي بیرته راسي او ابوعبدالله (یعني امام بخاري) وایي چي دا سړی پوره مؤمن نه پاته کیږي او د ایمان نور په هغه کي نه پاته کیږي د ا الفاظ د بخاري دي .

**تشریح** : څرنگه چي مخکي وښودل سول چي د مؤمن زړه د یو داسي حساس او پاک لوښي په ډول وي چي په هغه کي یوازي د ایمان نور ځائیدلای سي ، د ایمان خلاف کوم شی چي په هغه کي د دننه کېدو هڅه کوي نو نه د مؤمن زړه هغه ته ځای ورکوي او نه د ایمان نور هغه زغملای

سي، نو هغه بدترينه او درنه گناه چي د هغه په پورتني حديث کي ذکر وسو داسي د ايمان خلاف خبري دي چي د هغه تحمل د ايمان نور په هيڅ حالت کي نسي کولای، آخوا انسان د يو گناه ارتکاب پيل کوي چي بلي خوا ته د ايمان نور د زړه څخه رخصتيږي او بيا تر څو پوري چي پر هغه گناه شرمنده او پښيمانه کېدو سره په راتلونکي کي د زړه په اخلاص سره توبه ونه باسي د ايمان هغه نوراني کيفيت چي د ارتکاب گناه څخه مخکي هغه ته حاصل وو د هغه زړه ته بيرته نه راځي، دا صورت حال حضرت ابن عباس رضی الله عنه د خپلو گوتو د مثال په ذريعه څرگند کړ هغه لومړی د خپل لاس پنجه د دوهم لاس په پنجه کي داخله کړه او وه يې ښودل چي دا د گناه کولو څخه مخکي حالت دی چي د ايمان نور د مؤمن په زړه کي دی بيا هغه دواړي پنجې د يوې بلي څخه بيلولو سره وښودل چي څرنگه يوه پنجه د دوهمي پنجې څخه بيله سوې ده همداسي د گناه کولو په وخت کي د ايمان نور د مؤمن د زړه څخه بيليږي او بيا هغوئ دواړي پنجې په يوې بلي کي داخلي کړي او وه يې ويل څرنگه چي دا پنجې بيا په يوې بلي کي داخلي سوي دي همداسي که مؤمن د گناه کولو څخه وروسته توبه وکړي نو د هغه د ايمان نور د مخکي په ډول خپل ځای ته بيرته راځي.

امام ابن ابي شيبه (رح) ليکلي دي چي د گناه کولو په وخت کي د ايمان نه پاته کېدو مطلب دادی چي گناه کونکی کامل مؤمن نه پاته کيږي د هغه ايمان ناقص کيږي. (ترجمان السنة)، او د امام بخاري رح د قول حاصل دادی چي د روايت د د آخرني برخي څخه څرگند سو.

## د منافق نښي

﴿۴۸﴾: وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: آيَةُ الْمُنَافِقِ ثَلَاثٌ وَزَادَ مُسْلِمٌ وَاِنْ صَامَ وَصَلَّى وَ زَعَمَ اَنَّهُ مُسْلِمٌ ثُمَّ اتَّفَقَا اِذَا حَدَّثَ كَذَبَ وَاِذَا وَعَدَ اَخْلَفَ وَاِذَا اؤْتُمِنَ خَانَ. متفق عليه

د حضرت ابوهريرة رضی الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د منافق علامې درې دي، او د مسلمؒ په روايت کي دا الفاظ هم دي که څه هم هغه سړی روژه نيسي، لمونځ کوي او د خپلي مسلمانۍ دعوا هم کوي، که په هغه کي د دغه علامو څخه يو علامه پيدا سي نو هغه منافق دی، د دې وروسته د بخاري او مسلم دواړو متفق الفاظ دادی چي: خبري کوي نو درواغ وايي، چي وعده وکړي نو ماته يې کړي او که امانت ورسره کښېښودل سي نو خيانت پکښي کوي. بخاري او مسلم.

**تشریح** : هر کله چي یو اصلاحي تحریک د انقلابي رفتار څخه وړاندي کیږي او پر تهولنه باندي د هغه تسلط خپریږي نو د هغه د پلویانو او مخالفینو په مینځ کي یوه دریمه ډله هم پیدا کیږي یعني یو خو هغه خلک وي چي د هغه تحریک پوره همنوا او پیروان جوړ سي او په پوره ذهني او بدني تړون سره د هغه د اثر او اطاعت په دائره کي داخل سي ، د هغوئ په مقابله کي دوهمه ډله د مخالفینو وي چي په خپل پوره طاقت او ټول وسائلو سره په عامه توګه د تحریک د داعیانو او حامیانو مقابل طرف وي ، او ددې دواړو په مینځ کي چي دریمه ډله پیدا کیږي نو هغه پر هغه لومړي صفت خلکو باندي مشتمل وي چي نه د هغه تحریک په زړه سره حامي جوړیږي او نه په ښکاره مخالفت باندي ځان قادر بولي ، دا ډول خلک خپل ذهني او قلبي تړون د پخواني عقیدو او نظریاتو سره لري مګر په جسماني توګه باندي د حامیانو د تحریک په صفونو کي شاملیږي ، همدا صورت حال اسلام ته هم پیښ سو د پیغمبر اسلام د مکي ژوند څخه وروسته چي مدني ژوند پیل سو او د هغه سره ددعوت اسلام تحریک په انقلابي رفتار سره پر مخ سو او اهل اسلام ته هم طاقت او شوکت په برخه سو نو دا دریمه ډله پیدا سوه ،

مخکي په مکه کي یو طرف ته خو هغه خوشبخته خلک وه چي هغوئ په پوره صدق او اخلاص سره د اسلام دعوت قبول کړ د اسلام او پیغمبر اسلام فدایان او خادمان جوړ سول ، دا خوشبخته کسان په شمیر کي هم کم وه او مادي وسائل او ذرائع څخه هم محروم وه د هغوئ په مقابله کي هغه خلکو ته طاقت او شوکت هم تر لاسه وو او ټول مادي وسائل او ذرائع د هغوئ په لاس کي وه ، دلته هغوئ ته د اسلام په ښکاره دښمني کي هیڅ شی مانع نه وو او د اهل اسلام مخالفت په عامه توګه سره د یو خطرې یا تاوان باعث هم نه وو مګر اوس مدینې ته د دعوت اسلام ماحول نقل سو ، تحریک په بریالیتوب سره په وړاندي روان وو ، د پلویانو او همنواوو په شمیر کي په تیزي سره اضافه کېدل او په طاقت او شوکت کي هم زیاتېدل او په عامه توګه سره اهل اسلام ته غلبه هم تر لاسه کېده اوس د اسلام مخالفینو او معاندینو ته هم د عداوت شکل بدلیدل پکار سول هغوئ دا مستقله پالیسي جوړه کړه چي په ظاهره خو د اسلام ملګري سئ او مسلمانانو سره اوسیږئ مګر په دننه کي د اسلام مخالفین یعني د کافرانو ملګري اوسئ او د د خفیه کارونو په ذریعه د اسلام ددعوت په لار کي ازغي پاشئ ، نو ددې ځای څخه د نفاق بنیاد قائم سو او دغه ډول خلکو ته په اسلام کي منافق وویل سول، په دې کي هیڅ شک نسته چي ښکاره د یو تحریک لپاره نفاق تر ټولو لوی خنډ جوړیږي همداسي د اسلام په حق کي د

منافقانو دا ډله تر ټولو زياته تاوان رسونکې ثابته سوه ، په پيل کي خو ددغه منافقانو مکر او دومخي د مسلمانانو په مخکي پټ وه مګر هر کله چي د هغوئ منافقانه پاليسۍ او کارونو مسلمانانو ته تاوانونه رسول پيل کړل او د اسلام پر خلاف د هغوئ د خفيه نقل او حرکت عام سو نو د هغوئ پيژندنه مخته راتلل پيل سول او بيا خو ددې ډلي دومره ازرښت محسوس کړل سو چي د هغوئ په نامه يو ځانګړى سورت (المنافقين) نازل کړل سو ، ددې څخه پرته هم په قرآن کريم کي ځاى پر ځاى د منافقانو خبرداري ورکړل سوى دى او د هغو د بدو او تباه کارونو څخه مسلمانان خبر کړل سول .

## د نفاق ډولونه :

لکه څرنګه چي د ايمان او کفر مختلف ډولونه او صورتونه دي همدرانګه د نفاق هم څو ډولونه دي ، يو خو اعتقادي نفاق دى او همدا حقيقي نفاق دى يعني په ظاهره د الله تعالى د توحيد ، رسالت، ملائکو او د حشر او نشر د عقيدې دعوه کول مګر په دننه کي ددې ټولو عقيدو څخه پوره انکار او انحراف مضمر (پټ) وي، دا هغه نفاق دى چي د رسول الله ﷺ په زمانه کي وو ، دغه نفاق ته قرآن کريم کفر هم ويلي دي او ددې نفاق په اړه دا سزا راغلې ده چي په دوږخ کي به د منافقانو ځاى به تر کافرانو هم لاندي وي ، بيا داسي وسول چي ددغه منافقانو کوم عادات او خصلتونه او طريقې وي نو پر هغه د نفاق اطلاق کېدل پيل سول ځکه چي په هغه کي اکثر خبري هغه دي چي د انسان اخلاقي او عملي ژوند عيب داره جوړوي چي د اسلام د لارښوونو اعلى انساني اقدار او امانت او ديانت څرګند خلاف کېدو په وجه د ايمان او اسلام سره د ذرې په اندازه هم جوړښت نه خوري ، هر کله چي د مسلمانانو په ديني ژوند کي د انحطاط (پسۍ) زمانه راغلل او هغوئ هغه خبري اختيارول پيل کړل چي د منافقانو خاصه وه نو د اصطلاح اربابو د نفاق يو بل ډول هم وټاکى او د هغه نوم يې عملي نفاق کښېښودى .

نو په پورتني حديث کي چي د کوم شي پر خلاف خبرداري ورکول مقصد دي د هغه څخه همدغه عملي نفاق مراد دى ، مطلب دا چي په خبرو کي درواغ ويل اختيارول د حيرانتيا څخه کم نه دى ، که مسلمان په خبرتيا يا ناخبرۍ سره په دې کي د يو خراب عادت ښکار سي نو هغه ته سمدستي احتساب کول پکار دي او ددغه خراب عادت څخه خلاصون تر لاسه کول پکار دي کنه نو په آخرت کي به په سخت عذاب کي اخته سي .

## د منافقت څلور خبري

《۴۹》: وَعَنْ عَبْدِاللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَرْبَعٌ مَنْ كُنَّ فِيهِ كَانَ مُنَافِقًا خَالِصًا وَمَنْ كَانَتْ فِيهِ خَصْلَةٌ مِنْهُنَّ كَانَتْ فِيهِ خَصْلَةٌ مِنَ النِّفَاقِ حَتَّى يَدَعَهَا إِذَا ائْتُمِنَ خَانَ، وَإِذَا حَدَّثَ كَذَبَ وَإِذَا عَاهَدَ غَدَرَ. وَإِذَا خَاصَمَ فَجَرَ (متفق عليه)

د حضرت عبدالله بن عمرو ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: په کوم سړي کي چي څلور خبري پیدا سي نو هغه خالص منافق دی او په چا کي چي ددغه څلورو خبرو څخه یوه پیدا سي نو په هغه کي د منافقت خصلت پیدا سو. تر څو چي هغه دا پرې نه ږدي (هغه څلور خبري دادي): که امانت ورسره کښېښنودل سي نو په هغه کي خیانت کوي، چي خبره کوي نو دروا غ وایي، چي وعده وکړي نو ماته یې کړي، او که د چا سره په جګړه سي نو ښکنځل ورته کوي. بخاري او مسلم.

**تشریح**: دلته هم د نفاق څخه مراد عملي نفاق دی، په دې کي که چیري یو مؤمن ددغه څلورو خبرو ښکار سي نو مطلب به دا وي چي هغه په پوره توګه سره په عملي نفاق کي اخته دی او عملا منافق سوی دی او که په دغه څلورو کي یو عادت پکښي پیدا سوی وي نو خبر دار کېدلای سي، په یو چا کي که دغه څلور سره عادتونه جمع سوي وي یا یو عادت وي نو هغه دي پوه سي چي اوس د هغه د ژوند نقشه د منافق سره سمیږي که هغه د ایمان دعوه کوي نو په هغه کي ددغه عادتونو پیدا کېدل مناسب نه دي او که هغه د دنیا او آخرت خیر غواړي نو د هغه لپاره ضروري ده چي دا کارونه سمدستي پرېږدي.

## د منافق مثال

《۵۰》: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَثَلُ الْمُنَافِقِ كَالشَّاةِ الْعَائِرَةِ بَيْنَ الْغَنَمَيْنِ تُعِيْرُ إِلٰى هٰذِهِ مَرَّةً وَإِلٰى هٰذِهِ مَرَّةً. رواه مسلم.

حضرت ابن عمر ﷺ وایي چي رسول الله ﷺ وفرمایل: د منافق مثال د هغه بزې په ډول دی چي په منځ د دوو رمو کي ځي د نر لیواله وي او د دې خواهش پوره کولو لپاره کله یوې رمې ته منډه کړي او کله بلي رمې ته. مسلم.

**تشریح**: د منافق مثال د هغه پسه سره ورکړل سوی دی چي د خپل نارینه په لټه کي آخوا دېخوا ګرځي راګرځي همداسي د منافق حالت وي چي د هغه په وړاندي یوازي د دنیا حرص او د مال او ځان د ساتني مقصد وي ځکه هغه ماده صفته جوړېدو سره کله د مسلمانانو په غیږ کي پناه اخلي او کله د کافرانو ډلي ته په تللو سره خپل مقصد تر لاسه کول غواړي، د نفاق څخه د نفرت

پیدا کولو لپاره څرګنده ده چي دا تشبیه ډیره مؤثره ده .

## الفصل الثاني

﴿۵۱﴾ : عَنْ صَفْوَانَ بْنِ عَسَّالٍ قَالَ قَالَ يَهُوْدِيٌّ لِصَاحِبِهِ اِذْهَبْ بِنَا إِلىٰ هٰذَا النَّبِيِّ فَقَالَ لَهُ صَاحِبُهُ لاَ تَقُلْ نَبِيٌّ إِنَّهُ لَوْ سَمِعَكَ كَانَ لَهُ أَرْبَعَةَ أَعْيُنٍ فَأَتَيَا رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَأَلاَهُ عَنْ تِسْعِ آيَاتٍ بَيِّنَاتٍ فَقَالَ لَهُمْ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لاَ تُشْرِكُوْا بِاللهِ شَيْئًا وَّلاَ تَسْرِقُوْا وَلاَ تَزْنُوْا وَلاَ تَقْتُلُوا النَّفْسَ الَّتِيْ حَرَّمَ اللهُ إِلاَّ بِالْحَقِّ وَلاَ تَمْشُوْا بِبَرِيْءٍ إِلى ذِيْ سُلْطَانٍ لِيَقْتُلَهُ وَلاَ تَسْحَرُوْا وَلاَ تَأْكُلُوا الرِّبَا وَلاَ تَقْذِفُوْا مُحْصَنَةً وَلاَ تُوَلُّوْا لِلْفِرَارِ يَوْمَ الزَّحْفِ وَعَلَيْكُمْ خَاصَّةً الْيَهُوْدَ أَنْ لاَّ تَعْتَدُوْا فِي السَّبْتِ . قَالَ فَقَبَّلاَ يَدَيْهِ ورِجْلَيْهِ وقَالاَ نَشْهَدُ أَنَّكَ نَبِيٌّ قَالَ فَمَا يَمْنَعُكُمْ أَنْ تَتَّبِعُوْنِيْ قَالُوْا إِنَّ دَاوُدَ دَعَا رَبَّهُ أَنْ لاَّ يَزَالَ مِنْ ذُرِّيَّتِهِ نَبِيٌّ وَإِنَّا نَخَافُ إِنْ تَبِعْنَاكَ أَنْ يَقْتُلَنَا الْيَهُوْدُ . رواه الترمذي وأبو داود والنسائي .

د حضرت صفوان بن عسال [1] ﷛ څخه روایت دی چي یو یهودي خپل ملګري ته وویل چي موږ دې نبي ﷺ ته ورسوه ، هغه ملګري ورته وویل ده ته نبي مه وایه که هغه دا الفاظ واوري نو سترګي به يې څلور سي (یعني ډیر به خوشحاله سي) نو هغه دواړه یهودیان د نبي کریم ﷺ په خدمت کي حاضر سول او د ده مبارك څخه يې د هغو نهو څرګندو علامو پوښتنه وکړه (د کوم ذکر چي په قرآن مجید کي راغلی دی ) نبي کریم ﷺ ورته وفرمایل : هیڅوك د الله سره شریك مه جوړوئ، غلا مه کوئ، زنا مه کوئ، په ناحقه څوك مه وژنئ مګر په حقه سره، یو بې ګناه په الزام لګولو سره حاکم ته مه بیایاست چي هغه ته د قتل سزا ورکړي، جادو مه کوئ، سود مه خورئ، پر هیڅ یو پاك لمني تهمت مه وایاست، د کفارو سره د جنګ پر مهال مه تښتئ، د دې وروسته نبي کریم ﷺ وفرمایل او اې یهودو ! ستاسو ذپاره دا خاص حکم دی چي د شنبې په ورځ قانون ماتونه مه کوئ (یعني د شنبې په ورځ ښکار وغیره مه کوئ) د راوي بیان دی کله چي د نبي کریم ﷺ خبري هغه یهودیانو واورېدې نو د نبي کریم ﷺ لاسونه او پښې يې مچ کړې او عرض يې وکړ موږ شاهدي وایو چي تاسو په حقه نبي یاست، نبي کریم ﷺ ورته وفرمایل : نو تاسو زما اطاعت ولي نه کوئ؟ هغوي وویل : داؤد علیه السلام د الله ﷻ څخه دا دعاء غوښتې وه

[1] صفوان بن عسال ﷛ د مرادي په نسبت سره مشهور دی ، نوموړی د حضرت علي ﷛ د خلافت په زمانه کي وفات سوی دی .

چي نبي دي همیشه د هغه په اولاد کي وي په دې وجه زمونږ سره اند ېښنه ده که مونږ ستاسو اطاعت ومنو نو یهود به مونږ قتل کړي .ترمذي،ابوداؤد او نسائي.

**تشریح** : حضرت موسی ﷺ د بني اسرائیلو د هدایت لپاره د الله تعالی د لوري دنیا ته تشریف راوړی وو ، د نبوت ددلیل په توګه هغه ته چي کومي دوې معجزې ورکړل سوي وې په هغو کي یوه لکړه وه، لکړه د حضرت موسی ﷺ تر ټولو لویه معجزه وه چي د هغه په ذریعه هغه لوی لوی کارونه سرته رسول ، هر کله چي د فرعون د لوري د هغوئ او د هغه د زمانې د مشهورو ساحرانو او جادوګرانو په مینځ کي مقابله وسوه نو الله تعالی هغه ته د لکړي په ذریعه دا بریالیتوب ورکړ چي جادوګرانو په خپل سحر او جادو سره رسۍ په مارانو جوړولو سره پر مځکه وغورځولې ، نو حضرت موسی ﷺ خپل لکړه د الله تعالی په حکم سره وغورځول چي د هغه په لیدو سره د یو لوی افعي مار شکل اختیارولو سره ټول ماران وخوړل.

همدارنګه د هغه ﷺ دوهمه لویه معجزه (ید بیضاء) وه، هر کله چي به حضرت موسی ﷺ خپل لاس مبارک په بغل کي ننه ایستی نو د راکښلو سره به هغه د لمر په ډول ځلانده سو ، د دومره لویو معجزو سربیره هر کله چي د هغه قوم پر سیده لار نه راغلی نو الله تعالی هغوئ په عامه بلا اخته کړل چي پر هغوئ وچ کالي راغلل او د هغوئ د میوو په حاصلاتو کي کمي راغلل ، بیا چي د هغوئ سرکښي او نافرماني نوره زیاته سوه نو پر هغوئ مختلف عذابونه راتلل پیل سول مثلا باران دومره ډیر و اورول سو چي طوفان هغوئ راګیر کړل ، د هغوئ پر فصلونو ملخان اخته سول چي د هغه په وجه د هغوئ فصلونه تباه او برباد سول ، د هغوئ په غلو کي چینجیان پیدا سول چي د هغوئ غلې ختمول یې پیل کړل، پر هغوئ د چنګښنو عذاب راولیږل سو چي د هغوئ په خوراک ، څښناک بلکه په هر شي کي به چنګښني وې، بیا د هغوئ اوبه ویني سوې کله چي به دوئ اوبه څښلې نو هغه به د ویني شکل اختیار کړ ، په هر حال دا نهه شیان د حضرت موسی ﷺ معجزې او د هغه د نبوت خاصي نښي وې.

په دغه حدیث شریف کي چي هغه دوو یهودویانو د کوم نهو څرګنده احکامو په اړه پوښتنه وکړه د هغه څخه یا خو هغه احکام مراد وه چي رسول الله ﷺ هغوئ ته ارشاد وفرمایل، یا د هغوئ مراد د حضرت موسی ﷺ د هغه نهه معجزو او نښو په اړه چي د رسول الله ﷺ د ژبي مبارکي څخه خبر او توثیق تر لاسه کول وو، په دې صورت کي ویل کیدای سي چي یا خو په خپله رسول الله ﷺ د هغه ذکر ځکه ونه کړ چي هغه په قرآن کریم کي په تفصیل سره موجود دي او

کوم چي ضروري احکام وه د هغه حکم یې هغوئ ته وښودی ، یا دا چي د هغوئ د سوال په جواب کي د هغه نهه شیانو ذکر فرمایلو سره بیا هغوئ ته د خپل طرف څخه دا احکام ورکړل او راوي د هغه د مشهور کېدو په جه د د هغه یادونه ونه کړل، پاته سو هغه حکم چيَ رسول الله ﷺ د پورتني نهه احکامو څخه پرته په خاصه توګه یهودیانو ته ورکړ د هغه تفصیل دادی چي څرنګه د ټولو قومونو لپاره هم د شنبې ورځ د عبادت لپاره ټاکل سوې وه او هغوئ ته حکم ورکړل سوی وو چي په دغه ورځ دي د الله تعالی په عبادت کي بوخت اوسي ، دغه قوم د ښکار خاص شوق درلودی ځکه نو هغوئ په دغه ورځ هم دښکار کولو څخه منعه کړل سوي وه ، مګر قوم دې حکم ته څه ارزښت ورنه کړ او د سخت منعه کېدو سربېره یې په دغه ورځ د ماهیانو وغیره ښکار کول پیل کړل، د الله تعالی د لوري هغوئ په وار وار خبر کړل سول مګر کله چي هغوئ ونه منل نو په پای کي په سخت عذاب اخته کړل سول ، ځکه رسول الله ﷺ هغه یهودیانو ته د هغه په اړه په خاصه توګه تاکید وکړ چي تاسو په دې اړه د الله تعالی قائم کړل سوي حد څخه تجاوز مه کوئ او تاسو په دغه ورځ د ښکار کولو څخه منعه کړل سوي یاست ځکه په دې منعه عمل وکړئ او ددې حکم نافرماني مه کوئ ،

هغه یهودیانو د رسول الله ﷺ څخه د احکامو په اورېدو سره د رسول الله ﷺ د رسالت شاهدي ورکول د زړه په صدق سره نه وه بلکه د خپل علم د اظهار او اعتراف په توګه وو ، مطلب دا چي یهودیانو په خپل مذهبي کتابونو کي د رسول الله ﷺ نبي مرسل کېدل ویلي وه او هغوئ ښه پوهېدل چي محمد ﷺ واقعتا د الله تعالی رالیږلی نبي او رسول دی مګر دا د هغوئ بد بختي وه چي ددغه صحیح علم سربېره هغوئ ته د اسلام قبلولو توفیق نصیب نه سو او تعصب هغوئ دومره پر مخ بیولي وه چي بالکل حقه لار ورته نه معلومېدل، هغه دواړو یهودیانو بس همدومره وکړل چي د خپل علم اقرار یې وکړ او شاهدي یې ورکړل چي تاسو په واقعت کي د الله تعالی نبي او رسول یاست ، ظاهره ده چي محض علم کېدل یا د خپل علم اعتراف کول د وجود ایمان لپاره نسي کافي کېدلای ، پاته سول د هغه دواړو یهودیانو دا وینا چي حضرت داؤد ﷺ دا دعاء کړې وه چي د هغوئ اولاد کي دي همیشه یو نبي وي او د هغوئ دا دعاء به یقینا قبوله سوې وي ځکه د هغه په اولاد کي د یو چا نبي کېدل هم یقیني دي او هر کله چي هغه نبي ظاهر سي او ټول یهودیان به د هغه نبي تابع او مطیع کېدو سره شوکت او غلبه تر لاسه کړي نو بیا به زموږ وخت راسي یعني ټول یهودیان به زموږ په دغه جرم کي ووژني چي موږ د رسول الله ﷺ دین

ولي قبول كړ ، ددې بيرې څخه موږ پر تاسو ايمان نه راوړو ، ظاهره ده چي ددغه دواړو يهوديانو حضرت داؤد ﷺ طرف ته د يوې غلطي خبرې نسبت كول او په يقيني توګه سره يوه مفروضه او واهمه وه ، حضرت داؤد ﷺ هيڅكله دا دعاء نه وه كړې او هغوئ به داسي دعاء څنګه كول ، هغوئ خو په خپله په تورات او زبور كي لوستي وه چي محمد ﷺ خاتم النبيين دى او د هغه دين د ټولو دينونو نسخ كونكى دى .

## هغه درې خبرې چي د ايمان بنياد دى

﴿۵۲﴾: وَعَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَلَاثٌ مِنْ أَصْلِ الإِيْمَانِ اَلْكَفُّ عَمَّنْ قَالَ لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللهُ لاَ تُكَفِّرْهُ بِذَنْبٍ وَّلاَ تُخْرِجْهُ مِنَ الإِسْلَامِ بِعَمَلٍ وَالْجِهَادُ مَاضٍ مُنْذُ بَعَثَنِيَ اللهُ إِلىٰ أَنْ يُّقَاتِلَ آخِرُ هٰذِهِ الأُمَّةَ الدَّجَّالَ لاَ يُبْطِلُهُ جَوْرُ جَائِرٍ وَّلاَ عَدْلُ عَادِلٍ وَالإِيْمَانُ بِالأَقْدَارِ . رواه أبو داود

د حضرت انس ﷺ څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل :درې شيان د ايمان بنسټ دى:۱- چا چي په ژبه سره لااله الاالله ويلي وي نه خو د ګناه په وجه هغه كافر ګرځي او نه د يو عمل په وجه هغه د اسلام څخه وځي ،۲- د كومي ورځي څخه چي زه الله پاك راليږلى يم جهاد به هميشه جاري وي تر دې چي ددې امت آخري (ډله يا سړى ) به د جال و وژني ، نه به يو ظالم جهاد بند كړي او نه به يې د يو منصف انصاف ، ۳-او په تقدير باندې ايمان راوړل . ابوداؤد .

**تشريح** : يو مسلمان ته د كافر ويلو منعه دغه حديث په څرګنده توګه سره ثابت كړى دى، مطلب دا چي څرنګه ښه كار كونكي كافر ته مسلمان ويل منعه دي تر څو پورې چي هغه د توحيد او رسالت اقرار ونه كړي همداسي يو مسلمان ته يوازې د هغه د بدو عملونو په وجه كافر ويل سخت جُرم دى تر څو پورې چي هغه د كفريه عقيدې اعلان ونه كړي نو د (لاتكفره بذنب) يعني د يو ګناه په وجه هغه ته كافر مه واياست، په دغه الفاظو كي خو د خارجيانو ترديد دى چي د هغوئ وينا ده كه مؤمن د ګناه مرتكب سي كه څه هم هغه كوچنى ګناه وي نو هغه كافر كيږي او د (ولاتخرجه من الاسلام بعمل) يعني د يو عمل په وجه د اسلام څخه خارج نه ګرځوي، په دغه الفاظو كي د معتزله ترديد دى چي وايي بنده په ګناه كبيره سره د اسلام څخه وځي كه څه هم كافر كيږي نه، د ګناه كبيره لپاره هغوئ يوه درميانه درجه مني يعني نه خو هغه ته مسلمان وايي او نه كافر، په هر حال د خارجيانو او معتزله څخه پرته د اوسنى زمانې هغه مسلمانانو ته هم ددغه حديث په هنداره كي خپل مخ كتل پكار دي چي د كفر ټاپې لګوي او د خپل ځان څخه پرته

نور ټول مسلمانان كافران ګرځوي، د اشقى القلب خلک محضي د ذاتي غرض او نفساني خواهش په وجه نه يوازي عام مسلمانانو ته بلكه علماء حق او اولياء الله ته په كافر ويلو سره يوه ذره هم خطره نه محسوس كوي، داسي خلكو ته په يخ زړه او دماغ سره فكر كول پكار دي چي هر كله نبوي ژبي ګناه كار مسلمان ته هم د كافر ويلو څخه سخته منعه فرمايلې ده نو بيا هغه ددين بزرګان او امامانو ته كافر ويل چي د هغوئ د ژوند ټوله برخه د مذهب په خدمت او خپرېدو كي تيرېږي او ځوک چي دوئ ته كافر نه وايي هغه ته هم كافر ويل د احكام شريعت او فرمان رسالت سره مضحكه معامله ده چي د هغه نتيجه ښرګنده ده چي د عذاب الهي او د آخرت د تاوان څخه پرته بل هيڅ نه راوځي .

په حديث شريف كي چي كومو خبرو ته د ايمان بنياد ويل سوي دي په هغه كي لومړۍ خبره خو هغه ده چي د هغې وضاحت وسو ، دوهمه خبره د جهاد ده، په دې اړه د نبوي ارشاد مطلب دادی چي اوس د مځكي پر مخ حق دين ښرګند سي او د رسول الله ﷺ د رسالت اعلان كېدو څخه وروسته تر دې وخته پوري چي په آخر كي قيامت ته نژدې تر څو پوري دجال ونه وژل سي ، ياجوج او ماجوج په ښرګندېدو سره فنا نه سي او د مځكي مخ د دين د يوه يوه دښمن او منكر څخه پاكه نسي نو تر هغه وخته پوري به جهاد جاري وي، د جهاد فرضيت او ارزښت په هغه صورت كي هم نه ختميږي هر كله چي يو اسلام مشر د هيواد ظالم او جابر وي مګر ددين ددښمنانو خلاف هغه د جهاد اعلان وكړي نو هغه منل او د هغه سره په جهاد كي ګډون كول په شرعي توګه سره ضروري دی ، دا نه چي د هغه د ظلم او جبر په بهانۍ سره په جهاد كي د ګډون او مرستيال جوړېدو څخه انكار وكړل سي ، همداسي كه د دين د دښمنانو د قوم مشر او پاچا په اتفاق سره عادل او منصف وي نو هر څومره كه د پاچا عدل د امن او انصاف باعث كيږي مګر د اسلام د شوكت او شان زياتولو او ددين د كلمې د لوړتيا لپاره د هغه عدل پاچا د قوم پر خلاف هم جهاد غير ضروري نسي ګڼل كيدلای .

دريمه خبره پر تقدير باندي عقيده او يقين درلودل دي يعني د ايمان د سلامتۍ لپاره سخته ضروري ده چي په كائناتو كي څه كيږي او څه چي پېښي او واقعات پيښيږي هغه ټول د قضا او قدر الهي سره سم كيږي .

## د زنا کولو په وخت کي ایمان وځي

﴿۵۳﴾: وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِذَا زَنَى الْعَبْدُ خَرَجَ مِنْهُ الْإِيْمَانُ فَكَانَ فَوْقَ رَأْسِهِ كَالظُّلَّةِ فَإِذَا خَرَجَ مِنْ ذٰلِكَ الْعَمَلِ رَجَعَ إِلَيْهِ الْإِيْمَانُ . رواه الترمذي وأبو داود .

د حضرت ابوهريرة ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: هر کله چي بنده زنا کوي نو ايمان د هغه څخه وځي پر سر يې د سايې په ډول ولاړ وي او کوم وخت چي هغه د هغه بد عمل څخه فارغ سي نو ايمان بيرته راسي .ترمذي او ابوداؤد

**تشريح** : حافظ ابن تيميه (رح) پر دې باندي يو ډير ښه مثال ورکړی دی هغه فرمائي چي د يو ګناه کار مثال داسي دی لکه د سترګو بندولو څخه وروسته نه يوويني او نه دوه، مګر فرق دادی چي د نابينا سترګي رڼا نه لري او بينا که څه هم رڼا خو لري مګر د سترګو د غلاف په وجه هغه رڼا کار نه کوي، همداسي د يو مؤمن نور بصيرت باندي چي د بې لارۍ او ګمراهۍ پرده ولوېږي نو هغه هم د کافر په ډول د معصيت او طاعت فرق نه پېژني ځکه دا ويل بالکل پر ځای دي چي مؤمن په کوم حالت کي زنا کوي د هغه نور ايماني د بهيمت او معصيت د تاريکۍ سره داسي کمزوری سي چي هغه ته هم په معصيت کولو کي څه پرواه پاته نسي، او هر کله چي هغه بنده د هغه معصيت څخه وروسته د زړه په صدق سره توبه کاږي نو هغه د بهيمت پرده بيا وشکيږي او په ايماني نور سره بيا ځليدل پيل کړي . ترجمان السنة .

## الفصل الثالث

### حضرت معاذ ﷺ ته د لسو خبرو وصيت

﴿۵۴﴾ : عَنْ مُعَاذٍ قَالَ أَوْصَانِيْ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِعَشْرِ كَلِمَاتٍ قَالَ لاَ تُشْرِكْ بِاللهِ شَيْئًا وَإِنْ قُتِلْتَ وَحُرِّقْتَ وَلاَ تَعُقَّنَّ وَالِدَيْكَ وَإِنْ أَمَرَاكَ أَنْ تَخْرُجَ مِنْ أَهْلِكَ وَمَالِكَ وَلاَ تَتْرُكَنَّ صَلاَةً مَكْتُوْبَةً مُتَعَمِّدًا فَإِنَّ مَنْ تَرَكَ صَلاَةً مَكْتُوْبَةً مُتَعَمِّدًا فَقَدْ بَرِئَتْ مِنْهُ ذِمَّةُ اللهِ وَلاَ تَشْرَبَنَّ خَمْرًا فَإِنَّهُ رَأْسُ كُلِّ فَاحِشَةٍ وَإِيَّاكَ وَالْمَعْصِيَةَ فَإِنَّ بِالْمَعْصِيَةِ حَلَّ سَخَطُ اللهِ عَزَّ وَجَلَّ وَإِيَّاكَ وَالْفِرَارَ

د حضرت معاذ ﷺ څخه روايت دی چي نبي کريم ﷺ ما ته د لسو خبرو وصيت کړی دی يعني فرمايلي يې دي : (۱) هيڅ شی د الله سره شريك مه نيسه که څه هم ته په دې خبره ووژل سې يا وسوځل سې (۲) د مور او پلار نافرماني مه کوه که څه هم هغوئ تا ته دا حکم درکړي چي ته ووځه د خپل اهل (يعني کور څخه) او مال و دولت پريږده (۳) په قصد سره فرض لمونځ مه پريږده ځکه چا چي په قصد سره فرض لمونځ

مِنَ الزَّحْفِ وَإِنْ هَلَكَ النَّاسُ وَإِذَا أَصَابَ النَّاسُ مَوْتٌ وَأَنْتَ فِيهِمْ فَاثْبُتْ وَأَنْفِقْ عَلَىٰ عِيَالِكَ مِنْ طَوْلِكَ وَلاَ تَرْفَعْ عَنْهُمْ عَصَاكَ أَدَبًا وَأَخِفْهُمْ فِي اللهِ .رواه أحمد .

پريښودي نو دالله ذمه د هغه څخه ايسته ده. (۴) شراب مه چښه ځکه شراب چښل د ټولو گناهونو رېښه ده (۵) د گناهو څخه ځان ساته ځکه په گناه سره د الله غضب نازليږي (۶) په جهاد کي ځان د تېښتي څخه ژغوره که څه هم خلک پکښي مري (۷) هر کله چي په خلگو کي ناروغي (وباء) خپره سي او ته په هغو خلگو کي موجود يې نو دمرگ د بيري مه تښته او هلته پاته سه (۸) په خپله کورنۍ د خپل وس سره سم خرڅ کوه (۹) خپل کورنۍ ته ادب وښيه که څه هم د دي لپاره د وهلو ضرورت سي (۱۰) خپله کورنۍ د الله څخه وبيروه . احمد .

**تشريح** : شرک د خپل خرابۍ په وجه ډېره خطرناک دی او په اُخروي حيثيت سره ډېره د هلاکت لري، ددې اندازه ددې خبري څخه کيدلای سي چي رسول الله ﷺ حضرت معاذ ﷺ ته وصيت وفرمايه که چيري ستا د مرگ هم خطره وي يا په اور کي واچول سې نو بيا هم د توحيد په اړه د خپل عقيدې څخه يوه ذره هم مه تر شا کيږه بلکه د مرگ پرواه کولو پرته پر خپل عقيدې باندي په ټينګۍ سره قائم اوسه او کوم چي د مرگ د مسئلې تعلق دی نو ويل کيږي چي حضرت معاذ ﷺ د خپل فطرت په اعتبار سره د شريعت په پيروۍ کي ډير سخت وو، او هري مسئلې هغه اړخ به يې غوره کوئ کوم چي به اولی وو، ځکه نو رسول الله ﷺ د هغه د مزاج او شوق سره سم په دومره ارزښت سره هغه ته حکم ورکړ کنه نو پر داسې موقع باندي هر کله چي د خپل ايمان او اسلام اظهار د خپل مرگ دعوت ورکونکي او د کفر او شرک په ژبه سره ادا کولو څخه پرته ځان نه ژغورل کيږي نو ددې اجازه ده چي د کفر او شرک کلمه په ژبه سره ادا کړي په شرط ددې چي په زړه کي ايمان په پوره توگه سره موجود وي .

د مور او پلار د اطاعت او فرمانبردارۍ ارزښت او تاکيد هم د مبالغې په توگه وفرمايل سو که چيري مور او پلار ستا د کورنۍ څخه د بيلېدو يا ستا د مال او اسباب څخه د جلا کېدو حکم وکړي نو ددغه حکم اطاعت کوه، ددې لپاره هم اصل مسئله داده چي د مور او پلار دا حکم منل واجب نه دي چي په خرڅ او تاوان کي اخته کېدل لازم نسي ، د فرض لمانځه ارزښت ښودلو لپاره وفرمايل سول که ته په قصد سره لمونځ پريږدې نو بيا خپل ځان په دنيا او آخرت کي د الله تعالی د ذمه دارۍ څخه وتلی وگڼه په دنيا کي خو په دې اعتبار سره چي د اسلامي نظام او اسلامي حکومت د قانون سره سم چي د هغه کومه سزا مستوجب وگرځول سي په هغه کي د الله تعالی د

لوري به هيڅ امن او بخښنه تا ته نه تر لاسه کيږي او په آخرت کي په دې اعتبار سره چي هلته د لمانځه د پرېښودلو په وجه به ته په عذاب کي اخته سې، د ښمن ته د شا کولو په اړه دا مسئله ده که د ښمن زيات وي يعني د يو مسلمان په مقابله کي دوه د دين د ښمنان وي نو په دې صورت کي د مقابلې څخه مخ اړول او تېښته کول مسلمان ته هيڅ جائز نه ده، مګر که چيري د يو ه مسلمان په مقابله کي د دوو څخه زيات وي نو بيا د تباهۍ خطرې لېدو په وجه مقابله نه کول او د ځان ژغورلو لپاره تېښته اختيارول جائز ده، رسول الله ﷺ حضرت معاذ ؓ ته دا حکم د مبالغې په توګه ورکړ چي ته په هيڅ صورت کي د ښمن ته شا مه کوه که څه هم ستا ټول ملګري شهيدان سي او د د ښمن مقابلې ته ته يو ازي پاته سې.

په دغه حديث شريف کي يوه عقيدوي کمزوري هم په ګوته سوې ده او د هغه پر خلاف حضرت معاذ ؓ خبردار کړل سوی دی يعني اکثر داسي کيږي چي هر کله يو ابادۍ کي يو وباء خپره سي او مړګونه زيات کيږي نو عام خلک په بيره کېدو سره خپل کور او ځای پرېږدي او د هغه ځايه څخه تښتي، ددې لپاره هم اصله مسئله داده چي کوم خلک په هغه ابادۍ کي د مخکي څخه مقيم نه وي بلکه په نورو ځايونو کي وي نو د هغوئ لپاره جائز ده چي د هغه ابادۍ څخه ليري اوسي او هلته رانسي، مګر کوم خلک چي د مخکي څخه په هغه ابادۍ کي مقيم وي نو د هغوئ لپاره جائز نه ده چي د مرګ د بيري څخه هغه ځای پرېږدي او د هغه ځای څخه وتښتي ځکه چي د وباوهلي ځای څخه تښتېدل داسي ګناه ده لکه څرنګه چي د کافر د مقابلې څخه تښتېدل، بلکه کوم سړی چي په دې عقيدې سره وتښتي چي وايي که چيري دلته پاته سم نو مړ به سم او د دغه ځای څخه په تښتېدو سره به د مرګ څخه خوندي سم نو هغه کافر کيږي.

### اوس کفر دی که ايمان؟

﴿۵۵﴾ :وَعَنْ حُذَيْفَةَ قَالَ إِنَّمَا كَانَ النِّفَاقُ عَلٰى عَهْدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَمَّا الْيَوْمَ فَإِنَّمَا هُوَ الْكُفْرُ اَوِ الْإِيْمَانُ . رواه البخاري .

د حضرت حذيفه[۱] ؓ څخه روايت دی چي منافقت د نبي کريم ﷺ په زمانه کي وو، او اوس خو يا کفر دی يا ايمان. بخاري

**تشريح**: د رسول الله ﷺ په زمانه کي د ځينو حکمتونو په وجه منافقين د مسلمانانو په حکم کي

[۱] د نوموړي نوم حذيفه بن يمان دی او کنيت يې ابوعبدالله عيسی دی، د حضرت عثمان ؓ د شهادت څخه خلوېښت ورځي وروسته په کال (۳۶هـ) کي وفات سوی دی.

ساتل كېدل او د هغوئ پر د سيسو به سترګي پټېدلې ، مګر اوس دا حكم پاته نه دى ، فرض كړئ كه د يو مسلمان په اړه دا ثرګنده سي چي دا سړى مخلص مؤمن نه دى بلكه حقيقي منافق دى نو پر هغه به د كفر او ارتداد حكم جاري كيږي او اسلامي حكومت به هغه ته د مرګ سزا وركوي.

# بَاب فِيْ الْوَسْوَسَةِ

## (دغه باب د وسوسې په بيان كي دى)

وسوسه د ګناه يا كفر په اړه هغه خيال ته وايي چي په زړه كي راسي ، يا شيطان يې په زړه او دماغ كي واچوي ، ددې په مقابله كي الهام هغه ښه او نيک خيال ته وايي چي د الله تعالى د لوري په زړه او دماغ كي واچول سي .

## د وسوسې ډولونه

د وسوسې مختلف صورتونه او نوعيتونه دي او په دې اعتبار سره علماؤ ددې بيل بيل ډولونه ټاكلي دي ، د وسوسې يو ډول خو ضروري يعني اضطراري دى او دوهم ډول اختياري دى ،

ضروري يا اضطراري وسوسه هغه ته وايي چي د يو ګناه يا ايمان او يقين خلاف د يو خبري خيال ناڅاپه او بې اختياره په زړه او دماغ كي راسي ، دا په اصطلاحي توګه سره په هاجس سره تعبير كيږي ، ددغه هاجس معافي په تيرو امتونو كي هم راغلې ده او په دې امت كي هم ده، او كه چيري هغه خراب خيال په زړه او دماغ كي ځاى ونيسي او شكمن كيفيت پيدا سي نو هغه په خاطر سره تعبير كيږي او خاطر هم دغه امت ته معاف دى ،

اختياري وسوسه هغه ته وايي چي د يو ګناه يا ايمان او يقين خلاف د يو خبري خيال په زړه او دماغ كي پيدا سي او پر له پسې وي مستقل شكمني كوي، د طبيعت خواهش هم د هغه د كولو وي او يو ډول لذت او مينه هم د هغه سره محسوس كيږي ، د اختياري وسوسې دغه صورت ته (هم) ويل كيږي او دا (هم) هم دې امت ته معاف دى پر دې باندي څه نيول نسته او تر څو پوري چي عملي صورت اختيار نه كړي پر دې څه ګناه په عمل نامه كي نه ليكل كيږي بلكه كه چيري د عمل قصد وسي او بيا خپل ځان د عمل څخه وساتي نو د هغه په عوض كي نيكي ليكل كيږي د (هم) په مقابله كي د اختياري وسوسې د دوهم صورت نوم (عزم) دى ، يعني د

انساني طبيعت او نفس يو خراب خيال او خرابه خبره د خپل ځان سره کول او جم کول او نه يوازي دا چي ددې خيال څخه نفرت او کراهت نه وي بلکه پر دې د عمل کولو داسي پخه اراده کول که يو خارجي مانع نه وي او اسباب او ذرائع برابر وي نو هغه په يقيني توګه باندي عملي صورت اختياروي نو د وسوسې دا صورت داسي دی چي د نيولو قابل دی مګر ددغه نيولو نوعيت په عملي توګه باندي د کيدونکي نيوني څخه سپک وي، مطلب دا چي دا وسوسه هر کله چي د دننه څخه په وتلو سره عملي صورت اختيار کړي نو ګناه به زياته وي.

دلته دا وضاحت ضروري دی چي د وسوسې پورتني ډولونه د هغه کارونو او عملونو نسبت نه دی چي د هغه د وقوع او کېدو تعلق د بدن د ظاهري اندامونو سره دی لکه زنا، غلا او داسي نور، کومو خبرو ته چي د زړه او دماغ فعل ويل کيږي لکه خرابه عقيده، حسد او داسي نور نو هغه په دغه وېش کي داخل نه دي او د هغه پر هميشتوب باندي به نيونه وي.

## الفصل الاول

### د وسوسې معافي

| | |
|---|---|
| ﴿۵۶﴾ : وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّ اللهَ تَعَالٰى تَجَاوَزَ عَنْ أُمَّتِيْ مَا وَسْوَسَتْ بِهِ صُدُوْرُهَا مَا لَمْ تَعْمَلْ بِهِ أَوْ تَتَكَلَّمْ .(متفق عليه) | د حضرت ابوهريرة ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : زما د امت په زړه کي چي کومي وسوسي پيدا کيږي الله ﷻ هغه معاف کړي دي تر څو چي د هغې مطابق عمل ونه کړي يا په ژبه سره څه ونه وايي. |

### وسوسه بد ګڼل د ايمان نښه ده

| | |
|---|---|
| ﴿۵۷﴾ : وَ عَنْهُ قَالَ جَاءَ نَاسٌ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَأَلُوْهُ إِنَّا نَجِدُ فِيْ أَنْفُسِنَا مَا يَتَعَاظَمُ أَحَدُنَا أَنْ يَتَكَلَّمَ بِهِ قَالَ وَقَدْ وَجَدْتُمُوْهُ قَالُوا نَعَمْ قَالَ ذَاكَ صَرِيحُ الْإِيْمَانِ (روه مسلم) | د حضرت ابوهريرة ﷺ څخه روايت دی چي د اصحابو څخه ځيني د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سول او عرض يي وکړ اې داالله رسوله ! زموږ په زړونو کي (کله ناکله) داسي خبري وي |

چي هغه موږ په ژبه نه سو راوړلای، نبي کريم ﷺ ورته وفرمايل : ايا تاسو رښتيا هم هغه خبري په ژبه ويل بد ګڼي؟ هغوئ وويل : هو، نو رسول الله ﷺ وفرمايل : هم دغه ښکاره ايمان دی. مسلم.

## کله چي شیطان وسوسه پیدا کړي نو د الله ﷻ پناه غواړئ

﴿۵۸﴾ : وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَأْتِي الشَّيْطَانُ أَحَدَكُمْ فَيَقُولُ مَنْ خَلَقَ كَذَا وَكَذَا حَتَّى يَقُولَ مَنْ خَلَقَ رَبَّكَ؟ فَإِذَا بَلَغَهُ فَلْيَسْتَعِذْ بِاللّٰهِ وَلْيَنْتَهِ (متفق علیه)

د حضرت ابوهريرة ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : په تاسو کي چا ته شیطان راځي او ورته وایي چي دا (مثلا آسمان) چا پیدا کړ او دا (مثلا مځکه) چا پیدا کړه ؟ تر دې چي هغه دا وایي چي ستا رب چا پیدا کړ؟ هر کله چي د چا په زړه کي دا ډول وسوسې پیدا سي نو د الله څخه پناه غواړئ او دا خیال د زړه څخه لیري کړئ .بخاري او مسلم.

**تشریح** : شیطان د انسان د روحاني ارتقاء تر ټولو لوی دښمن دی د هغه بنیادي نصب العین دادی چي د الله تعالی بندګان چي د الله تعالی پر ذات او صفاتو باندي یقین لري د هغوئ په ګمراه کولو کي لګیدلی دی دا نه چي هغه د چم بازۍ په ذریعه د انسان په نیک عمل او ښه کارونو کي د بندیز او زنډ پیدا کولو هڅه کوي بلکه د هغه زورور قوت په تکیه چي حق تعالی د تکوین د حکمت سره سم هغه ته ورکړی دی د وسوسې په ذریعه د انسان سوچ او فکر او په خیالاتو کي د مختلف ډول شبهات او خرابۍ پیدا کولو هڅه کوي مګر د کومو خلکو سوچ او فکر او د خیالاتو پر بنیاد باندي چي د ایمان او یقین صحیح واک وي هغوئ د خپل ایمان د فکري او شعوري طاقت سره د شیطان وسوسې بیکاره کوي ،

په دغه حدیث شریف کي چي ځیني شیطاني وسوسې په ګوته سوي دي نو هلته دې ته هم اشاره سوې ده چي ددغه وسوسو د غیر مؤثر او بیکاره کېدو سره تعلق لري ، فرمایلي يې دي چي لومړی خو شیطان د الله تعالی د مخلوقات او موجوداتو په اړه وسوسه اندازي کوي مثلا په فکر او خیال کي دا خبره وراچوي چي د انسان وجود چا جوړ کړی ، ددغه مځکي او آسمان پیدا کول د چا کار دی، د الله تعالی پر ذات او صفاتو باندي د ایمان لرونکو عقل سلیم د کائناتو د ټول مخلوقات او موجوداتو د تخلیقي او تکویني نوعیت په بدیهي شعور او ادارک سره لري ځکه د مخلوقات تر حد پوري د شیطان وسوسه زیات ارزښت نه لري، مګر معامله هلته نازکه سي ، هر کله چي دا لړۍ په نازک کېدو سره الله تعالی ته ورسیږي او شیطاني وسوسه د زړه او دماغ څخه پوښتنه کوي چي هر کله دا مځکه او آسمان او ټول مخلوقات د الله تعالی پیدا کړي دي نو بیا خپله الله تعالی چا پیدا کړی دی؟ وفرمایل سول چي څرنګه دا وسوسه پیدا سي نو د الله تعالی څخه پناه غواړئ او د خپل ذهن څخه دا فاسد خیال سمدستي

ليري كړئ چي د شيطاني وسوسې لړۍ پرې سي، د الله تعالى د پناه غوښتلو مطلب صرف په ژبه سره د يو څو لفظونو ويل نه دي بلكه دا چي يوې خوا ته خپل فكر او خيال يو ځاى كولو سره ددې عقيدې او يقين په نيولو كي وركړى چي د الله تعالى ذات قديم دى هغه واجب الوجود دى هغه چا نه دى پيدا كړى دى هغه هميشه دى او هميشه به وي او بلي خوا ته رياضت او مجاهده او د ذات باري تعالى د ذكر او استغراق په ذريعه د خپل نفس تزكيه او د ذهن او فكر تحفظ او سلامتي په لور متوجه سئ، د وسوسې منعه كولو يو سمدستي مؤثره طريقه علماؤ دا هم ليكلې ده چي مجلس بدل كړل سي يعني كوم ځاى چي ناست يا پروت وي او هلته دا وسوسه پيدا سي نو سمدستي دي د هغه ځاى څخه ليري سي او يو بل ځاى په تلو سره دي په يو كار او مشغله كي بوخت سي همدا رنګه خيال به يې سمدستي ليري سي او د وسوسې لاره به بنده كړل سي.

﴿۵۹﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَزَالُ النَّاسُ يَتَسَاءَلُونَ حَتَّى يُقَالَ هٰذَا خَلَقَ اللّٰهُ الْخَلْقَ فَمَنْ خَلَقَ اللّٰهَ؟ فَمَنْ وَجَدَ مِنْ ذٰلِكَ شَيْئًا فَلْيَقُلْ آمَنْتُ بِاللّٰهِ وَرُسُلِهِ (متفق عليه)

د حضرت ابوهريرة ﷛ څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل: هميشه به خلك پوښتني كوي تر دې چي هغوئ ته دا وويل سي چي دا ټول مخلوقات خداى پيدا كړي دي نو خداى چا پيدا كړى دى؟ د چا په زړه كي چي دا ډول وسوسې پيدا سي نو هغه دي سمدستي دا ووايي چي ما په خداى او دهغه په رسولانو ايمان راوړى دى. بخاري او مسلم

**تشريح**: د شيطاني د وسوسې اچولو او ګمراه كونكو خيالونو د حملو څخه د ژغورني لپاره يوه طريقه دا هم ښودل سوې ده چي پر داسي موقع باندي (آمنت بالله ورسوله) يعني ما پر الله تعالى او د هغه پر رسول ايمان راوړ، ويل پكار دي، ددغه كلمې د ورد په ذريعه چي ژبه دا اقرار او اعتراف كوي چي زه د الله ﷻ پر ذات او د هغه پر رېښتوني رسول ايمان لرم چي هغه موږ خبر كړي يو چي د هغه ذات واجب الوجود دى هغه هميشه دى او هميشه به وي نو د خرابو خيالونو څخه به خلاصون او سلامتيا تر لاسه سي چي د هغه په سبب به شيطان په خپل مقصد كي كامياب نسي.

## د هر انسان سره يو شيطان او يوه ملائكه ټاكل سوې ده

﴿۶۰﴾: وَعَنْ اِبْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا مِنْكُمْ مِنْ أَحَدٍ إِلاَّ وَقَدْ وُكِّلَ بِهِ قَرِيْنُهُ مِنَ الْجِنِّ وَقَرِيْنُهُ مِنَ الْمَلاَئِكَةِ . قَالُوْا

د حضرت ابن مسعود ﷛ څخه روايت دى چي رسول الله وفرمايل: په تاسو كي هيڅوك داسي نسته چي د هغه ملګرى پيريان او ملائكه نه وي

وَإِيَّاكَ يَا رَسُوْلَ اللهِ ؟ قَالَ وَإِيَّايَ وَلٰكِنَّ اللهَ أَعَانَنِيْ عَلَيْهِ فَأَسْلَمَ فَلاَ يَأْمُرُنِيْ إِلاَّ بِخَيْرٍ . رواه مسلم .

تاکل سوي ، صحابه کرامو د دې په اورېدو سره پوښتنه وکړه اې دالله رسوله ! ایا ستا لپاره هم ؟ رسول الله ﷺ وفرمایل : هو ، مګر الله ﷻ (په خپل مرسته سره) پر هغو باندې ما ته غلبه زاکړې ده هغه زما تابع سوي دي او هغه ما نه امر کوي مګر په خير سره . مسلم .

**تشریح** : ددغه حدیث شریف مطلب دادی چي د هر انسان سره مؤکل (سپارونکی، ساتونکی، روح او یا پیری چي عابدانو په واک کي کړی وي)، د هغو څخه یو خو ملائکه وي چي د نیکی او خیر په لور لارښوونه کوي او انسان ته ښه خبري او نیک کارونه ښیي او د هغه په زړه کي د خیر او ښېګڼي شیان اچوي او هغه ته ملهم وایي، دوهم جن (شیطان) وي د هغه کار داوي چي انسان د بدی پر لار روانوي د ګناه او معصیت خبري ورته ښیي او په زړه کي خراب خیالونه او غلطي وسوسي پیدا کوي او د هغه نوم وسواس دی .

## شیطان د انسان په رګو کي ځغلي راځغلي

﴿۶۱﴾ : وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ الشَّيْطَانَ يَجْرِيْ مِنَ الإِنْسَانِ مَجْرَى الدَّمِ .( متفق عليه )

د حضرت انس ؓ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : شیطان د انسان په رګونو کي داسي ګرځي لکه وینه چي ګرځي. بخاري اومسلم.

**تشریح** : مطلب دا چي شیطان د انسان د خطاء ایستلو پوره قدرت لري ، یوازي دا نه چي هغه په مختلف ظاهري صورتونو کي د نیکو انسانانو او نیکو بندګانو د نیکی پر لار په تلو کي خنډ پیدا کوي بلکه د انسان په داخلي کائناتو کي په ننوتلو سره د هغه د ذهن او فکر او د هغه د زړه او دماغ د خطاء ایستلو هم هڅه کوي .

## د زیږېدني پر وخت د ماشوم ژړا د شیطاني عمل نتیجه وي

﴿۶۲﴾ : وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَا مِنْ بَنِيْ آدَمَ مَوْلُوْدٌ إِلاَّ يَمَسُّهُ الشَّيْطَانُ حِيْنَ يُوْلَدُ فَيَسْتَهِلُّ صَارِخًا مِنْ مَسِّ الشَّيْطَانِ غَيْرَ مَرْيَمَ وَابْنِهَا .( متفق عليه )

د حضرت ابوهریرة ؓ څخه روایت دی چي رسول الله وفرمایل : هیڅ یو انسان داسي نه دی پیداسوی چي د پیداکېدو په وخت شیطام مسه کړی نه وي کوم وخت چي یې شیطان مسه کوي نو هغه د (تکلیف څخه) چغه کړي، مګر بي بي مریم او د هغې زوی حضرت عیسی علیه السلام شیطان نه دي مسه کړي .بخاري او مسلم .

**تشریح** : د شیطان د مسه کولو مطلب دادی چي هغه د زیږېدني پر وخت د ماشوم په تشي کي

خپلي ګوتي داسي وهي چي سړی تکلیف محسوسوي او په چغو چغو ژړا پیل کړي، هر ماشوم ددغه تکلیف ښکار کیږي، یوازي بي بي مریم او د هغه زوی حضرت عیسی علیه السلام ددغه شیطاني عمل څخه خوندي سوي دي، د دوئ دواړو محفوظ کېدل په ظاهره د هغه دعاء د قبولیت نتیجه وه چي د بي بي مریمي مور کړې وه او قرآن کریم داسي نقل کړې ده:

وَإِنِّي أُعِيذُهَا بِكَ وَذُرِّيَّتَهَا مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيمِ ٣٦. سورة آل عمران

ژباړه: (اې الله!) زه دا مریم او ددې اولاد د شیطان رټل سوي څخه ستا په پناه کي درکوم.

په حدیث شریف کي د بي بي مریم او حضرت عیسی علیه السلام یادونه په خاصه توګه ځکه سوې ده چي د هغوئ د مور څخه صراحتا دعاء منقوله ده ځکه رسول الله ﷺ هم صراحتا د هغه قبلیدل ظاهر کړي دي نو دا نه لازمیږئ چي نور انبیاء هم د زیږیدني پر وخت شیطان مس کړي وي او هغوئ ته یې تکلیف رسولی وي.

دلته دا مشکل هم نسي کیدلای که شیطان ته دومره قدرت وي نو هغه به ټول هلاک کړي ځکه چي شیطان ته یوازي دومره قدرت ورکړل سوی دی هغه ددې څخه زیات نور هیڅ نسي کولای او نه د هغه په اختیار کي دي چي هغه چا ته تر دې زیات تکلیف رسولو سره هلاک کړي، دوهمه خبره دا چي د شیطان په مقابله کي ملائکه هم وي چي ساتنه کوي ځکه نو دا څرنګه ممکن ده چي هغه ته څومره قدرت ورکړل سوی وي نو د هغه څخه تجاوز او زیاتوب وکړي او په خپل یو مهلک اراده کي کامیاب سي.

| | |
|---|---|
| ﴿٦٣﴾: وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: صِيَاحُ الْمَوْلُوْدِ حِيْنَ تَقَعُ نَزْغَةٌ مِنَ الشَّيْطَانِ . (متفق علیه) | د حضرت ابوهریرة رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: د پیداکېدو پر وخت د کوچني چغي او ژړا له دې کبله وي چي شیطان هغه په |

ګوته په تشي کي وهي. بخاري او مسلم.

## د خاوند او ښځي په منځ کي د شیطان خوښ کار

| | |
|---|---|
| ﴿٦٤﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ إِبْلِيْسَ يَضَعُ عَرْشَهُ عَلَى الْمَاءِ ثُمَّ يَبْعَثُ سَرَايَاهُ يَفْتِنُوْنَ النَّاس فَأَدْنَاهُمْ مِنْهُ مَنْزِلَةً أَعْظَمُهُمْ فِتْنَةً يَجِيْءُ أَحَدُهُمْ فَيَقُوْلُ فَعَلْتُ كَذَا | د حضرت جابر رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: شیطان خپل تخت د اوبو سربیره ایښی دی چي په هغه کي کښیني او خپلو څواکونو ته حکم ورکوي چي ولاړ سئ خلك ګمراه کړئ او په فتنه کي یې واچوئ، د شیطان د دې ډلي ادنا |

وَكَذَا فَيَقُوْلُ مَا صَنَعْتَ شَيْئًا قَالَ ثُمَّ يَجِيْءُ أَحَدُهُمْ فَيَقُوْلُ مَا تَرَكْتُهُ حَتّٰى فَرَّقْتُ بَيْنَهُ وَبَيْنَ امْرَأَتِهِ قَالَ فَيُدْنِيْهِ مِنْهُ وَيَقُوْلُ نَعَمْ أَنْتَ قَالَ الْأَعْمَشْ أُرَاهُ قَالَ فَيَلْتَزِمُهُ . رواه مسلم .

شیطان هغه دی چې د لوړې درجې فتنه خپره کړي، په دوئ کې یو شیطان خپل سردار ته راسي او ورته وواییي ما دا دا (د فتنې کارونه) وکړل، سردار یې ورته واییي تا څو هیڅ ونه کړل ، د دې وروسته نبي کریم ﷺ وفرمایل : بیا یو بل شیطان راسي او وايي ما انسان تر هغه وخته نه پرېښودی تر څو چې د هغه او د هغه د ښځې په منځ کې مي بېلتون را نه وستی ، نبي کریم ﷺ وفرمایل : مشر شیطان چې دا واوري نو د خپل ځان سره نژدې ځای ورکړي او ورته وواییي تا ډېر ښه کار وکړی . اعمش رضی الله عنه وايي زما دا خیال دی چې جابر دا الفاظ ویلي دي چې د دې په اورېدو سره شیطان هغه سره په غاړه سي . مسلم .

**تشریح** : د بیلوالي راوستلو څخه مراد جنګ او جګړې په ذریعه د ژبې څخه په ناپوهی کي داسي الفاظ ادا کول چې په هغه سره د هغه پر ښځه طلاق بائن لویږي ، په طلاق بائن کې ښځه پر سړي حرامیږي، د دې څخه د شیطان مقصد داوي چې سړی د خپل جهالت په سبب د هغه ښځه په خپل نکاح کې داخله ګڼلو سره د هغې سره کوروالي کوي چې دا کار په اصل کې حرام دی او همداسي د خلکو د حرام کار په نتیجه کې ناجائز اولاد پیدا کیږي چې په هغه سره د مځکي پر مخ د ناجائز اولاد شمیر زیاتیږي او هغه ناجائز پیدا سوي خلک په دنیا کې فسق او فجور او ګناه او معصیت زیات خپروي .

## په جزیره عرب کې د توحید د ټینګ نظام په وجه د شیطان ناامیدي

﴿۶۵﴾ : وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ إِنَّ الشَّيْطَانَ قَدْ أَيِسَ أَنْ يَّعْبُدَهُ الْمُصَلُّوْنَ فِيْ جَزِيْرَةِ الْعَرَبِ وَلٰكِنْ فِي التَّحْرِيْشِ بَيْنَهُمْ . رواه مسلم .

د حضرت جابر رضی الله عنه څخه روایت دی چې ما د نبي کریم ﷺ څخه واورېدل چې فرمایل یې : شیطان د دې امر څخه نا امیده سو چې د جزیره عرب عبادت کونکي (مؤمن) د هغه عبادت وکړي (یعني په بت پرستي کي اخته سي) مګر د هغوئ په منځ کې د جنګ جګړې پیدا کولو څخه نا امیده نه سو (دا کار هغه جاري ساتي) . مسلم .

**تشریح** : مطلب دا چې په جزیره عرب کې د ایمان او اسلام بنیاد دومره ټینګ سوی دی او د توحید کلمه د دغه ځای د خلکو په زړه او دماغ کې داسي ټینګه سوې ده چې اوس په دغه ځای

کي به د بت پرستی لعنت هیڅکله هم ونه لیدل سي ، په دې اړه شیطان هم خپله ماته تسلیم کړې ده او هغه ددې خبري څخه بالکل نا امیده سوی دی چي د دغه ځای مؤمن مسلمان د هغه په واک کي راتلو سره په بت پرستی او نورو څرګندو مشرکانه حرکاتو کي اخته کیدای سي ، مګر په هر صورت په واک کي کول او خطاء کول د شیطان فطرت دی ځکه هغه د جزیرة عرب په خلکو کي خپل کاروائي نه ده ختم کړې او په دې خبره کي امیدواره دی چي د هغوئ په منځ کي ډول ډول جذباتو په راپارولو سره هغوئ په خپل منځ کي په جګړه اخته کړي هغوئ د بیلوالي ، افتراق او انتشار په فتنو کي اخته کیدلای سي .

ددغه حدیث شریف په رڼا کي دا خبره د یادوني وړ ده چي د رسالت د زمانې څخه تر ننه پوري هیڅکله هم په جزیرهٔ عرب کي بت پرستي ونه سوه د څرګندو مشرکانه اعمالو هیڅکله لیدنه ونه سول ، دا بیله خبره ده چي شیطان د کمزوري عقیدو خلکو د ایمان او اسلام څخه په اړولو کي به کامیاب سوی وي مګر په هغوئ کي هیچا هم بت پرستي نه ده کړې .

## الفصل الثاني

### د شیطاني وسوسو څخه په خوندي پاته کېدو باندي د الله شکر ادا کړئ

﴿۶۶﴾ : عَنْ اِبْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَاءَهُ رَجُلٌ فَقَالَ إِنِّيْ أُحَدِّثُ نَفْسِيْ بِالشَّيْءِ لأَنْ أَكُوْنَ حُمَمَةً أَحَبَّ إِلَيَّ مِنْ أَنْ أَتَكَلَّمَ بِهِ . قَالَ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ رَدَّ أَمْرَهُ إِلَى الْوَسْوَسَةِ . رواه أبو داود

حضرت ابن عباس ﷺ فرمايي چي يو سړی د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سو او عرض یې وکړ : زما په زړه کي داسي خبري (وسوسې) پیداکیږي چي د هغو د ادا کولو پر ځای زه دا غوره ګڼم چي زه (وسوځم او) سکاره سم، نو رسول الله ﷺ وفرمایل : هغه الله لره شکر دی چي هغه د ده خبره د وسوسې طرف ته منتقل کړه .ابو داؤد.

**تشریح** : شیطان به د هغه صحابي ﷺ په زړه کي یو خراب خیال اچولی وي چي په هغه سره د هغه د ایمان کیفیت بې ارامه سوی وي او هغه په تلوار سره د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سو، رسول الله ﷺ داډ ورکړ چي پر دې خبره د پریشان کېدو ضرورت نسته دا خو د الله تعالی لوی فضل دی چي ستا ایماني احساس او شعور په پوره توګه سره بیدا دی او دا خراب خیال خپله ستا زړه او دماغ قبول نه کړ او هغه د وسوسې د حدودو څخه وړاندي نه سو ، پر داسي وسوسه باندي نیونه نسته او نه د یو تاوان بیري سته دا خو الله تعالی معاف کړې ده ، مګر که چیري هغه

د وسوسې خراب خیال د حد څخه په زیاتېدو سره ستا په ژبه یا په عمل سره څرګند سوی وای نو بیا به ستا لپاره د خطرې خبره وای .

**په خپل ځان کي د نیکۍ پر تحریک د الله ﷻ شکر ادا کړه او د شیطاني وسوسو څخه د الله ﷻ پناه غواړه**

﴿۶۷﴾: وَعَنِ بْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ لِلشَّيْطَانِ لَمَّةً بِابْنِ آدَمَ وَلِلْمَلَكِ لَمَّةً فَأَمَّا لَمَّةُ الشَّيْطَانِ فَإِيْعَادٌ بِالشَّرِّ وَتَكْذِيْبٌ بِالْحَقِّ وَأَمَّا لَمَّةُ الْمَلَكِ فَإِيْعَادٌ بِالْخَيْرِ وَتَصْدِيْقٌ بِالْحَقِّ فَمَنْ وَجَدَ ذٰلِكَ فَلْيَحْمِدَ اللهَ وَمَنْ وَجَدَ الأُخْرٰى فَلْيَتَعَوَّذْ بِاللهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْمِ ثُمَّ قَرَأَ (اَلشَّيْطَانُ يَعِدُكُمُ الْفَقْرَ وَيَأْمُرُكُمْ بِالْفَحْشَاءِ .الآية) أخرجه الترمذي وقال هذا حديث حسن غريب .

د حضرت ابن مسعود ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : شیطان هم پر انسان باندي تصرف کوي او ملائکي هم. د شیطان تصرف خو دادی چي هغه د انسان سره د بدۍ وعده کوي او د حق په درواغو کولو یې آماده کوي ، او د ملائکو تصرف دادی چي هغه د نیکۍ وعده ورکوي أو د حق تصدیق پر کوي نو د چا په زړه کي چي د نیکۍ خیال پیدا سي هغه د الله د لوري ګڼل پکا ردي، او پر هغه د الله شکر ادا کول پکار دي او د چا په زړه کي چي د بدۍ وسوسه پیداسي نو هغه د رټل سوي شیطان د لوري ګڼل پکار دي او د خدای پناه غوښتل پکار دي ، د دې وروسته رسول الله ﷺ دا آیت تلاوت کړ : شیطان تاسو ته د مفلسۍ او فقر وعده او خرابو خبرو حکم درکوي . ترمذي ویلي دي دا حدیث حسن غریب دی .

**تشریح** : د ملائکي د اماده کولو مطلب خو دادی چي هغه د نیکۍ ازرښت او نیکي تر لاسه کولو باندي د اجر او انعام څرګندونه کوي او د انسان په احساس او شعور کي دا خبره اچوي چي د الله تعالی ریښتونی دین د انسانیت د بقاء او پرمختګ ضامن دی ، د الله رسول ﷺ چي کوم شریعت راوړی دی په هغه کي د انسان دنیاوي او أخروي خلاصون پټ دی که خپل خلاصون غواړي نو د بدۍ د لاري څخه ځان وساتئ او د نیکۍ لار اختیار کړئ .

د شیطان پارول دادي چي هغه د حق لاره تاریک (تیاره) کولو سره ښیي، د وسوسو اچولو په ذریعه د دین د بنیادي خبرو مثلا توحید، نبوت، آخرت او نورو عقائدو کي تردد او شک پیدا کوي ، نیکي د بدۍ په صورت کي او بدۍ په ښکلي شکل او صورت کي وړاندي کوي، په انساني دماغ کي د دې خبرو کښېنولو هڅه کوي که دا شیان اختیار کړي کوم چي په نیکۍ سره تعبیر کیږي (یعني نېک کارونه وکړي) نو پریشاني او تکلیفونه به زغمي ، مثلا د توکل او

قناعت ژوند اختيار كړي او خپل وختونه د دنيا په جوړلو كي د مصرف كولو پر ځاى د الله تعالى په عبادت او د دين په خدمت كي ولګوي (د شيطانو په خبرو) نو نه به مال او دولت تر لاسه كړي او نه به د دنيا يو راحت او آرام تر لاسه كړي بلكه په فقر او اړتيا كي به اخته سي

**كه وسوسه پيدا سي نو شيطان شړئ او د الله تعالى پناه غواړئ**

﴿۶۸﴾ : عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ اَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ: لَا يَزَالُ النَّاسُ يَتَسَاءَلُوْنَ حَتّٰى يُقَالُ هٰذَا خَلَقَ اللهُ الْخَلْقَ فَمَنْ خَلَقَ اللهَ ؟ فَإِذَا قَالُوْا ذٰلِكَ فَقُوْلُوْا اللهُ أَحَدٌ اَللهُ الصَّمَدُ لَمْ يَلِدْ وَلَمْ يُوْلَدْ وَلَمْ يَكُنْ لَهُ كُفُوًا أَحَدٌ ثُمَّ لِيَتْفُلْ عَنْ يَسَارِهِ ثَلَاثًا وَلْيَسْتَعِذْ بِاللهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْمِ . رواه أبو داود . و سنذكر حديث عمرو بن الاحوص في باب خطبة يوم النحر انشاء الله تعالى .

د حضرت ابوهريرة ﷺ څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل : خلك به هميشه د يو بل څخه پوښتني كوي تر دې چي يوه ورځ به داسي وويل سي چي دا ټول مخلوق الله پيدا كړى دى نو الله چا پيدا كړى دى ، هر كله چي خلك داسي ووايي نو بيا تاسي داسي وايئ چي الله يوازي دى الله بې نيازه دى نه چا پيدا كړى دى او نه ځوك ځيني پيدا دى او نه څوك د هغه سيال سته، بيا په داسي ويلو سره چپه اړخ ته درې واره تو كړي او د رټل سوي شيطان د چم څخه د الله پناه وغواړي، (ابوداؤد) د عمرو بن احوص روايت به موږ د يوم النحر د خطبې په باب كي ذكر كړو . انشاء الله .

## الفصل الثالث

**د شيطاني وسوسو څخه بيدار اوسئ**

﴿۶۹﴾ : عَنْ أَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَنْ يَّبْرَحَ النَّاسُ يَتَسَاءَلُوْنَ حَتّٰى يَقُوْلُوْا هٰذَا اللهُ خَلَقَ كُلَّ شَيْءٍ فَمَنْ خَلَقَ اللهَ عَزَّوَجَلَّ . رواه البخاري . وَلِمُسْلِمٍ قَالَ قَالَ اللهُ عَزَّ وَجَلَّ إِنَّ أُمَّتَكَ لَا يَزَالُوْنَ يَقُوْلُوْنَ مَا كَذَا ؟ مَا كَذَا ؟ حَتّٰى يَقُوْلُوْا هٰذَا اللهُ خَلَقَ الْخَلْقَ فَمَنْ خَلَقَ اللهَ عَزَّ وَجَلَّ .

د حضرت انس ﷺ څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل: خلك به هميشه د يو بل څخه (دول دول) پوښتني كوي تر دې چي خلك به وايي الله هر شى پيدا كړى دى نو بزرګي او عزت والا خداى چا پيدا كړى دى؟ دا د بخاري روايت دى او په مسلم شريف كي دا روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل : الله پاك ارشاد فرمايي ستا امت به هميشه داسي وايي چي دا څه دئ ؟ دا څه دى؟ تر دې چي خلك به داسي ووايي چي الله دا ټول مخلوقات پيدا كړي دي نو الله چا پيدا كړى دى ؟

## د لمانځه په دروان کې د شیطان خلل

﴿۷۰﴾: وَعَنْ عُثْمَانَ بْنِ أَبِي الْعَاصِ قَالَ : قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللهِ إِنَّ الشَّيْطَانَ قَدْ حَالَ بَيْنِي وَبَيْنَ صَلاَتِي وَبَيْنَ قِرَاءَتِي يُلْبِسُهَا عَلَيَّ فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَاكَ شَيْطَانٌ يُقَالُ لَهُ خِنْزَبٌ فَإِذَا أَحْسَسْتَهُ فَتَعَوَّذْ بِاللهِ مِنْهُ وَاتْفُلْ عَلٰى يَسَارِكَ ثَلاَثًا فَفَعَلْتُ ذٰلِكَ فَأَذْهَبَهُ اللهُ عَنِّي .مسلم

حضرت عثمان بن ابوالعاص[1] ﷺ وایي ما (یو خل) رسول الله ﷺ ته عرض وکړ اې دالله رسوله ! شیطان زما او زما په لمانځه کي حائل کیږي او کوم وخت چي زه قرائت وایم نو ما په شك کي اچوي ، د دې په اورېدو سره رسول الله ﷺ وفرمایل : دا هغه شیطان دی چي خنزب ورته ویل کیږي هر کله چي ته د دې ډول وسوسو څخه یو شی حس کړې نو دالله څخه پناه غواړه او درې واره چپه لوري ته تُو کړه ، عثمان ﷺ وایي ما همدغسي وکړل او الله پاك دا ډول وسوسې راڅخه لیري کړې .مسلم.

## دوسوسې پرواه نه کولو سره خپل لمونځ کوئ

﴿۷۱﴾ : وَعَنِ الْقَاسِمِ بْنِ مُحَمَّدٍ أَنَّ رَجُلاً سَأَلَهُ فَقَالَ إِنِّي أَهِمُ فِي صَلاَتِي فَيَكْبُرُ ذٰلِكَ عَلَيَّ فَقَالَ لَهُ امْضِ فِي صَلاَتِكَ فَإِنَّهُ لَنْ يَذْهَبُ عَنْكَ حَتّٰى تَنْصَرِفُ وَأَنْتَ تَقُوْلُ مَا أَتْمَمْتُ صَلاَتِي . رواه مالك

حضرت قاسم بن محمد[2] ﷺ وایي یو سړی د هغه څخه پوښتنه وکړه چي ما ته په خپل لمانځه کي وهم پیداکیږي او دا خبره پر ما ډیره سخته سي ، ما هغه ته وویل : ته خپل لمونځ برابر کوه او دا وهم ستا څخه هیڅکله نه سي لیري کیدای تر څو پوري ته په دې ویلو سره د لمونځ څخه فارغ نه سي چي ما خپل لمونځ پوره نه کړو . مالك .

---

[1] د عثمان ابن ابي العاص ﷺ کنیت ابوعبدالله دی، د ثقیف قبیلې سره تعلق لري ځکه ثقفي ورته ویل کیږي ، د خپل قبیله ثقیف د وفد سره د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سو او د رسول الله ﷺ په لاس مبارک یې د اسلام په قبلولو سره په هدایت مشرف سو ، د دې وروسته رسول الله ﷺ هغه د خپل قبیلې امیر وټاکی ، د نبي کریم ﷺ د وفات څخه وروسته چي کله اهل طایف د ارتداد په خوا مائل کېدل پیل سول نو د عثمان بن ابي العاص ﷺ ذات وو چي هغوئ یې د ارتداد څخه وژغورل ، نوموړی په بصره کي په (۵۱هـ) کال کي وفات سو .

۲ د حضرت ابوبکر صدیق ﷺ لمسی او د محمد بن ابوبکر ﷺ زوی دی، د مدینې منورې د اوو مشهورو فقهاؤ څخه دی ، په اکابر او جلیل القدر تابعینو کي شمیرل کیږي ، د یحیی بن سعید رحمة الله علیه قول دی چي موږ د قاسم بن محمد رحمة الله علیه څخه زیات افضل هیڅوک نه دی لیدلی ، نوموړی د اویا (۷۰) کالو په عمر په (۱۰۱هـ) کال کي وفات سوی دی .

**تشریح** : لمونځ تر ټولو اهم عبادت دی چي په هغه کي د الله تعالی د نیکو بندګانو د خطاء کولو او پارولو شیطان خپل هڅه او کوشش تر ټولو زیات صرف کوي ، دا د شیطان تخریب کاري وي چي عام خلک د لمانځه په جریان کي د ذهني توجه څخه محروم ساتي ، د هغه نتیجه دا وي چي دلمانځه نیت کولو سره په زړه او دماغ کي د دنیا د خیالاتو جمع کېدل پیل سي هغه خبري چي هیڅکله نه یادېږي دلمانځه په جریان کي په ذهن کي راتلل پیل سي ، شیطان ډول ډول وسوسې او خیالونه پیدا کوي کله ورته دا خیال راولي چي لمونځ پوره سوی نه دی بلکه یو یا دوه رکعته پاته سوي دي ، کله ورته دا وهم واچوي چي لمونځ صحیح سوی نه دی فلانی رکن پاته سوی دی ، په قرآئت کي فلانی آیت پاته سوی دی ، ددغه وسوسو اچولو څخه د شیطان مقصد داوي چي لمونځ کونکی د خپل لمانځه لړۍ پرې کړي او نیت مات کړي ، د شیطان ددغه تخریبی څخه د خوندي کېدو طریقه دا ښودل سوې ده چي هر کله شیطاني اثر سره داسي وهمونه او شکونه پیدا سي نو د خپل لمانځه لړۍ مه پرې کوئ (یعني لمونځ جاري وساتئ) نیت مه ماتوئ بلکه لمونځ پوره کړئ او شیطان ته ووایاست چي هو زه غلطي کوم زما لمونځ نه صحیح کیږي مګر زه به لمونځ کوم او ستا په وینا به عمل نه کوم ، علماؤ لیکلي دي چي دا طریقه د شیطاني اثراتو څخه د خوندي کېدو ډېره غوره طریقه ده ځکه چي په دې ډول سره شیطان د لمونځ کونکي څخه نا امیده سي او هر کله چي هغه په دې پوه سي چي دی زما په قبضه کي راتلونکی نه دی نو د هغه څخه لیري سي .

مګر دا خبره هم په ذهن کي ساتل پکار ده چي دا حکم هغه وخت دی هر کله چي لمونځ کونکی ته یقین وي چي زه سم لمونځ کوم ، دلمانځه ارکان افعال او په قرائت کي څه کوتاهي یا غلطي نه واقع کیږي ، او که واقعي د هغه په لمانځه کي څه کوتاهي واقع کیږي یا د ارکانو په ادا کولو کي غلطي کیږي او د هغه احساس کیږي نو د هغه غلطۍ او کوتاهۍ لیري کولو او د لمانځه صحت او درست والي په لور متوجه کېدل ضروري دي، په اصل کي ددې حکم (چي شیطاني خلل څخه یوازي په نظر کولو سره خپل لمونځ پوره کړي) بنیادي مقصد په دې طرف متوجه کول دي چي شیطان ته بیدار اوسي هغه ته د اثر انداز کېدو موقع مه ورکوئ ، خپل زړه او دماغ دومره پاک وساتئ چي شیطاني وسوسو او وهمو ته لار خلاصه نسي ، لمونځ په دومره ذهني توجه او د زړه په حضور سره کوئ چي شیطان د راتلو بالکل اراده هم ونه کړي ، ددې حکم دا مطلب نه دی چي غیر صحیح عمل مه صحیح کوئ او هوساینه څرګنده کړئ .

# بَابُ الْاِیْمَانِ بِالْقَــدْرِ

## (پر تقدیر د ایمان راوړلو بیان)

پر تقدیر باندي ایمان راوړل فرض او لازم دي ، یعني د ایمان د وجود لپاره دا عقیده لرل ضروري ده چي د بندګانو ټول عملونه که نیک وي او که بد د هغه د پیدا کېدو څخه مخکي په لوح محفوظ کي لیکل سوي دي ، بنده چي کوم عمل کوي هغه د الله تعالی د علم او اندازې سره سم کیږي مګر الله تعالی انسان د عقل او پوهي په دولت سره نازولو سره د هغه په وړاندي د نیکۍ او بدۍ دواړي لاري څرګنده کړي دي او پر هغو یې د تللو اختیار ورکړی دی او ورته ښودلي یې دي که د نیکۍ لار اختیاروئ نو د الله تعالی د رضا باعث به وي چي پر هغه به جزا او انعام سره ونازول سي او که د بدۍ لار اختیاروئ نو دا به د الله تعالی د غضب او د هغه د ناراضګي باعث وي چي د هغه په وجه به د سزا او عذاب وړ کیږي .

اوس ددغه وضاحت او هدایت څخه وروسته چي کوم سړی د نیکۍ او ښېګڼي لار اختیاروي نو هغه به د الله تعالی په فضل او کرم سره ونازول سي او پر هغه به د الله تعالی د لوري د فلاح او سعادت دروازې خلاصي سي او که یو څوک د عقل ړوند په خپل کسب او اختیار سره د بدۍ لار اختیاروي نو هغه به د عدل سره سم د سزا وړ وي او هغه به د عذاب او تباهۍ په غار او دوږخ کي واچول سي .

دا خبره په ذهن کي راوستل پکار ده چي د تقدیر مسئله د عقل او فکر د رسیدو څخه وتلې ده ځکه چي دا د الله تعالی یو داسي راز دی چي د هغه په انساني عقل کي راتلل خو لیري خبره ده ، دا نه خو یو ملائکي باندي ظاهر کړل سوی دی او نه ددغه راز یو پیغمبر او رسول ته معلوم دی ځکه په دې مسئله کي زیات غور او فکر کول او په دې میدان کي د عقل آس ونه ځغلول جائز نه دي بلکه د تحقیق او پلټنو د ټولو لارو څخه آخوا کېدو سره یوازې دا عقیده درلودل د خلاصون او سعادت ضامن دی چي الله تعالی دا مخلوق پیدا کولو سره دوئ یې په دوو ډلو کي ویشلي دي : یوه هغه ډله ده چي د نیکو اعمالو او نیکو کارونو په وجه به د الله تعالی د جنت او د هغه د نعمتونو وړ وي چي محضي د هغه په فضل او کرم به وي، او دوهمه ډله هغه ده چي د خرابو عملونو کولو په وجه په دوږخ کي به واچول سي چي عین عدل او انصاف به وي .

نقل سوي دي چي يو سړي د حضرت علي ﷺ څخه د قضاو قدر په اړه پوښتنه وکړه، حضرت علي ﷺ ورته وفرمایل: دا یوه لویه لار ده پر دې مه ځه، هغه سړي بیا دا پوښتنه وکړه نو هغه ورته وفرمایل: دا یو ژور دریاب دی په دې کي مه ننوزه، هغه سړي ونه منل او بیا یې پوښتنه وکړه نو حضرت علي ﷺ ورته وفرمایل: دا د الله تعالی یو راز دی چي ستا څخه پټ دی ځکه نو د دې په تحقیق او پلټنه کي مه لویږه.

نو اُخروي سعادت په دې کي دی چي د دې مسئلې په اړه الله تعالی او د هغه رسول څه ښودلي دي او د کومو عقیدو منلو په اړه چي یې ویلي دي پر هغو عمل وکړي او د خپل عقل غښی مه چلوئ، په حقیقت کي د گمراهی لار اختیارول د تباهی او بربادی پر لار تلل دي.

## الفصل الاول

﴿۷۲﴾: عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَتَبَ اللهُ مَقَادِيْرَ الْخَلَائِقِ قَبْلَ أَنْ يَّخْلُقَ السَّمٰوَاتِ وَالْأَرْضَ بِخَمْسِيْنَ أَلْفَ سَنَةٍ قَالَ وَكَانَ عَرْشُهُ عَلَى الْمَاءِ. رواه مسلم.

د عبدالله بن عمرو ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: د آسمانو او مځکو پیدا کولو څخه پنځوس زره کاله تر مخه الله تعالی د مخلوقاتو تقدیرونه لیکلي دي کوم وخت چي د هغه تخت (عرش) پر اوبو وو. مسلم.

**تشریح**: څرگنده ده چي د الله تعالی ذات د اجسام ظاهري او مادیات د تفاوت څخه پاک دی ځکه داسي خو نسي ویل کیدلای چي الله تعالی په خپل لاس سره تقدیرونه لیکلي دي بلکه د دې مطلب دادی چي الله تعالی د ټولو مخلوقاتو د پیداکولو څخه وړاندي د هغوئ تقدیرونه قلم ته د جاري کېدو په حکم ورکولو سره د هغه په ذریعه په لوح محفوظ کي ثبت کړي وه، یا دا چي ملائکو ته په حکم ورکولو سره په هغوئ یې تقدیرونه لیکلي وه.

دلته د پنځوس زره کالو وخت د تحدید لپاره نه دی بلکه د دې څخه د وخت زیاتوب مراد دی چي د مخلوق د پیدائش څخه ډېر مخکي د دې ټولو تقدیرونه په لوح محفوظ کي لیکل سوي دي.

نقل سوي دي چي مځکه او آسمان او د ټول مخلوق د پیدا کېدو څخه مخکي ټولي اوبه وې، او ویل کیږي چي د اوبو استقرار پر هواء وو او هواء د الله تعالی په قدرت قائمه وه ځکه وفرمایل سول چي په دې عالم کي د ازل څخه تر ابد پوري کیدونکي ټول واقعات او اعمال هغه

وخت د الله تعالی په علم کي وه ، هر کله چي دا مځکه او آسمان هم نه وه پيدا سوي او د هغه عرش پر اوبو وو چي د هغه په منځ کي هيڅ دوهم شی حائل نه وو .

《۷۳》 : وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كُلُّ شَيْءٍ بِقَدَرٍ حَتّٰى الْعَجْزُ وَالْكَيْسُ . رواه مسلم .

د حضرت ابن عمر ﷛ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : هر شی پر تقدير موقوف دی تر دې چي ناداني او دانايي . مسلم .

《۷۴》 : وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: احْتَجَّ آدَمُ وَمُوْسٰى عَلَيْهِمَا السَّلَامُ عِنْدَ رَبِّهِمَا فَحَجَّ آدَمُ مُوْسٰى قَالَ مُوْسٰى أَنْتَ آدَمُ الَّذِيْ خَلَقَكَ اللهُ بِيَدِهِ وَنَفَخَ فِيْكَ مِنْ رُوْحِهِ وَأَسْجَدَ لَكَ مَلَائِكَتَهُ وَأَسْكَنَكَ فِيْ جَنَّتِهِ ثُمَّ أَهْبَطْتَ النَّاسَ بِخَطِيْئَتِكَ إِلَى الْأَرْضِ فَقَالَ آدَمُ أَنْتَ مُوْسٰى الَّذِيْ اصْطَفَاكَ اللهُ بِرِسَالَتِهِ وَبِكَلَامِهِ وَأَعْطَاكَ الْأَلْوَاحَ فِيْهَا تِبْيَانُ كُلِّ شَيْءٍ وَقَرَّبَكَ نَجِيًّا فَبِكَمْ وَجَدْتَ اللهَ كَتَبَ التَّوْرَاةَ قَبْلَ أَنْ أُخْلَقَ؟ قَالَ مُوْسٰى بِأَرْبَعِيْنَ عَامًا قَالَ آدَمُ فَهَلْ وَجَدْتَ فِيْهَا (وَعَصٰى آدَمُ رَبَّهُ فَغَوٰى) قَالَ نَعَم قَالَ أَفَتَلُوْمُنِيْ عَلٰى أَنْ عَمِلْتُ عَمَلاً كَتَبَهُ اللهُ عَلَيَّ أَنْ أَعْمَلَهُ قَبْلَ أَنْ يَخْلُقَنِيْ بِأَرْبَعِيْنَ سَنَةً قَالَ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَحَجَّ آدَمُ مُوْسٰى . رواه مسلم .

د حضرت ابوهريرة ﷛ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : حضرت آدم ﷵ او حضرت موسی ﷵ (په عالم ارواح کي) د خپل رب په وړاندي بحث وسو، او حضرت آدم ﷵ پر حضرت موسی ﷵ غلبه تر لاسه کړل ، موسی ﷵ وفرمايل: ته هغه آدم يې چي خدای ﷻ ته په خپل لاس سره جوړ کړی يې خپل روح يې په تا کي پوه کړې وه او په ملائکو يې تاته سجده کړې وه او په جنت کي يې ته ساتلی وې بيا تا د گناهو په سبب خلك مځکي ته راکښته کړل، آدم ﷵ ورته وويل : او ته هغه موسې يې چي الله په خپل رسالت سره مشرف کړی وې په خپل کلام سره يې ته نازولی وې او تا ته يې هغه صحيفې درکړې وې چي په هغو کي د هر شي بيان وو، او بيا الله ﷻ تا ته په غوږ کي د خبرو کولو عزت درکړی وو نو تا تورات زما د پيدا کېدو څخه څومره عمر وړاندي ليکلی موندلی وو، موسی ﷵ ورته وويل تورات ستا د زيږيدني څخه څلوېښت کاله وړاندي ليکل سوی وو، نو آدم ﷵ پوښتنه وکړه ايا تا په تورات کي دا الفاظ هم ليدلي وه، (عصی آدم .....) او آدم ﷵ د خپل رب نافرماني وکړه او هغه و غوليدی، موسی ﷵ ورته وويل : هو ،(دا الفاظ په تورات کي موجود وه) آدم ﷵ ورته وويل : نو بيا ته ما ولي په داسي خبرو ملامت کوي کوم چي د هغو په کولو زه د خدای په ليکلو سره مجبور وم او خدای ﷻ زما د پيدا کېدو څخه څلوېښت کاله وړاندي دغه ليکلي وه، نو

رسول الله ﷺ وفرمايل: همدارنگه حضرت آدم عليه السلام پر حضرت موسى عليه السلام غلبه تر لاسه كړل. مسلم.

**تشريح** : حضرت آدم عليه السلام چي د حضرت موسى عليه السلام كوم دليل وړاندي كړ د هغه څخه مطلب دا نه دى چي الله تعالى زما د پيدا كېدو څخه ثلوېښت كاله مخكي هم دا ليكلي وه چي زه به د شيطان د ګمراه كولو په وجه وغولول سم او د الله تعالى د حكم نافرمانى كولو سره شجر ممنوع (منعه درخته) استعمال كړم نو په دې كي زما كسب او اختيار ته هيڅ دخل نسته بلكه دا ګمراهي (بې لاري كېدل) زما په مقدر كي ليكل سوي وه ځكه نو دا زما څخه صادر كېدل لازم او ضروري وه نو زه ملزم نسم ګرځيدلاى.

علامه توريشتي (رح) فرمائي چي ددې مطلب دادى چي الله تعالى دا ګمراهي زما د پيدا كېدو څخه هم مخكي زما لپاره په لوح محفوظ كي مقدر فرمايلې وه د هغه دا مطلب وو چي هغه به ضرور پر خپل وخت واقع كيږي ، كله چي مقدر وخت راورسيدى نو دا څنګه ممكن وه چي د امر مقدر او د الله تعالى د علم خلاف هغه منعه عمل سوى نه واى نو ته پر ما باندي دا الزم خو لګوې او تا ته سبب ظاهري يعني زما كسب او اختيار خو ياد وو مګر اصل شى يعني مقدر ته دي نظر نه وكړ.

د حضرت آدم او موسى عليهما السلام بحث په دغه دنيا كي نه دى سوى چي هلته د اسباب څخه قطع نظر صحيح نه دى بلكه دا مناظره په لوړ عالم كي د هغوئ دواړو روحونو په منځ كي سوې وه ځكه دلته دا خبره په خاصه توګه په ذهن كي راوستل پكار ده كه يو عاصي او ګناه كار د دا ډول دليل بهانه كوي نو هغه په كار نه ورځي ځكه چي د حضرت آدم عليه السلام معامله د هغه جهان وه چيري چي هغوي د اسباب مكلف نه وه او بيا د هغوئ دا خطا د الله تعالى په دربار كي معاف سوې هم وه نو دلته به د كسب او اختيار او ابواب په وجه مؤاخذه وي.

ويل كيږي چي پر حضرت موسى عليه السلام باندي كومي تختي نازل سوي وې هغه د زمرد وې او د هغو شمير دومره زيات وو چي اويا اوښانو باندي به وړل كيدې ، په هغه تختيو كي د هغه د قوم لپاره د الله تعالى د لوري احكام او مسائل ليكلي وه ، په هغه كي چي كوم مضامين مذكور وه هغه قديم دي نو د ثلوېښتو كالو تحديد به د هغه مضامين په باره كي نه وي بلكه داسي به ويل كيږي چي هغه مضامين چي پر هغه تختيو باندي ليكل سوي وه د هغه د ليكلو وخت د آدم عليه السلام د پيدا كېدو څخه ثلوېښت كاله مخكي وو.

﴿۷۵﴾ : وَعَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ حَدَّثَنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ الصَّادِقُ الْمَصْدُوْقُ اَنَّ خَلْقَ أَحَدِكُمْ يُجْمَعُ فِي بَطْنِ أُمِّهِ أَرْبَعِينَ يَوْمًا نُطْفَةً ثُمَّ يَكُونُ عَلَقَةً مِثْلَ ذٰلِكَ ثُمَّ يَكُونُ مُضْغَةً مِثْلَ ذٰلِكَ ثُمَّ يَبْعَثُ اللّٰهُ اِلَيْهِ مَلَكًا بِأَرْبَعِ كَلِمَاتٍ فَيَكْتُبُ عَمَلَهُ وَاَجَلَهُ وَ رِزْقَهُ وَشَقِيٌّ أَوْ سَعِيدٌ ثُمَّ يُنْفَخُ فِيْهِ الرُّوْحُ فَوَالَّذِي لَا إِلٰهَ غَيْرُهُ إِنَّ أَحَدَكُمْ لَيَعْمَلُ بِعَمَلِ أَهْلِ الْجَنَّةِ حَتّٰى مَا يَكُونُ بَيْنَهُ وَبَيْنَهَا إِلَّا ذِرَاعٌ فَيَسْبِقُ عَلَيْهِ الْكِتَابُ فَيَعْمَلُ بِعَمَلِ أَهْلِ النَّارِ فَيَدْخُلُهَا وَإِنَّ أَحَدَكُمْ لَيَعْمَلُ بِعَمَلِ أَهْلِ النَّارِ حَتّٰى مَا يَكُونُ بَيْنَهُ وَبَيْنَهَا إِلَّا ذِرَاعٌ فَيَسْبِقُ عَلَيْهِ الْكِتَابُ فَيَعْمَلُ بِعَمَلِ أَهْلِ الْجَنَّةِ فَيَدْخُلُهَا. متفق عليه

د حضرت ابن مسعود ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ چي رښتونی او رښتون کړل سوی دی موږ ته دا بيان وفرمايه : په تاسو کي د هر يوه د زيږيدني صورت دادی چي څلوېښت ورځي نطفه په نس کي دننه وساتل سي بيا (دا نطفه) د يخی وينو په شکل کي بدله سي تر څلوېښتو ورځو پوري (همدغسي وي) بيا څلوېښت ورځي د غوښي يوه ټوټه وي ، د دې وروسته الله ﷻ هغه د غوښو ټوټې ته يوه ملائکه را وليږي چي د هغه اعمال، د مرگ نېټه، د رزق ذريعه او د هغه نيک بخت او بخت کېدل وليکي، بيا په هغه ټوټه کي روح پوه کړي ، په هغه ذات دي مي قسم وي چي د هغه څخه پرته بل د عبادت وړ نسته په تاسو کي يو څوك د جنتيانو په شان کارونه کـوي تر دې چي د هغه او جنت په مينځ کي يوازي د يوه لاس اندازه فاصله پاته سي چي د هغه د تقدير ليکلي پر هغه غالب سي او هغه د دوږخيانو په شان کارونه پيل کړي او په تحقيق سره په تاسو کي يو سړی د دوږخيانو په شان کارونه کوي تر دې چي د هغه او دوږخ په منځ کي يوازي د يوه لاس اندازه فاصله پاته سي چي د هغه تقدير ليکي پر هغه غالب سي او هغه د جنياتو په شان کارونه پيل کړي او په جنت کي داخل سي . بخاري او مسلم .

**تشريح** : داسي گمان کيږي چي خلک د نيکی لار پرېښودو سره د بدی لار اختياروي مگر د الله تعالی د رحمت په برکت زيات وخت داسي کيږي چي کومو خلکو د بدبختی او بدی لار اختيار کړي وي هغوئ د نيکی په لور راسي او د نيکی لار اختياروي .

په دغه حديث شريف کي دې ته اشاره ده چي د ابدي خلاصون او عذاب دار او مدار پر خاتمه باندي دی ، که د يو چا ټول ژوند په گناه او معصيت يا کفر او شرک کي تير سي مگر هغه په آخر وخت کي د زړه په صدق سره پر خپلو بدو عملونو او گمراهی باندي په پښيمانه کېدو سره د نيک بختی او سعادت لار اختيار کړي نو هغه به خلاصون تر لاسه کړي .

همدارنگه که يو سړی ټول عمر نيکی کوي او ټول ژوند د الله تعالی او د رسول په اطاعت او

فرمانبرداری کي تیر کړي مگر په آخر وخت کي هغه د شیطان په گمراهی سره یا د خپل نفس په شرارت سره گمراه سي او هغه د خپل ژوند آخري لحظې په بدی او بدبختی کي تیري کړي نو هغه به د ټول عمر د نیکیو سربیره د الله تعالی په عذاب کي اخته سي.

نو ددغه حدیث شریف څخه څرګنده سوه چي نیکي، بهتري او اُخروي خلاصون په دې کي دی چي بنده همیشه د اطاعت الهي او د فرمان نبوي پر ځای راوړلو کي مصروف وي، د هغه د ژوند هیڅ لحظه هم د شریعت د حدونو څخه تجاوز ونه کړي او په هر راتلونکي لحظه کي دا فکر وکړي چي کیدای سي دا زما د ژوند آخري لحظه وي، په نیکی کي یې صرف کوي چي د خاتمه بالخیر په سعادت سره ونازول سي.

دلته باید دا خبره په ذهن کي وي چي کومو خلکو د قضا او قدر د مسئلې لیدو سره دا نظریه قائمه کړې ده چي هر کله خلاصون او عذاب، نیک بختي او بدبختي، جنت او دوږخ تر لاسه کېدل تقدیري شی دی نو بیا د عمل څه ضرورت دی نو هغوئ په سخته گمراهي کي اخته دي، ځیني صحابه کرام هم ددې مسئلې په حقیقت نه وه پوه سوي، د رسول الله ﷺ په وړاندي یې دا ډول خبره وکړه، نو رسول الله ﷺ ورته وفرمایل: تاسو عمل کوئ ځکه د چا په مقدر کي چي څه لیکل سوي دي پر هغه باندي هغه ته اختیار ورکړل سوی دی.

یعني پر قضا او تقدیر باندي په باور کولو سره ستاسو په عمل کي توقف کول یا د عمل څخه انکار کول به هیڅ کارآمد نه وي ځکه احکام د شارع د لوري وارد سوي دي او د هغه سره تاسو ته د فکر کولو قابلیت او په نیکی او بدی کي د امتیاز کولو صلاحیت هم درکړل سوی دی، په تاسو کي د قصد او جهد ماده هم پیدا کړل سوې ده چي تاسو ددغه اسبابو په ذریعه عمل وکړلای سئ اوس که تاسو د قضا او تقدیر په سبب د اسبابو څخه قطع نظر وکړئ او عمال پریږدئ نو د تباهی او بربادی په غار کي به ولویږئ، مگر هو په دې کي به د الله تعالی یقینا یو حکمت وي چي د هغه په حقیقت او حکمت باندي هغه ښه پوهیږي چي یوې خوا ته خو هغه د قضا او تقدیر مسئله رامخکي کړه او بلي خوا ته د عملونو کولو حکم یې ورکړ او بیا په دغه مسئله کي د تحقیق او پلټني کولو څخه هم منعه وفرمایل، او که د قضا او تقدیر په سبب د عملونو د ضرورت څخه انکار وکړل سي نو ددې به څه جواب وي چي د الله تعالی د لوري د شریعت نازلیدل، احکام رالیږل او د رسولانو رالیږل چي د هغوئ مقصد د الله تعالی پر احکامو باندي د عمل کولو ترغیب ورکول وو بیله وجي سو ځکه چي کله پر محض تقدیر باندي باور

وي چې د چا په مقدر كي جنت ته تلل ليكلي وي هغه به يقينا جنت ته ځي او د چا په مقدر كي چي دوږخ ليكلي وي نو هغه به يقينا دوږخ ته ځي نو ددغه رسولانو بعثت او د احكامو او اعمالو پر ځاى راوړلو د تاكيد ضرورت نه پاته كيږي نو په دې حيثيت سره كه دا هم وكتل سي نو دا خيال غلط ثابتيږي ، په هر حال ځرنګه چي نور ډير الهي اسرار دي چي په هغه سره بندګان خبر نه دي ، همداسي دا هم يو راز دى چي د بندګانو څخه پټ ساتل سوى دى ځكه د يو چا په ظاهري عمل ليدو سره د هغه د جنتي يا دوږخي كېدو حكم نسي كيدلاى بلكه د الله تعالى پر رضا موقوف دى چي (يعذب من يشاء ويرحم من يشاء) يعني هغه چي چا ته غواړي (د بدو عملونو په سبب) په عذاب كي يې اخته كړي او چا ته چي وغواړي نو په خپل فضل او كرم سره به يې وبخښي .

﴿۷۶﴾ : وَعَنْ سَهْلِ بْنِ سَعِيْدٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ الْعَبْدَ لَيَعْمَلُ عَمَلَ أَهْلِ النَّارِ وَإِنَّهُ مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ وَيَعْمَلُ عَمَلَ أَهْلِ الْجَنَّةِ وَإِنَّهُ مِنْ أَهْلِ النَّارِ وَإِنَّمَا الاَعْمَالُ بِالْخَوَاتِيْمِ .(متفق عليه)

د حضرت سهل بن سعيد[1] ؓ څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل : يو بنده د دوږخيانو په ډول كارونه كوي او (په حقيقت كي) هغه جنتي وي او همدا شان هغه د جنتيانو په شان كارونه كوي او هغه دوږخي وي نو د اعمالو اعتبار به آخره خاتمه سره دى بخارى ومسلم

**تشريح** : دغه حديث شريف د لومړني حديث توثيق وكړ چي د اعمالو سابق اعتبار به وي چي پر هغه خاتمه سوې وي ځكه نو د خلاصون او عذاب دار او مدار به د هغه پر خاتمه وي كه خاتمه بالخير وي نو د الله تعالى د نعمتونو او د جنت د سعادت سره به ونازول سي ، او كه خداى مه كړه خاتمه په خير نه وي نو بيا به په عذاب كي اخته كړل سي .

دغه حديث شريف په ځرګنده دا خبره واضحه كړه چي بنده ته پكار ده چي د خپل ژوند يوه يوه لحظه د الله تعالى په اطاعت كي مصرف كړي او هر وخت د ګناه څخه ځان ساتي ځكه دا معلومه نه ده چي آخر وخت به كله راځي او هغه په يو ګناه كي اخته وي چي ناڅاپه د مرګ پنجه د هغه غاړه خفه كړي او هغه ته د توبې مهلت هم تر لاسه نسي چي د هغه په نتيجه كي به هغه په دائمي خسران او عذاب كي اخته سي .

[1] د سهل بن سعيد بن مالك لومړنى نوم حزن وو مګر وروسته رسول الله ﷺ د سهل نوم پر كښېښود . كنيت يې ابو العباس او ځينو ابويحيى هم ليكلى دى، په مدينه منوره كي د (۹۶) كالو په عمر په (۸۸ھ) كال كي وفات سو .

﴿۷۷﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ دُعِيَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلى جَنَازَةِ صَبِيٍّ مِنَ الأَنْصَارِ فَقُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللهِ طُوْبٰى لِهٰذَا عُصْفُوْرٌ مِنْ عَصَافِيْرِ الْجَنَّةِ لَمْ يَعْمَلِ السُّوْءَ وَلَمْ يُدْرِكْهُ قَالَ أَوْ غَيْرَ ذٰلِكَ يَا عَائِشَةُ إِنَّ اللهَ خَلَقَ لِلْجَنَّةِ أَهْلاً خَلَقَهُمْ لَهَا وَهُمْ فِيْ أَصْلَابِ آبَائِهِمْ وَخَلَقَ لِلنَّارِ أَهْلاً خَلَقَهُمْ لَهَا وَهُمْ فِيْ أَصْلَابِ آبَائِهِمْ . رواه مسلم .

د حضرت عائشې[1] رضي الله عنها څخه روايت دی چي : رسول الله ﷺ د يو انصاري کوچنی جنازې ته و غوښتل سو، ما نبي کريم ﷺ ته عرض وکړ: اې د الله رسوله ! د دې کوچنی لپاره خوشخبري ده چي د جنت د مرغانو څخه يوه مرغه دی چي نه يې څه بد کار کړی او نه د بدی حد ته رسيدلی دی، (د دې په اوريدو سره) رسول الله ﷺ وفرمايل : اې عائشې! ايا ستا دا خيال دی (يعني ستا دا خيال درست نه دی) د دې وروسته رسول الله ﷺ وفرمايل : د جنت او دوږخ لپاره الله تعالی ډلي پيدا کړي دي کوم وخت چي هغوئ د خپلو پلرو په ملاوو کي وي . مسلم .

**تشريح** : ددغه حديث څخه په ظاهره خو دا معلومه سوه چي په جنت او دوږخ کي داخليدل پر نيک او بد عمل باندي موقوف دي بلکه دا تقديري معامله ده ، الله تعالی د يو ډلي لپاره د ازل څخه جنت ليکلی دی ځکه هغه به جنت ته ځي که څه هم هغه نيک عملونه وکړي يا يې ونه کړي ، همداسي يوه ډله يې د دوږخ لپاره پيدا کړې ده چي يقينا به هغه دوږخ ته ځي که څه هم د هغوئ عملونه بد وي يا نه وي ، نو دا ماشوم که د دوږخ لپاره پيدا سوی وو نو يقينا به دوږخ ته ځي که څه هم د هغه څخه تر اوسه بد عملونه نه دي سوي .

مګر ددې خبري پر خلاف اکثر آياتونه او حديثونه او د علماؤ متفق عليه قولونه داسي دي چي د هغه څخه دا خبره ثابته سوې ده چي که چيري مسلمان ماشوم د کم عمری په حالت کي وفات سي نو هغه يقينا جنتي دی بلکه د کفارو او مشرکينو د کم عمر ماشومانو په اړه هم صحيح مسئله داده چي هغوئ به هم په جنت کي داخل کړل سي .

اوس به ددې حديث ترجيح هم کيږي چي بي بي عائشې رضي الله عنها د هغه په جنتي کيدو په داسي يقين

[1] ام المؤمنين حضرت بي بي عائشة صديقه (رض) د حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه لور او د رسول الله ﷺ تر ټولو زياته خوښه او محبوبه بي بي مبارکه وه چي د هغې لقب صديقه دی ، د رسول الله ﷺ د وفات په وخت کي د بي بي عائشې صديقې (رض) عمر يوازي اتلس (۱۸) کاله وو، نوموړې په کال (۵۷هـ) يا (۵۸هـ) کي وفات سوې ده او د جنت البقيع په هديره کي دفن سوې ده .

سره حکم کړی وو لکه هغې ته چي د غیب علم سته او د الله تعالی د حکمت او مرضی رازداره ده ځکه نو رسول الله ﷺ د هغې پر دغه یقین تنبیه وفرمایل چي ته د خپل دغه وثوق په وجه د عیب دانۍ اقرار کوې چي هیڅ بنده ته مناسب نه ده ، یا زیاته صحیح توجیه ددې حدیث دا کیدای سي چي د رسول الله ﷺ دا ارشاد به د هغه وخت وي هر کله چي د ماشومانو د جنتي کېدو حکم د وحي په ذریعه معلوم سوی نه وو . والله اعلم .

﴿۷۸﴾: وَعَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا مِنْكُمْ مِنْ أَحَدٍ إِلاَّ وَقَدْ كُتِبَ مَقْعَدُهُ مِنَ النَّارِ وَمَقْعَدُهُ مِنَ الْجَنَّةِ قَالُوْا يَارَسُوْلَ اللّٰهِ أَفَلاَ نَتَّكِلُ عَلٰى كِتَابِنَا وَنَدَعُ الْعَمَلَ ؟ قَالَ اعْمَلُوْا فَكُلٌّ مُيَسَّرٌ لِمَا خُلِقَ لَهُ أَمَّا مَنْ كَانَ مِنْ اَهْلِ السَّعَادَةِ فَسَيُيَسَّرُ لِعَمَلِ السَّعَادَةِ وَأَمَّا مَنْ كَانَ مِنْ اَهْلِ الشَّقَاوَةِ فَسَيُيَسَّرُ لِعَمَلِ الشَّقَاوَةِ ، ثُمَّ قَرَءَ: ( فاما من أعطى واتقى وصدق بالحسنى ) (متفق علیه)

د حضرت علي[1] ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : په تاسو کي هیڅوک داسي نسته چي د هغه ځای جنت یا دوزخ نه وي لیکل سوي ، خلکو عرض وکړ: اې د الله رسوله ! نو بیا موږ د خپل تقدیر په دې نوشته باور وکړو او اعمال ولي نه پرېږدو ؟ نبي کریم ﷺ وفرمایل : عمل کوئ ځکه چي کوم سړی د کوم کار لپاره پیدا سوی دی هغه شی د هغه لپاره آسان کړل سوی دی یعني کوم سړی چي نیک بخت دی د هغه دپاره د نیک بختۍ کارونه آسان کیږي او څوک چي بد بخت وي د هغه لپاره د بد بختۍ کارونه آسانه کیږي ، د دې وروسته رسول الله ﷺ دا آیت ووایه : (فاما من اعطی ..) (کوم سړي ته چي بخشش ورکړل سو نو پرهیزګاري یې اختیار کړل او د خیر عمل یې ښه وګڼی ...الخ ) بخاري او مسلم .

**تشریح** : د نبي کریم ﷺ د جواب مقصد دا وو چي تاسو خلک پر تقدیر یقین وکړئ او عمل پرېږدئ دا صحیح نه ده ، ځکه چي جنت په اول وار کي لیکل او د هر یوه لپاره معلومول چي څوک نیک بخت او څوک بدبخت نو دا د عملونو پرېښودو وجه نسي کیدای ، ددې لپاره چي الله تعالی د خپل خدائي او د قدرت دښکاره کېدو لپاره چي کوم حکمونه کړي دي او کوم

[1] امیر المؤمنین حضرت علي ﷺ د رسول کریم ﷺ د اکا زوی دی، د رسول الله ﷺ د خوږې لور بي بي فاطمې رضي الله عنها خاوند او څلورم خلیفه راشد دی ، کنیت یې ابوالحسن او ابوتراب دی، د رمضان المبارک په آخري لسیزه کي په کال (۳۰هـ) کي یې د شهادت درجه تر لاسه کړه ، د نوموړي هغه وخت عمر د واقعي پلټنې سره سم (۶۳) کاله وو، درې ورځي کم پنځه کاله نوموړی خلیفه وو .

فرضونه يې پر بندګانو ټاکلي دي پر هغو باندي عمل کول او د احکامو تابعداري کول د بندګۍ د ضرورت سره سم پر بندګانو لازم او ضروري دي ځکه چي يو ازي عمل د نيک بختۍ او بد بختۍ نښه ګرځول سوې ده چي کوم سړی عمل کوي هغه به نيک بخت ګڼل کيږي او کوم چي عمل نه کوي نو هغه به بدبخت ګڼل کيږي او بي دا هم تقديري معامله ده چي الله تعالی د چا په قسمت کي نيک بختي ليکلې وي هغه به يقينا عملونه کوي او د چا په نصيب کي چي بدبختي ليکلې وي هغه به عمل پريږدي او په ګمراهۍ کي به اخته کيږي ، تر کومه حده چي د ثواب او عذاب معامله ده نو هغه د الله تعالی په خوښه او د هغه پر حکمت باندي منحصر ده هغه چي څه معامله کوي هغه ته اختيار دی او په هغه کي د چا زور او زياتي نه چليږي .

﴿۷۹﴾: وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ اللهَ كَتَبَ عَلَى ابْنِ آدَمَ حَظَّهُ مِنَ الزِّنَا أَدْرَكَ ذٰلِكَ لاَ مَحَالَةَ فَزِنَا الْعَيْنِ النَّظَرُ وَزِنَا اللِّسَانِ الْمَنْطِقُ وَالنَّفْسُ تَمَنّٰى وَتَشْتَهِيْ وَالْفَرْجُ يُصَدِّقُ ذٰلِكَ وَيُكَذِّبُهُ (متفق عليه) وَفِيْ رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ قَالَ كُتِبَ عَلَى ابْنِ آدَمَ نَصِيْبُهُ مِنَ الزِّنَا مُدْرِكٌ ذٰلِكَ لاَ مَحَالَةَ اَلْعَيْنَانِ زِنَاهُمَا اَلنَّظَرُ وَالْأُذُنَانِ زِنَاهُمَا اَلاِسْتِمَاعُ وَاللِّسَانُ زِنَاهُ الْكَلاَمِ وَالْيَدُ زِنَاهَا اَلْبَطْشُ وَالرِّجْلُ زِنَاهَا اَلْخطَا وَالْقَلْبُ يَهْوٰى وَيَتَمَنّٰى وَيُصَدِّقُ ذٰلِكَ الْفَرْجُ وَيُكَذِّبُهُ .

د حضرت ابوهريرة ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : الله پاك چي د انسان په تقدير کي د زنا کومه برخه ليکلي ده هغه به ضرور د هغه څخه کيږي ، نو د سترګو زنا داده چي نامحرم چا ته وګوري، د ژبي زنا د نامحرم ښځو سره خبري کول (يعني د شهوت خبري کول) او نفس خواهش کوي او شرم ګاه دغه خواهش رښتيا کوي يا يي دروا غ کوي، بخاري اومسلم، او د مسلم په يوه روايت کي د ا الفاظ دي: رسول الله ﷺ وفرمايل : پر انسان د هغه د زنا برخه په تقدير کي ليکل کي سوې ده چي هغه به هرومرو په عمل کي راولي د دواړو سترګو زنا پرديو ښځو ته (په بد نظر) کتل دي او د غوږو زنا (د پرديو ښځو خبري په شهوت سره) اورېدل دي، او د ژبي زنا د هغې سره (په شهوت) خبري کول دي او د لاس زنا ښځي ته (په بد نيت ) لاس ور وړل دي او د پښو زنا د هغې په لور ورتلل دي او زړه خواهش کوي او شرمګاه د هغې تصديق يا تکذيب کوي .

**تشريح** : اصل زنا خو داده چي د يو نامحرمي ښځي سره بدکاري کي اخته سي ، مګر د شريعت په اصطلاح کي هغه حرکات او عملونو ته هم مجازا زنا ويل کيږي چي د حقيقي زنا لپاره د اسبابو درجه لري يا دا چي زنا ته يې رسوي ، مثلا د يو پردۍ ښځي سره د شهوت ډکي خبري

كول، يا په بد نظر ورته كتل يا په خرابي ارادې سره د هغې لاس مس كول يا همداسي په ناپاک خيال سره يو پردى ښځي ته ورتلل ، دا ټول شيان د حقيقي زنا محرک جوړيږي چي په وړاندي تلو سره په بدكارۍ كي اخته كيږي ځكه دې ته هم مجازا زنا ويل كيږي چي ددې حركات او اسبابو نفرت او كراهت په زړونو كي كښيني او خلک ددې څخه ځان وساتي .

په هر حال د حديث شريف څخه څرګنده سوه چي د كوم سړي په تقدير كي د زنا څومره برخه ليكلي وي هغه به په عمل كي راولي ، اوس كه چيري د هغه په مقدر كي مجازي زنا ليكلي وي يا حقيقي مګر الله تعالى چي يو څوک دده بد كار څخه خوندي ساتي نو هغه ددې څخه منعه ساتي او د هغه شيانو څخه هم پرهيز كوي چي د هغه په موجودګۍ كي د يو معصيت او ګناه د خيال هم شک او شبه پيدا كيږي چي د ګناه او معصيت په لور د بيولو سبب جوړيږي، د شرمګاه د تصديق او تكذيب مطلب دادى چي هر كله انساني نفس د هواء او هوس غلام جوړ سي او د هغه د غلط او حرام كار خواهش كوي نو كه چيري شرمګاه د هغه غلط او ناجائز خواهش باندي عمل كوي او په زنا كي اخته كيږي نو دا د هغه تصديق وي او كه د يو چا احساس او شعور او ضمير د الله تعالى د عذاب څخه لړزيدونكى او د هغه د بيري څخه ډک وي نو شرمګاه د نفس د خواهش د تكميل څخه انكار كوي او هغه په بدكارۍ كي نه اخته كيږي نو دا د هغه تكذيب كوي .

﴿۸۰﴾ : وَعَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ اَنَّ رَجُلَيْنِ مِنْ مُزَيْنَةَ قَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ! أَرَأَيْتَ مَا يَعْمَلُ النَّاسُ الْيَوْمَ؟ وَيَكْدَحُوْنَ فِيْهِ أَشَيْءٌ قُضِيَ عَلَيْهِمْ وَمَضٰى فِيْهِمْ مِنْ قَدَرٍ سَبَقَ أَوْ فِيْمَا يَسْتَقْبِلُوْنَ بِهِ مِمَّا أَتَاهُمْ بِهِ نَبِيُّهُمْ وَثَبَتَتِ الْحُجَّةُ عَلَيْهِمْ فَقَالَ لَا بَلْ شَيْءٌ قُضِيَ عَلَيْهِمْ وَمَضٰى فِيْهِمْ وَتَصْدِيْقُ ذٰلِكَ فِيْ كِتَابِ اللّٰهِ عَزَّ وَجَلَّ ( وَنَفْسٍ وَّمَا سَوَّاهَا فَأَلْهَمَهَا فُجُوْرَهَا وَتَقْوَاهَا) .رواه مسلم

د حضرت عمران [1] ﷺ څخه روايت دى چي د مزينې د قبيلې دوه خلك د رسول الله ﷺ په خدمت كي حاضر سول او عرض يې وكړ : اې دالله رسوله ! موږ د دې امر څخه خبردار كړئ څه چي خلك نن سبا كوي او محنت برداشت كوي، ايا دا هغه شى دى چي د دوئ په تقدير كي ليكل سوى دى او د هغوئ د تقدير څخه تير سوى دى . يا دا هغه شى دى چي آئنده راتلونكى دى او هغه د هغوئ نبي راوړي دي او په دليل سره پر هغوئ

[1] د نوموړي نوم عمران ابن حصين او كنيت يې ابونجيد دى ، د فتح خيبر په كال د اسلام په نعمت سره مشرف سوى دى ، نوموړى په بصرې كي په كال (۵۱هـ) كي وفات سوى دى .

دا ثابت سوی دی؟ رسول الله ﷺ وفرمایل : نه، بلکه دا هغه شی دی کوم چي ټاکل سوی دی او پر هغوئ تیر سوی دئ او ددې تصدیق د کلام الله د دې آیت څخه کیږي : ﴿ونفس وماسواها...﴾ یعني قسم دی د نفس او د هغه ذات چي هغه نفس برابر او یو ډول پیدا کړو او بیا یې په زړه کي ورته بدي او نیکي واچول. مسلم.

**تشریح** : پوښتنه دا وه چي اې دالله رسوله ! دا وښیاست چي په دنیا کي خلک څومره عملونه کوي که هغه عملونه ښه وي یا بد وي ایا دا هغه دي چي د هغوئ لپاره په ازل کي مقدر سوي دي او اوس پر خپل وخت تر سره کیږي او که دا هغه شیان دي چي په ازل کي خو د هغوئ لپاره لیکنه په تقدیر کي نه وه سوې بلکه اوس چي رسول راغلی او هغوئ د الله تعالی د لوري د ورکړل سوي معجزو په ذریعه د خپل صداقت اعلان او د هغه احکام او اعمال د کولو حکم وکړ نو دا عملونه تر سره کېدل پیل سول نو په داسي شکل کي ایا داسي ویل کیدای سي چي دغه عملونه د بندګانو په مقدر کي مخکي نه وه لیکل سوي بلکه په خپل اختیار سره دا عملونه کوي که هغه ښه عملونه وي او یا خراب عملونه وي.

﴿۸۱﴾ : وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللهِ إِنِّيْ رَجُلٌ شَابٌّ وَأَنَا أَخَافُ عَلَى نَفْسِيْ الْعَنَتَ وَلاَ أَجِدُ مَا أَتَزَوَّجُ بِهِ النِّسَاءَ، كَأَنَّهُ يَسْتَأْذِنُهُ فِيْ الاِخْتِصَاءِ قَالَ فَسَكَتَ عَنِّيْ ثُمَّ قُلْتُ مِثْلَ ذٰلِكَ فَسَكَتَ عَنِّيْ ثُمَّ قُلْتُ مِثْلَ ذٰلِكَ فَسَكَتَ عَنِّيْ ثُمَّ قُلْتُ مِثْلَ ذٰلِكَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا أَبَا هُرَيْرَةَ جَفَّ الْقَلَمُ بِمَا أَنْتَ لاَقٍ فَاخْتَصِ عَلَى ذٰلِكَ أَوْ ذَرْ . رواه البخاري .

د حضرت ابوهریرة رضی الله عنه څخه روایت دی چي : یو ځل ما رسول الله ﷺ ته عرض وکړ اې دالله رسوله ! زه زلمی سړی یم او زما سره بیره ده چي په زنا اخته نه سم او نه زما سره څه شتمني سته چي یوه ښځه په نکاح کړم ،لکه چي ابوهریرة د خپل عذر په بیانولو سره د دې اجازه غوښتل چي خپل ځان خصي کړي، ابوهریرة وایي رسول الله ﷺ چي زما دا عذر واورېدی نو چپ سو او هیڅ جواب یې رانه کړ ما دوهم وار عرض وکړ خو رسول الله ﷺ چپ وو په دریم وار ما بیا عرض وکړ مگر نبي ﷺ چپ وو په څلورم وار چي ما خپل الفاظ وویل نو رسول الله ﷺ وفرمایل : څه چي تا ته پېښېدونکي دي قلم (د هغه په لیکلو) وچ سوی دی اوس که څه هم ته نا مرد سي یا نه. بخاري.

**تشریح** : د رسول الله ﷺ د جواب خلاصه داده چي ستا په مقدر کي څه لیکل سوي دي هغه به پوره کیږي ، که خدای مه کړه په یو بدکاری کي ستا لپاره لیکنه تقدیر جوړ سوی وي نو هغه بد عمل به ضرور ستا څخه کیږي او که تقدیر ستا پر پاک لمنۍ جوړ سوی وي او ستا د معصیت څخه

یې ساتنه کړې وي نو که څه هم ته خپل مردانه قوت ختمولو سره نامرد جوړ سې یا ددغه کار څخه منعه سې نو ستا نفس تا نسي غلولای او ته به پاک لمنې یې، دې ته په (جف القلم) یعني قلم وچولو سره ارشاد وفرمایل سو ، په دې حدیث کي دې خبري ته خبرداری او تنبیه ورکول مقصد دي چي اسباب او تقدیر د تقدیر په مقابله کي راوړل او د تقدیر د لیکني څخه بې پرواه کېدو سره د هغه څخه تښتېدل جائز نه دي .

《۸۲》 : وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ قَالَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ قُلُوْبَ بَنِيْ آدَمَ کُلَّهَا بَیْنَ إِصْبَعَیْنِ مِنْ أَصَابِعِ الرَّحْمٰنِ کَقَلْبٍ وَّاحِدٍ یُصَرِّفُهٗ کَیْفَ یَشَاءُ ثُمَّ قَالَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ اَللّٰهُمَّ مُصَرِّفَ الْقُلُوْبِ صَرِّفْ قُلُوْبَنَا عَلٰی طَاعَتِكَ . رواه مسلم

د حضرت عبدالله بن عمرو ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : د ټولو انسانانو زړونه د الله تعالی د دوو ګوتو په منځ کي دي هغه په خپلو ګوتو سره څنګه چي و غواړي زړونه اړوي را اړوي ، وروسته رسول الله ﷺ وفرمایل : اې د زړونو ګرځونکې خدایه زموږ زړونه خپل د طاعت او بندګۍ په لور وګرځوې . مسلم

**تشریح** : ددغه حدیث شریف څخه د الله تعالی د قدرت د کمال اظهار مقصد دی چي هغه پر ټولو شیانو قادر دی او پر ټولو متصرف دی تر دې چي د زړونو اړخونه او د لړزېدلو پوري هم د هغه په اختیار کي دي ، د الله تعالی لپاره د ګوتو استعمال دلته مجازا سوی دی ځکه چي د هغه پاک ذات مادیات او د اجسامو د کثافت څخه پاک دی .

د حدیث مطلب دادی چي ټول زړونه د الله تعالی په واک او تصرف کي دي هغه چي کوم طرف ته غواړي زړونه ګرځوي ، د چا زړه د ګناه او معصیت په لور مائل کول هم د هغه صفت دی او یو زړه د عصیان او سرکښۍ د جال څخه د را ایستلو سره د اطاعت، فرمانبردارۍ او د نیکو پر لار راوستل هم د هغه کار دی، هغه چي چا ته غواړي د ګمراهۍ او ضلالت په تیارو کي یې غورځوي او چا ته چي غواړي د هدایت او راستۍ په باغچه کي یې پرېږدي .

《۸۳》 : وَعَنْ أَبِيْ هُرَیْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ مَا مِنْ مَوْلُوْدٍ إِلاَّ یُوْلَدُ عَلَی الْفِطْرَةِ فَأَبَوَاهُ یُهَوِّدَانِهٖ أَوْ یُنَصِّرَانِهٖ أَوْ یُمَجِّسَانِهٖ کَمَا تُنْتِجُ الْبَهِیْمَةُ بَهِیْمَةً جَمْعَاءَ هَلْ تُحِسُّوْنَ فِیْهَا مِنْ جَدْعَاءَ ثُمَّ یَقُوْلُ ( فِطْرَةَ اللّٰهِ

د حضرت ابوهریرة ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : کوم یو کوچنی چي زېږي هغه پر فطرت پیداکېږي (یعني په هغه کي د حق دین قبلولو صلاحیت وي) خو د هغه مور اوپلار د هغه څخه یهودي جوړ کړي یا نصراني یا مجوسي، څرنګه چي

الَّتِيْ فَطَرَ النَّاسَ عَلَيْهَا لاَ تَبْدِيْلَ لِخَلْقِ اللهِ ذٰلِكَ الدِّيْنُ الْقَيِّمُ ) (متفق عليه).

يو حيوان پوره حيوان بچى راوړي ايا تاسو په هغه كي څه نقصان موندلاى سي ، د دې وروسته رسول الله ﷺ دا آيت تلاوت كړ : فطرة الله ... ( د الله فطرت دادى چي په هغه يې خلك پيدا كړي دي د خداى په پېدائښت كي هيڅ بدلون نه سي كيدلاى او دا حق دين دى ) مسلم وبخاري .

**تشريح** : الله تعالى د انسان خلقت پر فطرت كړى دى او فطرت يوازي حق يعني ايمان او اسلام قبلولاى سي ، هر كله چي يو ماشوم پيدا كيږي نو هغه پر دې فطرت وي مګر په خارجي اثر سره هغه د فطرت د غوښتنو څخه ليري سي او د اصولو خلاف د فطرت پر طريقو باندي تلل پيل كړي يعني كه چيري د هغه مور او پلار يهودي وي نو هغه هم يهودي كيږي او كه د هغه مور او پلار عيسائي وي نو هغه هم عيسائي كيږي او كه چيري د هغه مور او پلار مجوسي وي نو هغه هم د هغوئ په مذهب كي رنګ كيږي .

نو د يو مثال په توګه يې وفرمايل چي څه ډول د يو حيوان بچى پيدا كيږي نو هغه په خپل اصلي حالت كي پيدا كيږي په هغه كي هيڅ ډول كمي يا تاوان نه وي ، مګر كه چيري په خارجي توګه سره يو څوك د هغه لاسونه او پښې پرې كړي يا د هغه پر بدن يو بل عيب پيدا كړي نو هغه خپل اصلي او تخليقي حالت ضائع كړي ، همداسي انسان د پيدا كېدو پر وخت پر خپل اصلي فطرت يعني اسلام باندي پيدا كيږي مګر د هغه ماحول د هغه ټولنه يعني مور او پلار وغيره د هغه احساسات او شعور او د هغه پر عقيدو باندي د خپل مذهب رنګ اچولو سره د هغه ذهن، فكر ، زړه او دماغ پر غلطه لاره باندي واړوي چي د هغه په وجه هغه پر خپل اصلي او تخليقي فطرت باندي قائم نه پاته كيږي بلكه كافر سي هو كه چيري داسي نه كيږي او د هغه مور او پلار مسلمانان وي نو هغه هم مسلمان پاته سي .

﴿۸۴﴾ : وَعَنْ أَبِيْ مُوْسٰى قَالَ قَامَ فِيْنَا رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِخَمْسِ كَلِمَاتٍ فَقَالَ :إِنَّ اللهَ عَزَّ وَجَلَّ لاَ يَنَامُ وَلاَ يَنْبَغِيْ لَهُ أَنْ يَّنَامَ يَخْفِضُ الْقِسْطَ وَيَرْفَعُهُ يُرْفَعُ إِلَيْهِ عَمَلُ اللَّيْلِ قَبْلَ عَمَلِ النَّهَارِ وَعَمَلُ النَّهَارِ قَبْلَ عَمَلِ اللَّيْلِ حِجَابُهُ النُّوْرُ، لَوْ كَشَفَهُ

حضرت ابوموسى ﷺ وايي موږ ته رسول الله ﷺ خطبه راكړه او د پنځو خبرو يادونه يې وفرمايل ، رسول الله ﷺ وفرمايل : الله خوب نه كوي او خوب ورته مناسب هم نه دى هغه تله (رزق) كښته كوي او هم يې پورته كوي ، هغه ته د شپې عمل د ورځي د كار څخه وړاندي او د ورځي عمل د شپې د عمل څخه وړاندي وړل كيږي، د

لَاَحْرَقَتْ سُبُحَاتُ وَجْهِهِ مَا انْتَهٰى اِلَيْهِ بَصَرُهُ مِنْ خَلْقِهِ .رواه مسلم .

هغه حجاب (پرده) نور دی که هغه خپل حجاب پورته کړي نو د هغه د ذات نور که مخلوقاتو ته را ورسیږي نو ټول به وسوځي .مسلم .

**تشریح** : د ترازو د لوړ او کښته کولو مطلب دادی چي الله تعالی پر یو بنده باندي د رزق پراختیا کوي او هغه په مال او شتمنۍ سره نازوي او پر چا باندي د معیشت د اسبابو او د رزق دروازې تنکولو سره هغه په محتاجۍ او اړتیا کي اخته کوي ، همداسي هغه یو بنده ته د اطاعت، فرمانبردارۍ او نیکو کارونو په وجه عزت، عظمت ، شرف او فضیلت سره نازوي او یو ګناه کار بنده د هغه د سرکښۍ، نافرمانۍ او بد کارۍ په وجه ذلیل او خوار کوي او هغه د تباهۍ او بربادۍ په کنده کي اچوي ، همداسي د ورځي د عمل څخه مخکي د شپې عمل او د شپې د عمل څخه مخکي د ورځي عمل هغه ته د رسولو مطلب دادی چي د بنده څخه کوم عمل کیږي هغه سمدستي بیله ځنډه الله تعالی ته رسیږي یعني تر اوسه لا لمر نه وي راختلی او یو عمل نه وي صادر سوی چي د شپې عمل چي د بنده څخه سوی وي پورته رسیدلی وي ، همداسي د شپې پیل لا نه وي سوی چي د ورځي عمل هلته رسیږي ، اوس کوم عمل چي نیک او ښه وي هغه د قبولیت په شرف نازولو سره پر هغه د جزاء او انعام پروانه صادر کیږي او کوم عمل چي بد وي پر هغه د عذاب او سزا حکم ورکول کیږي .

﴿۸۵﴾: وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : يَدُ اللهِ مَلْئٰ لَا تَغِيْضُهَا نَفَقَةٌ سَحَّاءُ اللَّيْلِ وَالنَّهَارِ أَرَأَيْتُمْ مَا أَنْفَقَ مُذْ خَلَقَ السَّمَاءَ وَالْأَرْضَ ؟ فَإِنَّهُ لَمْ يُغِضْ مَا فِيْ يَدِهِ وَكَانَ عَرْشُهُ عَلَى الْمَاءِ وَبِيَدِهِ الْمِيْزَانُ يَخْفِضُ وَيَرْفَعُ (متفق عليه) وَفِيْ رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ يَمِيْنُ اللهِ مَلْئٰ قَالَ ابْنُ نُمَيْرٍ مَلْآنُ سَحَّاءُ لَا يَغِيْضُهَا شَيْءٌ اللَّيْلِ وَالنَّهَارِ .

د حضرت ابوهریرة ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : د الله ﷻ لاس (خزانه) ډکه ده په خرڅ کولو سره په هغې کي کمي نه راځي په نفقه کولو سره، شپه او ورځ هغه همدارنګه کوي او ورکړه کوي ایا تاسو وینئ د څه وخت څخه چي هغه مځکه او آسمان پیداکړي دي هغه څومره نفقه کړي ده، مګر د هغه په خزانې کي څه کمي نه ده راغلې، د هغه تخت (عرش) پر اوبو وو او د هغه په لاس کي د رزق تله ده هغه پورته او کښته کوي . بخاري او مسلم، د مسلم په یوه روایت کي دا الفاظ دي : د خدای پاك راسته لاس ډك دی او ابن نمیر چي د امام مسلمؒ استاذ دی داالفاظ نقل کړي دي چي د خدای لاس (خزانه) ډکه ده هغه همیشه ورکړه کونکی دی ، په شپه او ورځ خرڅ کولو سره په هغې کي څه کمي نه راځي .

**تشریح** : ابن نمیر (رح) د حضرت امام مسلم (رح) استاذ دی ، د هغه په سند سره چي حدیث دی په هغه کي د (ملاي) پر ځای د (ملان) لفظ دی او په الفاظو کي تقدیم او تاخیر هم سته ، او د لغت په نظر د (تلاي) لفظ صحیح دی او دا لفظ مناسب دی .

﴿۸۶﴾ : وَعَنْهُ قَالَ سُئِلَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ ذَرَارِيِّ الْمُشْرِكِيْنَ قَالَ اللّٰهُ أَعْلَمُ بِمَا كَانُوْا عَامِلِيْنَ (متفق عليه) .

د حضرت ابوهریرة ﷛ څخه روایت دی چي د رسول الله ﷺ څخه د مشرکانو د ماشومانو په اړه پوښتنه وسول ، نبي کریم ﷺ وفرمایل :الله ﷻ ښه پوهیږي چي هغوئ به څه کول . بخاري او مسلم.

**تشریح** : یعني دا خو الله تعالی ته معلومه ده که چیري هغه د وړکتوب په حالت کي نه وي مړ سوی او ژوندی پاته سوی وي نو په لوی کېدو سره یو عمل به یې کوی ، اوس د هغه سره چي کومه معامله کیږي نو د هغه سره سم به وي ، یا دا چي الله تعالی ته معلومه ده چي هغوئ به جنت ته ځي یا دوږخ ته، د هغه ځای حالت یو بنده ته څه معلوم دی .

ځیني حضرات وایي چي رسول الله ﷺ به دا هغه وخت فرمایلي وي هر کله چي د مشرکانو د اولاد په باره کي د وحي په ذریعه څه معلوم سوي نه وه، په دې مسئله کي د علماؤ اقوال مختلف دي مګر صحیح او غوره قول دادئ چي په دې باره کي توقف کول پکار دی یعني هغه ته دې نه دوږخي ویل کیږي او نه جنتي .

## الفصل الثاني

﴿۸۷﴾ : وَعَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّ أَوَّلَ مَا خَلَقَ اللّٰهُ الْقَلَمَ فَقَالَ لَهُ اكْتُبْ فَقَالَ مَا أَكْتُبُ: قَالَ اكْتُبِ الْقَدَرَ فَكَتَبَ مَا كَانَ وَمَا هُوَ كَائِنٌ إِلَى الْأَبَدِ . رواه الترمذي وقال هذا حديث غريب إسنادا .

د حضرت عباده ﷛ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ فرمایل : تر ټولو اول چي الله کوم شی پیداکړی دی هغه قلم دی، نو الله ورته وویل ولیکه ، قلم عرض وکړ څه ولیکم ؟ الله ورته وفرمایل : تقدیر ولیکه نو قلم ولیکل څه چي(د رسو ل الله تر زماني پوري) سوي وه او څه چي به آئنده کیدونکي وي . ترمذي وایي دا حدیث د سند په اعتبار غریب دی .

﴿۸۸﴾ : وَعَنْ مُسْلِمِ بْنِ يَسَارٍ قَالَ سُئِلَ عُمَرُ بْنَ الْخَطَّابِ عَنْ هٰذِهِ الآيَةِ ( وَإِذْ أَخَذَ رَبُّكَ مِنْ

د حضرت مسلم بن یسار ﷛ څخه روایت دی چي عمر بن خطاب ﷛ څخه د دې آیت مطلب و پوښتل

بَنِي آدَمَ مِنْ ظُهُورِهِمْ ذُرِّيَّتَهُمْ ..الاية) قَالَ عُمَرُ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسْأَلُ عَنْهَا فَقَالَ : اِنَّ اللّٰهَ خَلَقَ آدَمَ ثُمَّ مَسَحَ ظَهْرَهُ بِيَمِيْنِهِ فَاسْتَخْرَجَ مِنْهُ ذُرِّيَّةً فَقَالَ خَلَقْتُ هٰؤُلَاءِ لِلْجَنَّةِ وَبِعَمَلِ أَهْلِ الْجَنَّةِ يَعْمَلُوْنَ ثُمَّ مَسَحَ ظَهْرَهُ بِيَدِهِ فَاسْتَخْرَجَ مِنْهُ ذُرِّيَّةً فَقَالَ خَلَقْتُ هٰؤُلَاءِ لِلنَّارِ وَبِعَمَلِ أَهْلِ النَّارِ يَعْمَلُوْنَ ،فَقَالَ رَجُلٌ فَفِيْمَ الْعَمَلُ يَارَسُوْلَ اللّٰهِ؟ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ اللّٰهَ اِذَا خَلَقَ الْعَبْدَ لِلْجَنَّةِ اسْتَعْمَلَهُ بِعَمَلِ أَهْلِ الْجَنَّةِ حَتّٰى يَمُوْتَ عَلٰى عَمَلٍ مِّنْ أَعْمَالِ أَهْلِ الْجَنَّةِ فَيُدْخِلَهُ بِهِ الْجَنَّةَ وَاِذَا خَلَقَ الْعَبْدَ لِلنَّارِ اسْتَعْمَلَهُ بِعَمَلِ أَهْلِ النَّارِ فَيُدْخِلَهُ بِهِ النَّارِ . رواه مالك والترمذي وأبو داود .

سو (و اذ اخذ ربك من بني ادم من ظهور هم.....) ما د رسول الله ﷺ څخه د دې آيت مطلب اوربدلی دی حضور ﷺ وفرمايل : الله پاك چي آدم ﷺ پيدا کړ بيا يې د هغه پر شا خپل راسته لاس را تير کړ بيا يې د هغه څخه د هغه اولاد وايستل او وه يې فرمايل : ما دا د جنت لپاره پيداکړل دوئ د جنتيانو کارونه کوي ، بيا يې د آدم ﷺ پر شا لاس را تير کړ او د هغه څخه يې نور اولادونه راوستل او وه يې فرمايل : ما دوئ د دوږخ لپاره پيداکړل داخلك به د دوږخيانو کارونه کوي ، د رسول الله ﷺ د دې ارشاد په اورېدو سره يو سړي عرض وکړ اې دالله رسوله ! نو بيا د عمل کولو څه ګټه سوه ؟ رسول الله ﷺ وفرمايل : هر کله چي الله تعالی يو سړی د جنت لپاره پيداکوي نو په هغه د جنتيانو کارونه کوي تر دې چي تر مرګه پوري هغه د جنتيانو په شان کارونه کوي او الله پاك د هغه اعمالو په سبب هغه په جنت کي داخل کوي همدارنګه کله چي يو بنده د دوږخ لپاره پيداکوي نو په هغه د دوږخيانو په شان کارونه کوي تر دې چي تر مرګه پوري هغه د دوږخيانو په شان کارونه کوي ، او الله پاك د هغه کارونو په سبب هغه په دوږخ کي داخل کړي . مالك، ترمذي او ابوداؤد .

**تشريح** : دغه وعده ميثاق په عالم ارواح کي سوی وو، لکه څرنګه چي په نورو حديثونو کي راغلي دي چي الله تعالی ټول روحونه چي د ازل څخه تر ابد پوري په دنيا کي څومره انسانان پيدا کيږي د ټولو د ملا څخه د هغوئ اولادونه را ايستلي وه ، مثلا د رسول الله ﷺ د ملا څخه د هغوئ اولاد را ايستلی او د هغوئ د اولاد د ملا څخه د هغوئ اولاد او همداسي تر قيامته پوري چي څومره انسانان پيدا کيږي د ټولو د ملا څخه د هغوئ اولاد را وايستل سو .

د راسته لاس د ګرځولو مطلب دادی چي الله تعالی ملائکو ته د راسته لاس ګرځولو حکم ورکړی وو کنه د الله تعالی نوراني ذات د لاس او پښو د ظاهري ثقالت څخه پاك دی ، يا به دا وويل سي چي د دې څخه د خپل قوت او قدرت اظهار مقصد دی .

﴿۸۹﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ خَرَجَ عَلَيْنَا رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَفِيْ يَدَيْهِ كِتَابَانِ فَقَالَ أَتَدْرُوْنَ مَا هٰذَانِ الْكِتَابَانِ؟ قُلْنَا لاَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ؟ إِلاَّ أَنْ تُخْبِرَنَا فَقَالَ لِلَّذِيْ فِيْ يَدِهِ الْيُمْنٰى هٰذَا كِتَابٌ مِّنْ رَّبِّ الْعَالَمِيْنَ فِيْهِ أَسْمَاءُ أَهْلِ الْجَنَّةِ وَأَسْمَاءُ آبَائِهِمْ وَقَبَائِلِهِمْ ثُمَّ أُجْمِلَ عَلٰى آخِرِهِمْ فَلاَ يُزَادُ فِيْهِمْ وَلاَ يُنْقَصُ مِنْهُمْ أَبَدًا ، ثُمَّ قَالَ لِلَّذِيْ فِيْ شِمَالِهِ هٰذَا كِتَابٌ مِّنْ رَّبِّ الْعَالَمِيْنَ فِيْهِ أَسْمَاءُ أَهْلِ النَّارِ وَأَسْمَاءُ آبَائِهِمْ وَقَبَائِلِهِمْ ثُمَّ أُجْمِلَ عَلٰى آخِرِهِمْ فَلاَ يُزَادُ فِيْهِمْ وَلاَ يُنْقَصُ مِنْهُمْ أَبَدًا، فَقَالَ أَصْحَابُهُ فَفِيْمَ الْعَمَلُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ ؟ إِنْ كَانَ أَمْرٌ قَدْ فُرِغَ مِنْهُ فَقَالَ سَدِّدُوْا وَقَارِبُوْا فَإِنَّ صَاحِبَ الْجَنَّةِ يُخْتَمُ لَهُ بِعَمَلِ أَهْلِ الْجَنَّةِ وَإِنْ عَمِلَ أَيَّ عَمَلٍ وَإِنَّ صَاحِبَ النَّارِ يُخْتَمُ لَهُ بِعَمَلِ أَهْلِ النَّارِ وَإِنْ عَمِلَ أَيَّ عَمَلٍ ثُمَّ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِيَدَيْهِ فَنَبَذَهُمَا ثُمَّ قَالَ: فَرَغَ رَبُّكُمْ مِنَ الْعِبَادِ فَرِيْقٌ فِي الْجَنَّةِ وَفَرِيْقٌ فِي السَّعِيْرِ . رواه الترمذي.

د حضرت عبدالله بن عمرو ﷺ بیان دی چي (یوځل) رسول الله ﷺ دباندي تشریف راوړ او دهغه په لاس کي دوه کتابونه وه، رسول الله ﷺ وفرمایل : تاسو ته څرګنده ده چي دا دوه کتابونه څنګه دي ؟ موږ عرض وکړ اې دالله رسوله ! موږ ته نه ده څرګنده تاسو وفرمایي چي راته څرګنده سي ، رسول الله ﷺ د راسته لاس کتاب ته اشاره وکړه او وه یې فرمایل : دا کتاب د پروردګار له لوري دی په دې کي د جنتیانو نومونه د هغوئ د پلرو نومونه او د هغوئ د قبیلو نومونه درج دي او په آخر کي د هغوئ جمع بندي سوې ده اوس نه په هغه کي څه زیاتوب کیږي او نه کمي کیدلای سي ، د دې وروسته رسول الله ﷺ د چپه لاس کتاب ته اشاره وکړه او وه یې فرمایل : دا کتاب د پروردګار د لوري دی او په دې کي د د دوږخیانو نومونه د هغوئ د پلرو نومونه او د هغوئ د قبیلو نومونه درج دي او په پای کي جمع بندي سوې ده اوس په دې کي نه څه زیاتوب کیږي او نه کمي ، صحابه کرامو عرض وکړ : اې دالله رسوله ! هر کله چي هر څه تر مخه څخه لیکل سوي دي نو بیا د عمل کولو څه ګټه ده ؟ رسول الله ﷺ وفرمایل : عمل درست کړئ او حقه لاره ټینګه ونیسئ د خدای قربت لټوئ ځکه چي د جنتیانو د آخري عهد (وخت) کارونه به د جنتیانو په شان وي اګر که (ټول عمر) هر څنګه بنه یا بد کارونه کړي وي د دوږخي د آخري وخت کارونه به د دوږخیانو په شان وي اګر که هغه ټول عمر هر څنګه عمل کړی وي ، د دې وروسته رسول الله ﷺ دواړو لاسو ته حرکت ورکړ او کتابونه یې کښېښودل او وه یې فرمایل : ستاسو رب د بندګانو د کار څخه فارغ سو (یعني حکم یې وکړ) چي یوه ټولی به جنت ته ځي او بله ټولی به دوږخ ته . ترمذي.

**تشریح** : کتابونه وروسته ایښودل د سپکاوي په توګه نه وه بلکه دې ته اشاره کول مقصد ده چي

د الله تعالی څخه په دې معامله کي چي دوږخي او جنتي کوم کوم خلک دي په ازل کي ددې حکم سوی دی چي ليکل سوی تقدير جوړ سوی دی .

په څرګنده خو ددې حديث څخه دا معلومه سوه چي د رسول الله ﷺ په لاس مبارک کي واقعي كتابونه وه چي صحابه كرامو ته يې ښودلي هم وه مګر په هغه کي دننه چي مضامين ليكلي وه هغه يې نه وه ښودلي، مګر ځيني حضرات فرمائي چي په حقيقت کي کتابونه نه وه بلکه رسول الله ﷺ د مثال په توګه په دغه انداز سره وفرمايل چي دا مسئله د صحابه كرامو په ذهن کي کښيني .

﴿۹۰﴾: وَعَنْ أَبِيْ خِزَامَةَ عَنْ أَبِيْهِ قَالَ قُلْتُ يَارَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَرَأَيْتَ رُقًى نَسْتَرْقِيْهَا وَدَوَاءً نَتَدَاوٰى بِهِ وَتُقَاةً نَتَّقِيْهَا هَلْ تَرُدُّ مِنْ قَدَرِ اللهِ شَيْئًا ؟ قَالَ هِيَ مِنْ قَدَرِ اللهِ . رواه أحمد والترمذي وابن ماجه

د حضرت ابن خزامه[1] ﷛ د خپل پلار څخه روايت کوي چي هغه رسول الله ﷺ ته عرض وکړ: اې د الله رسوله ! دا راته وښيه چي کوم دم او منتر چي موږ کوو او کوم دارو يا درمل چي موږ کوو او خپل د خلاصون تدبيرونه (مثلا په غزا کي سپر وغيره) موږ کوو آيا دا شيان د الله ﷻ تقدير بدلوي، رسول الله ﷺ وفرمايل : دا شيان هم په تقدير کي ګډ دي . احمد ، ترمذي او ابن ماجه :

**تشريح** : د جواب مطلب دادی چي څرنګه ناروغي وغيره يو مقدر امر دی همداسي د هغه علاج او د هغه څخه د ساتني اسباب هم د تقدير د ليکني سره سم دي يعني څرنګه چي د يو سړي په مقدير کي يو ناروغي ليکل سوې وي نو د هغه سره دا هم ليکل سوي وي چي دا ناروغ به په فلاني وخت د خپل ناروغۍ علاج کوي او دا هم فيصله سوې وي چي د هغه علاج سره به هغه ګټه رسيږي که نه، که فائده ليکلې وي نو ګټه به ورته وسي او که ګټه کېدل نه وي ليکل سوي نو ګټه به ورته ونه کړي، له دې کبله که يو ناروغ د خپل ناروغۍ علاج وکړي او هغه ته ګټه ونه رسيږي نو هغه ته پوهېدل پکار دي چي په تقدير کي شفاء نه وه ليکل سوې نو معلومه سوه چي په ناروغۍ کي علاج کول يا د خپل ساتني لپاره د خارجي اسبابو مرسته اخيستل د تقدير خلاف نه دي .

[1] حضرت ابي خزامه تابعي دی چي د پلار نوم يې يعمر دی چي صحابي دی او د هغه څخه ابوخزامه روايت کوي او ابي خزامه څخه زهري روايت کوي .

د تعویذ، دم او چف مسئله داده چي تعویذ گناه ده مګر که چیري د قرآن کریم د آیاتونو او حدیثونو ددعاوو سره سم وي یا دم او چف د اسماء او صفات الهي او قرآن او حدیث سره سم وي او د هغه د مؤثر ګڼلو عقیده هم نه وي یعني دا یقین نه لري چي په دغه شیانو سره به یقنا ګټه وسي که څه هم د الله مرضي وي یا نه وي بلکه دا عقیده وي چي د شفاء او صحت ورکونکی خو الله تعالی دی دا یوازي د اسباب او تبرک په درجه کي دي نو په داسي شکل کي دا شیان جائز دي ،او که ددې خلاف وي یعني دچف او چف او تعویذ وغیره غیر شرعي وي یعني په هغه کي د غیر الله څخه مرسته غوښتل وي نو دا حرام دي .

﴿۹۱﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ خَرَجَ عَلَيْنَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَنَحْنُ نَتَنَازَعُ فِي الْقَدَرِ فَغَضِبَ حَتّٰى احْمَرَّ وَجْهُهُ حَتّٰى كَاَنَّمَا فُقِئَ فِي وَجْنَتَيْهِ حَبُّ الرُّمَّانُ فَقَالَ اَبِهٰذَا اُمِرْتُمْ اَمْ بِهٰذَا اُرْسِلْتُ اِلَيْكُمْ؟ اِنَّمَا هَلَكَ مَنْ كَانَ قَبْلَكُمْ حِيْنَ تَنَازَعُوا فِي هٰذَا الْاَمْرِ عَزَمْتُ عَلَيْكُمْ اَلَّا تَتَنَازَعُوا فِيْهِ (رواه الترمذي) و روى ابن ماجة نحوه عن عمرو بن شعيب عن ابيه عن جده .

د حضرت ابوهریرة ﷛ څخه روایت دی چي موږ موږ ناست وو او د تقدیر پر مسئله مو خبري کولې چي رسول الله ﷺ تشریف راوړ او د غصې څخه د رسول الله ﷺ مبارک مخ داسي سور سو لکه چي د انار دانې یې دده مبارک په مخ کي نبنتیږلې دي بیا رسول الله ﷺ وفرمایل : ایا تاسو ته حکم سوی دی چي زه تاسو ته د دې لپاره رالیږل سوی یم ، ستاسو څخه وړاندي چي کوم قومونه تیر سوي دي هر کله چي هغوئ په دې مسئلې مناقشه (جګړه) وکړه نو هغوئ هلاک کړل سوه ، زه تاسو ته قسم درکوم او دوهم ځل قسم درکوم چي آئنده په دې مسئله کي جګړه مه کوئ ، ترمذي، ابن ماجه هم دا ډول روایت د عمرو بن شعیب څخه روایت کړی دی چي هغه د خپل پلار او پلار یې د نیکه څخه نقل کړی دی .

**تشریح** : صحابه کرامو په خپل منځ کي د تقدیر پر مسئله بحث کوئ ، . ځیني صحابه کرامو دا ویل چي ټول شیان د الله تعالی د لوري د لیکلي تقدیر سره سم دي نو بیا د ثواب او عذاب ترتیب ولي کیږي لکه څرنګه چي د معتزله مذهب دی، او ځینو حضراتو دا ویل چي په دې کي د الله تعالی یو حکمت او مصلحت دی چي ځیني انسانان یې د جنت لپاره پیدا کړل او ځیني انسانان یې د دوږخ لپاره پیدا کړي دي ، ځینو صحابه کرامو ددې جواب ورکړ چي داسي ځکه دي چي انسانانو ته څه اختیارات هم د عملونو کولو او نه کولو ورکړل سوي دي ، چا ویل چي دا اختیار چا ورکړ .

په هر حال دا ډول بحث کيدی او د خپل عقل او پوهي په ذريعه د الله ﷻ د دغه راز او حکمت حقيقت ته د رسيدو هڅه کېدل چي رسول الله ﷺ دوئ په دغه بحث کولو سره وليدل نو د غصې او غضب څخه يې مخ مبارک سور سو ځکه صحابه کرامو ته وښودل سول چي د تقدير مسئله د الله تعالی يو راز دی چي پر هيچا نه دی ظاهر کړل سوی نو په دې کي عقل جنګول او غور او پلټنه کول د ګمراهۍ لار اختيارول دي، رسول الله ﷺ وفرمايل زه ددې لپاره دنيا ته نه يم راليږل سوی چي د تقدير په اړه څه وښيم او تاسو په دې کي بحث او مباحثه وکړئ زما د راليږلو مقصد يوازي دادی چي د الله تعالی احکام خلکو ته ورسوم او د اطاعت او فرمانبرداری پر لار مو روان کړم ، ددين او شريعت د فرضونو او عملونو د کولو تاسو ته حکم درکړم نو د هغه پر ځای راوړلو کي بوخت اوسئ او د تقدير په مسئله کي مه لويږئ ، بس دومره عقيده ستاسو لپاره کافي ده چي تقدير د الله تعالی يو راز دی چي ددې په حقيقت او حکمت هغه ښه پوهيږي دا د هغه وخوښي ته پرېږدئ .

د حديث شريف په پای کي صاحب د مشکوة د ابن ماجه د دا ډول روايت سوي حديث او سند ذکر کړی دی ، د هغه مطلب دادی چي هغه حديث شعيب د خپل نيکه څخه نقل کړی دی چي عبدالله بن عمرو بن العاص دی او شعيب څخه د هغه زوی عمرو روايت کوي ، همداسي د (عن ابيه) ضمير عمروبن شعيب ته راجع کيږي ځکه چي عمرو د خپل نيکه څخه روايت کوي د هغه نيکه محمد بن عبدالله څخه هغه روايت منقول نه دی دا د نسب لړۍ داسي ده : عمربن شعيب بن محمد بن عبدالله بن عمرو بن العاص ، ددې شرح ځکه دلته ضروري ده چي په نورو حديثونو کي په دا ډول عبارت کي د (عن جده) ضمير عمرو ابن شعيب ته راجع کيږي مګر دلته د هغه پر خلاف دی .

﴿۹۲﴾: وَعَنْ أَبِيْ مُوْسٰى قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ إِنَّ اللهَ خَلَقَ آدَمَ مِنْ قَبْضَةٍ قَبَضَهَا مِنْ جَمِيْعِ الأَرْضِ فَجَاءَ بَنُوْ آدَمَ عَلٰى قَدْرِ الأَرْضِ مِنْهُمُ الأَحْمَرُ وَالأَبْيَضُ وَالأَسْوَدُ وَبَيْنَ ذٰلِكَ وَالسَّهْلُ وَالْحَزْنُ وَالْخَبِيْثُ وَالطَّيِّبُ . رواه أحمد والترمذي وأبو داود .

د حضرت ابوموسی ﷜ څخه روايت دی چي ما درسول الله ﷺ څخه واوريدل چي فرمايل يې : الله ﷻ آدم ﷤ د يو موټ (خاورو) څخه پيداکړ چي هغه د ټولي ځمکي څخه اخيستل سوې وه نو د آدم ﷤ اولاد يې د هغې ځمکي موافق يعني کوم ډول چي خاوره وه په هغه ډول پيداکړ ، ځيني په هغوئ کي سور رنګه، ځيني سپين رنګه او ځيني نور او ځيني درميانه او ځيني په دوئ کي نرم مزاجه او

ځيني سخت مزاجه او ځيني په دوئ كي ناپاك او ځيني پاك دي . احمد ، ترمذي او ابوداؤد.

**تشريح** : د حضرت آدم عليه السلام د پيدا كېدو پر وخت يوې ملائكي حضرت عزرائيل عليه السلام ته حكم وسو چي هغه يو موټ خاوره راوړي نو هغه د ټولي ځمكي د مخ د هري سيمي هر ځاى څخه لږ لږ خاوره په موټ ډكولو سره راوړه او په هغه سره د حضرت آدم عليه السلام پيدا ئښت وسو ځكه نو د آدم عليه السلام په اولاد كي د مختلف رنګونو او نسل او مختلف طبيعتونو انسانان پيدا كيږي ، څوک تور وي ، څوک سور ، څوک غنم رنګه وي ، همداسي ځيني انسانان د خپل طبيعت او مزاج په اعتبار نرم او خوش اخلاقه او خواږه ژبي وي ، د ځيني خلكو طبيعت سخت او غير معتدل وي ، ځيني انسانان فطرتا پاک وي او ځيني د نجارت سره ملوث وي او دا فرق او اختلاف د هغه بنيادي مادې په وجه دى چي د هغه څخه د حضرت آدم عليه السلام تخليق سوى دى .

﴿۹۳﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ إِنَّ اللّٰهَ خَلَقَ خَلْقَهُ فِيْ ظُلْمَةٍ فَأَلْقٰى عَلَيْهِمْ مِنْ نُوْرِهٖ فَمَنْ أَصَابَهُ مِنْ ذٰلِكَ النُّوْرِ اهْتَدٰى وَمَنْ أَخْطَأَهُ ضَلَّ فَلِذٰلِكَ أَقُوْلُ جَفَّ الْقَلَمُ عَلٰى عِلْمِ اللّٰهِ . رواه أحمد والترمذي

حضرت عبد الله بن عمرو رضي الله عنه فرمايي چي ما د رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه اوريدلي دي الله تعالى خپل مخلوق په تياره كي پيدا كړ او بيا يي خپل نور ور باندي و غورځوی، پر چا چي هغه نور پريوت نو د هغه د هدايت لار په برخه سوه او چا ته چي نور نه ورسيد هغه ګمراه سو ، په دي اړه زه وايم چي قلم د خداى په حكم وچ سو .احمد او ترمذي.

**تشريح** : د تيارې څخه مراد د نفس اماره تياره ده دى چي د انسان په طبيعت كي د نفساني خواهشاتو او غفلت ماده اېښودل سوې ده ، د چا زړه او دماغ چي د ايمان او احسان په رڼا سره منور سو او هغه په طاعت الهي سره د الله تعالى د ذات عرفان تر لاسه كړ نو هغه د نفس اماره د مكر او فريب او د هغه د تيارو څخه ووتى او د خداپرستى او نيک كارى ګلزار ته راغلى او څوک چي د نفس په مكر او فريب كي په لوېدو سره د اطاعت الهي د نور څخه محروم سو نو هغه په ګمراهي كي پاته سو .

﴿۹۴﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُكْثِرُ أَنْ يَقُوْلَ يَا مُقَلِّبَ الْقُلُوْبِ ثَبِّتْ قَلْبِيْ عَلٰى دِيْنِكَ فَقُلْتُ يَا نَبِيَّ اللّٰهِ آمَنَّا بِكَ وَبِمَا جِئْتَ بِهٖ فَهَلْ تَخَافُ عَلَيْنَا ؟ قَالَ

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله صلى الله عليه وسلم به زيات وخت دا دعاء كول : اې د زړونو ګرځونكي خدايه! زما زړه پر خپل دين قائم ولرې ، ما (يوځل) عرض وكړ اې د الله رسوله ! موږ پر تا ايمان راوړى

نَعَمْ إِنَّ الْقُلُوْبَ بَيْنَ أِصْبَعَيْنِ مِنْ أَصَابِعِ اللهِ يُقَلِّبُهَا كَيْفَ يَشَاءُ . رواه الترمذي وابن ماجه .

دی او کوم احکام چې تا سو راوړی دي په هغه مو هم ایمان دی نو ایا په داسي حالت کي هم زموږ په معامله کي بیریږئ؟ رسول الله ﷺ وفرمایل :(د بندګانو) زړونه د الله د دوو ګوتو په قبضه کي دي څنګه چې هغه غواړي حرکت کي یې ژاولي ترمذي او ابن ماجه

**تشریح** : د حضرت انس ﷺ د وینا مطلب دادی چې رسول الله ﷺ خو بالکل معصوم او خوندي دی ، نعوذبالله د يو ګمراهۍ سایه هم په رسول الله ﷺ کي نسي راتلای، ظاهره ده چې دا دعاء رسول الله ﷺ زموږ لپاره کوي چې موږ د دنیا په په ځلا کي په لوېدو سره د خپل دین او ایمان څخه ګمراه نه سو ، نو ایا تاسو په داسي شکل کي چې رسول الله ﷺ زموږ په منځ کي موجود دی او مو ږ د رسول الله ﷺ د رسالت او د هغه د راوړل سوي شریعت د صداقت عقیده لرو او زموږ زړونه د ایمان او ایقان حقیقي په کیفیت سره سمسور دي زموږ د ګمراه کېدو څه بیره کېدای سي ، پر دې باندي رسول الله ﷺ جواب ورکړ چې د زړونو رُخ د الله تعالی په لاس کي دی هغه چې څنګه غواړي هغه ګرځوي، معلومه نه ده چې د چا زړه کله د ګمراهۍ طرف ته سي ځکه نو دعاء غوښتل پکار ده چې الله تعالی مو زړه همیشه د سلامتۍ پر لار کړي او د ګمراهۍ په لور یې وا نهړوي .

﴿۹۵﴾: وَعَنْ أَبِيْ مُوْسٰى قَالَ قَالَ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَثَلُ الْقَلْبِ كَرِيْشَةٍ بِأَرْضٍ فَلَاةٍ يُقَلِّبُهَا الرِّيْحُ ظَهْرًا لِبَطْنٍ . رواه أحمد .

د حضرت ابوموسی ﷺ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل : زړه د بڼکي په شان دی چې په آوار میدان کي پرته ده او هواګاني یې آخوا دېخوا اړوي ژا اړوي . احمد

**تشریح** : همداسي د زړونو حال دی چې کله هغه د بدۍ څخه د نیکۍ طرف ته رخ کوي او کله د نیکۍ څخه د بدۍ پر لار ځي .

﴿۹۶﴾: وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ قَالَ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يُؤْمِنُ عَبْدٌ حَتّٰى يُؤْمِنُ بِأَرْبَعٍ يَشْهَدُ أَنْ لَّا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَأَنِّيْ رَسُوْلُ اللهِ بَعَثَنِيْ بِالْحَقِّ وَيُؤْمِنُ بِالْمَوْتِ وَالْبَعْثِ بَعْدَ الْمَوْتِ وَيُؤْمِنُ بِالْقَدْرِ . رواه الترمذي وابن ماجه .

د حضرت علي ﷺ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل : بنده تر هغه وخته مؤمن کیدلای نه سي تر څو چې په دې څلورو خبرو یقین ونه لري : ۱- د دې شاهدي ورکول چې د الله څخه پرته بل د عبادت وړ نسته او زه (محمد ﷺ) د الله رسول یم زه الله په حقه رالیږلی یم ۲- مرګ حق وګڼي ۳- د مرګ څخه وروسته بیرته ژوندي کیدل حق وګڼي

۴- او په تقدير باندي ايمان ولري .ترمذي، ابن ماجه.

**تشريح** : پر مرګ باندي د ايمان راوړلو مطلب دادی چي دا خبره يقيني وګڼي چي ددې دنيا ټول ژوند عارضي او فاني دی چي پر خپل وخت به ختم سي او په دې دنيا کي چي څه دي هغه ټول به يوه ورځ فنا سي ، يا ددې څخه دا مراد دی چي په دې خبره د زړه په صدق سره يقين او عقيده وکړل سي چي د مرګ يوه ورځ ټاکلې ده او هغه د الله تعالی په حکم سره راځي ، هيڅ يو ناروغي ، پېښنه يا تکليف وغيره د مرګ حقيقي سبب نه دی بلکه دا شيان ظاهري اسباب دي ، د يو انسان ژوند او مرګ پوره پوره د الله تعالی په لاس کي دی هر کله چي د هغه حکم وسي نو ژوند او کله چي غواړي په مرګ ليږلو سره ژوند ختم کړي .

﴿۹۷﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صِنْفَانِ مِنْ أُمَّتِيْ لَيْسَ لَهُمَا فِيْ الإِسْلَامِ نَصِيْبٌ اَلْمُرْجِئَةُ وَالْقَدَرِيَّةُ . رواه الترمذي وقال هذا حديث غريب

د حضرت ابن عباس ﷛ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : زما په امت کي دوې ډلي داسي دي چي د هغوئ به په اسلام کي هيڅ برخه نه وي: مرجيه او قدريه ، ترمذي وايي دا حديث غريب دی.

**تشريح** : په اسلام کي يوه ډله په مرجيه نامه سره مشهوره ده ، دا ډله د اعمالو په اړه د اسبابو قائل نه ده بلکه دوئ وايي چي د يو عمل او فعل نسبت بنده ته داسي دی لکه د يو فعل نسبت چي جمادات ته وکړل سي يعني څرنګه چي يو لرګی او ډبره جماد دی چي هغه کومي خوا ته وغورځول سي نو هغه ته په دې غورځولو کي هيڅ دخل او اختيار نسته بلکه هغه د غورځونکي په قبضه او قدرت کي دي ، همداسي يو بنده دی چي هغه ته په خپل هيڅ عمل او فعل کي داخل او اختيار نسته بلکه هغه مجبور محض او بې اختياره دی ، قدرت چي د هغه څخه کوم عمل صادروي هغه کوي هغه نه د يو عمل په خپله کولو باندي قادر دی او نه د يو عمل څخه منعه کېدل د هغه په اختيار کي دي، ددې مقابل دوهمه ډله قدريه ده چي د تقدير څخه بالکل منکر دي، ددې ډلي مسلک دادی چي د بنده په عملونو کي د تقدير الهي هيڅ دخل نسته بلکه بنده خپله د خپل اعمالو خالق او په خپل اعمال کي مختار او قادر دی هغه چي څه عمل کوي د خپل قدرت او اختيار په وجه يې کوي او دا مسلک د معتزله او روافض هم دی .

دا دواړي ډلي د اسلامي نقطه نظر څخه په خپل خپل مسلک کي د اعتدال دلاري څخه ليري سوي دي ، که چيري د مرجيه عقيدې ومنل سي نو د هغه مطلب به دا وي چي هر کله د بنده څخه د اختيار او قدرت او اراده او مشيت نفي کولو سره هغه د خښتي، ډبري او لرګي او

غیراراده مخلوق په ډول ومنل سي او د بنده په هر کار کي اختیار او قدرت کلیه د الله تعالی ومنل سي یا په څرګنده الفاظو دا وویل سي لکه صفات فاعل چي مخته په اېښودو سره د صفات عبد څخه انکار وکړل سي نو په قدرتي توګه سره دا خبره منل پکارېږي چي د بنده څخه سوي کارونو ته به خپله د بنده کارونه نسي ویل کیدلای بلکه هغه ته به د الله تعالی کارونه ویل کیږي که څه هم هغه کار هر ډول وي او د کوم اندام څخه چي صادر سوی وي ، هر کله چي بنده یېویني نو ویل کیږي به چي هغه نه ویني بلکه الله تعالیویني ، هر کله چي بنده خوراک کوي نو منل به پکار وي چي هغه یې نه خوري بلکه الله تعالی یې خوري ، هر کله چي بنده اوري نو تسلیم کول به پکار وي چي هغه یې نه اوري بلکه الله تعالی یې اوري ، کله چي بنده بیده کیږي نو داسي به ویل پکار وي چي هغه خوب نه کوي بلکه الله تعالی خوب کوي ، یعني د بنده څخه به هیڅ کار نه صادر کیږي، نو دا به ویل وي چي هغه د بنده څخه نه دي بلکه په حقیقت کي د الله تعالی څخه صادرېږي ، دا ټول د وجود آثار دي چي د هغه څخه د غافل د موجود کېدو معلومات کیږي ، نو خلاصه دا سوه چي بنده که څه هم موجود دی مګر په حقیقت کي د هغه هیڅ وجود نسته بلکه هغه د خالق او افعالو په منځ کي یوه داسي ذریعه ده چي د هغه افعالو د اظهار لپاره واسط جوړېږي بلکه موجود خو یوازي د الله تعالی ذات دی کنه نو ټول کالعدم دي .

دا ټول دلیلونه د وحدت الوجود او کثرت موجودات پر نفي ختمیږي چي ځینو جاهلو صوفیانو په اصطلاح کي همه اوست ورته وایې چي د هغه حاصل د کثرت موجودات او اعیان ثابت څخه په ډاګه انکار او د ټولو کثرتونو یوه فرضي او وقتي کارخانه تصور کول راوځي او ثابتیږي چي په دغه کائناتو کي هر شی په موجود کېدو سره کالعدم او معدوم دی ، موجود یوازي ذات واحد دی بل هیڅوک نسته ددې نتیجه په اصطلاحي الفاظو کي دادي چي په دائره وجود کي د وجود یوازي یو نوع پاته سي چي هغه ته واجب الوجوب وایي او د ممکن الوجود هیڅ نښه پاته نسي بلکه هغه د همیشه لپاره په معدوم محض کېدو سره پاته سي ، اوس ښکاره ده چي الله تعالی ایجاد یا فیضان وجود چي هغه ته تخلیق وایي پر ممکن باندي کیدای سي ځکه چي په هغه کي د قبول وجود صلاحیت دی مګر هغه معنًا معدوم محض سوی دی چي پر هغه آثار وجود او د ژوند آثار نسي څرګندیدلای نو اوس ایجاد پر چا واقع سي او تخلیق د کوم شي په عمل کي راسي او د ایجاد څخه وروسته بقاء خداوندي یعني تدبیر او تصرف او ربوبیت وغیره داسي هغه ټول حق صفتونه چي د هغه تعلق د مخلوق سره وو پر چا واقع کیږي او چیري به

خپل تجلیات ښیي هر کله چي د ذات خداوندي څخه پرته د بل چا معلومات نسته چي هغه د دغه صفاتو مورد او مظهر جوړ سي نو په دې شکل منل پکار دي چي د ایجاد او بقاء ټول صفتونه معاذالله معطل او بیکاره ثابت سوي دي او تعطل که عدم نه دی نو کالعدم ضروري دی، په نورو الفاظو کي د افعال باري عدم دی چي انتهائي نقص دی .

او هر کله چي دا ټول فعلي کمالات د صفاتو وجود آثار وه چي ذات حق څخه منتفي سول نو بلا شبه وجود خداوندي د هغه نفي سره ناقص وګرځیدی او د الله تعالی بې عیب ذات څومره کمالات مثلاً ظهور صفات او افعال څخه خالي پاته سو چي په هغه د معبودیت کارخانه قائمه وه او ظاهره ده چي نفس صفات او نقص افعال سره خدای جمع کیدای نسي نو داسي ناقص ذات ته خدای نسي ویل کیدلای ، نیتجه دا سوه چي نه خالق پاته سو او نه مخلوق پاته سو .

فکر وکړئ چي د مرجیه ډلي نظریات بنده مجبور محض او بې اختیاره تصور کړ او د هغه د ټولو کارونو او عملونو ذمه داري د تقدیر الٰهي پر سر واچول نتیجه دا راووتل چي هغوئ د بنده د اختیار ، قدرت او اراده مشیت فعل او عمل په دغه درجه کي مستقل او آزاد وښووی چي په هغه کي د الله تعالی اراده ، قدرت او اختیار ته هیڅ دخل نسته حتی چي ځیني عالیه قدریه خو تر دې پوري وايي چي الله ته د بنده د افعالو علم هغه وخت کیږي هر کله چي بنده هغه وکړي لکه د بنده د استعمال اختیار چي تر حد پوري په الله تعالی کي اراده سته نه قدرت ته اختیار دی نه مشیت حتی چي نه سابق علم سته او نه خبر .

نو مرجیه خو تقدیر مثلاً صفات خالق، اراده علم او قدرت اختیار وغیره د الله تعالی سره وابسته کولو سره بنده یې د هغه څخه خالي کړ او قدریه هغه صفات د بنده سره مستقلا وابسته کولو سره الله تعالی یې د هغه څخه خالي ومنی ، فکر وکړئ ددې نتیجه هم هغه (نعوذبالله) عدم محض تعطل خالص او د خدای په ذات کي سخت نقصان او د هغه په صفات کي کوتاهي راووتل ځکه چي دومره خبره خو ښکاره ده چي بنده په یوه دقیقه کي په سوونو ښه او بد عملونو او حرکاتو د مختلف انداز څخه تیریږي او د ټول عمر د دغه کارونو او عملونو شمیر خو ناممکن دی بیا د انساني تصرفات حدورو تر دې عالم پوري نه دی ځکه چي ځیني داسي متعدي افعال هم دي چي په هغه کي انسان نور اشیاء کائنات مفعول جوړوي ، ظاهره ده چي هغه شیان په عالم کي چي د هغه په تسخیر او تصرف کي راځي د ځمکي څخه تر آسمان پوري ټول مخلوق داخل دي .

نو د ټولو انسانانو دا ټول کارونه چي په ټول عالمونو کي خپاره سوي دي او دقدريه په قول دا د انسانانو داسي مخلوقات دي چي د هغه ايجاد او تخليق کي د الله تعالى داخل به څه وي چي د هغه څخه د هغه زور چليږي او نه هغه ته د هغه د پيدا کېدو څخه مخکي د هغه علم وي يعني انسان په خپله خپل تخليق کي بې بسه دى هغه ته خو د هغه د تخليق د ارادې کولو وخت علم کيږي چي هغه ته څه او کله پيدا کول دي خو نعوذبالله ، الله دومره ناخبره او لاعلم چي هغه د دغه څخه هم خبر نه وي چي کوم شى کله پيدا سو او کوم کار کله صادر سو .

په دې صورت کي يقينا د انسان د تخليقاتو شمير به د الله تعالى د مخلوقاتو د شمير څخه زيات سي ځکه چي الله تعالى خو د انسان خالق دى او انسان د ټولو کارونو او شيانو خالق دى او ظاهره ده چي د انسان نسبت سره د هغوئ افعال بلا شبه په کرړونو زيات وي ځکه هيڅ وجه نسته چي انساني مخلوقات د الله تعالى د مخلوقاتو څخه زيات نسي او بيا مخلوقات هم داسي چي د خدائي سرحد څخه بالکل وتلي چي پر هغه د هغه هيڅ وس نه وي بلکه علم قديم هم نه وي نو په دې معامله کي ويل پکار وي چي الله تعالى خو بې وسه سو او انسان مختار کل سو ، بنده خو په خدايي حدود کي راغلى او خداي د بندګانو په صف کي راغلى يعني د بنده زور خو د خداي پر خدايي وچليدى چي هغه د افعالو او شيانو تخليقات وکړل او د خداي وس خپل خدائي باندي هم پاته نه سو چي هغه ته د هغه مخلوقاتو په وجود کي دراتلو علم هم ونه سو او دې مقام ته په راتلو سره د هغه اراده، قدرت ، مشيت او اختيار وغيره ټول بيکاره او معطل کېدو سره پاته سوه، (ماخوذ از مسئله تقدير ، مصنف حکيم الاسلام مولانا محمد طيب مدظله ) .

ددغه دواړو ډلو مسلک حقيقت او ددې انجام ظاهر دى چي دغه دواړي نظريې پر خپل خپل ځاى د اسلامي نقطه نظر څخه نه يوازي دا چي د اعتدال څخه ليري سوي دي بلکه د ګمراهى په لور وړاندي سوي هم دي چي د هغه نتيجه د خداى ﷻ د عذاب او د آخرت د تاوان څخه پرته نور هيڅ نه دي، د دغه دواړو ډلو په مقابله کي د اهل سنت والجماعة مسلک بالکل صاف او صحيح دى ، علماء د حق وايي چي د ټولو کارونو او عملونو خالق الله تعالى دى ، د نورو ټولو بنده دى يعني په دنيا کي چي څومره شيان واقع کيږي يا کيدونکي دي هغه ټول د الله تعالى په حکم او د هغه په اراده او علم سره کيږي همداسي بندګانو څخه چي کوم کارونه کيږي که هغه نيک کارونه وي او که بد ټول د تقدير سره سم پر خپل وخت واقع کيږي مګر بنده ته د

عقل او پوهي او فهم او په نیک او بد کي د امتیاز پیدا کولو صلاحیت ورکولو سره د هغه په وړاندي دواړي لاري څرګنده سوي دي او ورسره یې دا اعلان هم وکړ که چیري د نیکۍ لار اختیار کړي نو د عذاب خداوندي څخه به خلاصون تر لاسه کړي او که د بدۍ او شر لار اختیار کړي نو د الله تعالی په عذاب کي به ونیول سي ، نو بنده د اسباب او کسب د اعتبار څخه په خپل هر عمل او کار کي مختار دی یعني اهل سنت والجماعت بنده ته په یو وخت کي مختار هم وایي او مجبور هم، مګر په دې درمیانه انداز سره چي هغه نه مختار مطلق ګڼي او نه مجبور محض، یعني یوې خوا ته هغه په مختار منلو سره د تقدیر په زنځیر سره تړلی هم ورته وایي او بلي خوا ته هغه ته په مجبور ویلو سره د خبنتي، ډبري او لرګي په ډول بې حس یې هم نه تسلیموي .

په هر حال ددغه حدیث شریف څخه په ډاګه معلومیږي چي دغه دواړي ډلي مرجیه او قدریه کافر دي یعني د حضرت شیخ عبدالحق محدث دهلوي (رح) د تحقیق سره سم د علماؤ قول مختار دادی چي دا دواړي ډلي کافر نه دي البته فاسق دي ځکه چي دا ډلي هم قرآن او حدیث څخه تمسک کوي او په خپل نظریاتو کي تاویل او په توضیح کولو سره د کفر د دائرې څخه خپل ځان ساتي ، نو ددغه حدیث په اړه به ویل کیږي چي ددې څخه ددغه ډلو زجر او ملامتیا مقصد دی او د هغوئ د غلطو عقائدو ګمراهي واضحه کول دي چي په هغه کي دومره شدت او سختي سره د هغوئ د مذهب رد کیږي ، ځیني حضراتو ددغه حدیث په صحت کي هم کلام کړی دی .

د حضرت شاه اسحاق رحمه الله تحقیق ددې خلاف دی هغه فرمائي چي محققین علماء ددغه ډلو د کفر حکم کوي او د اسلام څخه خارج یې ګڼي مګر په دې کي اختلاف دی چي د هغوئ کفر تاویلي دی او که ارتدادي دی .

﴿۹۸﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ يَكُوْنُ فِيْ أُمَّتِيْ خَسْفٌ وَمَسْخٌ وَذٰلِكَ فِي الْمُكَذِّبِيْنَ بِالْقَدْرِ . رواه أبو داود وروى الترمذي نحوه .

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روایت دی چي ما درسول الله ﷺ څخه واوریدل : زما په امت کي به خسف (په مځکه کي ژوندي ښخېدل) او مسخ (شکل بدلیدل) دواړه وي او په دې کي به هغه خلک اخته وي چي د تقدیر څخه انکار کوي ، ابوداؤد او ترمذي هم دا ډول روایت بیان کړی دی .

**تشریح** : په مځکه کي غرقېدل او د شکلونو مسخ کېدل د الله تعالی د لوري ډېر سخت عذاب دی چي ددې امت څخه مخکي پر نورو امتونو باندي د هغوئ د سرکښۍ او د حد څخه د زیاتۍ

او نافرمانئ په وجه سوی وو، په دې امت کي هم په اخره زمانه کي د الله تعالی څخه چي سرکښئ او نافرمانئ د حد څخه زیاته سي نو پرهغه ډلو باندي هم دا عذاب راتلای سي مګر ځيني حضرات وايي چي ددې حدیث مطلب دادی که د مسخ او خسق په ډول درناک عذاب زما پر امت راسي نو پر دغه دوو ډلو به وي.

﴿۹۹﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلْقَدَرِيَّةُ مَجُوْسُ هٰذِهِ الأُمَّةِ إِنْ مَرِضُوْا فَلاَ تَعُوْدُوْهُمْ وَإِنْ مَاتُوْا فَلاَ تَشْهَدُوْهُمْ. رواه أحمد وأبو داود.

د حضرت ابن عمر ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: قدریه ډله د امت مجوس دي که هغوئ ناروغ وي نو پوښتني ته مه ورځئ او که مړه سي نو جنازه يې مه کوئ. احمد او ابوداؤد.

**تشریح**: ددغه حدیث شریف څخه د قدریه ډلي څرګنده ګمراهي او د هغوئ ضلالت واضح دی چي هغوئ ددغه امت مجوسیان وګرځول سول، مجوسیان د اور عبادت کونکي قوم دی چي دوه خدایان مني، یو هغه خدای چي نیکي او خیر پیدا کونکی دی هغه ته یزدان وایي او دوهم هغه خدای چي بدي او شر پیدا کونکی دی هغه ته اهرمن یعني شیطان وایي.

څرنګه چي مجوسیان د ډیرو خدایانو قائل دي همداسي قدریه هم د ډیرو خالقانو قائل دي ځکه چي د هغوئ په نزد هر بنده د خپل افعالو خالق دی همداسي ځومره بندګان چي وي هغومره خالق به هم وي او څرنګه چي قدریه خلق خیر جدا او خالق شر جدا مني همداسي قدریه هم وایي چي د خیر او نیکئ پیدا کونکی خو الله تعالی دی او د شر او بدئ پیدا کونکی شیطان او انساني نفس دی.

ددغه حدیث څخه معلومه سوه چي مسلمانانو ته ددغه ډلي څخه کلیة اجتناب کول ضروري دی که هغوئ ناروغ سي نو پوښتني ته ورتلل نه دي پکار، که مړه سي نو په جنازه کي يې ګډون نه دی پکار، په غم او خوشحالي کي د هغوئ سره ګډون نه دی پکار او نه د هغوئ سره د یو ډول ټولنیز تعلق ساتل جائز دی.

کوم حضرات چي دا ډله د کافرانو په ډله کي داخلوي او دغه حدیث پر خپل ظاهري معنا باندي محمول کوي یعني مسلمانان د دوئ سره د تعلق ساتلو څخه منعه کوي.

او کوم حضرات چي هغوئ ته کافران نه وایي بلکه فاسق ورته وایي هغوئ ددې حدیث تاویل دا کوي چي ددې حدیث مقصد ددغه ډلي ګمراهي او ضلالت بیانول او زجر او ملامتیا کي د شدت اظهار کول دی. مګر حضرت شاه محمد اسحاق دهلوي (رح) فرمائي چي د محققینو

قول دادی چي نه دی د هغوئ په ناروغۍ کي پوښتنه کوي او نه دی په جنازه کي ګډون کوي او تر څو پوري چي کیدای سي د هغوئ سره دي تعلق قطع کړي.

﴿۱۰۰﴾ : وَعَنْ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لاَ تُجَالِسُوْا أَهْلَ الْقَدَرِ وَلاَ تُفَاتِحُوْهُمْ رواه أبو داود .

د حضرت ابن عمر رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: د قدریه ډلي خلګو سره مه کښیني او مه د هغوئ څخه محاکمه غواړئ. ابوداؤد.

**تشریح** : د قدریه ډلي سره ناسته ولاړه د هغوئ سره مجلس کول او کښېنستل منعه ګرځول سوي دي ، د هغوئ سره د ناستي ولاړي او په مجلس کي د ګډون څخه دا څرګندیږي چي د هغوئ سره مینه ده او دا مسلمانانو ته مناسب نه ده چي د یو ګمراه ډلي سره تعلق قائم کړي او د هغوئ سره د میني چلن وکړي، ځکه که چیري د هغوئ ناسته ولاړه او تعلق قائم کړل سي نو د هغوئ د غلطو نظریات او ګمراه عقیدو اثر به د هغوئ سره پر ناستو خلکو هم ولویږي او د هغوئ ګمراهي به د اهل مجلس پر عقیدو او عملونو هم نظر انداز کیږي او کیدای سي چي شیطاني مکر او فریب کي په راتلو سره د هغوئ عقیدې تسلیم کړي ځکه نو په بنیادي توګه سره د هغوئ د مجلس او میني څخه منعه فرمایل سوې ده.

همدارنګه د حدیث څخه دا هم څرګنده سوه چي مسلمانانو ته پکار ده چي هغوئ په خپل تنازع کي د قدریه ډله خپل حاکم جوړ نه کړي او نه هغوئ دخپل دریم په توګه وټاکي ، د (لاتفاحوهم) معنا ځیني حضرات دا هم بیانوي چي ددې مطلب دادی چي دغه خلکو ته وړاندي سلام مه ادا کوئ او نه په خپله د هغوئ سره خبري اتري پیل کوئ . والله اعلم .

﴿۱۰۱﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قَالَ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سِتَّةٌ لَعَنْتُهُمْ وَلَعَنَهُمُ اللهُ وَكُلُّ نَبِيٍّ يُجَابُ الزَّائِدُ فِيْ كِتَابِ اللهِ وَالْمُكَذِّبُ بِقَدَرِ اللهِ وَالْمُتَسَلِّطُ بِالْجَبَرُوْتِ لِيُعِزَّ مَنْ أَذَلَّهُ اللهُ وَيُذِلَّ مَنْ أَعَزَّهُ اللهُ وَالْمُسْتَحِلُّ لِحَرَمِ اللهِ وَالْمُسْتَحِلُّ مِنْ عِتْرَتِيْ مَا حَرَّمَ اللهُ وَالتَّارِكُ لِسُنَّتِيْ . رواه البيهقي في المدخل وَرَزِيْنٌ في كتابه .

د حضرت عائشي رض څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : شپږ ډوله خلك دي چي زه پر هغوئ لعنت وایم او خدای هم لعنت پر کوي او د هر نبي دعاء قبلیږي : ۱- هغه خلك چي د خدای په کتاب کي زیاتوالی کوي ۲- د خدای تقدیر درواغجن ګڼي ۳- په زور غلبه حاصلونکی چي هغه سړي ته عزت ورکړي کوم چي خدای ذلیل کړی وي او هغه چا ته ذلت ورکړی کوم چي خدای ﷻ عزت مند کړی وي ۴- د الله حرام حلالونکی (یعني حرم مکه کي چي کومي خبري

خدای منعه کړي دي هغه حلال وګڼي، ۵- زما د اولاد په اړه هغه شی حلال ګڼونکی کوم چي الله حرام کړی دی ۶- او چا چي زما سنت پرې ایښي وي. بیهقي په مدخل کي او رزین په خپل کتاب کي.

**تشریح** : په حدیث کي چي د کوم سړي یادونه سوې ده هغه د خپل غلط عقیدې او ګمراه کونکي عملونو په وجه د شریعت په نظر کي دومره مجرم دی چي رسول الله ﷺ پر هغه لعنت ویلی دی او نه یوازي دا چي رسول الله ﷺ پر هغه لعنت ویلی دی بلکه د هغه د دربار څخه هم شړل سوی دی، یو سړي د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وکړه چي تاسو پر دغه خلکو لعنت ولي وایاست؟ رسول الله ﷺ دا جواب ورکړ چي الله تعالی هغوئ د خپل غلط عملونو په وجه لعنتي ګرځولي دي ځکه هغوئ ددې وړ دي چي رسول هم هغوئ لعنتي وګرځوي او ظاهره ده چي پر چا رسول الله ﷺ لعنت ووایي نو د هغه دنیا هم برباد سوه او دین یې هم برباد سو، همداسي د (کل نبي یجاب) په فرمایلو سره اشاره سوې ده. هسي خو په دغه حدیث کي چي په کوم ترتیب دا جمله معترضه واقع کیږي او ددې مقصد په لعنت کي شدت دی.

۱. لومړی سړی چي هغه لعنتي ګرځول سوی دی هغه په قرآن کریم کي زیاتي کونکی دی که هغه په قرآن کریم کي د الفاظو زیاتي وکړي یا د قرآن کریم د آیاتو داسي معنا بیان کړي چي د کتاب الله د مفهوم خلاف او د منشا الهي برعکس وي.

۲. دوهم هغه سړی چي تقدیر الهي درواغ ګڼي ځکه چي د تقدیر عقیده لرل د وجود ایمان لپاره ضروري دی ځکه کوم سړی چي د تقدیر څخه انکار کوي هغه د لعنت مستحق دی.

۳. هغه سړی دی چي په زور سره غلبه تر لاسه کړي او د خپل ظاهري شان او شوکت په ذریعه هغه خلک معزز کړي چي د الله تعالی په نظر کي ذلیل دي او هغه خلک ذلیل کړي چي د الله تعالی په نزد د لوی مرتبې والا وي او ددغه دریم سړي څخه مراد داسي پاچاهان او ظالمان حاکمان دي چي د خپل مقصد په وجه د حکومت او دولت په نشه کي د الله تعالی هغه صالح او نیک بندګان او مسلمانان ذلیل کوي چي د الله تعالی په نزد د لوی عزت او عظمت خاوندان وي او داسي کافران، جاهلان او بدکار خلک عزیز کوي چي د الله تعالی په نظر کي سخت ذلیل وي.

۴. څلورم سړی هغه دی چي د الله تعالی د قائم کړي حدودو څخه تجاوز کوي یعني هغه شیان حلال ګڼي چي د الله تعالی د لوري حرام کړل سوي دي مثلا په بیت الله شریف کي چي کومي خبري الله تعالی منعه کړي دي لکه د حیوانانو ښکار کول، درختي وغیره پرېکول،

پرته د احرام ځخه مکې ته داخلیدل او هغه دا شیان حلال ګڼي یا داسي د رسول الله ﷺ د اولاد په باره کي چي کوم شیان حرام کړي دي هغه حلال ګڼي یعني د رسول الله ﷺ د اولاد عزت او تعظیم کول ضروري دی مګر یو سړی یې نه کول جائز ګڼي یا هغوئ ته تکلیف رسول حرام ګرځول سوي دي مګر یو سړی هغوئ ته تکلیف رسول حلال ګڼي نو پر ده هم لعنت ویل سوی دی . یا ددې مطلب دادی چي کوم سړی زما د اولاد ځخه د کېدو سربیره دا کارونه حلال ګڼي کوم چي الله تعالی حرام کړي دي ، همداسي ددې مقصد سیدانو ته تنبیه ورکول دي چي دا خلک د رسول الله ﷺ د کورنۍ ځخه د کېدو په سبب د ګناه او معصیت ځخه ځان نه ساتي ځکه چي د نورو قومونو په مقابله کي ددغه قوم ګناه او معصیت د زیاتي بربادۍ باعث دی ځکه چي د هغوئ نسبتي تعلق د رسول الله ﷺ سره دی .

۵. پنځم لعنتي سړی هغه سړی ګرځول سوی دی چي هغه شیان حرام ګڼي کوم چي الله تعالی حلال کړي دي .

۶. شپږم لعنتي هغه سړی ګرځول سوی دی چي نبوي سنت پرېږدي ، ددې مسئله داده چي کوم سړی د سستۍ په وجه سنت پرېږدي هغه ګناه کار دی او د کوم سړی چي سنت نعوذبالله د اعتبار وړ نه ګڼلو سره پرېږدي نو هغه کافر دی مګر په دغه لعنت کي دواړه شریک دی ، مګر دا به ویل کیږي چي کوم سړی د سستۍ په وجه سنت پرېږدي پر هغه لعنت کول د زجر او توبیخ لپاره دي او کوم سړی چي یې د اعتبار وړ نه ګڼلو سره پرېږدي پر هغه به حقیقتا لعنت وي ، هو که یو سړی په یو وجه یو وخت سنت پرېږدي نو پر هغه به ګناه نه وي مګر دا هم مناسب نه دي ، حضرت شاه محمد اسحاق دهلوي (رح) فرمائي چي دغه سزا د سنت مؤکده پر پرېښودلو باندي دی .

﴿۱۰۲﴾: وَعَنْ مَطَرِ بْنِ عُكَامِسٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا قَضَى اللهُ لِعَبْدٍ أَنْ يَمُوْتَ بِأَرْضٍ جَعَلَ لَهُ إِلَيْهَا حَاجَةً . رواه أحمد والترمذي .

د حضرت مطر[۱] ؓ ځخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : هر کله چي الله د یو چا مرګ په یو هیواد کي تاکلی وي نو د هغه هیواد په لوري د هغه حاجت هم پیدا کړي او هلته د مرګ ښکار سي . احمد او ترمذي ،

[۱] د مطربن عکامس اسلمي شمیر د کوفیانو ځخه کیږي ، ددې ځخه یوازي دغه یو حدیث نقل دی ، دده په صحابي کېدو کي اختلاف دی .

﴿۱۰۳﴾ : وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ : قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللهِ ذَرَارِيُّ الْمُؤْمِنِيْنَ ؟ قَالَ مِنْ آبَائِهِمْ . فَقُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللهِ بِلاَ عَمَلٍ ؟ قَالَ اللهُ أَعْلَمُ بِمَا كَانُوْا عَامِلِيْنَ . قُلْتُ فَذَرَارِيُّ الْمُشْرِكِيْنَ ؟ قَالَ مِنْ آبَائِهِمْ . قُلْتُ بِلاَ عَمَلٍ ؟ قَالَ اللهُ أَعْلَمُ بِمَا كَانُوْا عَامِلِيْنَ . رواه أبو داود

د حضرت عائشې رض څخه روايت دی چي (يوځل) ما د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وکړه چي اې دالله رسوله ! د مؤمنانو د ماشومانو څه حکم دی ، نبي کريم ﷺ وفرمايل : هغوئ د خپلو پلرو تابع دي . ما عرض وکړ اې دالله رسوله ! د عمل څخه پرته ؟ رسول الله ﷺ وفرمايل : الله ډير ښه پوهيږي چي دغه ماشومانو به څه کول ، بيا ما عرض وکړ : د مشرکانو د ماشومانو څه حکم دی ؟ رسول الله ﷺ وفرمايل : هغوئ هم د خپلو پلرو تابع دي ما عرض وکړ : د عمل څخه پرته ؟ رسول الله ﷺ وفرمايل : الله ښه پوهيږي چي هغوئ به څه کول .

**تشريح** : د بي بي عائشې رضي الله عنها مقصد د هغه مؤمنانو او مشرکانو د ماشومانو په اړه معلومول وو چي په کم عمرۍ کي ددې دنيا څخه سفر کړی وو او د هغوئ څخه د خير يا شر يو عمل صادر سوی نه وو .

د رسول الله ﷺ د جواب څخه وروسته بي بي عائشې ته تعجب وسو چي د مسلمانانو ماشومان به د يو عمل څخه پرته په جنت کي څنګه داخل سي پر دې باندي رسول الله ﷺ په (الله ښه پوهيږي چي هغوئ به څه عمل کوئ) ويلو سره دقضاء او تقدير طرف ته اشاره وفرمايل چي هغوئ به څه عمل کونکی وه هغه د تقدير په ليکنه کي محفوظ سوي دي که څه هم هغه وخت بالفعل د هغوئ څخه عمل نه صادر کيږي مګر کوم عمل چي به هغوئ د ژوند په حالت کي کوی هغه به د الله تعالی په علم کي وي ځکه د هغوئ پر جنتي کېدو باندي تعجب مه کوه .

د مشرکانو د ماشومانو په اړه علامه توربشتي (رح) فرمائي چي دلته د رسول الله ﷺ د جواب مطلب دادی چي هغوئ په دنيا کي د خپلو پلرونو تابع دي ، د آخرت په اړه الله تعالی ته حواله دي ، هغه ښه پوهيږي چي هلته به د هغوئ سره څه چلن کيږي ځکه په دې اړه هيڅ يقيني حکم نسي کيدلای .

﴿۱۰۴﴾ : وَعَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلْوَائِدَةُ وَالْمَوْءُدَةُ فِي النَّارِ . رواه أبو داود والترمذي .

د حضرت ابن مسعود ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : ژوندي (بچي) ښخونکي (ښځه) او هغه چي ښخ کړل سوی وي دواړه به په دوږخ کي وي . ابوداؤد او ترمذي .

**تشريح** : د جاهليت په زمانه كي د ژونديو ماشومانو د دفن كولو دردناكه طريقه جاري وه ، په خاصه توګه د انجونو خو به په پيدا كېدو سره د خاورو لاندي په دردناكه طريقه سره ښخېدلې ، هر كله چي د اسلام مقدسې رڼا د ظلم او جهل ټولي تيارې ليري كړې نو دا غير انساني طريقه هم ختمه كړل سوه ، په دې باره كي دا حديث شريف سزا ده او د ژوندي ماشومانو دفن كونكي دوزخيان ګرځوي .

د (الوائدة) څخه مراد هغه ښځه ده چي ماشوم په مځكه كي ښخ كړي مثلا دائي ، مزدوره وغيره .

د (موؤدة) څخه مراد هغه ښځه ده چي د هغې څخه هغه ماشوم پيدا سوى وي د هغه ماشوم مور چي د هغې په حكم سره د هغې ماشوم په مځكه كي دفن كړى وي .

يا ددې څخه مراد هغه ماشوم وو چي دفن كړل سوى وي څرنګه چي د هغه مور اوپلار دوزخي دي همداسي هغه هم چي د كم عمرۍ په حالت كي د دنيا څخه ختم كړل سو نو د خپل پلار په ډول به دوزخي وي څرنګه چي ددې څخه مخكي حديث څخه معلومه سوه چي په كم عمرۍ كوم ماشوم د دنيا څخه ځي هغه د خپل پلار تابع وي .

## الفصل الثالث

﴿۱۰۵﴾:عَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ قَالَ قَالَ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ اللهَ عَزَّ وَجَلَّ فَرَغَ إِلىٰ كُلِّ عَبْدٍ مِّنْ خَلْقِهِ مِنْ خَمْسٍ مِنْ أَجَلِهِ وَعَمَلِهِ وَمَضْجِعِهِ وَأَثَرِهِ وَرِزْقِهِ . رواه أحمد .

د حضرت ابوالدرداء [۱] ﷺ څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل : الله تعالى د هر بنده په اړه د پنځو خبرو څخه فراغت حاصل كړى دى (يعني دا پنځه خبري د هغه په تقدير كي ليكل سوي دي) ۱- د هغه مرګ ۲- د هغه (نيك او بد) عمل ۳- د هغه د هستوګني ځاى ۴- د هغه د ستنېدو ځاى ۵- د هغه رزق. احمد.

**تشريح** : د هر انسان د پيدا كېدو څخه ډېر مخكي په ازل كي د هغه په تقدير كي پنځه شيان ليكل سوي دي چي په هغه كي اوس هيڅ كمي او زياتوب نسي كيدلاى او نه په هغه كي تغير او

---

[۱] د نوموړي نوم عويمر دى مګر په دې كي ډېر اختلاف دى ځينو ويلي دي چي اصل نوم يې عامر ابن مالك دى او عويمر يې لقب دى مګر په خپل كنيت ابودرداء سره مشهور دى ، د حضرت عثمان ﷺ د شهادت څخه دوه كاله مخكي په دمشق كي وفات سوى دى .

تبدیل ممکن دی ، د هر انسان په تقدیر کي دا لیکل سوي دي چي د هغه عمر څومره دی او مرګ به ورته کله راځي او کوم وخت چي د مرګ لیکل سوی وي په هغه کي یوه ثانیه هم تقدیم او تاخیر نسي کیدلای ، همداسي د یو انسان نیک او بد عملونه هم د هغه د پیدا کېدو څخه مخکي په تقدیر کي لیکل سوي دي چي د هغه څخه به څه عملونه صادرېږي څومره نیک عملونه چي لیکلي وي هغه به خامخا ځیني صادرېږي او څومره بد عملونه چي لیکلي وي هغه به هم پر خپل وخت باندي واقع کیږي ، د هر انسان د قیام ځای او د هغه د حرکاتو او سکناتو مقام هم د مخکي څخه ټاکل سوی دی چي پر کومه مځکه به د هغه وجود او قیام وي ، د مځکي پر کومه برخه به د هغه د ژوند عملونه او کارونه صادرېږي ، د انسان رزق هم د هغه د تقدیر سره سم تر لاسه کیږي د چا په مقدر کي چي څومره او د کوم ډول رزق لیکلی وي هغه به خامخا هغه ته رسیږي که لږ رزق لیکلی وي نو لږ او که زیات رزق لیلکی وي نو زیات رزق به په لاس ورځي ، همداسي د چا په مقدر کي چي حلال رزق لیکل سوی وي هغه به حلال رزق خوري او که د چا په مقدر کي حرام رزق لیکل سوی وي نو هغه به حرام رزق خوري ، یا د رزق څخه مراد دادی چي بنده ته د هغه په ژوند کي کومي ګټې، آسانۍ او راحت رسیدونکی وي نو دا ټول د هغه په تقدیر کي د مخکي څخه لیکل سوي دي .

﴿۱۰۶﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ مَنْ تَكَلَّمَ فِيْ شَيْءٍ مِّنَ الْقَدْرِ سُئِلَ عَنْهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَمَنْ لَّمْ يَتَكَلَّمْ فِيْهِ لَمْ يُسْأَلْ عَنْهُ . رواه ابن ماجه .

د حضرت عائشې رض څخه روایت دی چي ما د رسول الله ﷺ څخه اوریدل څوك چي د تقدیر په مسئله کي بحث کوي د هغه څخه به د قیامت په ورځ د هغه پوښتنه کیږي او کوم سړی چي پټه خوله سي د هغه څخه به هیڅ پوښتنه نه کیږي . ابن ماجه .

**تشریح** : ددغه حدیث شریف مقصد د تقدیر په مسئله کي د غور، فکر، پلټني او تجسس کولو څخه منعه کول مراد دي چي د الله تعالی په دغه راز کي چي پر بندګانو باندي په نه څرګندولو کي د الله تعالی حکمت دی زیات بحث او مباحثه کول یا د خپل عقل پیروي کول د آخرت لپاره هیڅ د کار شی نه دی بلکه په دې مسئله کي د یو ډول غور او فکر یا تحقیق او تجسس تاوان په آخرت او قیامت کي د پوښتني باعث دی، ځکه فلاح او سعادت په دې کي دی چي پر تقدیر باندي ایمان راوړل سي او پټه خوله اختیارولو سره په عمل کي مصروف اوسي .

﴿۱۰۷﴾: وَعَنِ ابْنِ الدَّيْلَمِيِّ قَالَ اَتَيْتُ أُبَيَّ بْنَ كَعْبٍ فَقُلْتُ لَهُ قَدْ وَقَعَ فِيْ نَفْسِيْ شَيْئٌ مِّنَ الْقَدْرِ فَحَدِّثْنِي لَعَلَّ اللّٰهَ أَنْ يُّذْهِبَهُ مِنْ قَلْبِيْ فَقَالَ لَوْ أَنَّ اللّٰهَ عَذَّبَ أَهْلَ سَمَاوَاتِهِ وَأَهْلَ أَرْضِهِ عَذَّبَهُمْ وَهُوَ غَيْرُ ظَالِمٍ لَهُمْ وَلَوْ رَحِمَهُمْ كَانَتْ رَحْمَتُهُ خَيْرًا لَهُمْ مِنْ أَعْمَالِهِمْ فَلَوْ اَنْفَقْتَ مِثْلَ أُحُدٍ ذَهَبًا فِي سَبِيلِ اللّٰهِ مَا قَبِلَهُ مِنْكَ حَتّٰى تُؤْمِنَ بِالْقَدْرِ فَتَعْلَمَ أَنَّ مَا أَصَابَكَ لَمْ يَكُنْ لِيُخْطِئَكَ وَأَنَّ مَا أَخْطَأَكَ لَمْ يَكُنْ لِيُصِيبَكَ وَ لَوْ مُتَّ عَلٰى غَيْرِ هٰذَا لَدَخَلْتَ النَّارَ، قَالَ ثُمَّ اَتَيْتُ عَبْدَ اللّٰهِ بْنَ مَسْعُوْدٍ فَقَالَ مِثْلَ ذٰلِكَ قَالَ ثُمَّ اَتَيْتُ حُذَيْفَةَ بْنَ الْيَمَانِ فَقَالَ مِثْلَ ذٰلِكَ ثُمَّ اَتَيْتُ زَيْدَ بْنَ ثَابِتٍ فَحَدَّثَنِيْ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِثْلَ ذٰلِكَ. (رواه احمد وابوداؤد وابن ماجة)

حضرت ابن ديلمي [۱] ﷺ وايي زه ابی بن کعب [۲] ته راغلم او ورته وه مي ويل د تقدير په اړه زما په زړه کي څه شبهات پيدا سوي دي ما ته داسي يو حديث بيان کړه چي د هغه په اورېدو سره که الله وغواړي نو شايد زما شبهات ليري سي ، هغه وويل که الله پاك آسمانو او مځکو والا په عذاب کړي نو هغه به پر هغوئ هيڅ ظلم کونکی نه وي او که پر هغوئ رحم وکړي نو د هغه رحمت به د هغوئ د اعمالو څخه غوره وي ، که ته د اُحد برابر هم د خدای په لاره کي زر مصرف کړي نو ستا دا عمل تر هغو نه قبليږي تر څو چي ته پر تقدير پوره عقيده او ايمان ونه لرې او په دې خبره ښه پوه سه چي څه تا ته رسيدلي دي هغه بندېدونکي او خطاکېدونکي نه وو او کوم شی چي تاته رسيدونکی نه وو هغه هيڅ کله تاته نه سو رسيدلای يعني څه چي تاته حاصل سي هغه ستا د کوښښ نتيجه نه ده بلکه په تقدير کي داسي وه او کوم شی چي تاته حاصل نه سو هغه ستا په کوښښ سره هم تاته نه سو تر لاسه کيدلای ځکه چي تقدير الهي دغسي وو ، که ته د دې اعتقاد خلاف عقيده ولرې او په دې حالت کي مړ سي نو يقينا دوزخ ته به ځې ، ابن ديلمي وايي د ابی بن کعب د دې بيان اورېدو وروسته زه عبدالله بن مسعود ته ورغلم هغه هم داسي بيان وکړ بيا حذيفه بن اليمان ته ورغلم هغه هم داسي بيان وکړ بيا زيد بن ثابت ته ورغلم هغه هم دا ډول حديث د رسول الله ﷺ څخه روايت کړ. احمد، ابوداؤد او ابن ماجه.

**تشريح** : د حديث شريف د الفاظو (أَنَّ مَا أَصَابَكَ لَمْ يَكُنْ لِيُخْطِئَكَ... الخ) مطلب دادی چي څه تر لاسه سي د هغه په باره کي داسي مه وايه چي دا ما په خپل سعي او هڅي سره تر لاسه کړي دي ،

[۱] حضرت ابن ديلمي تابعي دی ، نوم يې ضحاك بن فيروز ديلمي دی ، دی د يمن په تابعينو کي شميرل کيږي .
[۲] حضرت ابی بن کعب ﷺ انصاري، خزرجي او صحابي دی ، کنيت يې ابوالمنذر دی چي رسول الله ﷺ ورکړی وو ، د حضرت عثمان ﷺ د خلافت په زمانه کي وفات سوی دی .

او که یو شی تا ته تر لاسه نسي نو داسي مه وایه که ما کوښښ او هڅه کړې وای نو دا شی به ما ته ضرور تر لاسه سوی وای، ځکه تا ته چي څه رسیدلي دي په هغه کي ستا د سعي او کوښښ دخل نه وو بلکه هغه د تقدیر د لیکني سره سم تا ته رسیدلي دي او کوم شی چي تا ته تر لاسه سوی نه دی نو په دې پوهېدل پکار دي چي د یو شي تر لاسه کېدل او نه تر لاسه کېدل ټول د تقدیر الهي سره سم کیږي.

﴿۱۰۸﴾: وَعَنْ نَافِعٍ أَنَّ رَجُلاً أَتَى ابْنَ عُمَرَ فَقَالَ إِنَّ فُلاَنًا يَقْرَأُ عَلَيْكَ السَّلاَمَ فَقَالَ إِنَّهُ بَلَغَنِيْ أَنَّهُ قَدْ أَحْدَثَ فَإِنْ كَانَ قَدْ أَحْدَثَ فَلاَ تُقْرِئْهُ مِنِّي السَّلاَمَ فَإِنِّيْ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ يَكُوْنُ فِيْ هٰذِهِ الأُمَّةِ أَوْ فِيْ أُمَّتِيْ خَسْفٌ أَوْ مَسْخٌ أَوْ قَذْفٌ فِيْ أَهْلِ الْقَدْرِ . رواه الترمذي وأبو داود وابن ماجه وقال الترمذي هذا حديث حسن صحيح غريب .

د حضرت نافع[۱] ﷺ بیان دی چي یو سړی ابن عمر ﷺ ته راغلی او ورته وه یې ویل چي فلاني سړي پر تا سلام وایه ، ابن عمر ورته وویل ما ته دا خبر را رسیدلی دی چي دې سړي په دین کي نوې خبرهٔ پیدا کړې ده که واقعي هغه داسي کړي وي نو زما د طرفه څخه ورته د سلام جواب مه رسوه ځکه چي ما د رسول الله ﷺ څخه اوریدلي دي چي زما د امت څخه خسف او مسخ یا قذب به د هغه خلګو وي چي د تقدیر څخه منکر وي ، (خسف په مځکه کي ننوتل ، مسخ د شکل بدلېدلو او قذف د بري اورېدلو ته وایي) ، او ترمذي ویلي دي چي دا حدیث حسن صحیح او غریب دی .

**تشریح** : ابن عمر ﷺ ته چي د کوم سړي سلام راوړل سوی وو د هغه په باره کي به حضرت ابن عمر ﷺ ته معلومه سوې وي چي هغه د خپل ځان څخه په دین کي نوي خبري پیدا کړي دي یعني هغه د تقدیر څخه انکار کوي نو حضرت ابن عمر ﷺ وفرمایل چي د هغه د سلام په جواب کي زما سلام هغه ته مه رسوه ځکه چي موږ ته ددې خبري حکم راکړل سوی دی چي موږ د داسي خلکو سره سلام او کلام ونه کړو او نه د هغوئ سره تعلقات قائم وساتو کوم چي بدعتي وي او د الله تعالی او د هغه رسول په قائم کړي حدودو کي تجاوز کوي .

نو علماء کرام ددغه حدیث شریف په سبب د دې خبري حکم کوي چي د فاسق ، فاجر او بدعتي سړي د سلام جواب ورکول واجب نه دي بلکه سنت هم نه دي او د هغوئ سره دا معامله د تنبیه په غرض ده ځکه د هغوئ سره د ملاقات پرېښودل هم جائز دي .

---

[۱] حضرت نافع رحمة الله تعالی علیه یو جلیل القدر تابعي دی ، په (۱۱۰هـ) کال کي وفات سوی دی .

﴿۱۰۹﴾ :وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ سَأَلَتْ خَدِيْجَةُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ وَلَدَيْنِ مَاتَا لَهَا فِيْ الْجَاهِلِيَّةِ فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هُمَا فِي النَّارِ قَالَ فَلَمَّا رَأَى الْكَرَاهَةَ فِيْ وَجْهِهَا قَالَ لَوْ رَأَيْتِ مَكَانَهُمَا لَأَبْغَضْتِهِمَا قَالَتْ يَا رَسُوْلَ اللهِ فَوَلَدِيْ مِنْكَ قَالَ فِي الْجَنَّةِ ثُمَّ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ الْمُؤْمِنِيْنَ وَأَوْلَادَهُمْ فِي الْجَنَّةِ وَإِنَّ الْمُشْرِكِيْنَ وَأَوْلَادَهُمْ فِي النَّارِ ثُمَّ قَرَأَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ( وَالَّذِيْنَ آمَنُوْا وَاتَّبَعَتْهُمْ ذُرِّيَّتُهُمْ .....) رواه احمد

د حضرت علي ﷺ څخه روایت دی چي بي بي خدیجي[1] رض د رسول الله ﷺ څخه د خپلو هغه دوو زامنو په اړه پوښتنه وکړه چي د جاهلیت په زمانه کي مړه سوي وه، رسول الله ﷺ ورته وفرمایل : هغه دواړه په دوزخ کي دي، حضرت علي ﷺ فرمایي هر کله چي رسول الله ﷺ ولیدل چي د دې په اورېدو سره د بي بي خدیجې رنګ بدل سو او هغه خفه سول نو رسول الله ﷺ ورته وفرمایل : که ته د هغوئ ټېکانه او حال ووینې نو دهغوئ څخه به نفرت وکړې ، د دې په اورېدو سره بي بي خدیجې رض وویل اې دالله رسوله ! او زما اولاد کوم چي ستاسو څخه پیدا دي (یعني قاسم او عبدالله) رسول الله ﷺ وفرمایل هغوئ په جنت کي دي ، د دې وروسته رسول الله ﷺ وفرمایل چي : مؤمنان اود هغوئ اولاد په جنت کي دي او مشرکین او د هغوئ اولاد په دوزخ کي دي ، د دې وروسته رسول الله ﷺ دغه آیت تلاوت کړ : (والذین آمنوا واتبعتهم ذریتهم ) (کومو خلګو چي ایمان راوړ او د هغوئ اولاد چي د هغوئ اطاعت يې وکړ مونږ به يې د هغو سره ساتو) .احمد .

﴿۱۱۰﴾ : وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : لَمَّا خَلَقَ اللهُ آدَمَ مَسَحَ ظَهْرَهٗ فَسَقَطَ مِنْ ظَهْرِهٖ كُلُّ نَسَمَةٍ هُوَ خَالِقُهَا مِنْ ذُرِّيَّتِهٖ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ وَجَعَلَ بَيْنَ عَيْنَيْ كُلِّ إِنْسَانٍ مِّنْهُمْ وَبِيْصًا مِّنْ نُّوْرٍ ثُمَّ عَرَضَهُمْ عَلٰى آدَمَ فَقَالَ أَيْ رَبِّ مَنْ هٰؤُلَاءِ قَالَ ذُرِّيَّتُكَ فَرَأَى رَجُلاً مِّنْهُمْ فَأَعْجَبَهٗ وَبِيْصُ مَا بَيْنَ عَيْنَيْهِ قَالَ أَيْ رَبِّ

د حضرت ابوهریرة ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : کله چي الله ﷻ آدم ﷺ پیدا کړ نو دهغه پر شا يې لاس راتیر کړ نو د هغه د شا څخه ټول ارواح راووتل کوم چي د آدم ﷺ په اولاد کي الله پاک تر قیامته پوري پیداکونکی وو، بیا الله تعالی د هغوئ څخه د هر یوه د دوو سترګو په منځ کي نور کنښېښود او بیا يې هغه ټول د آدم ﷺ په وړاندي ودرول ، آدم ﷺ پوښتنه وکړه پاکه ربه دا

[1] بي بي خدیجة بنت خویلد قریشي او اسدیه ده ، د رسول الله ﷺ تر ټولو لومړنۍ بي بي مبارکه ده ، ددې مبارکي تر ټولو لوی امتیازي شرف دادی چي د ټولو ښځو او نارینو څخه مخکي يې په لومړي ځل اسلام راوړی دی ، د هجرت څخه درې کاله مخکي په مکه مکرمه کي د رمضان المبارك په میاشت کي د (۶۵) کالو په عمر وفات سوه

مَنْ هٰذَا ؟ قَالَ دَاوُدُ، فَقَالَ اَيْ رَبِّ كَمْ جَعَلْتَ عُمُرَهُ؟ قَالَ سِتِّيْنَ سَنَةً قَال رَبِّ زِدْهُ مِنْ عُمْرِيْ أَرْبَعِيْنَ سَنَةً، قَالَ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمَّا انْقَضٰى عُمرُ آدَمَ اِلاَّ اَرْبَعِيْنَ جَاءَهُ مَلَكُ الْمَوْتِ فَقَالَ آدَمُ أَوَلَمْ يَبْقِ مِنْ عُمْرِيْ أَرْبَعُوْنَ سَنَةً؟ قَالَ أَوَلَمْ تُعْطِهَا اِبْنَكَ دَاوُدَ؟ قَالَ فَجَحَدَ آدَمُ فَجَحَدَتْ ذُرِّيَّتُهُ وَنَسِيَ آدَمُ فَاَكَلَ مِنَ الشَّجَرَةِ فَنَسِيَتْ ذُرِّيَّتُهُ وَخَطِئَ آدَمُ وَخَطِئَتْ ذُرِّيَّتُهُ . رواه الترمذي .

څوك دي ؟ الله ﷻ ورته وفرمایل دا ټول ستا اولاد دي، آدم ؑ چي د هغو څخه د یوه د سترګو په منځ کي څه ډېر نور ولیدی نو حیران پاته سو او د الله ﷻ څخه یې پوښتنه وکړه پاکه ربه دا څوك دی ؟ الله ﷻ ورته وفرمایل : دا داؤد ؑ دی ، آدم ؑ پوښتنه وکړه اې زما ربه اده عمر تا څومره ټاکلی دی ؟ الله ﷻ ورته وفرمایل شپېته کاله ، آدم ؑ وویل : اې زما ربه اده په عمر کي زما د عمر څخه څلوېښت کاله زیات کړه ، راوي وايي چي رسول الله ﷺ وفرمایل کله چي د آدم ؑ څلوېښت کاله پاته سوه نو دمرګ ملائکه راغله نو آدم ؑ ورته وویل ایا زما په عمر کي څلوېښت کاله پاته نه دي ؟ د مرګ ملائکي ورته وویل : ایا تا د اخپل عمر څلوېښت کاله خپل زوی داؤد ته نه وه ورکړي ؟ آدم ؑ د هغه څخه انکار وکړ او د هغه اولاد هم انکار کوي ، او آدم ؑ خپل قول هیر کړ او هغه د ممنوعه ونې میوه یې وخوړل او د هغه اولاد هم هیره کوي او آدم ؑ خطا کړې ده او د هغه اولاد هم خطا کوي . ترمذي .

﴿۱۱۱﴾ : وَعَنْ أَبِيْ الدَّرْدَاءِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ خَلَقَ اللهُ آدَمَ حِيْنَ خَلَقَهُ فَضَرَبَ كَتِفَهُ الْيُمْنٰى فَأَخْرَجَ ذُرِّيَّةً بَيْضَاءَ كَأَنَّهُمُ الذَّرُّ وَضَرَبَ كَتِفَهُ الْيُسْرٰى فَأَخْرَجَ ذُرِّيَّةً سَوْدَاءَ كَأَنَّهُمُ الْحُمَمُ فَقَالَ لِلَّذِيْ فِيْ يَمِيْنِهِ إِلَى الْجَنَّةِ وَلاَ أُبَالِيْ وَقَالَ لِلَّذِيْ فِيْ كَتِفِهِ الْيُسْرٰى إِلَى النَّارِ وَلاَ أُبَالِيْ . رواه أحمد .

د حضرت ابو درداء ؓ څخه روایت چي رسول الله ﷺ وفرمایل : الله پاك چي کله آدم ؑ پیدا کړ نو د هغه په راسته اوږه یې لاس ووهلو او د هغې څخه یې سپین اولاد پیداکړ لکه چي هغه میږي وي بیا په چپه اوږه یې (لاس) ووهلو او د هغې څخه تور اولاد پیداسوه لکه هغه چي سکاره وي او د هغه وروسته الله پاك وفرمایل : د راسته طرف اولاد به جنت ته ځي او زما په دې څه پروا نسته او دچپ طرف اولاد به دوږخ ته ځي او زما په دې څه پروا نسته . رواه احمد.

﴿۱۱۲﴾ : وَعَنْ أَبِيْ نَضْرَةَ أَنَّ رَجُلاً مِّنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُقَالُ لَهُ أَبُوْ عَبْدِ اللّٰهِ دَخَلَ عَلَيْهِ أَصْحَابُهُ يَعُوْدُوْنَهُ وَهُوَ يَبْكِيْ فَقَالُوْا لَهُ مَا يُبْكِيْكَ ؟ أَلَمْ يَقُلْ لَكَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خُذْ مِنْ شَارِبِكَ ثُمَّ أَقِرَّهُ حَتّٰى تَلْقَانِيْ قَالَ بَلٰى وَلٰكِنْ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ إِنَّ اللّٰهَ عَزَّ وَجَلَّ قَبَضَ بِيَمِيْنِهِ قَبْضَةً وَأُخْرٰى بِالْيَدِ الْأُخْرٰى وَقَالَ هٰذِهٖ لِهٰذِهٖ وَهٰذِهٖ لِهٰذِهٖ وَلاَ أُبَالِيْ وَلاَ أَدْرِيْ فِيْ أَيِّ الْقَبْضَتَيْنِ أَنَا . رواه أحمد .

د حضرت ابو نضره[۱] ﷛ څخه روايت دی چي د رسول الله ﷺ يو صحابي چي نوم يې ابوعبدالله و د هغه دوستان چي د هغه پوښتني ته ورغلل نو هغه ژړل، دوستانو ورته وويل ولي ژاړې ايا تاته رسول الله ﷺ نه وو فرمايلي چي د خپلو شونډو وربښتان غڅي کوه يا خريه، او پر دې قائم اوسه تر څو چي زما سره (په جنت) کي يوځای سې ، ابوعبدالله ورته وويل مگر ما د رسول الله ﷺ څخه دا هم اوريدلي دي چي الله تعالی د خپل ښي لاس موټ ډک وهو او دوهم موټ يې د چپه لاس (ډک کړلو) او وه يې فرمايل : دا (يعني د راسته موټ) د جنت دپاره او زما په دوئ هيڅ پروا نسته ، د دې وروسته ابوعبدالله وويل زه نه سم ويلای چي په دې دواړو موټانو کي په کوم يوه کي زه يم .احمد.

**تشريح** : حضرت ابوعبدالله ﷛ ناروغ سو د هغه ملګري د پوښتني لپاره د هغه په خدمت کي حاضر سول نو وه يې ليدل چي هغه ژاړي ، خلکو ددې ليدو سره هغه ته وويل چي تا ته د رسول الله ﷺ د صحابيت شرف حاصل دی او بيا دا هم چي رسول الله ﷺ تا ته فرمايلي وه چي ته خپل بريت کوچني کړه او پر دې قائم اوسه تر دې چي په حوض کوثر يا په جنت کي زما سره ملاقات وکړې نو لکه تا ته چي رسول الله ﷺ د جنت زيری هم درکړی دی او ښکاره ده چي په جنت کي داخليدل او ددې عظيم سعادت څخه برخمن کېدل د اسلام څخه پرته نسي کيدلای نو معلومه سوه چي ستا خاتمه بالخير به وي او ته به د ايمان او اسلام سره د دې دنيا څخه سفر کوې ، نو بيا ته ولي ژاړې او دا فکر او غم ولي کوې ؟ ددې په جواب کي هغه دا وفرمايل چي صحيح او پر ځای خبره ده او ددغه زيري د صداقت عقيده هم سته مگر الله تعالی بې نيازه دی هغه چي څه غواړي هغه به کوي د هغه په خوښي کي چا ته دخل نسته او بيا الله تعالی خپله فرمايي چي زه چا ته وغواړم د جنت په سعادت سره يې نازوم او څوک چي غواړم دوږخ ته يې حواله کوم او زه

---

[۱] د حضرت ابو نضره بن منذر بن مالك العبدي شمير د بصرې د جليل القدر تابعينو څخه کيږي ، د حضرت حسن بصري رحمة الله عليه څخه څو ورځي مخکي وفات سوی دی .

ددې هيڅ پرواه نه کوم نو زما سره دا بيره ده چي معلومه نه ده چي زما حشر به څنګه وي او زړه مي ددغه بيري څخه په لړزه او سترګي مي د بيري څخه ژړا کونکي دي چي معلومه نه ده چي الله تعالی زما په مقدر کي څه ليکلي دي ، دا خو د هغه د جواب خلاصه سوه مګر دا هم کيدای سي چي د آخرت تصور او د الله تعالی د خوف په غلبې سره هغه زيری ځيني هير سوی وي او دا احسان ورته ياد نه وي چي نبي کريم ﷺ زه په دغه عظيم زيري سره نازولی يم .

علامه طيبي ددې حديث په شرح کي فرمايي چي په دغه حديث کي دې ته اشاره ده چي بريتونه کوچني کول سنت مؤکده دي او پر دغه عمل قائم اوسيدل او هميشه دا کوچني کول په جنت کي ددخول او هلته د رسول الله ﷺ د سايې لاندي کېدو ذريعه ده .

نو ددې څخه معلومه سوه چي ددغه يوه سنت په پرهېزودلو سره داسي عظيم سعادت او دومره لوی خلاصون د لاسه وځي نو څه معنا سنت هميشه پرهېزودل، ځکه چي د سنت پر پرهېزودو باندي اصرار کول الحاد او زندقه ته رسيږي . (نعوذبالله منه).

﴿۱۱۳﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ أَخَذَ اللّٰهُ الْمِيْثَاقَ مِنْ ظَهْرِ آدَمَ بِنَعْمَانَ يَعْنِيْ عَرَفَةَ فَأَخْرَجَ مِنْ صُلْبِهٖ كُلَّ ذُرِّيَّةٍ ذَرَأَهَا فَنَثَرَهُمْ بَيْنَ يَدَيْهِ كَالذَّرِّ ثُمَّ كَلَّمَهُمْ قُبُلاً قَالَ ( أَلَسْتُ بِرَبِّكُمْ قَالُوْا بَلٰى شَهِدْنَا أَنْ تَقُوْلُوْا يَوْمَ الْقِيَامَةِ إِنَّا كُنَّا عَنْ هٰذَا غَافِلِيْنَ أَوْ تَقُوْلُوْا إِنَّمَا أَشْرَكَ آبَاؤُنَا مِنْ قَبْلُ وَكُنَّا ذُرِّيَّةً مِّنْ بَعْدِهِمْ أَفَتُهْلِكُنَا بِمَا فَعَلَ الْمُبْطِلُوْنَ ) رواه احمد

حضرت ابن عباس ؓ د رسول الله ﷺ څخه روايت کوي چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د عرفات ميدان ته نژدې په نعمان نامي ځای کي الله تعالی د آدم ؑ د هغه اولاد څخه چي د هغه په ملا کي وو عهد واخيست نو د آدم ؑ د شا څخه يې ټول اولاد راوکښی او هغه يې د آدم ؑ په وړاندي د ميږيانو په شان خپاره کړه بيا د هغوئ سره الله تعالی دا خبري وکړې ايا زه ستاسو رب نه يم؟ د آدم ؑ اولاد ورته وويل بې شکه ته زموږ رب يې، بيا الله پاك ورته وفرمايل دا شهادت ما ستاسو څخه ځکه واخيست چي د قيامت په ورځ چيري دا ونه وايي چي موږ د دې څخه غافله وو يا داسي ونه واياست چي زموږ پلرو او نيکو زموږ څخه وړاندي شرک کړی وو او موږ د هغوئ اولاد وو نو ايا ته د باطل پرستو د اعمالو په وجه موږ هلاك کوې . احمد .

**تشريح** : د الله تعالی د ارشاد مطلب دادی چي تاسو په قيامت کي دا دليل نسئ ورکولای چي زموږ پلرونو او نيکونو شرک کړی وو ځکه نو موږ هم د هغوئ سره وو يا موږ خو د پلار او نيکه

پیروان وو نو ددغه کفر او شرک ذمه دار زموږ پلرونه او نیکونه دي چي هغوئ موږ پر دغه لار روان کړي وو، او په دې اعتبار سره هغوئ د الزام مورد ګرځېدل چي موږ د هغوئ په وجه د دوږخ د عذاب مستحق کیدای نه سو ځکه د عذاب حقیقي مستحق خو هغه خلک دي چي ددغه لاري لارویان وه.

نو اې کفر او شرک کونکو! پوه سئ چي د قیامت په ورځ دا دلیل ستاسو لپاره په کار نسي راتللای ځکه نو موږ ستاسو څخه د توحید اقرار د مخکي څخه اخیستی دی او تاسو په دې شهادت کړی دی او ددې وعدې او اقرار توثیق او ددې د یادوني لپاره په هره زمانه کي د دنیا ټولو برخو او ټولو طبقو کي انبیاء علیهم السلام تشریف راوړ چي هغوئ انسانانو ته خپل عهد او اقرار وریاد کړي او هغوئ پر صحیح لار روان کړي.

﴿۱۱۴﴾: عَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ فِيْ قَوْلِ اللهِ عَزَّ وَجَلَّ (وَإِذْ أَخَذَ رَبُّكَ مِنْ بَنِيْ آدَمَ مِنْ ظُهُوْرِهِمْ ذُرِّيَّتَهُمْ) قَالَ جَمَعَهُمْ فَجَعَلَهُمْ أَزْوَاجًا ثُمَّ صَوَّرَهُمْ فَاسْتَنْطَقَهُمْ فَتَكَلَّمُوْا، ثُمَّ أَخَذَ عَلَيْهِمُ الْعَهْدَ وَالْمِيْثَاقَ وَأَشْهَدَهُمْ عَلٰى أَنْفُسِهِمْ أَلَسْتُ بِرَبِّكُمْ قَالُوْا بَلٰى قَالَ فَإِنِّيْ أُشْهِدُ عَلَيْكُمُ السَّمٰوَاتِ السَّبْعَ وَالْأَرَضِيْنَ السَّبْعَ وَأُشْهِدُ عَلَيْكُمْ أَبَاكُمْ آدَمَ أَنْ تَقُوْلُوْا يَوْمَ الْقِيَامَةِ لَمْ نَعْلَمْ بِهٰذَا اِعْلَمُوْا أَنَّهُ لاَ إِلٰهَ غَيْرِيْ وَلاَ رَبَّ غَيْرِيْ وَلاَ تُشْرِكُوْا بِيْ شَيْئًا إِنِّيْ سَأُرْسِلُ إِلَيْكُمْ رُسُلِيْ يُذَكِّرُوْنَكُمْ عَهْدِيْ وَمِيْثَاقِيْ وَأُنْزِلُ عَلَيْكُمْ كُتُبِيْ، قَالُوْا شَهِدْنَا بِأَنَّكَ رَبُّنَا وَإِلٰهُنَا لاَ رَبَّ لَنَا غَيْرُكَ وَلاَ إِلٰهَ لَنَا غَيْرُكَ فَأَقَرُّوْا بِذٰلِكَ وَرُفِعَ عَلَيْهِمْ آدَمُ يَنْظُرُ إِلَيْهِمْ فَرَأَى الْغَنِيَّ وَالْفَقِيْرَ وَحَسَنَ الصُّوْرَةِ وَدُوْنَ ذٰلِكَ فَقَالَ رَبِّ لَوْلاَ سَوَّيْتَ بَيْنَ عِبَادِكَ قَالَ إِنِّيْ أَحْبَبْتُ أَنْ أُشْكَرَ وَرَأَى الْأَنْبِيَاءَ فِيْهِمْ مِثْلُ السُّرُجِ عَلَيْهِمُ النُّوْرُ خُصُّوْا بِمِيْثَاقٍ آخَرَ

د حضرت ابی بن کعب رضی الله عنه څخه د دې آیت په تفسیر کي نقل دي (وَإِذْ أَخَذَ رَبُّكَ مِنْ بَنِيْ آدَمَ مِنْ ظُهُوْرِهِمْ ذُرِّيَّتَهُمْ) چي الله پاك هغوئ (د آدم اولاد) راجمع کړل او هغوئ يې ډول ډول وګرځول (يعني ځوك يې ښتمن او ځوك يې غريب کړل) بيا يې هغوئ ته شکل او صورت ورکړ بيا يې د اوريدلو قوت ورکړل او هغوئ خبري وکړې بيا يې د هغوئ څخه عهد او اقرار واخيست بيا يې شاهدان کړل پر خپلو ځانو او پوښتنه يې ځيني وکړه ايا زه ستا رب نه يم؟ هغوئ ورته وويل :هو، بيا الله تعالى هغوئ ته وفرمايل : زه اووه آسمانونه او اووه مځکي او ستاسو پلار ادم (عليه السلام) پر تاسو شاهد کوم ځکه چي د قيامت په ورځ تاسو دا ونه واياست چي موږ ددې څخه ناخبره وو تاسو ښه پوه سئ چي زما څخه پرته بل د عبادت وړ نسته او نه بل رب سته ، تاسو زما سره ځوك مه شريك کوئ، زه به

فِيْ الرِّسَالَةِ وَالنُّبُوَّةِ وَهُوَ قَوْلُهُ تَعَالٰى ( وَإِذْ أَخَذْنَا مِنَ النَّبِيِّيْنَ مِيْثَاقَهُمْ ... إِلٰى قَوْلِهِ عِيْسَى ابْنَ مَرْيَمَ ) كَانَ فِيْ تِلْكَ الْأَرْوَاحِ فَأَرْسَلَهُ إِلٰى مَرْيَمَ فَحُدِّثَ عَنْ أُبَيٍّ أَنَّهُ دَخَلَ مِنْ فِيْهَا . رواه أحمد .

پر تاسو ژر خپل رسولان راوليږم چي تاسو ته به زما عهد او اقرار در يادوي او پر تاسو به خپل کتابونه هم نازل کړم ، د دې په اورېدو سره د آدم ﷺ ټول اولاد وويل موږ شاهدي ورکوو چي ته زموږ رب يې او زموږ خدای يې ستا څخه پرته نه زموږ بل رب سته او نه بل خدای ، د آدم ﷺ ټول اولاد د دې اقرار وکړ آدم ﷺ لوړ کړل سو او هغه دا منظر وليدی چي د هغه په اولاد کي شتمن هم سته غريب هم سته ، ښکلی هم سته او بد رنګه هم سته ، د دې په ليدو سره آدم ﷺ الله تعالى ته عرض وکړ چي اې پرودرګاره ! تا خپل بندګان يو شان ولي پيدا نه کړل ؟ الله ورته وفرمايل : زه غواړم چي زما بندګان زما شکر ادا کړي بيا آدم ﷺ (په دې ډله کي) انبياء وليدل چي د څراغ په شان ځلانده وه او نور (روښنائي) هم باندي وو د هغوئ څخه په خاصه توګه د رسالت او نبوت عهد واخيستل سو لکه چي د الله تعالى په قول کي ذکر دي : (و اذ اخذنا من النبيين ميثاقهم..... عيسى ابن مريم ) په دې ډله کي عيسى بن مريم وو ، الله پاک د هغه روح بي بي مريم ته وليږل ، حضرت أُبی وايي چي روح دْ بي بي مريم د خولې د لوري د هغې په بدن کي داخل سو . احمد

**تشريح** : حضرت آدم ﷺ په دغه ارواحو کي فرق وليدی چي د هغه په اولاد کي څوک شتمن او صاحب دولت دي او څوک غريب او مفلس دي نو هغه ته حيران سو ، نو د الله تعالى په دربار کي يې عرض وکړ چي اې الله ! دا ټول زما د اولاد څخه دي او ټول ستا بندګان دي نو بيا په دوئ کي دا فرق ولي دی چي څوک صاحب د حيثيت دی او څوک بې چاره، چا ته دي عزت او دولت ورکړی دی او چا ته غربت او مفلسي .

ددې جواب دا ورکړل سو چي په دوئ د فرق پيدا کولو يو حکمت دی او هغه دا که دوئ ټول مي يو ډول پيدا کړي وای نو دوئ به شکر نه ادا کوی او هر کله چي په يو انسان کي هغه صفات او خصلتونه پيدا کړل سي چي په نورو انسانانو کي نه وي نو هغوئ د يو بل په ليدو سره شکر ادا کوي مثلاً په مفلس کي تقوا د اطاعت الهي ماده ، د زړه او دماغ سکون او د دنيا څخه بې فکري وي چي په يو شتمن او مالدار کي نه وي ، همداسي شتمن او مالدار ته د دولت پراخوالي او د اسباب معيشت آساني حاصل وي کوم چي غريب ته ميسر نه وي .

نو په چا کي چي کوم خصلتونه وي نو هغه به د هغه د لذت څخه اشنا وي په نورو کي د هغه په کمي ليدو سره پر هغه نعمت به شکر کونکی وي چي د هغه په وجه به د الله ﷻ د نعمت مستحق ګرځي .

﴿۱۱۵﴾ : عَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ قَالَ بَيْنَمَا نَحْنُ عِنْدَ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَتَذَاكَرُ مَا يَكُوْنُ إِذْ قَالَ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا سَمِعْتُمْ بِجَبَلٍ زَالَ عَنْ مَكَانِهِ فَصَدِّقُوْهُ وَإِذَا سَمِعْتُمْ بِرَجُلٍ تَغَيَّرَ عَنْ خُلُقِهِ فَلاَ تُصَدِّقُوْا بِهِ فَإِنَّهُ يَصِيْرُ إِلَى مَا جُبِلَ عَلَيْهِ . رواه أحمد .

د حضرت ابو درداء ﷺ څخه روایت دی چي موږ د رسول الله ﷺ سره ناست وو د راتلونکو واقعاتو په اړه مو خبري اتري کولې چي رسول الله ﷺ (زموږ د خبرو په اوریدو سره) وفرمایل : هر کله چي تاسو واورئ چي یو غر د خپل ځای څخه آخوا سوی دی نو هغه رښتیا وګڼئ مګر هر کله چي تاسو واورئ چي د یو سړي عادت بدل سوی دی نو په دې هیڅکله یقین مه کوئ ځکه چي انسان د هغه شي په لور ګرځي پر کوم چي پیدا کړل سوی دی . احمد .

**تشریح** : صحابه کرام په خپل منځ کي ناست وه دا بحث یې کوی چي کوم شی په راتلونکي کي پیدا کېدونکی یا کومي خبري واقع کیدونکي دي ایا هغه د تقدیر سره سم وي یا په خپله پرته د قضا او تقدیر څخه واقع کیږي ، رسول الله ﷺ هم په هغه مجلس کي ناست وو د هغوئ د بحث په اوریدو سره یې وفرمایل : هر شي د تقدیر د لیکني سره سم کیږي او د مثال په توګه یې وفرمایل چي یو انسان پر خپل کوم فطرت او خلقت باندي پیدا کیږي پر هغه همیشه قائم وي او د هغه په لور د هغه حقیقي میلان وي مثلا الله تعالی چي یو شوک عقلمند او پوه پیدا کړي او د هغه په فطرت کي یې د عقل او پوهي ماده کښېښودل او د هغه په تقدیر کي یې د فهم او فراست جوهر کښېښودی نو هغه هیڅکله بې عقل او احمق کیدای نسي ، همداسي د کوم سړي فطرت چي د حماقت په قالب کي اچول سوی وي او فطرتا بې عقل او پلیت پیدا سوی وي نو هغه عقلمند او پوه نسي کیدای .

هو داسي کسان چي په خپل ریاضت او شفقت او د ذاتي محنت او هڅي په وجه د عقل دولت تر لاسه کوي یا د عقل د خاوندانو صحبت اختیارولو سره ددې صفتونو خاوند کیږي نو هغوئ ددې څخه مستثنی دي ځکه چي دلته بحث د فطرت او خلقت دی چي کوم انسان یې په کوم خصلت او فطرت پیدا کړی دی هغه د هغه څخه بیلیدلای نسي او نه په هغه فطرت او خلقت کي تغیر او تبدیل ممکن دی ، پاته سو په خپل ذاتي محنت او کوښښ یا د عقل د خاوندانو د فهم او صحبت نو دا یو بل شی دی ځکه چي دا هم د تقدیر د لیکني سره سم کیږي یعني د کوم سړي په تقدیر کي چي لیکل سوي وي چي دی به د خپل محنت او هڅي یا د یو عقلمند او پوه د

صحبت او قربت په وجه د عقل خاوند جوړيږي نو هغه به يقينا هغه صفت تر لاسه كوي مګر د چا په تقدير كي چي بې عقل كېدل ليكلي دي يا د چا په فطرت كي چي حماقت ليكلى وي په هغه كي نه خپل محنت او هڅه كار كوي او نه د يو عقلمند قربت او صحبت كار كوي .

﴿۱۱۶﴾: وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ قَالَتْ يَارَسُوْلَ اللهِ! لاَ يَزَالُ يُصِيبُكَ فِيْ كُلِّ عَامٍ وَجَعٌ مِنَ الشَّاةِ الْمَسْمُوْمَةِ الَّتِيْ أَكَلْتَ قَالَ مَا أَصَابَنِيْ شَيْءٌ مِّنْهَا إِلاَّ وَهُوَ مَكْتُوْبٌ عَلَيَّ وَآدَمَ فِيْ طِيْنَتِهِ . رواه ابن ماجه

د حضرت ام سلمه [1] (رض) څخه روايت دى چي ما رسول الله ﷺ ته عرض وكړ چي : اې د الله رسوله ! تاسو چي زهرجن پسه خوړلى وو (چي په خيبر كي يو يهودي ښځي په خوړلى وه) هر كال تاسو ته د هغه څخه تكليف وي ، نبي كريم ﷺ وفرمايل : كوم شى (يعني تكليف ،ناروغي چي ما ته راسي) هغه زما لپاره هغه وخت ليكل سوې ده كله چي آدم ﷺ په خاورو كي دننه وو (يعني زما په تقدير كي همداسي ليكلي وه ) . ابن ماجه .

# بَابُ اِثْبَاتِ عَذَابِ الْقَبْرِ

## (د قبر د عذاب د ثبوت بيان)

د قبر عذاب په قرآن كريم او حديثونو كي ثابت دى او په دې كي هيڅ شک او شبه نسته ، دا خبره په ذهن كي راوستل پكار ده چي دلته د قبر څخه مراد يونيم يا دوه ګزه كنده نه ده بلكه د قبر مطلب عالم برزخ دى چي د آخرت او دنيا په منځ كي يو عالم دى او دا عالم هر ځاى كيداى سي، لكه ځيني خلک ډوب سي، ځيني وسوځل سي ، كه الله تعالى غواړي نو پر هغوئ عذاب مسلط كوي دا نه ده چي كوم خلک په مځكه كي دفن كړل سي يوازي پر هغوئ عذاب وي او كوم خلک چي نوري طريقې اختياروي نو هغوئ د عذاب څخه خلاصيداى سي .

د قبر د عذاب د تصديق په درجاتو كي صحيح او اولى مرتبه ددې خبري يقين او عقيده ساتل ضروري دي چي په قبر كي د دفن كولو څخه وروسته د الله تعالى پر نيكو بندګانو د الله تعالى بې شميره رحمتونه نازليږي او كوم خلک چي بدكار او ګناه كاروي پر هغوئ د الله تعالى سخت عذاب نازليږي ، په دې اړه د نكير او منكر عذاب وركوونكي ملائكي ، ماران او لړمان چي پر بد كارو خلكو باندي مسلط كيږي او د هغو وجود د حديثو څخه ثابت دى دا ټول صحيح

[1] ام المؤمنين ام سلمه رضي الله عنها قريشي او مخزوميه ده ، د رسول الله ﷺ بي بي مباركه ده.، په (۵۹هـ) كال كي وفات سوې ده او په جنت البقيع كي دفن سوې ده .

او واقعي شیان دي پر دې ایمان راوړل ضروري دی.

په دې پوهېدل پکار دي چې د یو شي لیدل او د هغه په مشاهده کي راتلل د هغه د صداقت دلیل نه دی ځکه ددې شیانو په اړه دا خبره په زړه کي راځي نو ددې اعتبار څنګه وکړل سي بالکل غلط او خلاف عقل دی ځکه چي دومره خبره خو څرګنده ده چي د عالم بالا شیانو مشاهده کول عالم ملکوت په سترګو لیدل ددې ظاهرو سترګو د وس خبره نه ده د هغه د مشاهده کولو لپاره د حقیقت د سترګو ضرورت دی دا خبره هم نا ممکن نه ده که الله تعالی غواړي نو په دغه دواړو ظاهري سترګو سره هر عالم ملکوت ښودلای سي.

دوهم دا چي په دې دنیا کي موږ وینو چي اکثر شیان داسي دي چي هغه په ظاهره نه وینو او نه په سترګي د هغو مشاهده کوي مګر ددې سربیره د هغه ادراک هم کیږي او د هغه حقیقت هم تسلیم کیږي مثلا یو سړی په خوب کي د دنیا شیانویني او اوري، هر ډول غم او مصیبت، لذت او ارام محسوس کوي مګر دوهم یې نسي لیدلای یا همدارنګه یو سړي ته تکلیف رسیږي یا هغه ته لذت حاصلیږي یا هغه د غم او آرام احساس کوي مګر د هغه سره ناست دوهم سړی د هغه څخه ناخبره وي او هغه د هغه ادارک او احساس نسي کولای.

د نبوت په زمانه کي به رسول الله ﷺ ته وحي راتلې او حضرت جبرائیل ؑ په پیغام اخیستلو سره به رسول کریم ﷺ ته راتلو مګر په هغه مجلس کي ناست صحابه کرامو به نه لیدل او نه د هغوئ ظاهري سترګو د حضرت جبرائیل ؑ مشاهده کول مګر ددې سربیره صحابه کرامو به پر هغه ایمان راوړی.

بالکل همداسي د قبر د عذاب معامله ده هلته چي د بنده سره څه کیږي په دې دنیا کي د هغه ادراک نسي کیدلای او نه په دغه سترګو سره هغه لیدل کیدای سي بس یوازي د ایمان راوړل ضروري دي چي د قبر د عذاب په اړه الله تعالی او د هغه رسول ﷺ څه ښودلي دي هغه ټول پر حقیقت ولاړ او یقیني شیان دي.

## الفصل الاول

﴿۱۱۷﴾: عَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اَلْمُسْلِمُ إِذَا سُئِلَ فِي الْقَبْرِ يَشْهَدُ أَنْ لاَّ إِلٰهَ إِلاَّ اللّٰهُ وَأَنَّ مُحَمَّدًا رَّسُوْلُ اللّٰهِ فَذٰلِكَ قَوْلُهُ تَعَالٰى: ( يُثَبِّتُ اللّٰهُ الَّذِيْنَ آمَنُوْا بِالْقَوْلِ الثَّابِتِ ، نَزَلَتْ فِيْ عَذَابِ الْقَبْرِ يُقَالُ لَهُ مَنْ رَّبُّكَ ؟ فَيَقُوْلُ رَبِّيَ اللّٰهُ وَنَبِيِّيْ مُحَمَّدٌ . (متفق عليه)

حضرت براء [1] ﷛ د نبي كريم ﷺ څخه روايت دی چي ده مبارك وفرمايل : كوم وخت چي په قبر كي د مسلمان څخه پوښتنه وسي نو هغه شاهدي وركوي چي د الله څخه ماسوا بل معبود نسته او محمد ﷺ د الله رسول دی او دا مطلب د الله د دې ارشاد هم دی (يثبت الله .....) (الله د دنيا په ژوند كي او په آخرت كي هغه خلك ثابت قدم لري چي پر ښخه خبره يې ايمان راوړی دی) او د رسول الله ﷺ څخه په يو روايت كي نقل دي چي ده مبارك وفرمايل : چي دا آيت (يثبت الله ....) د قبر په بيان كي نازل سوی دی نو (په قبر كي مړي ته ) وويل شي چي ستا رب څوك دی ؟ نو هغه ورته وايي زما رب الله ﷻ دی او زما نبي محمد ﷺ دی .بخاري او مسلم

**تشريح** : په پورتني آيت كريمه كي د (بِالْقَوْلِ الثَّابِتِ) څخه مراد كلمه شهادت ده يعني هر كله چي د مؤمن څخه په قبر كي پوښتنه كيږي چي ستا پروردګار څوک دی، ستا نبي څوک دی او ستا دين كوم يو دی نو ددې درو سره پوښتنو جواب په كلمه شهادت كي دی ، د آيت د دوهم جز مطلب دادی چي كوم خلک د ايمان او يقين په رڼا سره خپل زړونه منور كړي او د هغوئ په زړونو كي د ايمان او اسلام حقانيت پوخ او راسخ سي نو د الله تعالى د لوري په دنيا كي هم او په آخرت كي هم دواړه ځايه پر هغوئ د رحمت دروازې خلاصيږي .

په دنياوي ژوند كي د هغه فضل خو دادی چي هغه خپل نيک بندګان د كلمه اسلام د حقانيت پر عقيدې قائم لري او د هغوئ زړونه د ايمان او اسلام د هغه رڼ څخه ډكوي چي د دنياوي امتحان او ازموينې په سخته موقع هم د هغوئ په استقلال كي ښوئيدل نه راځي هغوئ خپل ځان قربانول او په اور كي اچول خوښوي مګر په خپل ايمان او عقيده كي د ذرې په اندازه

[1] دنوموړي نوم براء بن عازب او كنيت يې ابوعماره دی د مديني اوسيدونكی او انصاري دی، د بدر په جنګ كي ددې كبله شريك سوی نه وو چي د كم عمرۍ په وجه رسول الله ﷺ منع كړی وو، او د اُحد په غزا كي تر ټولو وړاندي شريك سوی دی .

شک او شبه کول نه مني، د آخرت په ژوند کي د هغه رحمت داسي وي چي هغوئ د الله تعالى د بې شميره نعمتو سره پالل کيږي، په عالم برزخ کي چي په قبر کي د هغوئ څخه پوښتنه کيږي نو هغوئ سم سم جوابونه ورکوي او د هغه په نتيجه کي به هغوئ د هميشه نجات او اکرام مستحق وګرځي.

﴿۱۱۸﴾ :وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ الْعَبْدَ إِذَا وُضِعَ فِيْ قَبْرِهِ وَتَوَلّٰى عَنْهُ أَصْحَابُهُ إِنَّهُ لَيَسْمَعُ قَرْعَ نِعَالِهِمْ أَتَاهُ مَلَكَانِ فَيُقْعِدَانِهِ فَيَقُوْلَانِ مَا كُنْتَ تَقُوْلُ فِيْ هٰذَا الرَّجُلِ لِمُحَمَّدٍ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَمَّا الْمُؤْمِنُ فَيَقُوْلُ أَشْهَدُ أَنَّهُ عَبْدُ اللهِ وَرَسُوْلُهُ فَيُقَالُ لَهُ انْظُرْ إِلٰى مَقْعَدِكَ مِنَ النَّارِ قَدْ أَبْدَلَكَ اللهُ بِهِ مَقْعَدًا مِنَ الْجَنَّةِ فَيَرَاهُمَا جَمِيْعًا، وَأَمَّا الْمُنَافِقُ وَالْكَافِرُ فَيُقَالُ لَهُ مَا كُنْتَ تَقُوْلُ فِيْ هٰذَا الرَّجُلِ فَيَقُوْلُ لَا أَدْرِيْ كُنْتُ أَقُوْلُ مَا يَقُوْلُ النَّاسُ فَيُقَالُ لَهُ لَادَرَيْتَ وَلَا تَلَيْتَ وَيُضْرَبُ بِمَطَارِقَ عَنْ حَدِيْدٍ ضَرْبَةً فَيَصِيْحُ صَيْحَةً يَسْمَعُهَا مَنْ يَّلِيْهِ غَيْرُ الثَّقَلَيْنِ (متفق عليه) ولفظه للبخاري .

د حضرت انس ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : هر کله چي بنده په قبر کي دننه کښېښودل سي او خلك ځيني ولاړ سي نو هغه مړی د تلونکو د څپليو آواز اوري او هغه لره دوې ملائکي راسي هغه کښينوي او پوښتنه ځيني کوي چي تا به د هغه سړي (محمد ﷺ) په اړه څه ويل ؟ مؤمن بنده په جواب کي ورته وايي زه د دې شاهدي ورکوم چي هغه د الله بنده او د هغه رسول دی ، بيا هغه ته وويل سي چي ته خپل ځای په دوزخ کي وګوره چي الله پاك بدل کړی دی او د هغې په بدله کي يې تا ته په جنت کي ځای در کړی دی ، نو مړی دواړه ځايونه (جنت او دوزخ) ويني ، کوم مړی چي منافق يا کافر وي نو د هغه څخه هم دغه پوښتنه کيږي چي ستا د هغه سړي په اړه څه خيال دی ؟ هغه په جواب کي ورته وايي زه په هيڅ نه پوهيږم څه چي به نورو خلکو ويل ما هم هغه ويل ، بيا هغه ته وويل سي ايا تا په عقل سره ونه پيژندی او نه دي (قرآن مجيد) وايه ، د دې په ويلو سره به هغه د اوسپني په ګرز ووهل سي او د هغه د چغو آوازونه به د پيريانو او انسانانو ماسوا نور ټول نژدې شيان اوري . بخاري او مسلم او الفاظ دبخاري دي.

**تشريح** : هر کله چي انسان د دغه عارضي دنيا په ژوند ختمولو سره دوهمي دنيا ته ورسيږي نو د هغه د ټولو څخه لومړی منزل قبر وي چي هغه ته عالم برزخ هم وايي ، مړی په قبر کي د کښېنته کولو څخه وروسته چي د هغه قريبان ستنيږي نو هغه ته د الله تعالى د لوري د اورېدو قوت ورکړل سي چي د هغه په ذريعه هغه د ستنېدونکو د څپليو آواز هم اوري ، د هغه څخه وروسته منکر او نکير قبر ته راځي او د هغه څخه د نورو پوښتنو څخه پرته د رسول الله ﷺ په اړه هم

پوښتنه کوي چي د ده په اړه ستا څه عقیده ده ، که مؤمن سړی صادق وي نو هغه به صحیح جواب ورکوي او که هغه کافر وي نو جواب به نسي ورکولای، وروسته به نتیجه ور واورول سي چي صحیح جواب ورکونکی به د الله تعالی د رحمت او د هغه د نعمتونو وړ وګرځول سوي د هغه د آخري منزل د جنت په لور د هغه رهنمائي کوي ، غلط جواب ورکونکی به د الله تعالی د غضب مستوجب وګرځول سي او هغه ته د هغه د آخري منزل دوږخ لار ښودل کیږي .

په حدیث شریف کي چي دا فرمایل سوي دي چي د مړي څخه پوښتني کیږي چي تا به دد غه سړي (محمد ﷺ) په اړه څه ویل ، نو ددې مطلب یا خو دادی چي د رسول الله ﷺ د شهرت په وجه رسول الله ﷺ ته معنوي اشاره کیږي یا بیا دا چي هغه وخت رسول الله ﷺ په مثالي صورت کي د مړي په مخکي وړاندي کیږي ددغه صورت په اړه ویل کیږي چي د مؤمن لپاره د مرګ آرزو به تر ټولو لوی نعمت وي ځکه چي هغه به ددې په وجه ددغه عظیم سعادت څخه برخمن وي او د رسول کریم ﷺ په دیدار به منور او مشرف سي او حقیقت خو دادی چي د رسول کریم ﷺ د عاشقانو د بې تابه او بې آرامه زړونو لپاره په دې کي ستر زیری دی ، په قول د شاعر :

شب عاشقان بې دل چه قدر دراز باشد تو بیا که اول شب در صبح باز باشد

ژباړه : د عاشقانو د بیلتون شپه څومره اوږده وي دا اوله شپه ده داسي نه وي چي سهار سي .

ددغه سوال او جواب څخه وروسته کامیاب مړی یعني مسلمان ته دوه ځایه یعني د جنت او دوږخ وښودل سي او هغه دواړه ځایونهویني چي هغه ته دا معلومه سي که د الله تعالی رحمت د هغه شامل حال نه وای او هغه د اهل دوږخ څخه وای نو هغه به په دوږخ کي اچول سوی وای چي هلته به د الله تعالی په دردناک عذاب کي اخته سوی وای ، مګر هغه په دنیا کي نیک کارونه وکړل او رېښتونی او مخلص مؤمن وو ، د هغه په نتیجه کي د الله تعالی په فضل او کرم سره هغه د جنت په نعمت عظمی سره ونازول سي ، یوې خوا ته هغه دوږخ او د هغه هیبت ناک منظر ویني او بلي خوا ته جنت او د هغه ښه او خوشحاله کونکې فضا ته نظر وکړي چي د هغه په زړه کي د جنت د نعمت قدر وي .

په دغه حدیث شریف کي فرمایل سوي دي چي هر کله په قبر کي د معذب مړي عذاب نازلیږي ، یعني ملائکي د اوسپني په ګرزنو سره هغه وهي نو دده د چغو او نعرو آواز پیریان او انسانان نه اوري ، ددې حکمت دادی چي جن او انس د غیب پر شیانو باندي د ایمان راوړلو مکلف دي که هغوئ ته دا آواز واورول سي یا د هغه ځای حالات په دنیا کي ورته معلوم سي نو

بیا ایمان بالغیب پاته نه سو او که د قبر د حالاتو احساس انسانانو ته وسي نو د خوف او هیبت په وجه به د دنیا په کاروبار کي خنډ پیداسي او د معشیت لړۍ به پرې سي.

په صحیح حدیثونو کي د مؤمنانو د خلاصون او د کافرانو او منافقانو د عذاب په اړه دا فرمایل سوي دي چي د دغه نجات تعلق د صالح مؤمنانو سره دی مګر د فاسق او ګناه کار مؤمنانو په باره کي په حدیثونو کي څه مذکور نه دي چي ایا پر هغوئ به عذاب وي یا هغوئ ته به هم خلاصون وي، البته علماء وايي چي فاسق مؤمن په جواب کي خو د صالح مؤمن شریک دی مګر د نعمتونو زیری، د جنت دروازې خلاصولو وغیره کي د هغوئ شریک نه دی، یا که چیري په دغه شیانو کي هم د هغوئ شریک وي نو بیا په مرتبه او درجه کي به د هغوئ څخه کم وي بلکه پر هغه لړ عذاب هم کیدای سي، که چیري الله تعالی وغواړي نو هغه فاسق او ګناه کار به هم وبخښي او بخښنه به یې په برخه کړي.

﴿۱۱۹﴾: وَعَنْ عَبْدِاللّٰهِ بْنَ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ أَحَدَكُمْ إِذَا مَاتَ عُرِضَ عَلَیْهِ مُقْعَدُهُ بِالْغَدَاةِ وَالْعَشِيِّ إِنْ كَانَ مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ فَمِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ وَإِنْ كَانَ مِنْ أَهْلِ النَّارِ فَمِنْ أَهْلِ النَّارِ فَیُقَالُ هٰذَا مَقْعَدُكَ حَتّٰی یَبْعَثَكَ اللّٰهُ إِلَیْهِ یَوْمَ الْقِیَامَةِ. (متفق علیه)

د حضرت عبدالله بن عمر ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: هر کله چي ستاسو څخه یو څوک مړ سي نو (په قبر کي) سهار او مابنام هغه ته خپل ځای ښودل کیږي، یعني جنتي ته جنت او دوږخي ته دوږخ ښودل کیږي او هغه ته ویل کیږي چي دا ستا ځای دی ته تر هغه وخته پوري انتظار کوه چي الله پاك دي د قیامت په ورځ راپورته کړي او هلته دي واستوي. بخاري او مسلم.

﴿۱۲۰﴾:وَعَنْ عَائِشَةَ أَنَّ یَهُوْدِیَّةً دَخَلَتْ عَلَیْهَا فَذَكَرَتْ عَذَابَ الْقَبْرِ فَقَالَتْ لَهَا أَعَاذَكِ اللّٰهُ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ فَسَأَلَتْ عَائِشَةُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ عَنْ عَذَابِ الْقَبْرِ فَقَالَ نَعَمْ عَذَابُ الْقَبْرِ حَقٌّ قَالَتْ عَائِشَةُ فَمَا رَأَیْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ بَعْدُ صَلّٰی صَلَاةً إِلاَّ تَعَوَّذَ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ. (متفق علیه)

د حضرت عائشي (رض) څخه روایت دی چي یوه یهودي ښځه دې ته راغله هغې د قبر د عذاب یادونه وکړه بیا یې وویل (عائشي!) الله دي تا د قبر د عذاب څخه وساتي، نو عائشي (رض) د رسول الله ﷺ څخه د قبر د عذاب په اړه پوښتنه وکړه، رسول الله ﷺ وفرمایل: هو، د قبر عذاب حق دی، بي بي عائشة (رض) فرمایي د دې پېښي وروسته ما هیڅکله رسول الله ﷺ نه دی لیدلی چي ده مبارك دي یو لمونځ کړی وي او په هغه کي دي یې د قبر د عذاب څخه پناه نه وي غوښتې. بخاري او مسلم.

**تشریح** : بي بي عائشې ﷞ ته به د قبر د عذاب حال معلوم نه وو ځکه یهودي ښځي چي هغه ته ذکر وکړ نو هغه ډیره حیرانه سوه او د رسول الله ﷺ څخه یې په دې اړه پوښتنه وکړه، د هغه جواب ورکړل سو چي د قبر عذاب حق او یقیني دی ، یعني ددې خبري عقیده درلودل ضروري ده چي په قبر کي به پر ګناه کارو خلکو باندي د الله تعالی د لوري ډول ډول عذاب مسلط کیږي او د هغه احساس او ادراک په دې دنیا کي نسي کیدای، د رسول الله ﷺ د پناه غوښتلو په اړه احتمال دی ، کیدای سي چي رسول الله ﷺ ته هم مخکي د قبر د عذاب حال معلوم نه وو ، د هغه څخه وروسته د وحي په ذریعه رسول الله ﷺ ته معلوم سوی وي چي د هغه څخه وروسته رسول الله ﷺ پناه غوښتل پیل کړل ، او ښکاره ده چي (نعوذبالله) د رسول الله ﷺ سره خو په قبر کي ددا ډول معاملې کېدو سوال هم نه پیدا کیږي ځکه نو دا به وویل سي چي د رسول الله ﷺ پناه غوښتل د امت د تعلیم لپاره وه چي هر کله د الله تعالی محبوب او غوره بنده او د هغه خوږ رسول هم د قبر د عذاب څخه پناه غواړي نو د امت ټولو خلکو ته پکار ده چي د قبر د عذاب څخه پناه غواړي .

یا دا وویل سي چي د قبر د عذاب حال رسول الله ﷺ ته د مخکي څخه معلوم وو مګر په پټه توګه سره یې د هغه څخه پناه غوښتل چي په هغه سره بي بي عائشه خبره نه وه ، وروسته د بي بي عائشې د پوښتني کولو څخه رسول الله ﷺ په ښکاره پناه غوښتل پیل کړي وي چي نور خلک هم خبر سي او د قبر د عذاب څخه پناه وغواړي .

﴿۱۲۱﴾: وَعَنْ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ قَالَ بَيْنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ حَائِطٍ لِبَنِيْ النَّجَّارِ عَلَىٰ بَغْلَةٍ لَهُ وَنَحْنُ مَعَهُ إِذْ حَادَتْ بِهِ فَكَادَتْ تُلْقِيْهِ وَإِذَا أَقْبُرٌ سِتَّةٌ أَوْ خَمْسَةٌ فَقَالَ مَنْ يَّعْرِفُ أَصْحَابَ هٰذِهِ الْأَقْبُرِ؟ قَالَ رَجُلٌ أَنَا، قَالَ فَمَتٰى مَاتُوْا ؟ قَالَ فِي الشِّرْكِ فَقَالَ إِنَّ هٰذِهِ الْأُمَّةَ تُبْتَلٰى فِيْ قُبُوْرِهَا فَلَوْلَا أَنْ لَا تَدَافَنُوْا لَدَعَوْتُ اللّٰهَ أَنْ يُسْمِعَكُمْ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ الَّذِيْ أَسْمَعُ مِنْهُ ثُمَّ أَقْبَلَ عَلَيْنَا بِوَجْهِهِ فَقَالَ تَعَوَّذُوْا بِاللّٰهِ مِنْ عَذَابِ

د حضرت زید بن ثابت[1] ﷛ څخه روایت دی چي (یوځل) رسول الله ﷺ د بني نجار په باغ کي پر غاتري سپور وو او موږ هم ورسره وو، ناڅاپه د رسول الله ﷺ غاتره بې واکه سوه او نژدې وو چي رسول الله ﷺ یې غورزولی وای، ناڅاپه پنځه شپږ قبرونه ښکارند سول ، رسول الله ﷺ وفرمایل: په دې قبرو کي چي کوم خلك دي په تاسو کي دوئ څوك پیژني؟ یوه سړي وویل : زه یې پیژنم ، رسول الله ﷺ پوښتنه وکړه دوئ په کوم حال کي مړه سوي دي ؟ هغه سړي وویل د شرك په حالت کي، رسول الله

[1] زید بن ثابت انصاري او خزرجي دی ، نوموړی د وحي کاتب دی په (۴۲هـ) (۴۵هـ) کي وفات سوی دی .

النَّارِ قَالُوْا نَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنْ عَذَابِ النَّارِ قَالَ تَعَوَّذُوْا بِاللّٰهِ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ قَالُوْا نَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ قَالَ تَعَوَّذُوْا بِاللّٰهِ مِنَ الْفِتَنِ مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَمَا بَطَنَ قَالُوْا نَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنَ الْفِتَنِ مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَمَا بَطَنَ قَالَ تَعَوَّذُوْا بِاللّٰهِ مِنْ فِتْنَةِ الدَّجَّالِ قَالُوْا نَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنْ فِتْنَةِ الدَّجَّالِ . رواه مسلم .

ﷺ وفرمایل : دا امت په خپلو قبرو کي په آزمائش کي دی ، که زما سره دا بیره نه وای چي تاسو به (مړي) ښخول پریږدئ نو ما به خامخا د الله ﷻ څخه دا دعاء غوښتې وای چي تاسو ته هم د قبر عذاب واوري لکه څرنګه چي زه یې اورم (وینم) د دې وروسته رسول الله ﷺ زموږ په لور متوجه سو او وه یې فرمایل : د الله څخه پناه غواړئ چي د اور د عذاب څخه مـــو وژغوري ، صحابه کرامو عرض وکړئ موږ د الله څخه د اور د عذاب پناه غواړو . رسول الله ﷺ بیا وفرمایل : د قبر د عذاب څخه د الله پناه وغواړئ ، صحابه کرامو عرض وکړ موږ د الله څخه د قبر د عذاب پناه غواړو ، بیا رسول الله ﷺ وفرمایل : تاسو د الله څخه د ظاهري او باطني فتنو پناه وغواړئ ، صحابه کرامو وویل : موږ د الله څخه د ظاهري او باطني فتنو پناه غواړو ، بیا رسول الله ﷺ وفرمایل : تاسو د دجال د فتنې څخه پناه وغواړئ ، صحابه کرامو وویل : موږ د الله ﷻ څخه د دجال د فتنې څخه پناه غواړو . مسلم.

**تشریح** : د نبي احساس، شعور او د هغه قوت ادراک د دنیا د ټولو خلکو څخه ډېر زیات قوي وي ، د هغه احساس په ظاهر او باطن کي هغه قدرتي طاقت وي چي د هغه په وجه هغه د دې دنیا څخه مخکي هم د عالم غیب د شیانو ادراک کوي ځکه د هغه د ظاهري سترګو سره سره باطني سترګي هم دومره توانا وي چي هغه د غیب هغه شیان هم ویني کوم چي الله تعالی ورته ښودل وغواړي . رسول الله ﷺ په یو سفر روان وو ، کله چي د یوې هدیرې سره تیرېدل نو هلته ډبصیرت سترګو یې ادراک وکړ چي په دغه قبرونو کي پر مړو باندي عذاب کیږي ، بیا رسول الله ﷺ صحابه کرامو ته تلقین وکړ چي هغوئ د قبر د عذاب څخه پناه غواړي .

د قبر د عذاب د شدت اندازه د دې څخه کیدای سي چي رسول الله ﷺ صحابه کرامو ته وفرمایل که ستاسو سترګي دا وویني او ستاسو غوږونه دا واوري نو تاسو به د خپل عقل او پوهي څخه لاس پریولئ او تاسو به د دې د شدت او سختۍ محض احساس کولو سره بې هوشه سئ او د هغه نتیجه به دا وي چي تاسو به د دغه خوف او هیبت په وجه مړي ښخول پریږدئ ، که ما ته د دې بیره نه وای نو ما به یقینا پر تاسو د دغه عذاب مشاهده هم کړې وای او تاسو ته به مي اورولې هم وای .

# الفصل الثاني

﴿۱۲۲﴾ : وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا قُبِرَ الْمَيِّتُ أَتَاهُ مَلَكَانِ أَسْوَدَانِ أَزْرَقَانِ يُقَالُ لِأَحَدِهِمَا الْمُنْكَرُ وَالْآخَرُ النَّكِيرُ فَيَقُولَانِ مَا كُنْتَ تَقُولُ فِي هَذَا الرَّجُلِ؟ فَإِنْ كَانَ مُؤْمِنًا فَيَقُولُ هُوَ عَبْدُ اللهِ وَرَسُولُهُ أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللّٰهُ وَأَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ فَيَقُولَانِ قَدْ كُنَّا نَعْلَمُ أَنَّكَ تَقُولُ هَذَا ثُمَّ يُفْسَحُ لَهُ فِي قَبْرِهِ سَبْعُونَ ذِرَاعًا فِي سَبْعِينَ ثُمَّ يُنَوَّرُ لَهُ فِيهِ ثُمَّ يُقَالُ لَهُ نَمْ فَيَقُولُ أَرْجِعُ إِلَى أَهْلِي فَأُخْبِرُهُمْ فَيَقُولَانِ نَمْ كَنَوْمَةِ الْعَرُوسِ الَّذِي لَا يُوقِظُهُ إِلَّا أَحَبُّ أَهْلِهِ إِلَيْهِ حَتَّى يَبْعَثَهُ اللّٰهُ مِنْ مَضْجَعِهِ ذَلِكَ وَإِنْ كَانَ مُنَافِقًا قَالَ سَمِعْتُ النَّاسَ يَقُولُونَ قَوْلاً فَقُلْتُ مِثْلَهُ لَا أَدْرِي فَيَقُولَانِ قَدْ كُنَّا نَعْلَمُ أَنَّكَ تَقُولُ ذَلِكَ فَيُقَالُ لِلْأَرْضِ الْتَئِمِي عَلَيْهِ فَتَلْتَئِمُ عَلَيْهِ فَتَخْتَلِفُ فِيهَا أَضْلَاعُهُ فَلَا يَزَالُ فِيهَا مُعَذَّبًا حَتَّى يَبْعَثَهُ اللّٰهُ مِنْ مَضْجَعِهِ ذَلِكَ (رواه الترمذي)

د حضرت ابوهريرة ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله وفرمايل : کله چي مړی په قبر کي کښېښودل سي نو هغه ته دوې ملائکي تور رنګي او شنو سترګو والا راسي ، په هغوئ کي د يوې نوم منکر او د بلي نکير دی، هغوئ دواړي د مړي څخه پوښتنه کوي چي تا به د هغه سړي (محمدﷺ) په اړه څه ويل ؟ هغه مړی به په جواب کي وايي هغه د الله بنده او د هغه رسول دی او زه شاهدي ادا کوم چي نسته بل معبود پر حق مګر يو الله ﷻ او محمد ﷺ د الله رسول دی، د دې په اوربدو سره هغه دواړي ملائکي وايي : موږ ته څرګنده وه چي ته به دا جواب راکوې د دې وروسته د هغه قبر اويا اويا ګزه په اوږدوالي او بروالي پراخ کړل سي ، بيا په قبر کي رڼا سي او هغه ته وويل سي بيده سه ، مړی هغوئ ته وايي زه خپل کورني ته بېرته تلل غواړم چي هغوئ زما د حال څخه خبردار کړم ، ملائکي بيا ورته وايي چي اوس ته بيده سه لکه څرنګه چي ناوې بيده کيږي چي هغه ناوې يوازي خپل ميړه وېښولای سي کوم چي د هغې په آند تر ټولو زيات محبوب وي تر هغو چي الله ﷻ تا د دې ځای څخه راپورته کوي (دا کيفيت خو د مؤمن مړي دی) او کوم مړی چي منافق وي هغه د ملائکو په جواب کي وايي چي ما د خلګو څخه څه اورېدل هغه به مي ويل مګر زه د دې حقيقت څخه ناخبر وم ، دواړي ملائکي چي د هغه جواب واوري نو وايي چي موږ خبر وو چي ته به دغسي جواب وايي مځکي ته به حکم ورکړل سي چي پر ده راټوله سي نو مځکه به داسي راټوله سي چي د هغه پښتۍ به د يوې خوا څخه بلي خوا ته تير وبيري سي او هغه به هميشه په دغه عذاب کي وي تر څو چي الله ﷻ يې د هغه ځايه څخه را پورته کړي . ترمذي .

**تشریح** : په قبر کي ملائکي په هیبت ناک او خوفناک شکل کي راځي چي د هغوئ د خوف او هیبت په وجه پر کافرانو هیبت خپور سي او هغوئ په جواب ورکولو کي بد حواسه سي مګر دا د مؤمنانو لپاره ازموینه او امتحان وي چي په هغه کي الله تعالی هغوئ ثابت قدمه لري او د هغوئ څخه د بیرېدو سره صحیح جواب ورکوي چي د هغه په وجه هغوئ کامیاب وي ځکه چي هغوئ په دنیا کي د الله تعالی څخه بیرېږي د هغه نتیجه به دا وي چي هغوئ په قبر کي د هر ډول خوف او هیبت څخه بې خوفه وي.

د مړي په جواب کي د ملائکو دا ویل چي (موږ پوهېدو) چي ته به یقینا داسي وایي یا خو په وجه به وي چي د پروردګار عالم د لوري به هغوئ ته خبر ورکول کیږي چي فلانی مړی به دا جواب ورکوي او فلانی به دا، یا هغوئ د مړي د تندي څخه او د هغه د اثارو څخه دا معلوموي چي د مؤمن پر تندي د نور ایماني ځلا او د سعادت او نیک بختۍ نښه وي او د کافرانو او منافقانو پر تندي لعنت اورېږي.

کله چي مؤمن صحیح جواب ورکوي پر هغه د الله تعالی رحمت او د هغه د نعمتونو دروازې خلاصي سي نو د هغه دا خواهش وي چي هغه خپل کورنۍ د دغه ښه معاملې او عظیم نعمت څخه خبر کړي، لکه څرنګه چي یو مسافر په یو ځای کي په راحت او سکون وي او هلته د عیش او آرام سامان هغه ته حاصلیږي نو د هغه خواهش دا وي چي کاش هغه وخت خپل کورنۍ او خپلوانو ته ورسیږي چي د خپل آرام، راحت او سکون څخه یې خبر کړي ځکه نو مؤمن مړی خپل کورنۍ ته د بیرته تللو د خواهش اظهار کوي.

﴿۱۲۳﴾: وَعَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ عَنْ رَّسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَأْتِيْهِ مَلَكَانِ فَيُجْلِسَانِهِ فَيَقُوْلاَنِ لَهُ مَنْ رَّبُّكَ؟ فَيَقُوْلُ رَبِّيَ اللهُ فَيَقُوْلاَنِ لَهُ مَا دِيْنُكَ؟ فَيَقُوْلُ دِيْنِيَ الإِسْلاَمُ، فَيَقُوْلاَنِ لَهُ مَا هٰذَا الرَّجُلُ الَّذِيْ بُعِثَ فِيْكُمْ؟ فَيَقُوْلُ هُوَ رَسُوْلُ اللهِ، فَيَقُوْلُ قَرَأْتُ كِتَابَ اللهِ فَآمَنْتُ بِهِ وَصَدَّقْتُ فَذَالِكَ قَوْلُهُ (يُثَبِّتُ اللهُ الَّذِيْنَ آمَنُوْا بِالْقَوْلِ الثَّابِتِ) الآية قَالَ فَيُنَادِيْ مُنَادٍ مِّنَ السَّمَاءِ أَنْ صَدَقَ عَبْدِيْ

د حضرت براء بن عازب ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: مړي ته دوې ملائکي راځي هغوئ دی راکښېنوي او پوښتنه ځیني کوي چي ستا رب څوك دی؟ هغه په جواب کي وایي زما رب الله دی، بیا ملائکي پوښتنه کوي ستا دین کوم دی؟ هغه وایي زما دین اسلام دی، بیا پوښتنه کوي کوم سړی چي تاسو ته رالیږل سوی وو هغه څوك وو؟ هغه ورته وایي چي هغه د الله رسول دی، بیا ملائکي پوښتنه کوي دا

فَأَفْرِشُوْهُ مِنَ الْجَنَّةِ وَأَلْبِسُوْهُ مِنَ الْجَنَّةِ وَافْتَحُوْا لَهُ بَابًا إِلَى الْجَنَّةِ فَيُفْتَحُ قَالَ فَيَأْتِيْهِ مِنْ رُوْحِهَا وَطِيْبِهَا وَيُفْسَحُ لَهُ فِيْهَا مُدَّ بَصَرِهِ وَأَمَّاالْكَافِرُ فَذَكَرَ مَوْتَهُ قَالَ وَيُعَادُ رُوْحُهُ فِيْ جَسَدِهِ وَيَأْتِيْهِ مَلَكَانِ فَيُجْلِسَانِهِ فَيَقُوْلاَنِ مَنْ رَّبُّكَ فَيَقُوْلُ هَاهْ هَاهْ لاَ أَدْرِيْ فَيَقُوْلاَنِ لَهُ مَا دِيْنُكَ فَيَقُوْلُ هَاهْ هَاهْ لاَ أَدْرِيْ فَيَقُوْلاَنِ مَا هٰذَا الرَّجُلُ الَّذِيْ بُعِثَ فِيْكُمْ فَيَقُوْلُ هَاهْ هَاهْ لاَ أَدْرِيْ فَيُنَادِيْ مُنَادٍ مِّنَ السَّمَاءِ أَنْ كَذَبَ فَأَفْرِشُوْهُ مِنَ النَّارِ وَأَلْبِسُوْهُ مِنَ النَّارِ وَافْتَحُوْا لَهُ بَابًا إِلَى النَّارِ قَالَ فَيَأْتِيْهِ مِنْ حَرِّهَا وَسَمُوْمِهَا قَالَ وَيُضَيَّقُ عَلَيْهِ قَبْرُهُ حَتّٰى تَخْتَلِفَ فِيْهِ أَضْلاَعُهُ ثُمَّ يُقَيَّضُ لَهُ أَعْمٰى أَصَمُّ مَعَهُ مِرْزَبَةٌ مِنْ حَدِيْدٍ لَوْ ضُرِبَ بِهَا جَبَلٌ لَصَارَ تُرَابًا فَيَضْرِبُهُ بِهَا ضَرْبَةً يَسْمَعُهَا مَا بَيْنَ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ إِلاَّالثَّقَلَيْنِ فَيَصِيْرُ تُرَابًا ثُمَّ يُعَادُ فِيْهِ الرُّوْحُ . رواه أحمد وأبو داود .

خبره تا ته څنګه معلومه سوه؟ هغه ورته وايي ما د الله كتاب وايه پر هغه مي ايمان راوړی دی او دهغه مي تصديق كړی وو، رسول الله ﷺ فرمايي دا معنی د الله پاك ددغه قول ده (يثبت الله الذين ...) رسول الله ﷺ وفرمايل : بيا به يو ږوك د آسمان څخه آواز وكړي چي زما بنده رښتيا وويل دده لپاره د جنت فرش آوار كړی د جنت جامې ور واغوندی او دده لپاره د جنت د لوري څخه يوه دروازه خلاصه كړئ ، نو د جنت لوري ته به دروازه خلاصه كړل سي چي د هغه هوا او خوشبويي به ورته راځي او دنظر تر حده پوري به ورته قبر پراخ كړل سي ، مګر كافر نو رسول الله ﷺ د هغه د مرګ يادونه وكړه او وه يې فرمايل : بيا د هغه روح د هغه په بدن كي واچول سي او هغه ته دوې ملائكي راځي هغه راكښېنوي او پوښتنه څيني كوي چي ږوك دی رب ستا ؟ هغه ورته وايي هاه هاه ما ته نه دی معلوم، بيا ورته وايي ستا دين څه شي دی؟ دی به ورته وايي هاه هاه زه نه يم خبر ، بيا پوښتنه كوي هغه سړی ږوك دی چي تاسو ته رالېږل سوی وو؟ هغه به وايي هاه هاه زه په دې نه پوهيږم بيا به يو آواز كونكی د آسمان څخه آواز وكړي چي دی دروغجن دی د ده لپاره د اور فرش و غوړوئ د اور جامې ور واغوندئ او د دوږخ لوري ته يوه دروازه ورته را خلاصه كړئ ، رسول الله ﷺ وفرمايل : د دوږخ څخه به هغه ته ګرمي او تودې هواوي راځي او د هغه قبر به پر هغه تنګ كړل سي تر دې چي د هغه پښتی به يوې خوا څخه بلې خوا ته ووزي ، بيا به پر هغه يوه ړنده او كڼه ملائكه و ټاكل سي او دهغې سره به د اوسپني ګرز وي داسي ګرز كه غر په ووهل سي نو هغه به ريزه ريزه سي ، هغه ملائكه به يې په ګرز سره وهي چي د هغه آواز به د لوېديځ څخه تر ختيځ پوري ټول مخلوقات اوري خو پېريانان او انسانان يې نه اوري، (او د ګرز په وهلو سره به ) هغه ريزه ريزه سي او بيرته به روح پكښې واچول سي . احمد او ابوداؤد .

**تشریح**: هاه هاه یو لفظ دی چي په عربي ژبه کي د حیران او بیري اخیستی سړی یې وایي لکه په پشتو ژبه کي چي د حیرت او بیري په وخت کي آه ، اف، وای وای، وغیره وایي، ویل کیږي چي مطلب دادی چي هغه وخت کافر دومره بېرول کیږي چي د هغه د ژبي څخه د هیبت په وجه د خوف او حسرت الفاظ وځي او هغه صحیح جواب نسي ورکولای او وایي چي زه نه پوهیږم ، د هغه پر دې جواب باندي د غیب څخه هغه درواغجن وګرځول سي ځکه چي د دین اسلام آوازه د مشرق څخه تر مغرب پوري ورسیده او رسول کریم ﷺ خپل دعوت د دنیا په څلورو کنجانو کي خپور کړ او دنیا د دغه آفاقي او آسماني مذهب څخه خبره و ، د دې سربیره د هغه دا ویل چي زه نه پوهیږم بالکل کذب او درواغ دي . په قبر کي د عذاب کومي ملائکي چي تا کل سوي دي هغه ړندې او کڼې وي ، د دې حکمت دادی چي هغوئ د چغو وهونکو آواز نه اوري او نه د هغوئ حالویني چي رحم پر وکړي او د دې حدیث څخه دا معلومه سوه چي د معذب په مړه بدن کي په وار وار روح اچول کیږي چي عذاب پر سخت سي او دا د هغه شي انجام دی چي هغه په دنیا کي د قبر د عذاب څخه په انکار کولو سره هغه یې درواغ ګڼې . (نعوذباالله) .

﴿۱۲۴﴾ : وَعَنْ عُثْمَانَ أَنَّه كَانَ إِذَا وَقَفَ عَلٰى قَبْرٍ بَكٰى حَتّٰى يَبُلَّ لِحْيَتَهُ فَقِيْلَ لَهُ تَذْكُرُ الْجَنَّةَ وَالنَّارَ فَلاَ تَبْكِيْ وَتَبْكِيْ مِنْ هٰذَا فَقَالَ إِنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّ الْقَبْرَ أَوَّلَ مَنْزِلٍ مِّنْ مَنَازِلِ الآخِرَةِ فَإِنْ نَّجَا فَمَا بَعْدَهُ أَيْسَرُ مِنْهُ وَإِنْ لَمْ يَنْجُ مِنْهُ فَمَا بَعْدَهُ أَشَدُّ مِنْهُ قَالَ وَقَالَ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا رَأَيْتَ مَنْظَرًا قَطُّ إِلاَّ الْقَبْرَ أَفْظَعُ مِنْهُ . رواه الترمذي وابن ماجه . وقال الترمذي هذا حديث غريب .

د حضرت عثمان ﷺ څخه روایت دی چي کله به هغه د یو قبر سره ودرېدی نو (بې اختیاره) به یې ژړل تر دې چي د هغه ږیره به په اوښکو لنده سول ، د هغه څخه پوښتنه وسول چي تاسو د جنت او دوزخ یادونه کوئ نو دهغو په یادونه سره نه ژاړئ او په دې ځای کي ژاړئ ، حضرت عثمان ﷺ ورته وویل : رسول الله ﷺ فرمایلي دي چي قبر د آخرت د منزلو څخه لومړنی منزل دی چا چي د دې منزل څخه خلاصون تر لاسه کړی نو د دې وروسته آساني ده او چا چي د دې منزل څخه خلاصون تر لاسه نه کړی نو د دې وروسته تر دې سختي ده ، حضرت عثمان ﷺ وویل چي رسول الله ﷺ فرمایلي دي چي ما هیڅ یو منظر تر قبر زیات سخت نه دی لیدی . ترمذي ویلي دي دا حدیث غریب دی .

**تشریح**: یعني د قبر سره پر درېدو باندي د انسان عیش او عشرت هیر سي او د دنیا پر بې ثباتی باندي د هغه ایمان ټینګ سي چي هغه د الله تعالی د خوف څخه خپل زړه ریږدونکی مومي او د

آخرت سره مينه محسوس كوي ، قبر يې د عيش او عشرت څخه متنفر كوي او په محنت ، مشقت او ياد الهي كي يې مصروف ساتي ، په دې وجه يې فرمايلې دي چي تر ټولو زيات سخت ځاى قبر دى .

﴿١٢٥﴾: وَعَنْهُ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا فَرَغَ مِنْ دَفْنِ الْمَيِّتِ وَقَفَ عَلَيْهِ فَقَالَ اسْتَغْفِرُوْا لِأَخِيْكُمْ ثُمَّ سَلُوْا لَهُ بِالتَّثْبِيْتِ فَإِنَّهُ الْآنَ يُسْأَلُ . رواه أبو داود .

د حضرت عثمان ﷺ څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ به كله د مړي د ښخېدو څخه فارغ سو نو د قبر سره به ودرېدى او فرمايل به يې (خلكو ته) د خپل ورور لپاره استغفار كوئ (بخښنه غواړئ) او د هغه د ثابت قدمى لپاره دعاء غواړئ ځكه چي په دې وخت كي دده څخه پوښتني كيږي . ابوداؤد .

**تشريح** : د دغه حديث څخه معلومه سوه چي د ژوندو د لوري د مړي لپاره د استغفار دعاء كار كونكې او ګټوره ده ، د هل اسنت والجماعة دا مسلک دى .

دا دعاء د مړي د استقامت او ثابت قدمى لپاره د مړي د دعاء تلقين څخه پرته ده چي د دفن كولو څخه وروسته كيږي ، د مړي د تلقين مسئله دا وه چي دا تلقين اكثر د حنفيه په نزد ثابت نه دى مګر د اكثر شافعيه او حنفيه په نزد مستحب دى ، د دفن كولو څخه وروسته د تلقين ميت په اړه يو حديث د ابوامامه ﷺ څخه وارد سوى دى چي علامه سيوطي رحمه الله عليه په جمع الجامع كي د طبراني څخه ذكر كړى دى او ابن نجار ، ابن عساكر او ديلمي هم ذكر كړى دى چي رسول الله ﷺ ارشاد وفرمايه هر كله چي په تاسو كي يو څوک وفات سي او هغه دفن كړئ نو يو سړى دي د قبر سرته ودرېږي او دا دي ووايي اې فلان ابن فلان ، مړى دا جواب اوري مګر جواب نه وركوي هغه سړى دي بيا ووايي اې فلان بن فلان ، دا ځل مړى وايي الله دي پر تا رحم وكړي ارشاد وفرمايه مګر تاسو هغه نه اورئ ، ددې څخه وروسته هغه سړي ته ويل پكار دي چي اې فلان دا كلمه ياد كړه چي په هغه سره ته په دې دنيا كي آزاسته سوې او هغه د (لااله الاالله وان محمدا عبده ورسوله) شهادت دى او ته پر دې راضي سوې چي الله تعالى ستا پرودرګار دى ، محمد ﷺ ستا پيغمبر دى او اسلام ستا دين دى او قرآن كريم ستا رهبر امام دى ، هر كله چي دا وويل سي نو منكر نكير د يو بل لاس نيولو سره وايي راځه چي وځو ددې بنده دمخ څخه دباندي وځو دده سره زموږ څه كار دى ، د حق تعالى د لوري ده ته تلقين كيږي .

يو صحابي عرض وكړ اې دالله رسوله ! كه موږ ته دمړي د مور نوم نه وي معلوم نو څه

ووایو، د هغه نسبت کوم طرف ته وکړو، رسول الله ﷺ ورته وفرمایل: ښه ښي حواء ته یې نسبت کوئ ځکه چې هغه د ټولو مور ده.

د مړي د تلقین په اړه ددې شخه پرته د قبر سر ته په دریدو سره د سورة بقرة تر (مفلحون) پورې او امن الرسول پورې لوستل هم منقول دي او که قرآن کریم ټول ولوستل سي نو دا تر ټولو غوره ده، ځیني علماؤ خو دا ویلي دي که هلته د یو مسئلې ذکر هم وکړل سي نو دا هم د فضیلت باعث او د خدای ﷻ د رحمت د نزول سبب ګرځي.

﴿۱۲۶﴾: وَعَنْ أَبِيْ سَعِيْدٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيُسَلَّطُ عَلَى الْكَافِرِ فِيْ قَبْرِهٖ تِسْعَةٌ وَّتِسْعُوْنَ تِنِّيْنًا تَنْهَسُهُ وَتَلْدَغُهُ حَتّٰى تَقُوْمَ السَّاعَةُ لَوْ أَنَّ تِنِّيْنًا مِّنْهَا نَفَخَ فِي الْأَرْضِ مَا أَنْبَتَتْ خَضِرًا. رواه الدارمي وروى الترمذي نحوه وقال سبعون بدل تسعة وتسعون.

د حضرت ابو سعید ﷛ شخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل: پر کافر باندې په قبر کې نهه نیوي ماران و ټاکل سي چې تر قیامته پورې هغه چیچي، او هغه داسي ماران دي که د هغو شخه یو هم پر مځکه پوه کړي نو مځکه به د کرلو شخه محرومه سي (دارمي) او ترمذي هم دا ډول روایت کړی دی مګر په هغه کې د نهه نیوي پر ځای د اویا شمیر دی.

## الفصل الثالث

﴿۱۲۷﴾: عَنْ جَابِرٍ قَالَ خَرَجْنَا مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِلٰى سَعْدِ بْنِ مُعَاذٍ حِيْنَ تُوُفِّيَ فَلَمَّا صَلَّى عَلَيْهِ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَوُضِعَ فِيْ قَبْرِهٖ وَسُوِّيَ عَلَيْهِ سَبَّحَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَبَّحْنَا طَوِيْلاً ثُمَّ كَبَّرَ فَكَبَّرْنَا فَقِيْلَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ لِمَ سَبَّحْتَ ثُمَّ كَبَّرْتَ قَالَ لَقَدْ تَضَايَقَ عَلٰى هٰذَا الْعَبْدِ الصَّالِحِ قَبْرُهٗ حَتّٰى فَرَّجَهُ اللّٰهُ عَزَّ وَجَلَّ عَنْهُ. رواه أحمد.

د حضرت جابر ﷛ شخه روایت دی چې کله سعد بن معاذ ﷛ وفات سو نو موږ د رسول الله ﷺ سره د هغه جنازې ته ورغلو کله چې رسول الله ﷺ د هغه د جنازې لمونځ ادا کړ او هغه یې قبر ته کښته کړی او خاوري پر برابري کړل سوې نو رسول الله ﷺ تسبیح (سبحان الله) وویل او موږ هم ډیر خله سبحان الله وویل بیا رسول الله ﷺ تکبیر (الله اکبر) وویل او موږ هم تکبیرووایه، بیا د رسول الله ﷺ شخه پوښتنه وسول چې تاسو تسبیح او تکبیر ولي وویل؟ نو رسول الله ﷺ وفرمایل: د دې نیك بنده قبر پر ده تنګ کړل سو بیا الله ﷻ زموږ په تسبیح او تکبیر سره هغه پراخ کړ. احمد

**تشريح** : په تسبيح او تكبير سره د الله تعالى غضب په رحمت او د هغه غصه په شفقت بدليږي او هلته د ځيل مقدس كلمو په بركت د خپل رحمت او نعمت دروازې خلاصوي .
ځكه نو د خوف يا بيري پر موقع يا د يو خوفناک شي په ليدو سره تكبير ويل مستحب دی ، د تسبيح او تكبير چي څومره ورد وكړل سي هغومره د الله تعالى رحمت ته نژدې كيږي او د دنياوي آفات او غضب الهي ځيني ليري كيږي .

﴿١٢٨﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هٰذَا الَّذِيْ تَحَرَّكَ لَهُ الْعَرْشُ وَفُتِحَتْ لَهُ أَبْوَابُ السَّمَاءِ وَشَهِدَهُ سَبْعُوْنَ أَلْفًا مِّنَ الْمَلَائِكَةِ لَقَدْ ضُمَّ ضَمَّةً ثُمَّ فُرِجَ عَنْهُ . رواه النسائي .

د حضرت ابن عمر ﷛ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : دی (يعني سعد) هغه سړی دی چي دده لپاره عرش په حركت كي راغلی دی او دده لپاره د آسمان دروازې خلاصي سوي دي او دده په جنازه كي اويا زره ملائكي حاضري سوې او دده قبر تنگ كړل سو بيا دا تنگي ليري كړل سوه (قبر پراخ كړل سو ). نسائي .

﴿١٢٩﴾: وَعَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ أَبِيْ بَكْرٍ قَالَتْ قَامَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَطِيْبًا فَذَكَرَ فِتْنَةَ الْقَبْرِ الَّتِيْ يُفْتَنُ فِيْهَا الْمَرْءُ فَلَمَّا ذَكَرَ ذٰلِكَ ضَجَّ الْمُسْلِمُوْنَ ضَجَّةً . رواه البخاري هكذا وَ زَادَ النَّسَائِيُّ حَالَتْ بَيْنِيْ وَبَيْنَ أَنْ أَفْهَمَ كَلَامَ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمَّا سَكَنَتْ ضَجَّتُهُمْ قُلْتُ لِرَجُلٍ قَرِيْبٍ مِّنِّيْ أَيْ بَارَكَ اللّٰهُ فِيْكَ مَاذَا قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ آخِرِ قَوْلِهِ ؟ قَالَ قَدْ أُوْحِيَ إِلَيَّ أَنَّكُمْ تُفْتَنُوْنَ فِي الْقُبُوْرِ قَرِيْبًا مِّنْ فِتْنَةِ الدَّجَّالِ .

د بي بي اسماء [1] بنت ابي بكر (رض) څخه روايت دی : يوه ورځ رسول الله ﷺ ودريدی او خطبه يې وويل رسول الله ﷺ د قبر د فتنې يادونه يې وكړه چي په دې كي د انسان ازموينه اخيستل كيږي، د دې يادوني سره مسلمانانو (د بيري له كبله) تر ډيره وخته پوري ژړل ، دا روايت د بخاري دی او نسائي دا الفاظ زيات بيان كړي دي چي د خلگو د ژړا له كبله (بي بي اسماء وايي) ما د رسول الله ﷺ الفاظ نه واوريدل كوم وخت چي دا شور كم سو نو ما د هغه سړي څخه كوم چي ما ته نژدې ناست وو پوښتنه وكړه الله دي بركت دركړي په پای كي

[1] نوموړې د حضرت ابوبكر صديق ﷛ لور ، د حضرت زبير بن عوام بي بي مباركه او د حضرت عبدالله بن زبير والده محترمه ده چي د خپل خور بي بي عائشې رضي الله عنها څخه لس كاله مشره وه ، په مكه مكرمه كي يې اسلام راوړ او په مكه كي د سلو (۱۰۰) كالو په عمر وفات سوه .

رسول الله ﷺ څه وفرمایل ؟ هغه وویل رسول الله ﷺ وفرمایل چي ما ته دا وحي سوي دي چي تاسو به د قبرونو په اړه په فتنه کي واچول سئ یعني تاسو به امتحان کړل سئ او دا فتنه به د دجال د فتنې نژدې نژدې وي.

**تشریح** : مطلب دا چي څرنګه د دجال فتنه به د خپلي تباهی او تاوان په وجه سخته هلاکونکې او تباه کونکې وي همداسي د قبر فتنه به هم د سخت والي او شدت په وجه ډیره زیاته ېرونکې وي نو د الله تعالی څخه دعاء غوښتل پکار ده چي هغه په داسي سخت دردناک وخت کي د خپل رحمت دروازې خلاصي کړي او په دغه امتحان کي مو ثابت وساتي

﴿۱۳۰﴾: وَعَنْ جَابِرٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أُدْخِلَ الْمَيِّتُ الْقَبْرَ مُثِّلَتْ لَهُ الشَّمْسُ عِنْدَ غُرُوْبِهَا فَيَجْلِسُ يَمْسَحُ عَيْنَيْهِ وَيَقُوْلُ دَعُوْنِيْ أُصَلِّيْ . رواه ابن ماجه .

د حضرت جابر ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : کوم وخت چي مړی په قبر کي ښخ کړل سي نو دهغه په وړاندي د لمر لوېدو وخت وړاندي کړل سي (که هغه مؤمن وي) نو هغه په لاسو سره سترګي موږي او کښیني او وایي ما پرېږدئ چي لمونځ وکړم.

**تشریح** : باعمله مؤمن مړی چي کله په قبر کي دفن کړل سي نو څرنګه چي هغه په دنیا کي پر ایمان او اسلام باندي قائم وو او د اسلام د فرضونو د ادا کولو څخه هیڅ وخت غافل نه وو همداسي په قبر کي هم هغه ته تر ټولو مخکي لمونځ یادیږي ، هر کله چي منکر او نکیر هغه ته په قبر کي حاضریږي نو هغه د سوال او جواب څخه مخکي د لمانځه ادا کولو لپاره وایي چي مخکي زه لمونځ وکړم د هغه څخه وروسته چي تاسو څه ویل وایاست وه یې وایاست ، یا د سوال او جواب څخه وروسته هغه دا الفاظ وایي او هغه دا خیال کوي چي زه د خپل کورنی په منځ کي ناست یم د هغه په شعور او احساس کي تر ټولو مخکي لمونځ راځي ، دا حالت دلالت کوي چي هغه لکه چي اوس هم په دنیا کي دی او د خوب څخه اوس راکښېنستلی دی.

ددې څخه معلومه سوه چي کوم سړی په دنیا کي پوخ (دائمي) لمونځ کونکی او لمونځ ځیني قضا سوی نه وي نو په قبر کي هم د عادت سره سم هغه ته مخکي لمونځ را یادیږي.

د ښخولو څخه وروسته د مړي په مخکي د لمر لوېدو وخت (لکه په حدیث کي چي وویل سول) وړاندي کول د هغه د حالت مسافرت او د یوازیوالي د مناسب په وجه دی هر کله چي یو مسافر یو ښار ته ماښام ورسیږي نو هغه د حیرانی او پریشانی په حالت کي ځلور خواوو ته ګوري چي چیري ولاړ سم او څه وکړم ، لکه چي شام غریبان مشهور دی چي :

تو زلف را کشادي وتاریک شد جهان
اکنون فتا و شام غریبان کجا روند
نماز شام غریبان چو گریه آغازم
بهائي هائي غریبانه گر به پردازم

﴿۱۳۱﴾: وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّ الْمَيِّتَ يَصِيْرُ إِلَى الْقَبْرِ فَيَجْلِسُ الرَّجُلُ فِيْ قَبْرِهِ غَيْرَ فَزِعٍ وَلاَ مَشْغُوْفٍ ثُمَّ يُقَالُ لَهُ فِيْمَ كُنْتَ فَيَقُوْلُ كُنْتُ فِيْ الإِسْلَامِ فَيُقَالُ لَهُ مَا هٰذَا الرَّجُلُ فَيَقُوْلُ مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَاءَنَا بِالْبَيِّنَاتِ مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ فَصَدَّقْنَاهُ فَيُقَالُ لَهُ هَلْ رَأَيْتَ اللّٰهَ فَيَقُوْلُ مَا يَنْبَغِيْ لِأَحَدٍ أَنْ يَّرَى اللّٰهَ فَيُفْرَجُ لَهُ فُرْجَةٌ قِبَلَ النَّارِ فَيَنْظُرُ إِلَيْهَا يَحْطِمُ بَعْضُهَا بَعْضًا فَيُقَالُ لَهُ انْظُرْ إِلَى مَا وَقَاكَ اللّٰهُ ثُمَّ يُفْرَجُ لَهُ قِبَلَ الْجَنَّةِ فَيَنْظُرُ إِلَى زَهْرَتِهَا وَمَا فِيْهَا فَيُقَالُ لَهُ هٰذَا مَقْعَدُكَ وَيُقَالُ لَهُ عَلَى الْيَقِيْنِ كُنْتَ وَعَلَيْهِ مُتَّ وَعَلَيْهِ تُبْعَثُ إِنْ شَاءَ اللّٰهُ وَيَجْلِسُ الرَّجُلُ السُّوْءُ فِيْ قَبْرِهِ فَزِعًا مَشْغُوْبًا فَيُقَالُ لَهُ فِيْمَ كُنْتَ فَيَقُوْلُ لاَ أَدْرِيْ فَيُقَالُ لَهُ مَا هٰذَا الرَّجُلُ فَيَقُوْلُ سَمِعْتُ النَّاسَ يَقُوْلُوْنَ قَوْلاً فَقُلْتُهُ فَيُفْرَجُ لَهُ فُرْجَة قِبَلَ الْجَنَّةِ فَيَنْظُرُ إِلَى زَهْرَتِهَا وَمَا فِيْهَا فَيُقَالُ لَهُ انْظُرْ إِلَى مَا صَرَفَ اللّٰهُ عَنْكَ ثُمَّ يُفْرَجُ لَهُ فُرْجَةٌ إِلَى النَّارِ فَيَنْظُرُ إِلَيْهَا يَحْطِمُ بَعْضُهَا بَعْضًا فَيُقَالُ لَهُ هٰذَا مَقْعَدُكَ عَلَى الشَّكِّ كُنْتُ وَعَلَيْهِ مُتَّ وَعَلَيْهِ تُبْعَثُ إِنْ شَاءَ اللّٰهُ تعالى . رواه ابن ماجه .

د حضرت ابوهریرة ﷺ ځخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : هر کله چي مړی قبر ته ورسي نو (نیك بنده) په قبر کي کښیني نه هغه خوفزده وي او نه بیري اخیستی وي د هغه ځخه پوښتنه کیږي چي ته په کوم دین وې ؟ هغه به وایي زه د اسلام پر دین وم، د هغه ځخه بیا پوښتنه کیږي دا سړی (حضرت محمد ﷺ) څوك دی ؟ هغه به وایي د الله رسول دی چي د الله د لوري یې موږ ته ځرګند دلیلونه راوړي دي او موږ یې تصدیق وکړ بیا دهغه ځخه پوښتنه وسي ایا تا خدای لیدلی دی ؟ هغه به وایي خدای خو هیڅوك نه سي لیدلای . د دې وروسته یو کلکین د دوږخ په لور خلاص کړل سي هغه چي وګوري نو داسي اور به ووینې چي یوه لمبه به یې بله لمبه رانغاړي او هغه ته به وویل سي چي دې ته وګوره چي الله ته ځیني خلاص کړی یې ، بیا یوه کلکین د جنت په لور خلاص کړل سي او هغه به د جنت تازګي او دهغه شیان ویني او هغه ته به وویل سي دا ستا ځای دی له دې کبله چي ستا عقیده ټینګه وه او پر دې ستا پوره یقین وو او ته په دې (یقین) کي مړ سوې او که الله و غواړي نو په دې حالت کي به تا د قبر ځخه راپورته کړي ، او

هر کله چي خراب بنده په قبر کي کښیني نو هغه خوفزده او بیریدلی وي د هغه ځخه پوښتنه کیږي چي ته په کوم دین وې ؟هغه ورته وایي چي زه نه پوهیږم (چي په کوم دین وم) بیا د هغه ځخه پوښتنه وسي دا کوم سړی وو ؟ هغه به وایي ما چي به د خلګو ځخه څه اوریدل هغه به مي ویل . بیا

د جنت په لور یو کلکین را خلاص کړل سي او هغه د جنت تازګي او ښیان ویني او هغه ته وویل سي ددغه ښیانو په لور وګوره چي الله ﷻ ستا څخه اړولي دي بیا د دوږخ د لوري یو کلکین خلاص کړل سي او هغه به ویني چي د اور تیزي لمبې یوه بله خوري او هغه ته به وویل شي چي د هغه شك له کبله چي ته پکښي اخته وې او پر هغه مړ سوې دا ستا ځای دی او پر دې به ته د قبر څخه را پورته کړل سې که الله تعالی وغواړي .ابن ماجه.

# بَابُ الْاِعْتِصَامِ بِالْكِتَابِ وَالسُّنَّةِ

## (پر کتاب او سنت باندي د باور بیان)

د کتاب څخه مراد کتاب الله یعني قرآن کریم دی او د سنت څخه مراد د رسول الله ﷺ اقوال، افعال او احوال دي چي د هغه د ټولګي نوم حدیث دی او دې ته شریعت ، طریقت او حقیقت وایي.

## الفصل الاول

﴿۱۳۲﴾: عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ أَحْدَثَ فِيْ أَمْرِنَا هٰذَا مَا لَيْسَ مِنْهُ فَهُوَ رَدٌّ . (متفق علیه) .

د حضرت عائشي (رض) څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : چا چي زموږ په دین کي یو نوې خبره پیدا کړه کوم چي په دین کي نه وي نو هغه خبره مردوده ده . بخاري او مسلم .

**تشریح** : د مؤمن او مسلمان کېدو مطلب دادی چي د هغه عقیده او ایمان دومره پوخ او کامل وي چي قرآن کریم او سنت کومه لار ښوولې ده پر هغه په پوره یقین سره تلل او شریعت چي کوم حدود قائم کړي دي په هغه کي دننه په پوره یقین سره اوسېدل په یقین سره فلاح او سعادت وګڼي ، د خپل لوري داسي لاري پیدا کول چي د شریعت سراسر خلاف وي یا داسي طریقې اختیارول چي د قرآن کریم او سنت د صحیح لاري څخه بیلي دي نه یوازي دا چي د ایمان او عقیدې تر ټولو لویه کمزوري ده بلکه د اسلام د دعوې خلاف هم ده .

په دغه حدیث شریف کي هغه خلک مردود (رټل سوی) ګرځول سوي دي چي د خپل نفساني خواهشاتو او ذاتي مقصدونو په وجه په دین او شریعت کي نوي نوي طریقې رواج کوي او د داسي غلطو خبرو نسبت شریعت ته کوي چي د هغه په اسلام کي هیڅ وجود نه وي .

مثلا یو سړی د خپل عقل آسونه ځغلوي او د خپل فهم سره سم په اسلام کي داسي نوي شیان پیدا کوي چي د هغه ثبوت نه خو په قرآن کریم او نه په سنت کي ظاهرا او معنا وي او نه د هغه سند د یو اسلامي نظریې سره برابر وي نو هغه به مردود ګرځول کیږي ، د حدیث الفاظ (مالیس منه) دې خبري ته اشاره کړې ده چي داسي شیان پیدا کول یا داسي نظریې قائمول چي د کتاب الله او سنت د منشا څخه خلاف او د هغه برعکس نه وي نو پر هغه څه مؤاخذه (نیونه) نسته او نه پر هغه یو نکیر قائمیدای سي .

﴿۱۳۳﴾ : وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمَّا بَعْدُ فَإِنَّ خَيْرَ الْحَدِيْثِ كِتَابُ اللهِ وَخَيْرُ الْهَدْيِ هَدْيُ مُحَمَّدٍ وَشَرَّ الأُمُوْرِ مُحْدَثَاتُهَا وَكُلُّ بِدْعَةٍ ضَلَالَةٌ . رواه مسلم .

د حضرت جابر ﷛ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : د الله د حمد څخه وروسته دي معلومه وي چي د ټولو څخه غوره خبره د الله کتاب دی او غوره لار د محمد ﷺ لار ده او بد ترین په شیانو کي هغه شی چي هغه په دین کي نه وي او پیدا کړل سي او هر بدعت ګمراهي ده .

**تشریح** : کیدای سي رسول الله ﷺ خطبه فرمایلې وي او تر ټولو مخکي یې د الله حمد او تعریف بیان کړ وي او بیا د ما بعد ویلو سره دا حدیث داسي ارشاد فرمایلی وي ، بدعت هغه شیانو ته وایي چي د هغه وجود د رسول الله ﷺ په زمانه کي نه وو بلکه د هغه ﷺ څخه وروسته په مختلفو زمانو کي پیداسوی وي ، د بدعت دوه ډولونه دي : بدعت حسنه او بدعت سیئه، یعني که داسي شیان پیداسي چي د اسلامي اصول او قواعد سره سم وي او د قرآن کریم او حدیث خلاف نه وي نو هغه ته بدعت حسنه وایي او کوم شیان چي د شریعت برعکس او د قرآن او حدیث خلاف وي هغه ته بدعت سیئه وایي ، او دا بدعت ګمراهي او ضلالت او د الله تعالی او د هغه د رسول د ناراضګۍ باعث دی، په حدیث کي د بدعة ضلالة څخه مراد بدعت سیئه دی د داسي بدعت څخه پرهیز ضروري دی، پوهېدل پکار دي چي ځیني بدعت داسي وي چي واجب هم وي مثلا د علم نحو تعلیم چي ددې څخه پرته په کلام الله پوهېدل ناممکن دي ځکه قرآني علوم او معارف بآندي پوهېدو لپاره علم حاصلول ضروري دی ، ددې پر خلاف ځیني بدعتونه حرام دي مثلا د قدریه او جبریه مذهب او د هغوئ افکار او نظریات چي د قرآن او سنت بالکل خلاف دي بلکه د هغوئ د مذهبونو رد کول بدعت واجبه دی .

ځيني بدعات مستحب دي لکه خانقاه قائمول او هلته معرفت الله لپاره د خلکو زړونه پر حق باندي قائمول ، يا مدرسې جوړول او هلته د مسلمانانو ماشومانو ته ديني تعليم او تربيت ورکول يا داسي ټول د خير کارونه او ښه شيان چي د هغه في الوقت ضرورت مسلم وي او هغه د رسول الله ﷺ په زمانه کي موجود نه وي پاته سوی .

ځيني بدعتونه مکروه هم دي مثلا پر کلام الله او مسجدو باندي نقش او نګار جوړول او د هغو د تزئين او ښکلا لپاره غير مسنون طريقې اختيارول ، ځينو بدعتونه مباح هم وي لکه د سهار څخه وروسته مصافحه کول، مګر دا د امام شافعي صاحب مذهب دی او د حنفيه په نزد د سهار څخه وروسته مصافحه کول مکروه ده .

﴿۱۳۴﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَبْغَضُ النَّاسِ إِلَى اللهِ ثَلَاثَةٌ مُلْحِدٌ فِيْ الْحَرَمِ وَمُبْتَغٍ فِي الْإِسْلَامِ سُنَّةَ الْجَاهِلِيَّةِ وَمُطَّلِبُ دَمِ امْرِءٍ بِغَيْرِ حَقٍّ لِيُهْرِيْقَ دَمَهُ رواه البخاري .

د حضرت ابن عباس ؓ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د الله په نزد تر ټولو زيات غضب وهلي درې کسان دي ۱: په حرم کي الحاد کونکی ۲: اسلام د جاهليت د زمانې پر طريقه طلب کونکی ۳: په ناحقه د يو مسلمان دويني غوښتونکی چي د هغه وينه توی کړي .بخاري.

**تشريح** : په دغه حديث شريف کي درې کسان د الله تعالی په نزد تر ټولو زيات ناخوښه او مغضوب ګرځول سوي دي ، لومړنی هغه دی چي هغه ته الله تعالی په خپل کور کي د حاضرئ سعادت ورکړ مګر هغه د بيت الله عظمت نه کوي او نه د حرم په حدود کي د منعه شيانو څخه پرهيز کوي بلکه په هغه حرامو کي کوږوالی کوي يعني داسي شيان اختياروي چي يوې خوا ته خو ددغه مقدس ځای د عظمت د شان خلاف وي او بلي خوا ته د شريعت د احکامو څخه په ښرګنده د خلاف ورزئ برابر وي، مثلا هلته جګړه کول، ښکاره کول او مطلق ګناه کول او د قانون شريعت خلاف ورزي کوي .

دوهم سړی هغه دی چي الله تعالی د ايمان او اسلام په دولت سره ونازوی او د هغه زړه يې د يقين او عقيدې په رڼا سره منور کړ مګر هغه په اسلام کي هغه شيان اختياروي چي خالص د جاهليت د زمانې طريقه او غير اسلامي رسمونه وي لکه نوحه کول ( په مړي پسي ژړاوي کول) يا د مصيبت او تکليف په وخت کي ګريوان شکول ، نوروز لمانځل او داسي رسمونه کول چي د کفر نښه وي (لکه د اولياء الله پر مزار ميله جوړول او هلته ډيوې بلول ، پر قبرونو باندي د رڼا

انتظام كول ، هلته د الله په نامه نذر او نياز كول ، د محرم او شب برات پر وخت غلط رسمونه ادا كول او داسي نور ) .

دريم سړی هغه دی چي د يو مسلمان د ناحق وژني طلب ګار وي يعني د يو مسلمان د قتل مقصد يې يوازي ويني تويول وي او بل مقصد نه وي كه محض قتل يو كوچنی جرم نه دی پر دې هم لويه سزا ده مګر هر كله چي مقصد يوازي ويني تويول وي نو دا جرم د شريعت په نظر كي نور زيات د نفرت وړ كيږي .

د دې څخه معلومه سوه چي هر كله محض د ويني تويول دومره لوی جرم دی نو دا جرم كول يعني په حقيقت كي ناحقه وينه بيول به څومره لوی جرم وي او د هغه به څومره سخته سزا وي .

﴿۱۳۵﴾ : وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كُلُّ أُمَّتِيْ يَدْخُلُوْنَ الْجَنَّةَ إِلاَّ مَنْ أَبٰى . قِيْلَ وَمَنْ أَبٰى ؟ قَالَ مَنْ أَطَاعَنِيْ دَخَلَ الْجَنَّةَ وَمَنْ عَصَانِيْ فَقَدْ أَبٰى .رواه البخاري .

د حضرت ابوهريرة ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : زما د امت هر كس به جنت ته ځي خو نه هغه كس چي هغه ز ما څخه انكار كړی وي ، پوښتنه وسول چي هغه كوم كس دی چي انكار يې وكړ؟ رسول الله ﷺ وفرمايل : كوم سړي چي زما پيروي وكړل هغه به په جنت كي داخل سي او چا چي زما نافرماني وكړه هغه زما څخه انكار وكړ .

**تشريح** : صحابه كرامو پوښتنه وكړه چي نه قبلونكی او سركښي كونكی څوک دی ؟. رسول الله ﷺ وضاحت وفرمايه چا چي زما اطاعت ونه كړ او زما د احكامو او فرمان يې مخ واړوی نو هغه سركښ دی د جنت مستحق به نه وي بلكه د خپل سركښۍ او نافرمانۍ په وجه به د الله تعالى د عذاب مستوجب وګرځول سي .

﴿۱۳۶﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ جَاءَتْ مَلاَئِكَةٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ نَائِمٌ فَقَالُوْا إِنَّ لِصَاحِبِكُمْ هٰذَا مَثَلاً فَاضْرِبُوْا لَهُ مَثَلاً قَالَ بَعْضُهُمْ إِنَّهُ نَائِمٌ وَقَالَ بَعْضُهُمْ إِنَّ الْعَيْنَ نَائِمَةٌ وَالْقَلْبَ يَقْظَانٌ فَقَالُوْا مَثَلُهُ كَمَثَلِ رَجُلٍ بَنٰى دَارًا وَجَعَلَ فِيْهَا مَأْدُبَةً وَبَعَثَ دَاعِيًا فَمَنْ أَجَابَ الدَّاعِيَ دَخَلَ الدَّارَ وَأَكَلَ مِنَ الْمَأْدُبَةِ وَمَنْ لَّمْ يُجِبْ الدَّاعِيَ لَمْ يُدْخِلِ الدَّارَ وَلَمْ يَأْكُلْ مِنَ الْمَأْدُبَةِ فَقَالُوْا أَوِّلُوْهَا

د حضرت جابر ﷺ څخه روايت دی چي د ملائكو يو ډله د رسول الله ﷺ په خدمت كي حاضره سول كوم وخت چي رسول الله ﷺ بيده وو ، او هغو په خپلو كي خبري كولې په هغوئ كي يوې ملائكي وويل ستا د دې دوست په اره يو مثال دی هغه دده په وړاندي بيان كړئ نورو ملائكو وويل هغه خو بيده دی ، په هغو كي ځيني وويل چي سترګي خو يې ببشكه بيدې دي مګر زړه يې بيدار دی بيا هغه ملائكي وويل د دې سړي مثال د هغه سړي په ډول

لَهُ يَفْقَهْهَا فَقَالَ بَعْضُهُمْ إِنَّهُ نَائِمٌ قَالَ بَعْضُهُمْ إِنَّ الْعَيْنَ نَائِمَةٌ وَالْقَلْبُ يَقْظَانُ فَقَالُوْا اَلدَّارُ الْجَنَّةُ وَالدَّاعِيْ مُحَمَّدٌ فَمَنْ أَطَاعَ مُحَمَّدًا فَقَدْ أَطَاعَ اللهَ وَمَنْ عَصٰى مُحَمَّدًا فَقَدْ عَصَى اللهَ وَمُحَمَّدٌ فَرْقٌ بَيْنَ النَّاسِ . رواه البخاري

دی چي کور يې جوړ کړ او خلګو ته يې دسترخوان وغوړاوه بيا يې د خلګو را بللو لپاره يو سړی وليږی نو کوم سړي چي د دې بلونکي خبره ومنل هغه په کور کي داخل سو او هغه د دسترخوان څخه ډوډۍ وخوړل او چا چي انکار وکړ هغه نه په کور کي داخل سو او نه يې د دسترخوان څخه ډوډۍ و خوړل ، ملائکو د دې مثال په اورېدو سره وويل ددې تاويل بيان کړه چي دا سړی په پوه سي (د دې په اورېدو سره ځيني ملائکو وويل ) هغه خو بيده دی ، نورو ملائکو وويل ببشکه سترګي خو يې بيدې دي مګر زړه يې بيدار دی بيا هغوئ د دې مثال تاويل بيان کړ او وه يې ويل : د کور څخه مراد جنت دی او د بلونکي څخه مراد حضرت محمد ﷺ دی کوم چا چي د محمد ﷺ اطاعت وکړ هغه د الله اطاعت وکړ چا چي د محمد ﷺ نافرماني وکړه هغه د الله نافرماني وکړه او محمد ﷺ د خلګو په منځ کي فرق کونکی دی (يعني څوک په هغوئ کي کافر دی او څوک مؤمن او دا فرق د رسول الله ﷺ په اطاعت او نافرماني سره معلوميږي ) .بخاري

**تشريح** : د هغه سړي څخه مراد چا چي کور جوړ کړ او دسترخوان يې وغوړوی ، د الله تعالی ذات دی ، همداسي د دسترخوان څخه مراد د جنت نعمتونه دي ، دا په څرګنده په فهم کي راځي څکه نو ددې وضاحت ونه کړل سو ، په پای کي ښودل سوي دي چي د رسول الله ﷺ ذات مبارک د خلکو په منيځ کي فرق کونکی دی يعني د کافر او مؤمن حق او باطل، صالح او فاسق په منځ کي رسول الله ﷺ فرق کونکی دی .

﴿۱۳۷﴾ : وَ عَنْ أَنَسٍ قَالَ جَاءَ ثَلَاثَةُ رَهْطٍ إِلٰى أَزْوَاجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسْأَلُوْنَ عَنْ عِبَادَةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمَّا أُخْبِرُوْا بِهَا كَأَنَّهُمْ تَقَالُّوْهَا فَقَالُوْا أَيْنَ نَحْنُ مِنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَدْ غَفَرَ اللهُ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ وَمَا تَأَخَّرَ فَقَالَ أَحَدُهُمْ أَمَّا أَنَا فَأُصَلِّي اللَّيْلَ أَبَدًا وَقَالَ الاٰخَرُ أَنَا أَصُوْمُ النَّهَارَ أَبَدًا وَلَا أُفْطِرُ وَقَالَ

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دی چي درې خلك د رسول الله ﷺ په خدمت کي د دې لپاره حاضر سول چي هغوئ د رسول الله ﷺ د عبادت د حال پوښتنه وکړي، کوم وخت چي هغوئ ته د رسول الله ﷺ د عبادت حال بيان کړل سو نو هغوئ د رسول الله ﷺ عبادت کم وګڼی او په خپلو کي يې وويل د رسول الله ﷺ په مقابله کي موږ څه يو، الله پاك خو د هغه مخکي او وروسته ګناهونه معاف کړي دي (د دې

الْآخَرُ أَنَا أَعْتَزِلُ النِّسَاءَ فَلَا أَتَزَوَّجُ أَبَدًا فَجَاءَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ إِلَيْهِمْ فَقَالَ أَنْتُمُ الَّذِيْنَ قُلْتُمْ كَذَا وَكَذَا أَمَا وَاللهِ إِنِّيْ لَأَخْشَاكُمْ لِلّٰهِ وَأَتْقَاكُمْ لَهُ لٰكِنِّيْ أَصُوْمُ وَأُفْطِرُ وَأُصَلِّيْ وَأَرْقُدُ وَأَتَزَوَّجُ النِّسَاءَ فَمَنْ رَغِبَ عَنْ سُنَّتِيْ فَلَيْسَ مِنِّيْ . (متفق عليه)

په اوربدو سره په هغوئ کي) يوه وويل اوس به زه هميشه ټوله شپه لمونځ کوم ، دوهم کس وويل او زه به هميشه د ورځي روژه نيسم او هيڅکله به يې نه ماتوم، دريم کس وويل زه به د ښځو څخه بيل اوسم او هيڅ کله به نکاح نه کوم . (په خپلو کي يې دا خبري کولې چي ) رسول الله ﷺ تشريف راوړ او هغوئ ته يې وفرمايل : ايا تاسو داسي ويلي دي تاسو ته دي معلومه وي چي ستاسو څخه زيات زه د الله څخه بيريږم او ستاسو څخه زياته تقوا کوم سره د دې روژه هم نيسم او ماتوم يې هم ، د شپې لمونځ هم کوم او بيده کيږم هم او د ښځو سره نکاح هم کوم. نو کوم سړی چي زما د طريقې څخه مخ اړوي هغه زما څخه نه دی . بخاري او مسلم .

**تشريح** : درې صحابه کرام يعني حضرت علي ﷺ، حضرت عثمان بن مظعون ﷺ او حضرت عبدالله بن رواحه ﷺ د رسول الله ﷺ د مبارکو بيبيانو په خدمت کي حاضر سول چي د رسول الله ﷺ حال ځيني معلوم کړي ، هغوئ ته چي د رسول الله ﷺ د عبادت حال معلوم سو نو هغوئ په کم خيال کولو سره وويل چيري موږ او چيري رسول الله ﷺ ، يعني د عبادت په اړه زموږ د رسول الله ﷺ سره څه نسبت کيدای سي ، رسول الله ﷺ ته خو د دومره عبادت هم ضرورت نسته ځکه چي هغه مبارک سر تر پايه معصوم او مغفور دی مخکني او وروستني ټول ګناهونه يې بخښل سوي دي لکه چي د الله تعالی ارشاد دی :

لِيَغْفِرَ لَكَ اللَّهُ مَا تَقَدَّمَ مِن ذَنبِكَ وَمَا تَأَخَّرَ . سورة الفتح

ژباړه : چي الله تعالی ستا مخکني او وروستني ټول ګناهونه وبخښي .

هغه درو سره د طبيعت سره سم يو يو شی پر خپل ځان لازم کړ او دا خيال يې وکړ چي په عبادت کي دومره زياتوب د عرفان حق باعث او د تقرب الی الله يوازينی ذريعه ده مګر رسول الله ﷺ هغوئ ځکه منعه کړل چي عبادت هغه معتبر او قابل تحسين دی چي د الله تعالی او د هغه د رسول په حدودو کي دننه وي او د څومره عبادت لپاره چي بنده مکلف کړل سوی دی هغومره عبادت د تقرب الی الله باعث وي ، رسول الله ﷺ وفرمايل زه د الله تعالی څخه تر تاسو زيات بيريږم ، تقوا مي تر تاسو زياته اختيار کړې ده ، د الله تعالی خوف زما په زړه کي تر تاسو زيات دی مګر د دې سربيره زما عبادت او رياضت په هغه حدودو کي دننه دی کوم چي الله تعالی قائم

کړي دي ځکه نو زه روژې هم نیسم او ماتوم یې هم، لمونځ هم کوم او د بېده کېدو پر وخت بېده کیږم او د فطرت د غوښتني سره سم د ښځو سره نکاح هم کوم.

کمال د انسانیت دادی چي بنده د دنیا د خالق سره تعلق ساتي، د ښځو سره نکاح هم کوي مگر په داسي ډول چي یوې خوا ته خو د هغوئ په حقوقو کي د یوې اندازې هم کمي نه وي او بلي خوا ته په حقوق الله کي هم فرق رانسي او نه د توکل لمن د لاس ځخه ووځي، دا شی رسول الله ﷺ په پوره کمال او عملي حیثیت سره د دنیا په مخکي وړاندي کړ چي امت هم پر دې طریقه ولاړ سي. بیا په پای کي رسول الله ﷺ په څرگنده اعلان وکړ چي دا زما طریقه ده او دا زما سنت دي او س کوم سړی چي زما د سنت ځخه مخ اړوي، زماد ښودلو حدودو ځخه تجاوز کوي د هغه مطلب به دا وي چي هغه زما د سنت او طریقې ځخه بیزاره او بې رغبته دی نو د هغه نتیجه به دا وي چي داسي سړی زما د ډلي ځخه وتلی دی، د هغه سړي زما او د زما د ډلي سره هیڅ تعلق نسته.

دغه ارشاد دې ته هم اشاره وکړه چي د دنیا ځخه بالکل مخ اړول او د رهبانیت طریقه اختیارول جائز نه ده ځکه چي په دې سره یوازي د انساني ژوند ترتیب خرابیږي بلکه د حقوق الله په ادا کولو کي هم کوتاهي کیږي او د عبادت چي اصلي حق دی هغه هم نه ادا کیږي.

حضرت مولانا شاه محمد اسحاق صاحب فرمایلي دي چي د دې حدیث ځخه ځیني علماء دا نتیجه اخلي چي په دغه حدیث کي د هغه خلکو رد دی چي د بدعت حسنه قائل دي ځکه چي دغه دري سره صحابه کرامو چي کوم شیان پر ځان د لازم کولو اراده کړې وه هغه د عبادت د ډول ځخه وه مگر د سنت طریقې خلاف او د هغه ځخه زیات وه ځکه نو رسول الله ﷺ هغه خوښ نه کړل او د هغه ځخه یې منعه وفرمایل، نو غوره داده چي کوم عبادت د رسول الله ﷺ ځخه نقل دی او څرنگه چي ثابت وي هم هغسي ادا کړل سي او په هغه کي د خپل ځان ځخه کمي او زیاتوب و نه کړي.

| | |
|---|---|
| ﴿۱۳۸﴾ : وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ صَنَعَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَيْئًا فَرَخَّصَ فِيْهِ فَتَنَزَّهَ عَنْهُ قَوْمٌ فَبَلَغَ ذٰلِكَ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَخَطَبَ فَحَمِدَ اللهَ ثُمَّ قَالَ مَا بَالُ أَقْوَامٍ يَتَنَزَّهُوْنَ عَنِ الشَّيْءِ أَصْنَعُهُ فَوَاللهِ إِنِّيْ لَأَعْلَمُهُمْ بِاللهِ | د حضرت عائشې (رض) ځخه روایت دی چي رسول الله ﷺ (د روژې په حالت کي) یو کار وکړ او د هغه اجازه یې ورکړل مگر یو څو خلکو د هغه ځخه پرهیز وکړ، کوم وخت چي رسول الله ﷺ ته د دې حال معلوم سو نو رسول الله ﷺ خطبه وفرمایل: د |

وَأَشَدُّهُمْ لَهُ خَشْيَةً . (متفق عليه) | الله د حمد څخه وروسته يې وفرمايل چې د خلګو حال دادی چې هغوئ د هغه شي څخه پرهيز کوي کوم چې زه يې کوم، نو قسم په خدای چې زه د الله تعالی رضا د هغوئ څخه زياته پيژنم او دهغوئ څخه زيات د الله تعالی څخه بيريږم .بخاري او مسلم

**تشريح** : په روژه کي به رسول الله ﷺ خپله بي بي ښکل کړې وي يا په سفر کي به يې روژه نه وي نيولې ځکه چې ددې شيانو اجازه او شريعت ددې رخصت ورکړی دی نو رسول الله ﷺ په خپله هم په دې عمل وکړ او خلګو ته يې هم ددې اجازه ورکړه چې هغوئ داسي کولای سي مګر ځينو خلکو به د احتياط په وجه دا جائز نه ګڼل ، هرکله چې رسول الله ﷺ په دې خبر سو نو رسول الله ﷺ پر دې ناخوښي ښکاره کړل او وه يې فرمايل ددې سربيره چې زه په خلکو کي د الله تعالی څخه زيات بيريږم او کمال اخلاق په ما کي موجود دي مګر زه د شريعت د لوري په راکړل سوي آسانۍ او رخصت باندي عمل کوم نو هغه کوم خلک دي چې د رخصت سربيره پر دغه اجازه باندي عمل نه کوي .

که چيري په معنوي حيثيت سره ددغه آسانيو او رخصت پر حقيقت غور او فکر وکړل سي کوم چې شريعت په داسي ځايونو کي ورکړي دي نو په دې کي ډير عجيبه حکمتونه معلوميږي مثلا دا چې په داسي موقع کي په اصل کي دبنده د عجز او ناچارۍ او بشريت د کمزورۍ او د نفس سکون اظهار کول دي چې د الله تعالی په نزد ډير محبوب شی دی ، همداسي د رسول الله ﷺ ارشاد مبارک دی چې الله تعالی دا خوښوي چې پر رخصتونو باندي يعني آسانيو باندي عمل وکړل سي لکه څرنګه چې هغه پر اولی او غوره شيانو باندي عمل کول خوښوي .

﴿۱۳۹﴾: وَعَنْ رَّافِعِ بْنِ خَدِيْجٍ قَالَ قَدِمَ نَبِيُّ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُمْ يُؤَبِّرُوْنَ النَّخْلَ فَقَالَ مَا تَصْنَعُوْنَ قَالُوْا كُنَّا نَصْنَعُهُ قَالَ لَعَلَّكُمْ لَوْ لَا تَفْعَلُوْا كَانَ خَيْرًا فَتَرَكُوْهُ فَنَقَصَتْ قَالَ فَذَكَرُوْا ذٰلِكَ لَهُ فَقَالَ إِنَّمَا أَنَا بَشَرٌ إِذَا أَمَرْتُكُمْ بِشَيْءٍ مِّنْ دِيْنِكُمْ فَخُذُوْا بِهِ وَإِذَا أَمَرْتُكُمْ بِشَيْءٍ مِّنْ رَّأْيِيْ فَإِنَّمَا أَنَا

د حضرت رافع[1] بن خديج ﷺ څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ مدينې ته تشريف راوړ هغه وخت د مدينې خلکو د خرماوو د درختو تابير (پيوند) کاوه، رسول الله ﷺ (چې خلك په دې کولو وليدل) نو پوښتنه يې وکړه دا تاسو څه کوئ ؟ خلکو عرض وکړ موږ هم داسي طريقه کوو ، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : که تاسو داسي ونه

[1] حضرت رافع بن خديج انصاري اوسي دی ، کله چې د حق او باطل په منځ کي لوړني جګړه د بدر وسول نو هغه وخت دی ډير کم عمره وو . د (۵۶) کالو په عمر په کال (۴۲هـ) کي وفات سو . اسد الغابة

بَشَرٌ . رواه مسلم . | کړئ نو شاید چې غوره به وي (د رسول الله ﷺ د ارشاد اوریدو سره) خلکو دا عمل پرېښود نو (په هغه کال) میوه کمه وسول ، رسول الله ﷺ ته د دې ذکر وکړل سو ، رسول الله ﷺ وفرمایل : زه هم یو بشر (انسان) یم هر کله چې زه تاسو ته یو دیني حکم درکړم نو قبول يې کړئ او که د خپل عقل څخه تاسو ته څه خبره وښیم نو تاسو پوه سئ چې زه هم یو انسان یم .مسلم .

**تشریح** : د خرماوو په درختو کې یوه درخته نارینه وي او دوهمه ښځینه ، د مدینې اوسیدونکو به دا کول چې د نارینه درختې ګل پر ښځینه درختو باندې څنډې یا په هغه کې یې پیوند کوي ، ددې څخه د هغوئ خیال دا وو چې زیاته میوه کوي او دې ته تابیرکول وایي ، دِ حدیث په پای کې د رسول الله ﷺ د ارشاد معنا داده چې زه هم یو انسان یم د دنیاوي اسبابو په اړه زما څخه هم خطا واقع کیدای سي او صحیح هم ، که چیري زه د یو دنیاوي معاملې په اړه د خپل اجتهادي رایي اظهار وکړم چې د وحي سره سم نه وي نو په هغه عمل کول ضروري نه دي ، په دې معامله کې چې رسول الله ﷺ ولیدل چې دا شی د جاهلت د کارونو څخه دی او ددې تاثیر د میوو په کمي او زیاتوب کې یو معقول شی نه دی او ددې خیال یې ونه کړ چې کیدای سي ددې یو تاثیر د الله تعالی د طرفه څخه وي ، ځکه نو رسول الله ﷺ د هغه د پرېښودلو لپاره وفرمایل مګر حکم یې ونه کړ بلکه دا یې وفرمایل که چیري تاسو دا عمل ونه کړئ نو غوره به وي ، هر کله چې د تجربې څخه وروسته رسول الله ﷺ ولیدل چې دا خو یو قدرتي شی دی چې د نارینه درختي ګلونه په ښځینه درختي کې لګول نو په دې سره په میوو کې زیاتوب راځي او ددې عمل خلاف د الله تعالی د لوري یو سزا هم نه ده راغلې نو رسول الله ﷺ سکوت وفرمایه .

دا حدیث شریف پر دې دلالت کوي چې د رسول الله ﷺ د دنیا په لور التفات او توجه نه وه او نه یې دنیا غرض وه بلکه د اخرت د امورو د مسائلو او احکامو او په دیني معاملو کې رسول الله ﷺ زیات اهتمام کاوه .

په ځیني نورو حدیثونو کې ددې پېښې د بیان په اړه داسي الفاظ راغلي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل : (انتم اعلم بامور دنیاکم) یعني تاسو د خپل دنیا په کارو ښه پوهیږئ ، ددې مطلب هم دادی چې د دنیا کارونو په لور زما التفات نسته کنه تر څو پوري چې د رایي او عقل معامله ده نو په دې کې د ذرې شبه هم نسته چې د رسول الله ﷺ په دیني او دنیاوي دواړو معاملاتو کې تر ټولو زیات عقلمند او صاحب د رایي وو .

﴿۱۴۰﴾ : وَعَنْ أَبِيْ مُوْسٰى قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّمَا مِثْلِيْ وَمِثْلُ مَا بَعَثَنِيَ اللهُ بِهِ كَمَثَلِ رَجُلٍ أَتٰى قَوْمًا فَقَالَ يَا قَوْمِ إِنِّيْ رَأَيْتُ الْجَيْشَ بِعَيْنِيْ وَإِنِّيْ أَنَا النَّذِيْرُ الْعُرْيَانُ فَالنَّجَاءَ النَّجَاءَ فَأَطَاعَهُ طَائِفَةٌ مِّنْ قَوْمِهِ فَأَدْلَجُوْا فَانْطَلَقُوْا عَلٰى مَهَلِهِمْ فَنَجَوْا وَكَذَّبَتْ طَائِفَةٌ مِّنْهُمْ فَأَصْبَحُوْا مَكَانَهُمْ فَصَبَّحَهُمُ الْجَيْشُ فَأَهْلَكَهُمْ وَاجْتَاحَهُمْ فَذٰلِكَ مَثَلُ مَنْ أَطَاعَنِيْ فَاتَّبَعَ مَا جِئْتُ بِهِ وَمَثَلُ مَنْ عَصَانِيْ وَكَذَّبَ بِمَا جِئْتُ بِهِ مِنَ الْحَقِّ .متفق عليه

د حضرت ابوموسى ﷺ څخه روايت دى چي رسول الله وفرمايل : بيشكه زما مثال او د هغه مثال چي د هغه وركولو سره زه الله راليږلى يم د هغه سړي په ډول دى چي يو قوم ته راغلى وي او هغه قوم ته وايي اې قوم! ما په خپلو سترګو سره يو لښكر ليدلى دى او زه بې غرضه بيرونكى يم، تاسو ته پكار ده چي د خلاصون په لټه سئ او خپل خلاصون تر لاسه كړئ ، نو يوې ډلي خو د هغه اطاعت وكړ او شپه په شپه كرار كرار ووتل او خلاصون يې تر لاسه كړ ، او يوې ډلي د هغه خبره ونه منل او په خپلو كورونو كي پاته سول په سهار كي لښكر راغلى او هغوئ يې و نيول او د هغوئ نسل يې ختم كړ نو هم دا كيفيت د هغه كس دى چي زما اطاعت يې ومنى او كوم احكام چي ما راوړي دي د هغو پيروي يې وكړه او هم دا مثال د هغه چا دى چي زما نافرماني يې وكړل او كومه حقه خبره چي ما راوړې ده د هغې څخه يې انكار وكړ . بخاري او مسلم .

**تشريح** : د لغړ (لوڅ) بيرونكي اصل دادى چي په عربو كي دا قاعده وه چي كله به يو سړي يو لښكر پر خپل قوم باندي حمله كونكى وليدى نو جامې يې وكښلې او پر سر به يې كښېښودلې او لوڅ لغړ به سوه او په چغو به د خپل قوم خوا ته راغلى چي خلك خبر سي او د دښمن دناڅاپه حملې څخه د ژغورني يو صورت پيدا كړل سي نو دې ته به يې لوڅ (ځرګند) بيرونكى ويل، د هغه څخه وروسته د يو ناڅاپه او خوفناكه حادثې پر پېښېدو باندي دا يو متل جوړ سو ، نو پر رسول الله ﷺ باندي دا متل بالكل صحيح او صادق دى چي رسول الله ﷺ فرمانبردار او اطاعت كونكي ډلي ته د جنت او رضاء مولى زيرى او نافرمانو او سركښو ته د الله تعالى د عذاب او غضب خبر وركولو كي بالكل رېښتونى او صادق وو .

﴿۱۴۱﴾ : وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَثَلِيْ كَمَثَلِ رَجُلٍ اِسْتَوْقَدَ نَارًا فَلَمَّا أَضَاءَتْ مَا حَوْلَهَا جَعَلَ الْفَرَاشُ وَهٰذِهِ الدَّوَابُّ الَّتِيْ تَقَعُ فِي النَّارِ يَقَعْنَ فِيْهَا وَجَعَلَ

د حضرت ابوهريرة ﷺ څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل : زما مثال د هغه سړي په شان دى چي هغه اور بل كړ هر كله چي څلورو خواوو ته د اور رڼا خپره سول نو پتنګان اور نور شيان چي په اور كي لوېږي راتلل شروع سول او په اور كي

يَحْجُزُهُنَّ وَيَغْلِبْنَهُ فَيَتَقَحَّمْنَ فِيْهَا فَأَنَا آخِذٌ بِحُجَزِكُمْ عَنِ النَّارِ وَأَنْتُمْ تَقَحَّمُوْنَ فِيْهَا . هٰذِهِ رِوَايَةُ الْبُخَارِيْ وَلِمُسْلِمٍ نَحْوُهَا وَقَالَ فِيْ آخِرِهَا قَالَ فَذٰلِكَ مَثَلِيْ وَمَثَلُكُمْ أَنَا آخِذٌ بِحُجَزِكُمْ عَنِ النَّارِ هَلُمَّ عَنِ النَّارِ هَلُمَّ عَنِ النَّارِ فَتَغْلِبُوْنِيْ تَقَحَّمُوْنَ فِيْهَا .(متفق عليه)

لوېدل او روښانه كونكي سرې هغوئ منعه كول پيل كړه خو هغوئ نه منعه كيږي او د هغه په هڅه غالب كيږي او په اور كي لويږي ، همدارنګه زه هم تاسو په اور كي د لوېدو څخه ژغورم او تاسو په اور كي د لوېدو هڅه كوئ ، دا روايت د بخاري دی، په مسلم شريف كي هم دغسي روايت دی البته د مسلم په روايت كي آخري الفاظ دادي : رسول الله ﷺ وفرمايل : بيخي همدا زما او ستاسو مثال دی ما تاسو د ملا څخه نيولی ياست چي تاسو د اور څخه و ژغورم او درته وايم چي د دوزخ څخه ځان وساتئ او زما پر پله راځئ ، مګر تاسو پر ما غالب كيږي او په اور كي لويږي .بخاري او مسلم.

**تشريح** : د رسول كريم ﷺ د ارشاد مبارك مطلب دادی چي ما حرام او منعه شيان ستاسو په مخكي څرګند بيان كړي دي مګر څرنګه چي يو سړی اور بل كړي او د هغه سړي د منل كولو سربيره پتنګان په اور كي لويږي همداسي ددې سربيره چي زه تاسو د غلطي لاري څخه ليري كوم او د بدو كارو څخه مو منعه كوم مګر تاسو هغه منعه او ناخوښ كارونه كوئ همداسي د دوزخ په اور كي د لوېدو هڅه كوئ .

﴿۱۴۲﴾ : وَعَنْ أَبِيْ مُوْسٰى قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَثَلُ مَا بَعَثَنِيَ اللهُ بِهِ مِنَ الْهُدٰى وَالْعِلْمِ كَمَثَلِ الْغَيْثِ الْكَثِيْرِ أَصَابَ أَرْضًا فَكَانَتْ مِنْهَا طَائِفَةٌ طَيِّبَةٌ قَبِلَتِ الْمَاءَ فَأَنْبَتَتِ الْكَلاَءَ وَالْعُشْبَ الْكَثِيْرَ وَكَانَتْ مِنْهَا أَجَادِبُ أَمْسَكَتِ الْمَاءَ فَنَفَعَ اللهُ بِهَا النَّاسَ فَشَرِبُوْا وَسَقَوْا وَزَرَعُوْا وَأَصَابَ مِنْهَا طَائِفَةٌ أُخْرٰى إِنَّمَا هِيَ قِيْعَانٌ لاَ تُمْسِكُ مَاءً وَلاَ تُنْبِتُ كَلاَءً فَذٰلِكَ مَثَلُ مَنْ فَقُهَ فِيْ دِيْنِ اللهِ وَنَفَعَهُ مَا بَعَثَنِيَ اللهُ بِهِ فَعَلِمَ وَعَلَّمَ وَمَثَلُ مَنْ لَمْ يَرْفَعْ بِذٰلِكَ رَأْسًا وَلَمْ يَقْبَلْ هُدَى اللهِ الَّذِيْ أُرْسِلْتُ بِهِ . (متفق عليه)

د حضرت ابوموسی ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د هغه شي مثال چي د هغه سره زه الله راليږلی يم ، يعني علم او هدايت د ډير باران په ډول دی چي پر مځكه سوی وي د مځكي يوې ښې برخي اوبه قبولي كړې (يعني جذب يي كړې) او وچ واښه په هغه سره شنه سول او په هغه سره ډير نوي واښه پيداسول ، او د مځكي يوه ټوټه داسي سخته وه چي اوبه پر هغه ځای جمع سوې او الله ﷻ د هغه څخه خلګو ته ګټه ورسول خلكو هغه و چښلې او په هغه يې فصلونه اوبه كړل او د باران دا اوبه د مځكي يو بلي داسي ټوټې ته ورسيدې چي وچ ميدان وو نه

يې اوبه راګرزولې او نه يې وابنه زرغونه کړل نو دا هر څه د هغه چا مثال دی چې هغه په علم دين کې پوه سو او کوم شی چې زما په ذريعه الله ﷻ راليږلی وو د هغه څخه يې ګټه تر لاسه کړل نو خپله يې هم زده کړه او خلکو ته يې هم وښودل . او دا د هغه سړي مثال دی چې هغه خپل سر د علم دين لپاره پورته نه کړ او نه يې هغه هدايت قبول کړ چې زما په ذريعه ورته رسيدلی وو . بخاري او مسلم

**تشريح** : په دغه حديث شريف کې دوه ډول خلک ذکر سوي دي يو خو ددين څخه ګټه اخيستونکی او دوهم ددين څخه ګټه نه اخيستونکی ، همداسې په پورتني مثال کې د مځکې دوه ډوله بيان سوي دي د مځکې اول ډول خو دادی چې د اوبو څخه ګټه اخلي او دوهم هغه چې د اوبو څخه هيڅ ګټه نه خلي ، بيا دا ګټه اخيستونکي هم دوه ډوله دي اول مځکه زرغونه کونکی او دوهم نه کونکی .

بالکل همداسې د دين د علم څخه ګټه اخيستونکی پر دوه ډوله دی ، لومړی هغه سړی چې عالم ، عابد ، فقيه او معلم هم وي نو پر ده د مځکې د هغه ټوټې مثال صادق راځي چې هغه اوبه په ځان کې جذب کړي خپله يې هم ګټه واخلي او نورو ته يې هم ګټه ورسول ، وابنه يې شنه کړل . همدارنګه هغه سړي هم د دين د علم څخه خپله هم ګټه واخيستل او نور يې هم د خپل علم څخه ګټور کړل ، دوهم هغه سړی دی چې عالم او معلم وي مګر عابد او فقيه نه وي نه خو هغه نفلونه وغيره کې مشغول اوسي او نه هغه په خپل علم کې پوهه پيدا کړل ، د هغه مثال د هغه برخې په ډول دی چې په هغه کې اوبه جمع سوې او خلکو د هغه څخه ګټه پورته کړه يا د مځکې د هغه ټوټې چې هغه اوبه جذب هم کړي او وابنه يې هم شنه کړل . د هغه مجتهدينو مثال دی چې هغوئ علم حاصل کړ بيا د ډيرو مسائلو څېړنه يې وکړل د هغه څخه په خپله يې هم ګټه واخيستل او نورو ته يې هم ګټه ورسول .

او د مځکې د هغه برخې مثال چې په هغه کې اوبه جمع سوې محدثين دي چې هغوئ علم حديث تر لاسه کړ او دا علم يې بعينه نورو خلکو ته ورسوی ددغه دواړو په مقابله کې دوهم سړی هغه دی چې هغه د غرور او تکبر په وجه د الله تعالی ددين په وړاندې خپل غاړه کښته نه کړه نه هغه د علم دين په لور څه توجه وکړل او نه هغه د الله تعالی او د هغه د رسول پيغام واوريدی او نه يې په هغه عمل وکړ او نه يې د علم رڼا نورو ته ورسول ، اوس پکار دي چې هغه په دين محمدي کې داخل سي او که نسي او يا کافر وي ، د هغه مثال د ډبريني مځکې دی چې نه يې اوبه په ځان کې جذب کړې او نه يې اوبه جمع کړې او نه يې څه شنه کړل .

﴿۱۴۳﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ تَلاَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ( هُوَ الَّذِيْ أَنْزَلَ عَلَيْكَ الْكِتَابَ مِنْهُ آيَاتٌ مُّحْكَمَاتٌ) وَقَرَأَ إِلَى ( وَمَا يَذَّكَّرُ إِلاَّ أُوْلُو الْأَلْبَابِ ) . قَالَتْ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَإِذَا رَأَيْتَ وَعِنْدَ مُسْلِمٍ رَأَيْتُمُ الَّذِيْنَ يَتَّبِعُوْنَ مَا تَشَابَهَ مِنْهُ فَأُوْلٰئِكَ الَّذِيْنَ سَمَّاهُمُ اللهُ فَاحْذَرُوْهُمْ . متفق عليه

د حضرت عائشې (رض) څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ دا آيت تلاوت کړ (هوالذي انزل...) (دا هغه الله دی چي پر تا يې کتاب نازل کړ په دې کي محکم (ټينګ) آياتونه دي ....) بې بي عائشة فرمايي (د دې آيت په ويلو سره ) رسول الله ﷺ وفرمايل : هر کله چي ته ووينې (او د مسلم په يوه روايت کي دي) هر کله چي تاسو ووينئ چي خلك په متشابه آياتونو پسې دي (متشابه هغه آياتونه دي چي د هغه معنا يوازي الله تعالی ته معلومه وي ) نو ته پوه سه چي دا هغه خلك دي چي د هغوئ نوم الله ﷻ (ګمراه) ايښی دی او د دوئ څخه ځان ساته . بخاري ومسلم

**تشريح** : د آيت کريمه پاته برخه داده :

هُنَّ أُمُّ الْكِتَابِ وَأُخَرُ مُتَشَابِهَاتٌ فَأَمَّا الَّذِينَ فِي قُلُوبِهِمْ زَيْغٌ فَيَتَّبِعُونَ مَا تَشَابَهَ مِنْهُ ابْتِغَاءَ الْفِتْنَةِ وَابْتِغَاءَ تَأْوِيلِهِ وَمَا يَعْلَمُ تَأْوِيلَهُ إِلاَّ اللّهُ وَالرَّاسِخُونَ فِي الْعِلْمِ يَقُولُونَ آمَنَّا بِهِ كُلٌّ مِّنْ عِندِ رَبِّنَا وَمَا يَذَّكَّرُ إِلاَّ أُوْلُواْ الأَلْبَابِ ۷ سورة آل عمران.

ژباړه : او دغه (آيات محکمات) اصل کتاب وي او ځيني آيتونه متشابه دي داسي خلک چي د هغوئ په زړونو کي کوږوالی دی هغوئ د متشابهاتو اتباع کوي چي فتنه خپره کړي او اصلي مراد تر لاسه کړي حال دا چي اصلي مراد د الله تعالی څخه پرته هيڅوک نه پيژني او کوم خلک چي په علم کي کامل پوهه لري هغوئ دا وايي چي موږ پر دې ايمان راوړ دا ټول زموږ د پروردګار د لوري دي او نصيحت خو عقلمند خلک قبلوي .

ددغه حديث شريف څخه څرګنده سوه چي کوم خلک په آيات متشابهات پسي لګيدلي دي او د هغه اصلي مقصد تر لاسه کولو لپاره د خپل عقل غشي چلوئ هغوئ ته الله تعالی کاږه يعني ګمراه ويلي دي څرنګه چي د پورتني آيت (فَأَمَّا الَّذِينَ فِي قُلُوبِهِمْ زَيْغٌ) څخه معلومه سوه .

حاصل د کلام دادی چي په قرآن کريم کي دوه ډوله آياتونه دي لومړی آيات محکمات ، دا هغه آياتونه دي چي د هغه معنا او مطلب څرګند وي په هغه کي ابهام او پټه خبره نه وي ، دوهم : آيات متشابهات دي چي د هغه معنا څرګنده نه وي بلکه د هغه د حقيقي مراد علم يوازي الله ﷻ

ته وي لکه (يد الله فوق ايديهم) او داسي نور .
نو کوم خلک چي صالح او نيک دي او د هغوئ زړونه د ايمان او يقين په رڼا سره په پوره توګه منور دي نو هغوئ د آيات محکمات په معنا او مطلب هم پوهيږي او ايمان هم پر راوړي او پر آيات متشابهات باندي په پوره رسوخ او ايمان سره د ايمان سره د هغه معنا او مطالب د حقيقي مراد علم الله تعالی ته حواله کوي چي هغه غوره پوه دي .

﴿۱۴۴﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنَ عَمْرو قَالَ هَجَّرْتُ إِلىٰ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمًا قَالَ فَسَمِعَ أَصْوَاتَ رَجُلَيْنِ اخْتَلَفَا فِيْ آيَةٍ فَخَرَجَ عَلَيْنَا رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُعْرَفُ فِيْ وَجْهِهِ الْغَضَبُ فَقَالَ إِنَّمَا هَلَكَ مَنْ كَانَ قَبْلَكُمْ بِاخْتِلَافِهِمْ فِي الْكِتَابِ . رواه مسلم .

د حضرت عبدالله بن عمرو ؓ څخه روايت دی چي يوه ورځ زه د عرفات په وخت کي د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سوم نو رسول الله ﷺ د دوو کسو آوازونه واورېدل چي په يو (متشابه) آيت کي يې بحث کاوه. رسول الله ﷺ زموږ لوري ته تشريف راوړ او دغه وخت د رسول الله ﷺ پر مبارك مخ د غصې نښې څرګندي وې ، رسول الله ﷺ وفرمايل : ستاسو څخه وړاندي چي کوم خلك وه هغوئ د الله په کتاب کي اختلاف کاوه له دې کبله هغوئ هلاك سول .مسلم .

**تشريح** : د دې څخه مراد هغه اختلاف دی چي د هغه په وجه زړونه په شك او شبه کي اخته وي ، يا په ايمان کي کمزوري پيدا وي او په خپل منځ کي د فتنې ، فساد او دښمنۍ سبب او د کفر او بدعت باعث وي لکه په نفس قرآن کي اختلاف کول ، د دې په معنا او مطالبو کي فرق کوي .
څرګنده ده چي په دغه شيانو کي نه خو اجتها جائز دی او نه اختلاف کول ، مګر د علماؤ او مجتهدينو اختلاف جائز دی چي د الله تعالی د رحمت باعث او په دين او شريعت کي د وسعت ذريعه ده ، د صحابه کرامو څخه دا ډول اجتهادي اختلاف چي ګڼ‌ور وي منقول دي چي جائز وه او د هغه په وجه د بې شميره مسائلو پلټنه وسول او امت د هغه ګټي څخه برخمن سو .

﴿۱۴۵﴾:وَعَنْ سَعْدِ بْنِ أَبِيْ وَقَّاصٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ أَعْظَمَ الْمُسْلِمِيْنَ فِيْ الْمُسْلِمِيْنَ جُرْمًا مَنْ سَأَلَ عَنْ شَيْءٍ لَمْ يُحَرَّمَ عَلَى النَّاسِ فَحُرِّمَ مِنْ أَجْلِ مَسْأَلَتِهِ .(متفق عليه)

د حضرت سعد بن ابي وقاص ؓ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : په مسلمانانو کي تر ټولو لوی ګناهکار هغه څوك دی چي د يو شي په اړه پوښتنه وکړي کوم چي پر خلکو حرام نه وي مګر د هغه د پوښتني کولو له کبله هغه حرام کړل سي . بخاري او مسلم .

**تشریح** : دا سزا د هغه خلکو لپاره ده چي د رسول الله ﷺ څخه به يې د سرکښۍ په وجه پوښتني کولې يا د هغوئ پوښتنه کول به يوازي د تصنع (ځان ښودني) په وجه وه لکه څرنګه چي بني اسرائيلو د بقره (غوا) په اړه د حضرت موسی علیه السلام څخه پوښتني کولې ، مګر که چيري د خلکو پوښتني کول د علم تر لاسه کولو يا د يو ضرورت په وجه وي نو هغه په دې کي داخل نه دي ځکه چي هغوئ ته خو به د خپل صحيح سوالونو په وجه ثواب تر لاسه کيدی .

﴿۱۴۶﴾: وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَكُوْنُ فِيْ آخِرِ الزَّمَانِ دَجَّالُوْنَ كَذَّابُوْنَ يَأْتُوْنَكُمْ مِنَ الْأَحَادِيْثِ بِمَا لَمْ تَسْمَعُوْا أَنْتُمْ وَلَا آبَاؤُكُمْ فَإِيَّاكُمْ وَإِيَّاهُمْ لَا يُضِلُّوْنَكُمْ وَلَا يَفْتِنُوْنَكُمْ .رواه مسلم .

د حضرت ابوهريرة رضی الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل :په آخره زمانه کي به داسي ټګان او درواغجن خلك وي چي تاسو ته به داسي حديثونه راوړي کوم چي نه به تاسو اوريدلي وي او نه به ستاسو پلرونو او نيکه ګانو، نو د داسي خلکو څخه ځان وژغورئ او ځان ته يې نژدې مه پريږدئ چي نه تاسو ګمراه کړي او نه مو په فتنه کي واچوي. مسلم .

**تشریح** : د حديث شريف مطلب دادی چي په آخره زمانه کي به داسي چم باز او دوکه ورکونکي خلک پيداسي چي د زهد او تقوا د لباس په اغوستلو سره به خلک غلوي ، عوامو ته به وايي چي موږ د علماؤو او شيوخو څخه يو او تاسو د الله تعالی د دين په لور رابولو او د درواغو حديثونه به د خپل ځان څخه په جوړوي او د خلکو په وړاندي به يې بيانوي ، يا دتيرو بزرګانو په اړه غلطي خبري منسوب کولو سره خلکو ته دوکه ورکوي ، باطل حکمونه به ښيي او غلطي عقيدې به په خلکو کي خپروي ، نو مسلمانانو ته پکار ده که داسي خلک ويني نو دهغوئ څخه دي ځان ساتي ، داسي نه چي هغوئ په خپل مکر او فريب سره خلک په فتنه کي واچوي ، يعني په شرک او بدت يې اخته کړي

د دې حکم مطلب دادی چي د دين په تر لاسه کولو کي احتياط پکاردئ او د بدعت او داسي خلکو د صحبت څخه ځان ساتل پکار دي چي د ذاتي مقصدونو او نفساني خواهشاتو په وجه د دين او مذهب په نامه خلکو ته دوکه ورکوي او د هغوئ سره ارتباط او تعلق ساتل نه دی پکار.

چون بسا ابلیس آدم روئی هست    پس بهر دستی نباید داد دست

﴿۱۴۷﴾ : وَعَنْهُ قَالَ كَانَ أَهْلُ الْكِتَابِ يَقْرَؤُوْنَ التَّوْرَاةَ بِالْعِبْرَانِيَّةِ وَيُفَسِّرُوْنَهَا بِالْعَرَبِيَّةِ لِأَهْلِ الْإِسْلَامِ . فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تُصَدِّقُوْا أَهْلَ الْكِتَابِ وَلَا تُكَذِّبُوْهُم وَ( قُوْلُوْا آمَنَّا بِاللهِ وَمَا أُنْزِلَ إِلَيْنَا الآية . رواه البخاري .

د حضرت ابوهريرة ﷺ څخه روايت دى چي اهل كتابو به تورات په عبراني ژبه لوستى او د مسلمانانو په مخکي به يې د هغه ژباړه او تفسير په عربي ژبه كول، رسول الله ﷺ ته چي دا څرگنده سوه نو وه يې فرمايل : تاسو اهل کتاب رښتني مه گڼئ او مه يې درواغجن گڼئ او دا وايast چي موږ پر الله او پر هغه شی چي الله پر موږ نازل کړی دی ايمان را وړی دی . بخاري .

**تشريح** : پوره آيت دادی :

قُولُواْ آمَنَّا بِاللّهِ وَمَآ أُنزِلَ إِلَيْنَا وَمَا أُنزِلَ إِلَى إِبْرَاهِيمَ وَإِسْمَاعِيلَ وَإِسْحَقَ وَيَعْقُوبَ وَالأَسْبَاطِ وَمَا أُوتِيَ مُوسَى وَعِيسَى وَمَا أُوتِيَ النَّبِيُّونَ مِن رَّبِّهِمْ لاَ نُفَرِّقُ بَيْنَ أَحَدٍ مِّنْهُمْ وَنَحْنُ لَهُ مُسْلِمُونَ ۱۳۶ .

سورة البقرة.

ژباړه : (اې مؤمنانو !) ووایاست چي موږ پر الله تعالی ایمان راوړ او پر هغه کتاب چي پر موږ نازل سوی دی او پر هغه صحيفو چي پر ابراهيم، اسماعيل، او يعقوب (عليهم السلام) او د هغوئ پر اولاد نازل سوي دي او پر هغه کتابونو چي موسی ﷺ او عیسی ﷺ ته ورکړل سوی دي او چي نورو پيغمبرانو ته د هغوئ د پروردگار د لوري حاصل سول پر هغو ټولو مو ايمان راوړ موږ په هغه پيغمبرانو كي په هيڅ يوه كي فرق نه كوو او موږ د هغه (يوه الله ﷻ) فرمانبرداريو .

د رسول كريم ﷺ د ارشاد مطلب دادی چي هر کله ستاسو په وړاندي اهل کتاب (يهوديان) د تورات د يو عبارت ترجمه او تفسير وكړي نو تاسو درواغ مه ورته وایاست او مه یې رښتيا گڼئ بلکه دا آيت وایاست او هغوئ رښتوني ځکه مه گڼئ چي دا خلک په کتاب الله کي رد او بدل کوي ځکه نو کیدای سي چي ستاسو په وړاندي هغوئ د کوم عبارت ترجمه او تفسير کوي هغه يې بدل کړی وي، او درواغجن ورته ځکه مه وایاست که څه هم هغوئ په تورات کي رد او بدل کړی دی مگر بيا هم هغه الهي کتاب دی او حق دی ځکه نو کیدای سي چي شايد هغوئ رښتوني او صحيح عبارت نقل کړی وي .

﴿۱۴۸﴾ : وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَفٰى بِالْمَرْءِ كَذِبًا أَنْ يُحَدِّثَ بِكُلِّ مَا سَمِعَ . رواه مسلم .

د حضرت ابوهريرة ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د انسان د درواغو ويلو لپاره دا خبره بس ده چي کومه خبره واوري هغه نقل کړي . (يعني

تحقیق یې ونه کړي) . مسلم .

**تشریح** : مطلب دادی چي که درواغ نه وایي مګر د هغه عادت دا دی چي څه واوري نو پرته د تحقیق او پلټني څخه هغه نقل کوي او په خلکو کي هغه مشهوره کوي نو د درواغ ویلو لپاره داکافي دي ځکه چي پر اوریدلي خبري باندي باور کول او بې پلټني هغه خپرول د درواغو لومړنی زینه ده ، کوم سړی چي په داسي عادت کي اخته وي هغه به یقینا د درواغو په لعنت کي ګرفتار وي ځکه چي هغه څه اوري په هغه کي ټول ریښتیا نه وي څه درواغ هم پکښي وي او هر کله چي هغه په ریښتیا سره درواغ نقل کوي نو هغه درواغ وي ، په اصل کي ددې مقصد ددې خبري څخه منعه کول دي چي د کوم شی حقیقت معلوم نه وي نو هغه بیانول یا د هغه نشر کول باید ونه سي .

﴿۱۴۹﴾ : وَعَنِ بْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا مِنْ نَّبِيٍّ بَعَثَهُ اللهُ فِيْ أُمَّتِهِ قَبْلِيْ إِلاَّ كَانَ لَهُ مِنْ أُمَّتِهِ حَوَارِيُّوْنَ وَأَصْحَابٌ يَّأْخُذُوْنَ بِسُنَّتِهِ وَيَقْتَدُوْنَ بِأَمْرِهِ ثُمَّ إِنَّهَا تَخْلُفُ مِنْ بَعْدِهِمْ خُلُوْفٌ يَقُوْلُوْنَ مَا لاَ يَفْعَلُوْنَ وَيَفْعَلُوْنَ مَا لاَ يُؤْمَرُوْنَ فَمَنْ جَاهَدَهُمْ بِيَدِهِ فَهُوَ مُؤْمِنٌ وَمَنْ جَاهَدَهُمْ بِلِسَانِهِ فَهُوَ مُؤْمِنٌ وَمَنْ جَاهَدَهُمْ بِقَلْبِهِ فَهُوَ مُؤْمِنٌ وَلَيْسَ وَرَاءَ ذٰلِكَ مِنَ الْإِيْمَانِ حَبَّةُ خَرْدَلٍ . رواه مسلم .

د حضرت ابن مسعود ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : زما څخه وړاندي په هیڅ یو قوم کي الله یو نبي داسي نه دی رالیږلی چي د هغه قوم څخه د هغه مرستیالان او دوستان نه وي (داسي مرستیالان او دوستان) چي د هغه د طریقو پیروي او د هغه د احکامو پوره اطاعت کوي ، بیا د هغو وروسته داسي نالائقه خلك پیداسول هغو خلکو به داسي خبره کوله چي خپله به یې عمل نه په کاوه ، او هغه کار به یې کاوه چي د هغه حکم به نه وو ورکړل سوی ، نو چا چي (ستاسو څخه) د دې خلکو سره د لاس جهاد وکړ هغه مؤمن دی او چا چي په ژبه ورسره جهاد وکړ هغه مؤمن دی او چا چي په زړه ورسره جهاد وکړ هغه مؤمن دی او ددې وروسته (یعني څوك چي د هغوئ پر خلاف دومره هم ونه کړي چي په زړه جهاد ورسره وکړي) په هغه کي د اوري د دانې په اندازه هم ایمان نسته . مسلم.

**تشریح** : د لاس د جهاد څخه مطلب خو څرګند دی ، د ژبي د جهاد معنا دا ده چي خلکو ته د غلطو عقیدو او عملونو په وجه تنبیه ورکړي او د هغه څخه یې منعه کړي او د هغه خرابي بیانوي ، همدارنګه په زړه سره د جهاد معنا داده چي داسي غلط شیان بد وګڼي کوم چي ددین او شریعت خلاف وي او په زړه سره د هغه د کونکو سره بغض و نفرت وکړي .

په پای کي وفرمایل سول چي د کوم سړي احساس دومره مړ سي چي هغه غلط شیان په زړه سره هم بد ونه ګڼي نو د هغه واضح مطلب به دا وي چي د هغه په زړه کي د ایمان معمولي رڼا هم موجود نه ده ځکه یو غلطه عقیده او بد عمل بد نه ګڼل لکه چي دده خبري اظهار کول دي چي هغه په دغه خرابي راضي او خوشحاله دی او ثرګنده ده چي دا د کفر خاصیت دی .

﴿۱۵۰﴾ : وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ :مَنْ دَعَا إِلٰى هُدًى كَانَ لَهُ مِنَ الْأَجْرِ مِثْلُ أُجُوْرِ مَنْ تَبِعَهُ لاَ يَنْقُصُ ذٰلِكَ مِنْ أُجُوْرِهِمْ شَيْئًا وَمَنْ دَعَا إِلٰى ضَلاَلَةٍ كَانَ عَلَيْهِ مِنَ الْإِثْمِ مِثْلُ آثَامِ مَنْ تَبِعَهُ لاَ يَنْقُصُ ذٰلِكَ مِنْ آثَامِهِمْ شَيْئًا . رواه مسلم .

د حضرت ابوهريرة ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : څوک چي د هدایت دعوت ورکړي هغه ته به دومره ثواب ورکول کیږي څومره چي په هغه عمل کونکي ته ورکول کیږي او د هغه (اطاعت کونکي) د اجر څخه به هیڅ هم نه کمیږي، او څوک چي د ګمراهۍ دعوت ورکړي د هغه به هغومره ګناه وي څومره چي په هغه د عمل کونکي وي او د هغه د ګناه څخه به هیڅ نه کمیږي . مسلم .

**تشریح** : یعني کوم سړی چي د یو نیکۍ باعث وي نو هغه ته به هم هغومره ثواب تر لاسه کیږي څومره چي پر هغه نیکۍ باندي عمل کونکي ته ورکول کیږي ، مګر د هدایت او نیکۍ په لور بلونکي ته چي کوم ثواب تر لاسه کیږي د هغه په وجه د هغه د پیروي کونکي په ثواب کي هیڅ کمي نه کیږي ځکه چي اطاعت کونکو ته چي کوم ثواب ورکول کیږي د هغه د عمل صالح په وجه ورته تر لاسه کیږي او کوم ثواب چي د نیکۍ بلونکي ته ورکول کیږي هغه به د هغه د دعوت او تبلیغ په وجه وي ، او همدا حال د هغه خلکو د ګناه هم دی چي خلک د غلطو عقیدو او غلطو اعمالو په لور رابولي او شریعت پر خلاف طریقو باندي عوام روانوي .

﴿۱۵۱﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَدَأَ الْإِسْلَامُ غَرِيْبًا وَسَيَعُوْدُ كَمَا بَدَأَ فَطُوْبٰى لِلْغُرَبَاءِ . رواه مسلم .

د حضرت ابوهريرة ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل :اسلام په غریبانو کي پیل سو او په پای کي به هم (یعني په پای کي هم اسلام په غریبانو کي پاته سي) نو د غریبانو لپاره زیری دی . مسلم .

**تشریح** : مطلب دادی چي د اسلام پیل د غریبانو (مسکینانو) څخه وسو او په پای کي به هم اسلام په غریبانو کي پاته سي ، یعني د اسلام په پیل کي مسلمانان غریب او کم وه چي د هغه په وجه هغوئ خپل هیواد پرېښودو سره د نورو هیوادونو په لور هجرت وکړ ، همداسي په پای کي به هم داسي وي چي اسلام به دغریبانو په لور بیرته راسي نو د غریبانو لپاره چي د هغوئ زړونه د ایمان

او اسلام په رڼا سره پوره منور وي زيرى او سعادت دى ، ځکه چي په آخره زمانه کي به دا غريبان پر اسلام ثابت قدمه وي او د کتاب او سنت علوم او معارف سره به خپل ژوند روښانه کړي .

﴿۱۵۲﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ الْإِيْمَانَ لَيَأْرِزُ إِلَى الْمَدِيْنَةِ كَمَا تَأْرِزُ الْحَيَّةُ إِلَى جُحْرِهَا (متفق عليه) وَ سَنَذْكُرُ حَدِيْثَ اَبِيْ هُرَيْرَةَ ذَرُوْنِيْ مَا تَرَكْتُمْ فِيْ كِتَابِ الْمَنَاسِكِ وَحَدِيْثَيْ مُعَاوِيَةَ وَجَابِرٍ لاَ يَزَالُ مِنْ اُمَّتِيْ وَلَايَزَالُ طَائِفَةٌ مِّنْ اُمَّتِيْ، فِيْ بَابِ ثَوَابِ هٰذِهِ الْاُمَّةِ اِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالٰى .

د حضرت ابوهريرة ﷺ څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل : ايمان به د مديني په لور داسي را ټول سي لکه ځرنگه چي مار خپل سوري ته را ټوليږي (بخاري اومسلم) موږ به د حضرت ابوهريرة حديث (ذروني ماتركتم) په کتاب المناسك کي راوړو او دوه حديثونه د حضرت معاويه او جابر چي ( لايزال من امتي ...) څخه شروع کيږي په باب ثواب هذه الامة کي انشاء الله ذکر کړو.

**تشريح** : د اسلام د دښمنانو د مصيبتونو او ظلمونو څخه د اهل اسلام تښتېدل او پر ايمان ثابت قدم اوسيدو مثال رسول الله ﷺ په مار سره ورکړى دى ځکه چي د نورو حيوانانو په مقابله کي مار تښتي او په ډير راټولېدو سره په خپل غار کي ننوځي ، بيا هغه په مشکل سره د غار څخه را ايستل کيږي ، د رسول الله ﷺ وړاند وينه يا خو د هجرت د پيل د وخت لپاره وه او يا د آخري زمانې په باره کي ده ، هر کله چي مسلمانان به ډير کم پاته سي او ټول به په راټولېدو سره مديني منورې ته ولاړ سي .

# الفصل الثاني

﴿۱۵۳﴾: عَنْ رَّبِيْعَةَ الْجُرَشِيِّ قَالَ أُتِيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقِيْلَ لَهُ لِتَنَمْ عَيْنُكَ وَلْتَسْمَعْ اُذُنُكَ وَلْيَعْقِلْ قَلْبُكَ قَالَ فَنَامَتْ عَيْنَايَ وَسَمِعَتْ اُذُنَايَ وَعَقَلَ قَلْبِيْ قَالَ فَقِيْلَ لِيْ سَيِّدٌ بَنٰى دَارًا فَصَنَعَ فِيْهَا مَأْدُبَةً وَأَرْسَلَ دَاعِيًا فَمَنْ أَجَابَ الدَّاعِيَ دَخَلَ الدَّارَ وَأَكَلَ مِنَ الْمَأْدُبَةِ وَ رَضِيَ عَنْهُ السَّيِّدُ وَمَنْ لَّمْ

د حضرت ربيعة[1] الجرشي ﷺ څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ ته په خوب کي ملائکي وښودل سوې هغه ملائکو ده مبارك ته وويل پکار دي چي ستاسو سترگي بيدې وي او ستاسو غوږونه اوري او ستاسو زړه پوهيږي ، رسول الله ﷺ وفرمايل : نو زما سترگي بيدې وي او زما غوږونو واورېدل او زما زړه په پوه سو بيا رسول

[1] د نوموړى نوم ربيعه بن النمار دى او ځيني خلکو ربيعه بن عمرو هم ليکلى دى ، د نوموړي په صحابي کېدو کي اختلاف د ، نوموړى د خرج راهط په ورځ وفات سوى دى .

يُجِبِ الدَّاعِيَ لَمْ يَدْخُلِ الدَّارَ وَلَمْ يَأْكُلْ مِنَ الْمَأْدُبَةِ وَ سَخِطَ عَلَيْهِ السَّيِّدُ قَالَ فَاللّٰهُ السَّيِّدُ وَمُحَمَّدٌ الدَّاعِيُ وَالدَّارُ الْإِسْلَامُ وَالْمَأْدُبَةُ الْجَنَّةُ . رواه الدارمي

الله ﷺ وفرمایل د مثال په ډول ملائکو زما په وړاندي بیان وکړ چي یو سردار کور جوړ کړ او میلمستیا یې تیاره کړه او یو بلونکی یې ولیږی نو چا چي د هغه بلونکي بلنه ومنل نو هغه کور ته داخل سو او پر دسترخوان یې خوراك وخوړی او سردار د هغه څخه خوشحاله سو او چا چي د بلونکي خبره ونه منل هغه نه دغه کور ته داخل سو او نه یې د دسترخوان څخه خوراك وکړ او سردار هم د هغه څخه ناخوښ سو ، رسول الله ﷺ وفرمایل په دې مثال کي د سردار څخه مراد الله تعالی دی او د بلونکي څخه مراد محمد ﷺ دی د کور څخه مراد اسلام دی او د دسترخوان څخه مراد جنت دی . دارمي .

**تشریح** : پکار دي چي ستاسو سترګي بیدې سي یعني په خپلو سترګو سره نور هیڅ مه وینئ مد پر یو خبره غوږ ایږدئ او په مه په زړه کي یو بل سوال پیدا کوئ ، د ملائکو د ویلو مطلب دا وو چي په ښه غور او فکر او د زړه په حضور سره دا مثال واوره کوم چي موږ بیانوو ، یو دا چي په ښه ډول په ذهن کي راسي په دې سره رسول الله ﷺ جواب ورکړ چي (فنامت عيناي) يعني زما سترګي بیدې سوي دي ... الخ،. د دې مضمون په هغه حدیث کي چي په مخکي فصل کي تیر سو ، په ذکر سوي مثال کي د کور څخه مراد جنت او د غلې څخه مراد د جنت نعمتونه اخیستل سوي دي په دغه حدیث کي د کور څخه مراد اسلام او د غلې څخه مراد جنت اخیستل سوی دی ځکه چي مکان د جنت د داخلېدو دپاره سبب او ذریعه ده ځکه نو دې ته په کور سره تمثیل ورکړل سوی دی د (مادبة) معنا د میلمه د خوراک ده ، په دواړو حدیثو کي د دې څخه مراد د جنت نعمتونه دي .

﴿١٥٤﴾: وَعَنْ أَبِيْ رَافِعٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا أُلْفِيَنَّ أَحَدَكُمْ مُتَّكِئًا عَلٰى أَرِيْكَتِهِ يَأْتِيْهِ الْأَمْرُ مِنْ أَمْرِيْ مِمَّا أُمِرْتُ بِهِ أَوْ نَهَيْتُ عَنْهُ فَيَقُوْلُ لَا أَدْرِيْ مَا وَجَدْنَا فِيْ كِتَابِ اللّٰهِ اِتَّبَعْنَاهُ . رواه أحمد وأبو داود

د حضرت ابورافع[1] ؓ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : زه دي هیڅوك په تاسو کي په دې حال ونه وینم چي هغه په چپرکټ کي تکیه وهلې وي او زما د هغه احکامو چي د هغو ما حکم ورکړی وي یا د کوم څخه چي مي منعه کړی وي یو حکم هغه ته راسي ا و هغه دا وایي چي زه په هیڅ

[1] د نوموړي نوم اسلم او کنیت یې ابورافع دی د بدر په غزا کي شریك سوی نه دی ، د علامه سیوطي رح د قول سره سم د حضرت علي ؓ د خلافت په زمانه کي وفات سوی دی .

والترمذي وابن ماجه والبيهقي في دلائل النبوة . | نه پوهیږم څه چي مو د الله په کتاب کي پیدا کړل د هغه اطاعت وکړه . احمد ، ابوداؤد ،ترمذي او بيهقي په دلائل النبوة کي .

**تشریح** : پر چپرکټ باندي د تکیه کولو مطلب دادی چي یو سړی د غرور او تکبر په وجه بې فکره ناست وي او نه په طلب د علم او حصول د حدیث کي کوتاهي وکړي او نه دیني علم پرېږدي او د جهالت او نافرمانۍ له مخي زما د یو داسي حکم په باره کي چي په قرآن کریم کي په صراحت سره موجود نه وي دا وو ایي چي د کتاب الله څخه پرته زه نور په هیڅ نه پوهیږم او نه د هغه څخه پرته د یو بل شي پیروي کوم ، په حدیث شریف کي رسول الله ﷺ د هغه جاهلو او متکبرو بې پروا خلکو په باره کي وړاند وینه فرمایلې ده چي هغه پر احکامو باندي په عمل کولو کي د شک او شبهې اظهار وکړي یا د هغه په اطاعت کي سستي ښکاره کړي چي په صراحت سره په قرآن کریم کي موجود نه وي او د هغوئ ښکاره نظرونه د قرآني د قرآني علومو او اسرارو او معانیو د حقیقت ته رسیدو څخه قاصر وي .

هغه خلک دا خیال کوي چي د دین او شریعت احکام او مسائل یوازي په قرآن کریم کي منحصر او مذکور دي حال دا چي هغوئ د عقل ړانده په دې نه پوهیږي چي ډیر مسایل او احکام په قرآن کریم کي موجود نه دي هغه یوازي په حدیث کي په صراحت سره ذکر سوي دي ځکه نو د علماء اهل سنت والجماعة عقیده داده چي څرنګه چي د شریعت د احکامو لپاره قرآن کریم دلیل او حجت دی همداسي حدیث هم دلیل او حجت دی، ځکه څرنګه چي قرآن کریم پر رسول الله ﷺ نازل سوی دی همداسي د حدیثو علوم او معارف هم د الله تعالی د لوري نازل سوي دي او دا دواړه وحي دي .

﴿۱۵۵﴾: وَعَنِ الْمِقْدَامِ بْنِ مَعْدِيْ كَرِبَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَلاَ إِنِّي أُوْتِيْتُ الْقُرْآنَ وَمِثْلَهُ مَعَهُ أَلاَ يُوْشِكُ رَجُلٌ شَبْعَانُ عَلَى أَرِيْكَتِهِ يَقُوْلُ عَلَيْكُمْ بِهٰذَا الْقُرْآنِ فَمَا وَجَدْتُمْ فِيْهِ مِنْ حَلاَلٍ فَأَحِلُّوْهُ وَمَا وَجَدْتُمْ فِيْهِ

د حضرت مقدام[1] بن معدیکرب څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : خبردار! ما ته قرآن او ددې په مثل راکړل سوي دي خبردار اوسئ چي ډیر ژر به یو ډک نسی پر خپل چپرکټ پروت وي او وایي به چي بس هم دا قرآن لازم وګڼئ کوم شی چي تاسو په قرآن کي حلال پیدا کړي هغه حلال وګڼئ

[1] د نوموړي نوم مقدام بن معدیکرب او کنیت یې کریم دی ، نوموړی صحابي دی د (۹۱) کالو په عمر په شام کي په کال (۸۷هـ) کي وفات سوی دی رضي الله عنه .

مِنْ حَرَامٍ فَحَرِّمُوْهُ وَإِنَّ مَا حَرَّمَ رَسُوْلُ اللهِ كَمَا حَرَّمَ اللهُ أَلاَ لاَ يَحِلُّ لَكُمُ الْحِمَارُ الْأَهْلِيُّ وَلاَكُلُّ ذِيْ نَابٍ مِّنَ السِّبَاعِ وَلاَ لُقْطَةُ مُعَاهِدٍ إِلاَّ أَنْ يَّسْتَغْنِيَ عَنْهَا صَاحِبُهَا وَمَنْ نَزَلَ بِقَوْمٍ فَعَلَيْهِمْ أَنْ يَّقْرُوْهُ فَإِنْ لَّمْ يَقْرُوْهُ فَلَهُ أَنْ يُّعْقِبَهُمْ بِمِثْلِ قِرَاهُ . رواه أبو داود، وروى الدارمي نحوه وكذا ابن ماجه إلى قوله كَمَا حَرَّمَ اللهُ .

او كوم چي حرام پيداكړئ هغه حرام وګڼئ . حالنكه واقعيت دادى چي رسول الله ﷺ څه حرام كړي دي هغه په دا ډول دي لكه الله تعالى چي حرام كړي دي ، خبردار اوسئ ! چي ستاسو لپاره كورنى خر حرام دى او همداسي هر څيروونكى حيوان (زمرى، ليوه، سپى ...) حرام دي، او ستاسو لپاره د معاهد شى (يعني د هغه قوم شى چي د هغوئ سره معاهده سوې وي) حرام دى خو هغه شى چي د مالك څه پروا پر نه وي او څوك چي د يو قوم ميلمه سي نو پر هغه قوم لازم دي چي د هغه مېلمستيا وكړي او كه هغوئ يې مېلمستيا ونه كړي نو هغه لره جائز ده چي د مېلمستيا مطابق (خوراك او څښاك) د هغه څخه تر لاسه كړي . ابوداؤد او دارمي هم داسي روايت كړى دى او همدا ډول ابن ماجه تر (څنګه چي الله حرام كړي دي) پوري روايت كړى دى .

**تشريح** : د قرآن مثل حديث دي يعني څرنګه چي قرآن كريم پر ما نازل سوى دى همداسي حديث هم ما ته د الله تعالى څخه راكړل سوي دي، مګر فرق دادى چي قرآن وحي ظاهر دى او حديث وحي پټ، نو واجب العمل دواړه دي، د (الا لايحل) څخه د مثال په توګه رسول الله ﷺ وفرمايل چي ددغه شيانو حرمت په قرآن كريم كي مذكور نه دى او ما ددې حرمت بيان كړى دى چي په هغه عمل كول واجب او ضروري دي .

كورنى خر هغه ته وايي چي په كور كي اوسيږي دا حرام دى ، وحشي (ځنګلي) خر چي هغه ته ګور خر هم وايي ددې تولو حراموالى د احاديثو څخه ثابت دى ، معاهد هغه كافر ته وايي د چا سره چي د مسلمانانو معاهده ، صلحه او امان سوى وي كه هغه كافر ذمي وي يا غير ذمي وي، د هغه په اړه وفرمايل سول چي دد هغه لقطه حلاله نه ده مګر كه چيري لقطه (ايله سوى شى) داسي شى وي چي د هغه څخه د هغه شي مالك بې نيازه او بې پرواه وي لكه هډوكي، پوستكي، زردكي، مولى يا داسي حقير شى نو د هغه اخيستل جائز دي ، لقطه هغه شي ته وايي چي په لاركي غورځول سوى پيداسي .

په پاى وفرمايل سول چي كوم سړى د چا سره ميلمه سي نو پر كوربه باندي د هغه ميلمستيا لازمه ده ، علماء وايي چي دا حكم فرض نه دى بلكه داسي كول مستحب او غوره دي

او داسي حكم وركول كه كوربه ميلمستيا ونه كړي نو ميلمه ته جائز ده چي د هغه كوربه څخه د ميلمستيا عوض ترلاسه كړي يعني د هغه څخه روپۍ واخلي.

په دې اړه ويل كيږي چي دا مسئله خو به يا په داسي شكل كي جائز وي چي كله ميلمه داسي لاچاره وي كه چيري د كوربه څخه هغه شی نه واخلي نو د هغه د هلاكېدو خطره وي، يا داسي ويل كيږي چي د جواز دغه حكم د اسلام په پيل كي وو او اوس منسوخ دی.

﴿۱۵۶﴾: وَعَنِ الْعِرْبَاضِ بْنِ سَارِيَةَ قَالَ قَامَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ أَيَحْسَبُ أَحَدُكُمْ مُتَّكِأً عَلٰى أَرِيْكَتِهِ يَظُنُّ أَنَّ اللهَ لَمْ يُحَرِّمْ شَيْئًا إِلاَّ مَا فِيْ هٰذَا الْقُرْآنِ أَلاَ وَإِنِّيْ وَاللهِ قَدْ أَمَرْتُ وَوَعَظْتُ وَنَهَيْتُ عَنْ أَشْيَاءَ إِنَّهَا لَمِثْلُ الْقُرْآنِ أَوْ أَكْثَرُ وَإِنَّ اللهَ لَمْ يُحِلَّ لَكُمْ أَنْ تَدْخُلُوْا بُيُوْتَ أَهْلِ الْكِتَابِ إِلاَّ بِإِذْنٍ وَّلاَ ضَرْبَ نِسَائِهِمْ وَلاَ أَكْلَ ثِمَارِهِمْ إِذَا أَعْطَوْكُمُ الَّذِيْ عَلَيْهِمْ. رواه أبو داود، وفي إسناده أشعث بن شعبة المصيصي قَدْ تُكُلِّمَ فِيْهِ.

د حضرت عرباض[۱] بن ساريه ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ (د خطبې لپاره) ودرېدی او وه يې فرمايل: ايا په تاسو كي يو څوك پر خپل چپركټ تكيه لګولی دا خيال كوي چي الله تعالى كوم شيان حرام كړي دي هغه دي په قرآن كي موجود وي، خبردار اوسئ! په الله دي مي قسم وي چي ما حكم وركړ، نصيحت مي وكړ او د څو شيانو څخه مي منعه وكړل او هغه د قرآن په ډول دي بلكه زيات او البته الله تعالى دا نه دي حلال كړي چي تاسو د هغوئ كورو ته بې اجازې ور سئ او نه ستاسو لپاره د هغوئ ښځي وهل جائز دي او نه د هغوئ ميوې خوړل جائز دي هر كله چي اهل كتاب خپله هغه مطالبه ادا كړي چي د هغوئ پر ذمه وه. ابوداؤد.

**تشريح**: په (وَإِنَّ اللهَ لَمْ يُحِلَّ.... الخ) كي رسول الله ﷺ څو احكام وركړي دي هغه دا چي د اهل كتابو په كورونو كي د هغوئ د اجازې څخه پرته په داخلېدو سره هغوئ ته تكليف مه وركوئ او مه هغوئ پريشان كوئ او مه د هغوئ كورنۍ په تكليف كوئ او مه يې تنګوئ، همداسي د هغوئ مال مه اخلئ هر كله چي هغوئ جزيه ادا كوي.

د ارشاد مقصد دادی چي دا احكام په قرآن كريم كي موجود نه دي بلكه ما دركړي دي او ددغه شيانو څخه ما منعه كړې ده او پر هغه عمل كول واجب او ضروري دي، ددغه احكامو څخه په دې وجه مخ نسي اړول كيدای چي دا په قرآن كريم كي موجود نه دي ځكه نو واجب

[۱] د نوموړي كنيت ابونجيح دی او اسلمي دی، نوموړی د اهل صفه څخه وو، د هغه څخه د تابعينو يو لوی ډلي حديثونه روايت كړي دي. په كال (۷۵هـ) كي وفات سوی دی.

العمل نه دي ، په آخر روايت كي د لفظ (رواه) څخه وروسته د مشكوة په اصلي نسخه كي ځاى خالي دى ځكه چي صاحب مشكوة ته به ددې حديث د راوي علم نه وو مگر وروسته ميرک شاه صاحب مذكور عبارت ليكلى دى .

﴿۱۵۷﴾: وَعَنْهُ قَالَ صَلَّى بِنَا رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَاتَ يَوْمٍ ثُمَّ أَقْبَلَ عَلَيْنَا بِوَجْهِهِ فَوَعَظَنَا مَوْعِظَةً بَلِيْغَةً ذَرَفَتْ مِنْهَا الْعُيُوْنُ وَوَجِلَتْ مِنْهَا الْقُلُوْبُ فَقَالَ رَجُلٌ يَا رَسُوْلَ اللهِ كَأَنَّ هٰذِهِ مَوْعِظَةُ مُوَدِّعٍ فَأَوْصِنَا فَقَالَ أُوْصِيْكُمْ بِتَقْوَى اللهِ وَالسَّمْعِ وَالطَّاعَةِ وَإِنْ كَانَ عَبْدًا حَبَشِيًّا فَإِنَّهُ مَنْ يَعِشْ مِنْكُمْ بَعْدِيْ فَسَيَرَى اخْتِلَافًا كَثِيْرًا فَعَلَيْكُمْ بِسُنَّتِيْ وَسُنَّةِ الْخُلَفَاءِ الرَّاشِدِيْنَ الْمَهْدِيِّيْنَ تَمَسَّكُوْا بِهَا وَعَضُّوْا عَلَيْهَا بِالنَّوَاجِذِ وَإِيَّاكُمْ وَمُحْدَثَاتِ الْأُمُوْرِ فَإِنَّ كُلَّ مُحْدَثَةٍ بِدْعَةٌ وَكُلُّ بِدْعَةٍ ضَلَالَةٌ . رواه أحمد وأبو داود والترمذي وابن ماجه إِلاَّ أَنَّهُمَا لَمْ يَذْكُرَا الصَّلاَةَ .

د حضرت عرباض بن ساريه ﷺ څخه روايت دى يوه ورځ رسول الله ﷺ زموږ سره لمونځ وكړ بيا رسول الله ﷺ زموږ لوري ته مخ كړ كښېناست او موږ ته يې په ډېرو اثرناكو الفاظو كي نصيحت وكړ چي زموږ د سترگو څخه اوښكي رواني سوې او په زړونو كي مو بيره پيداسول ، نو په موږ كي يو سړي عرض وكړ اې دالله رسوله ! (شايد) دا آخري وصيت دى تاسو موږ ته څه نور وصيت وفرماياست، رسول الله ﷺ وفرمايل : زه تاسو ته وصيت كوم چي د الله څخه و بيرېږئ او تاسو ته د اوربدو او اطاعت كولو وصيت كوم اگر كه تاسو ته د يو حبشي غلام اطاعت كول سي په تاسو كي چي څوك زما وروسته ژوندى پاته سي هغه به لوى اختلافويني په داسي حالت كي پرتاسو لازمه ده چي زما د نورو هدايت يافته خلفاء راشدينو طريقه په ټينگه ونيسئ پر هغه (طريقه) يقين ولرئ او هغه د زامي په غاښونو سره ټينگه ونيسئ او تاسو په دين كي د نوي شي پيداكولو څخه ځان وژغورئ ځكه چي هره نوې خبره بدعت دى او هر بدعت گمراهي ده . احمد ، ابوداؤد ، ترمذي، ابن ماجه مگر په دغه روايت كي ترمذي او ابن ماجه د لمانځه ذكر نه دى كړى .

**تشريح** : د راوي دا قول (كَأَنَّ هٰذِهِ مَوْعِظَةُ مُوَدِّعٍ) لكه چي د رخصت كونكي آخرت نصيحت دى، مطلب دا چي څرنگه يو سړى سفر كونكى وي نو د رخصت په وخت كي د وعظ او نصيحت په بيان كي پوره هڅه كوي چي يو اړخ محروم پاته نسي، همداسي رسول الله ﷺ هغه وخت په داسي انداز سره وعظ او نصيحت بيان فرمايلى دى لكه چي د رسول الله ﷺ د وفات كېدو وخت نژدې دى نو ددې څخه مخكي چي دى مبارک ددې دنيا څخه تشريف يوسي موږ ته داسي وصيتونه

وفرمايل چي په دين او دنيا دواړو كي زموږ لپاره رهبر دي.
د حديث شريف څخه معلومه سوه چي د مسلمان مشر، حاكم او سردار اطاعت او فرمانبرداري په هر حال كي ضروري ده مګر دا چي د شريعت دِ خلاف خبرو حكم نه وركوي نو د مبالغې په توګه يې وفرمايل كه څه هم هغه مشر حبشي غلام وي نو د هغه اطاعت او فرمانبرداري ضروري ده، په غابښونو سره د ټينګ نيولو مطلب دادی چي يو شی په پوره عزم او يقين سره پر خپل ځان لازم كړي.

﴿۱۵۸﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ خَطَّ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَطًّا ثُمَّ قَالَ هٰذَا سَبِيْلُ اللّٰهِ ثُمَّ خَطَّ خُطُوْطًا عَنْ يَمِيْنِهِ وَعَنْ شِمَالِهِ وَقَالَ هٰذِهِ سُبُلٌ عَلٰى كُلِّ سَبِيْلٍ مِّنْهَا شَيْطَانٌ يَّدْعُوْ إِلَيْهِ وَ قَرَأَ ( اَنَّ هٰذَا صِرَاطِيْ مُسْتَقِيْمًا فَاتَّبِعُوْهُ ) الآية . رواه أحمد والنسائي والدارمي .

د حضرت عبدالله بن مسعود ﷛ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ (يو ځل زموږ د پوهولو لپاره) يو خط (سيده ليكه) وكښل او بيا يې وفرمايل: دا خو د الله تعالى لار ده بيا رسول الله ﷺ د هغه خط سره راسته او چپه طرف ته څو نور خطونه وكښل او وه يې فرمايل: دا هم لاري دي چي په دې لارو كي پر هر يوه باندي شيطان ناست دی چي وه خپل لوري ته دعوت كوي، بيا رسول الله ﷺ دا آيت تلاوت كړ: (ان هذا صراطي مستقيما فاتبعوه) يعني دا زما سيده لاره ده د دې پيروي كوئ. احمد، نسائي او دارمي.

**تشريح**: مستقيم خط (سيده ليكه) چي رسول الله ﷺ كښلې وه هغه د الله تعالى د لاري مثال دی چي د هغه څخه صحيح عقيدې، نيک او صحيح اعمال مراد دي او نوري كوچنۍ ليكي (كرښې) د شيطان د لارو مثال دی چي د هغه څخه د ګمراهۍ او ضلالت لاري مراد دي.

﴿۱۵۹﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَا يُؤْمِنُ أَحَدُكُمْ حَتّٰى يَكُوْنَ هَوَاهُ تَبَعًا لِّمَا جِئْتُ بِهِ. رواه في شرح السنة وَقَالَ النووي في أربعينه هذا حديث صحيح رويناه في كتاب الحجة بإسناد صحيح

د حضرت عبدالله بن عمرو ﷛ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: په تاسو كي هيڅوک تر هغه وخته پوري پوره مؤمن نه سي كيدلای تر څو چي د هغه غوښتني د هغه شي تابع نه سي كوم چي ما راوړی دی (يعني دين او شريعت) دا روايت په (شرح السنة) كي دی او امام نووي په خپل كتاب (اربعين) كي ليكلي دي چي دا حديث صحيح دی چي موږ په كتاب (الحجة) كي په صحيح سند سره روايت كړی دی.

**تشريح**: د حديث شريف مطلب دادی چي پوره ايمان د هغه سړي وي چي د دين او شريعت پوره

پیروي او د هغه د صداقت او حقانیت تر یقین او اعتقاد پوري رسوخ لري او د هغه د ژوند په هر اړخ کي که عقائد وي او که عبادات یا اعمال او عادات په ټولو کي کمال رضا ، رغبت او په خوښي سره د شریعت فرمانبردار وي او ظاهره ده چي روحاني پاکي او لطافت او د عرفاني عروج دا مرتبه هغه سړي ته تر لاسه کیږي چي د هغه زړه او دماغ د نفساني خواهشاتو د ټولو مرداریو او ثقالت څخه پاک سي او د نور الهي په مقدسه رڼا سره وځلیږي لکه اولیاء الله او صالحین چي د حقیقت او معرفت په دې عظیمه مرتبه سره فائز کیږي .

﴿۱۶۰﴾ : وَعَنْ بِلَالِ بْنِ الْحَارِثِ الْمُزَنِيِّ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنْ أَحْيَا سُنَّةً مِّنْ سُنَّتِيْ قَدْ أُمِيْتَتْ بَعْدِيْ فَإِنَّ لَهُ مِنَ الْأَجْرِ مِثْلَ أُجُوْرِ مَنْ عَمِلَ بِهَا مِنْ غَيْرِ أَنْ يَّنْقُصَ مِنْ أُجُوْرِهِمْ شَيْئًا وَّمَنِ ابْتَدَعَ بِدْعَةً ضَلَالَةً لَا يَرْضَاهَا اللهُ وَرَسُوْلُهُ كَانَ عَلَيْهِ مِنَ الْإِثْمِ مِثْلُ آثَامِ مَنْ عَمِلَ بِهَا لَا يَنْقُصُ ذَالِكَ مِنْ أَوْزَارِهِمْ شَيْئًا . رواه الترمذي . و رواه ابن ماجة عن كثير ابن عمرو وعن ابيه عن جده .

د حضرت بلال[۱] بن الحارث المزني ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : چا چي زما یو داسي سنت ژوندی (رواج) کړ کوم چي ز ما وروسته پرېښودل سوی وي نو هغه ته به په هغه ډول ثواب رسیږي څومره چي به هغه خلکو ته رسیږي کومو چي عمل په کړی وي، او د هغه عمل کونکو په ثواب کي به هیڅ کمي نه راځي . او چا چي د ګمراهۍ یو شی رواج کړ کوم چي د الله او د هغه د رسول ناخوښ وي نو پر هغه به هغومره ګناه ورکول کیږي څومره چي پر دغه بدعت کونکي باندي وي خو د دغه عمل کونکي د ګناه څخه به هیڅ هم نه کمیږي ، ترمذي او دا روایت ابن ماجه د کثیر بن عبدالله بن عمرو څخه او عمرو د خپل پلار څخه او هغه د خپل نیکه څخه روایت کړی دی .

**تشریح** : مطلب دا دی چي پر سنت باندي د عمل کونکو په ثواب کي هیڅ کمي ونه سول او سنت رواج کونکي ته هم د هغه په اندازه ثواب تر لاسه کیږي، همداسي پر بدعت باندي د عمل کونکو په ګناهونو کي څه کمي نه کیږي او د بدعت پیدا کونکو په عمل نامه کي ګناه لیکل کیږي .

دلته د سنت څخه مراد مطلق د دین خبره ده که هغه فرض وي، واجب وي او داسي نور وي، لکه د جمعې لمونځ چي خلکو پرې ایښی وي او هغه د تبلیغ او ارشاد په ذریعه قائم کړل سي. یا داسي مصافحه او نور مسنون شیان چي متروک العمل سوي دي (یعني عمل نه په کیږي) دا

[۱] د نوموړي نوم بلال بن حارث او کنیت یې ابوعبدالرحمن دی ، په پای کي یې په بصره کي هستوګنه اختیار کړه ، د حضرت معاویه ﷺ په آخره زمانه کي د اتیا کالو په عمر په (۹۰هـ) کال وفات سوی دی .

ټول رواج کول د بې شمیره حسناتو ذریعه ده.

﴿۱۶۱﴾: وَعَنْ عَمْرِو بْنِ عَوْفٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّ الدِّيْنَ لَيَأْرِزُ إِلَى الْحِجَازِ كَمَا تَأْرِزُ الْحَيَّةُ إِلَى جُحْرِهَا وَلَيَعْقِلَنَّ الدِّيْنَ مِنَ الْحِجَازِ مَعْقِلَ الْأُرْوِيَّةِ مِنْ رَّأْسِ الْجَبَلِ إِنَّ الدِّيْنَ بَدَأَ غَرِيْبًا وَسَيَعُوْدُ كَمَا بَدَأَ فَطُوْبٰى لِلْغُرَبَاءِ وَهُمُ الَّذِيْنَ يُصْلِحُوْنَ مَا أَفْسَدَ النَّاسُ مِنْ بَعْدِيْ مِنْ سُنَّتِيْ. رواه الترمذي

د حضرت عمرو بن عوف ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: دین (اسلام) به د حجاز په لور داسي را یوځای سي لکه څرنګه چي مار خپل سوري ته را یوځای کیږي او دین به په حجاز کي داسي ځای ونیسي لکه څرنګه بزه چي د غره په څوکه کي ځای نیسي، او دین په پیل کي د غریبانو څخه پیل سوی دی او په پای کي به هم داسي سي، نو خوشخبري دي وي غریبانو ته هغوئ زما د دین هغه شیان سم کړي کوم چي به زما څخه وروسته خلکو خراب کړي وي .ترمذي.

﴿۱۶۲﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَيَأْتِيَنَّ عَلٰى أُمَّتِيْ كَمَا أَتٰى عَلٰى بَنِيْ إِسْرَائِيْلَ حَذْوَ النَّعْلِ بِالنَّعْلِ حَتّٰى إِنْ كَانَ مِنْهُمْ مَنْ أَتٰى أُمَّهُ عَلَانِيَةً لَكَانَ فِيْ أُمَّتِيْ مَنْ يَصْنَعُ ذٰلِكَ وَإِنَّ بَنِيْ إِسْرَائِيْلَ تَفَرَّقَتْ عَلٰى ثِنْتَيْنِ وَسَبْعِيْنَ مِلَّةً وَتَفْتَرِقُ أُمَّتِيْ عَلٰى ثَلَاثٍ وَّسَبْعِيْنَ مِلَّةً كُلُّهُمْ فِي النَّارِ إِلَّا مِلَّةً وَّاحِدَةً قَالُوْا وَمَنْ هِيَ يَا رَسُوْلَ اللهِ؟ قَالَ مَا أَنَا عَلَيْهِ وَأَصْحَابِيْ. رواه الترمذي. وفي رواية أحمد وأبي داود عن مُعَاوِيَةَ ثِنْتَانِ وَسَبْعُوْنَ فِي النَّارِ وَوَاحِدَةٌ فِي الْجَنَّةِ وَهِيَ الْجَمَاعَةُ وَإِنَّهُ سَيَخْرُجُ فِيْ أُمَّتِيْ أَقْوَامٌ تَتَجَارٰى بِهِمْ تِلْكَ الْأَهْوَاءُ كَمَا يَتَجَارٰى الْكَلْبُ بِصَاحِبِهِ لَا يَبْقٰى مِنْهُ عِرْقٌ وَّلَا مَفْصِلٌ إِلَّا دَخَلَهُ.

د حضرت عبدالله بن عمرو ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: زما په امت کي به داسي زمانه راسي لکه څرنګه چي په بني اسرائیلو کي راغلې وه بالکل داسي درست او سم لکه څرنګه چي څپلۍ په دواړو پښو برابري وي تر دې چي په بني اسرائیلو کي که یو چا په څرګنده د خپلي مور سره بدفعلي کړې وي نو زما په امت کي به هم داسي خلک وي چي داسي به کوي او د بني اسرائیلو قوم به په دو اویا ډلو کي ویشلی وي او زما قوم به پر درو اویا ډلو ویشلی وي چي په هغو کي به یوه ډله جنتي او پاته ټولي ډلي به دوزخي وي، صحابه کرامو پوښتنه وکړه اې دالله رسوله! جنتي ډله به کومه یوه وي؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمایل: هغه ډله پر کوم چي زه او زما اصحاب دي (ترمذي) احمد او ابودرداء چي د معاویة څخه کوم روایت کړی دی په هغه کي دا الفاظ دي چي دو اویا ډلي به دوزخ ته ځي او یوه ډله

به جنت ته ځي، او جنتي ډله جماعت دی او البته زما د امت څخه به څو قومونه جوړ سي چي په هغوئ کي به خواهشات داسي رواج وي لکه څرنګه چي لیونی سپی په ناروغي کي چي جاري وي چي هيڅ رګ او بند د هغه څخه نه ساتل کيږي.

**تشریح**: د بني اسرائيلو او د هغو د امت مماثلت د څپليو د برابري سره تشبيه ورکړل سوې ده لکه څرنګه چي بني اسرائيلو په خپل زمانه کي په بدو عملونو اخته وه همداسي يوه زمانه راتلونکې ده چي ددې امت خلک هم بالکل مطابقت پيدا کړي.

دلته د مور څخه حقيقي مور مراد نه ده بلکه د پلار ښځه (میره) مراد ده ځکه چي د حقيقي مور سره دا ډول معامله بالکل لیري خبره ده ځکه چي په دې کي د شرعي بنديز سره سره طبعي خنډ هم وي، همداسي د امتي څخه مراد اهل قبله دي يعني کوم چي مسلمان ګڼل کيږي، په دې شکل کي (کلهم في النار) يعني هغه ټولي ډلي به دوږخي وي، معنا دا چي هغوئ ټول به د خپل غلطو عقيدو او بدو عملونو په وجه په دوږخ کي داخل کړل سي د چا اعمال او عقائد چي تر دې حد پوري فاسد نه وي چي هغه د کفر په دائره کي راځي نو د الله تعالی په رحمت سره به هغوئ د خپل سزا پوره کولو څخه وروسته د دوږخ څخه را وايستل سي، د حديث په پای کي جنتي ډلي ته (جماعت) ويل سوي دي او ددې څخه مراد اهل علم د معرفت او صاحب فقه حضرات دي دوئ يې د جماعت په نامه سره ونومول، چي دا حضرات پر کلمه حق باندي جمع دي او پر دين او شريعت باندي متفق دي په دغه ځای کي مناسب ده چي په حديث کي د درو اويا (۷۳) ډول تفصيل وکړل سي:

په اهل اسلام کي لوی ډلي اته دي: (۱) معتزله (۲) شيعه (۳) خوارج (۴) مرجيه (۵) بخاريه (۶) جبريه (۷) مشبهه (۸) ناجيه. او بيا دا اته ډلي پر کوچنی کوچنی ډلو ويشل سوي دي:

(۱) د معتزله شل ډلي دي (۲) د شيعه دوه ويشت ډلي دي (۳) د خوارج شل ډلي دي (۴) د مرجيه پنځه ډلي دي (۵) د بخاريه درې ډلي دي (۶) جبريه (۷) شبهه يوازي يوه ډله ده او په دوئ کي څو ډلي نسته او (۸) اتمه ډله ناجيه هم يوازي يوه ډله ده او هغه اهل سنت والجماعة ده چي جنتي ده، په دې ځای کي ددغه ډولو پر عقائدو هم په اجمالي توګه سره بيان کيږي:

**معتزله**: وايي چي بنده د خپل ټول اعمالو خالق دی، کاسب نه دی د هغوئ عقيده ده چي صالح بنده ته ثواب دنيا او بدکار بنده ته عذاب دنيا پر الله واجب او ضروري دی، همداسي ددې ډلي

خلک د الله تعالی د دیدار څخه انکار کوي ،

د **مرجیه** عقیده داده چي څرنګه د کافرانو لپاره د هغه صالح او نیک اعمال په کار نه راځي، همداسي مؤمن ته د هغه بداعمال هیڅ تاوان او ضرر نسي رسولای او نه د هغه په ایمان کي څه نقص پیدا کیږي .

**بخاریه** د الله تعالی د ټولو صفاتو څخه انکار کوي او کلام الهي حادث ګڼي .

د **جبریه** عقیده داده چي بنده مجبور محض دی هغه ته پر خپل هیڅ عمل باندي هیڅ اختیار نسته.

**مشبه** د الله تعالی ذات د مخلوق مشابه کوي او د ذات باري تعالی د جسمیت قائل دي د هغوئ دا هم عقیده ده چي الله تعالی په مخلوق کي حلول کوي .

د **شیعه او خوارج** عقائد مشهور دي یعني شیعه د حضرت علي ﷺ د فضیلت قائل دي ، اوس په دوئ کي هم څو ډلي دي د شیعه ځیني ډلي خو یوازي حضرت علي ﷺ ته پر شیخینو یعني حضرت ابوبکر صدیق ﷺ او حضرت عمر فاروق ﷺ باندي فضیلت او فوقیت ورکوي مګر د شیخینو تکفیر نه کوي مګر نوري ډلي د حضرت صدیق ﷺ او حضرت فاروق ﷺ د تکفیر هم قائل دي (نعوذبالله) ، ذ ځینو شیعه ګانو دا هم عقیده ده چي قرآن کریم په خپل مکمل صورت کي موجود نه دی بلکه دده ځیني هغه آیاتونه چي د حضرت علي ﷺ په منقبت (صفت) کي وه حذف کړل سوي دي . خوارج د حضرت علي ﷺ دښمن ډلي ته وایي دا خلک د حضرت علي ﷺ د تکفیر قائل دي . (نعوذبالله)، په دې ځای کي د یو خاص اشکال په لور اشاره کول هم ضروري ده :

یو داسي سړی چي جاهل وو د اسلام په دولت سره مشرف سو د هغه په وړاندي د اهل السنت والجماعة هم دي او د شیعه ډله هم ده ، دواړه د هغه په وړاندي خپل پر حق کېدو باندي دلائل په قرآن او سنت سره وړاندي کوي هغه نوی مسلمان حیران دی چي په دواړو کي کوم پر حق وګڼي او د کوم یوه د دلائلو تصدیق وکړي هر کله چي هغه د علم څخه خالي دی نو ددې سم حل دادی چي ځیني شیان داسي دي چي په صراحت سره د اهل سنت والجماعة د حق کېدو دلیلونه وړاندي کوي او هغه شیان داسي صاف او ظاهر دي چي د هغه مشاهده عام خلک هم کولای سي هغه که په دې کي فکر وکړي نو د هغه په وړاندي به د اهل سنت والجماعة حقانیت څرګند سي .

مثلا تر ټولو څرګنده نښه چي نن د ټولو په وړاندي مشاهده ده هغه داده چي قرآن کریم د اللهﷻ یو عظیم نعمت دی او هغه د اهل سنت والجماعة په برخه کي دی ، یعني د قرآن کریم چي څومره حافظان دي هغه سُني دي تر ننه پوري هيڅ يو حافظ شيعه نه دی ليدل سوی ځکه چي د هغوئ په قسمت کي ددغه عظیم نعمت څخه محرومي ليکل سوې ده ، کیدای سي چي په لکونو کي يو شيعه حافظ پیدا سي نو دا نادره ده چي د هغه اثر پر کليه نه لوېږي ځکه چي النادر کالمعدوم ، يعني نادر د نه کېدو (نیستي) په درجه کي دی .

دوهم دا چي دا هم يو څرګنده خبره ده چي ددین محمدي او شريعت مصطفوي امامان او رکن دین چي څومره عالمان او اولیاء وه هغوئ ټول سني وه او په هغوئ کي او په هغوئ کي د ځينو امامانو او علماؤ شيعه هم معتقد دي که د اهل سنت والجماعة په مسلک کي څه نقص وي نو هغه حضراتو به يقينا دا مسلک نه اختياروی .

دريم اسلامي شعار مثلا جمعه، جماعت، اخترونه وغیره علی الاعلان (په ښکاره) يوازي سني کوي او شيعه ددغه نعمتونو څخه محرومه دي .

څلورم مکه او مدينه چي ددين اسلام بنياد او مرکز دي او د هغه ځای اوسيدونکي د خپل بزرګي او عظمت د لحاظ څخه ضرب المثل دي د هغه ځای خلک هم ددې مسلک پابند دي که شيعه مسلک ښه وای نو هغه خلک به يقينا سني نه وای بلکه د شيعه د مسلک پابند به وای .

همداسي نوري ډلي هم دخپل حقانيت دعوا کوي مګر د هغوئ جواب دادی چي پر حقانيت او بطلان باندي محض دعوی څه حقیقت نه لري تر څو پوري چي د هغه دعوې قوي دليل نه وي .

د اهل سنت والجماعة د حقانيت دليل دادی چي دا دين اسلام چي موږ ته رسيدلی دی په نقل سره را رسيدلی دی په دې کي محض عقل کافي نه دی ، په تواتر اخبار ، حديثونو او آثارو کي پلټنه او تحقيق او تنقيع څخه وروسته دا خبره متقين سوې ده چي صحابه کرام او تابعين پر دې مسلک او عقيدې باندي وه نوري باطلي ډلي تر ټولو وروسته پيدا سوي دي نه خو صحابه کرامو ددغه باطلو ډلو د مسلک پابند وه او نه نور نيک او صالح خلک ددغه ډلو سره وه ، که د صحابه کرامو او تابعينو په زمانه کي په هغوئ کي ځيني باطلي ډلي پيدا سوې نو دغه خلکو د هغوئ څخه د انتهائي نفرت او بيزارۍ اظهار کړی دی تر دې چي داسي غلط عقائد او مسلک لرونکو خلکو سره هغه حضراتو ټول تعلق او رابطې منقطع کړې ، د صحاح ستة حضرات

مصنیفین او نور محدثین، علماء ربانیین او اولیاء کاملین ټول د اهل السنت والجماعة دعقائدو او مسلک پابند وه.

د دې څخه معلومه سوه که چیري د اهل سنت والجماعة مسلک حق نه وي او عقیدې یې صحیح نه وي نو په کرړونو خلک به ددې حق مسلک پابند نه واې چي په هغه کي صحابه کرام او تابعین، لوی لوی اولیاء الله، علماء محدثین او عقلاء او پوهان هم وه او عوام هم وه.

په هر حال د اهل سنت والجماعة مسلک د حق کېدو دا یو څو مثالونه دي ددې څخه پرته نور بې شمیره مثالونه سته چي داهل سنت والجماعة پر حقانیت باندي شاهد عادل دي، که د نفساني خواهشاتو او ذاتي غرضونو څخه په ایسته کېدو سره تلاش حق په حقیقي جذبې سره د اهل حق ددې ډلي عقیدې وکتل سي نو د دوئ حقانیت به ورته څرګند سي کنه نو په قول دشاعر:

هوشیار کو ایک حرف نصیحت هي کافي      نادان کو کافي نهي دفتر نه رساله

دغه حدیث هغه ټولو باطلو ډلو ته د لیوني سپي والاو سره مشابهت ورکړل سوی دی ځکه چي څرنګه پر چیچل سوي کس باندي د لیوني سپي زهر غالب سي نو د اوبو څخه د تېښتي په نتیجه کي هغه تږی سي همداسي درواغجن مذهبونه او باطل مسلک والاوو باندي هم د نفساني خواهشاتو غلبه وي هغوئ د علم او معرفت د ګلزار څخه په تېښتېدو سره د جهل او ګمراهۍ په شیلو کي لویږي، نتیجه یې داسي چي د هغوئ روحاني مرګ واقع کیږي او هغوئ په دین او دنیا دواړو کي د الله تعالی د رحمت څخه محروم سي.

﴿۱۶۳﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ اللّٰهَ لَا يَجْمَعُ أُمَّتِيْ أَوْ قَالَ أُمَّةَ مُحَمَّدٍ عَلَى ضَلَالَةٍ وَيَدُ اللّٰهِ عَلَى الْجَمَاعَةِ وَمَنْ شَذَّ شُذَّ فِي النَّارِ. رواه الترمذي.

د حضرت ابن عمر ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: الله تعالی به زما (یا داسي یې وفرمایل چي دمحمد امت) پر ګمراهۍ نه جمع کوي او دالله لاس پر جماعت دی او څوک چي د جماعت څخه بېل سو هغه په دوږخ کي ولویدی. ترمذي

**تشریح**: د (الله تعالی لاس) څخه مراد دادی چي د الله تعالی د لوري څخه توفیق اوتائید، ساتنه او مرسته پر هغه ډله وي، پر دې امت مرحومه د الله تعالی د لوري ددې سره چي نور ډېر احسانونه دي دا هم ډېر لوی کرم دی چي ددې امت ټول خلک هیڅکله پر ناحقه او غلطه خبره نه جمع کیږي کله چي دوئ پر یو شي اتفاق کوي نو هغه حق خبره وي.

﴿۱۶۴﴾ : وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اتَّبِعُوْا السَّوَادَ الْأَعْظَمَ فَإِنَّهُ مَنْ شَذَّ شُذَّ فِي النَّارِ . رواه ابن ماجه من حديث أنس .

د حضرت ابن عمر ﷛ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : د ګڼي ډلي پیروي کوئ نو څوك چي د جماعت څخه بیل سو هغه په اور کي ولویدی . ابن ماجه

**تشریح** : د دغه ارشاد مطلب دادی چي دوئ ته د هغه عقیدو پیروي کول پکار ده کوم چي د اکثرو علماؤ په نزد حق وي همداسي هغه اقوال او افعال قبلول پکار دي چي د جمهورو علماؤ څخه ثابت وي ، په دې حدیث کي د لفظ رواه څخه وروسته په اصلي مشکوة کي ځای خالي وو ځکه چي صاحب مشکوة ته د هغه کتاب نوم معلوم سوی نه وو چي هغه ته دا حدیث نقل کړل سوی دی وروسته میرک شاه مذکور عبارت نقل کړی دی .

﴿۱۶۵﴾ : وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ قَالَ لِيْ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا بُنَيَّ إِنْ قَدَرْتَ أَنْ تُصْبِحَ وَتُمْسِيَ وَلَيْسَ فِيْ قَلْبِكَ غِشٌّ لِأَحَدٍ فَافْعَلْ ثُمَّ قَالَ يَا بُنَيَّ وَذٰلِكَ مِنْ سُنَّتِيْ وَمَنْ أَحَبَّ سُنَّتِيْ فَقَدْ أَحَبَّنِيْ وَمَنْ أَحَبَّنِيْ كَانَ مَعِيْ فِي الْجَنَّةِ . رواه الترمذي .

د حضرت انس ﷛ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : اې زما بچیه! که ستا په وس کي وي نو د سهار څخه تر ماښام پوري په داسي حالت کي اوسه چي ستا په زړه کي د هیچا کینه او خیري نه وي نو ته دغسي کوه ، بیا رسول الله ﷺ وفرمایل : اې زما بچیه ! دا زما طریقه او سنت دي نو چا چي زما طریقه خوښه کړل هغه زه دوست کړم او څوك چي محبت کوي زما سره هغه به په جنت کي زما سره وي .ترمذي.

**تشریح** : په دغه حدیث کي دې ته اشاره ده چي د رسول الله ﷺ سنت د ملګرتیا په ډول د لوی نعمت تر لاسه کولو ذریعه ده ، دا د فکر خبره ده چي هر کله د رسول الله ﷺ پر سنت خوښولو باندي دا زیری دی نو پرسنت نبوي باندي عمل کول به څومره د لوی سعادت او نیک بختۍ خبره وي، لږ فکر کول پکار دي چي د رسول الله ﷺ د سنت خوښونکي څومره لویه مرتبه ده او د معیت شرف تر لاسه سي حقیقت دادی که د دواړو جهانو نعمتونه یوې خوا ته وي او بلي خوا ته دا نعمت وي نو یقینا د سعادت او خوبنی په اعتبار دا نعمت به زیات سي ، الله تعالی دي موږ ټولو ته د رسول الله ﷺ د مقدس سنت محبوب ګڼلو او په هغه د عمل کولو توفیق راکړي چي موږ ټول په دې نعمت سره برخمن سو .

﴿۱۶۶﴾: وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنْ تَمَسَّكَ بِسُنَّتِيْ عِنْدَ فَسَادِ

د حضرت ابوهریرة ﷛ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : چا چي زما د امت د خرابېدو په

أُمَّتِيْ فَلَهُ أَجْرُ مِائَةِ شَهِيْدٍ .رواه البيهقي في كتب الزهد له من حديث ابن عباس .

وخت کي زما سنت خپل کړل نو هغه ته به د سلو شهيدانو ثواب ورکول کيږي .

**تشريح** : د داسي عظيم اجر تر لاسه کولو وجه داده چي څرنګه يو شهيد د دين اسلام د ژوندي ساتلو او د هغه د شان او شوکت زياتولو په خاطر د دنيا ټول مصيبتونه زغمي تر دې چي خپل ځان هم قربانوي ، همداسي هر کله چي په دين کي خبري پيل سي او د فتنې او فساد دورسي نو په سنت رواج کولو او خپرولو کي بې شميره مصيبتونه او تکليفونه پيښيږي.بلکه ډير واره تر دې هم زيات مشقتونه زغمل وي ځکه ددې اجر عظيم زيری ورکول سوی دی ، په دې حديث کي هم د لفظ رواه څخه وروسته د مشکوة په ځينو نسخو کي ځاى خالي دي مګر مذکوره عبادت ميرک شاه صاحب زيات کړی دی .

﴿۱۶۷﴾: وَعَنْ جَابِرٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِيْنَ أَتَاهُ عُمَرُ فَقَالَ إِنَّا نَسْمَعُ أَحَادِيْثَ مَنْ يَهُوْدَ تُعْجِبُنَا أَفْتَرٰى أَنْ نَّكْتُبَ بَعْضَهَا ؟ فَقَالَ أَمُتَهَوِّكُوْنَ أَنْتُمْ كَمَا تَهَوَّكَتْ الْيَهُوْدُ وَالنَّصَارٰى، لَقَدْ جِئْتُكُمْ بِهَا بَيْضَاءَ نَقِيَّةً وَلَوْ كَانَ مُوْسٰى حَيًّا مَّا وَسِعَهُ إِلاَّ اتِّبَاعِيْ . رواه أحمد والبيهقي في كتاب شُعَبِ الإيمان .

حضرت جابر ﷛ د رسول الله ﷺ څخه روايت کوي چي حضرت عمر ﷛ رسول الله ﷺ ته راغلی او وه يې ويل : موږ د يهوديانو خبري اورو او هغه موږ ته ښه معلوميږي ايا تاسو موږ ته اجازه راکوئ چي موږ د هغوئ (خبري) ځيني وليکو ، رسول الله ﷺ وفرمايل : ايا ته هم داسي حيران يې (په خپل دين کي) څرنګه چي يهود او نصارا حيران دي ، ما تاسو ته صفا او ځلانده شريعت راوړی دی که حضرت موسی ﷺ ژوندی وای نو هغه به هم زما په پيروي مجبور وای . احمد او بيهقي .

**تشريح** : د رسول کريم ﷺ د جواب مطلب دادی چي څرنګه يهود او نصارا حيران دي چي هغوئ د الله کتاب او د خپل پيغمبر حقيقي تعليم پرې ايښی دی او د خپل خود غرضه علماؤ د خواهشاتو تابع سوي دي ايا هغه ته هم په متحير کېدو سره خپل دين ناقص او نامکمل ګڼلو سره د نورو ددين او شريعت اړ کيږي حال دا چي زما راوړی شريعت دومره مکمل او واضح دی که نن موسی ﷺ ژوندی وای نو هغه به هم زما د شريعت پابند او زما د احکامو تابع وای .

﴿۱۶۸﴾: وَعَنْ أَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ أَكَلَ طَيِّبًا

د حضرت ابوسعيد الخدري ﷛ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : چا چي پاک خواړه

وَعَمِلَ فِيْ سُنَّةٍ وَّأَمِنَ النَّاسُ بِوَائِقَهُ دَخَلَ الْجَنَّةَ فَقَالَ رَجُلٌ يَا رَسُوْلَ اللهِ إِنَّ هٰذَا الْيَوْمَ لَكَثِيْرٌ فِي النَّاسِ قَالَ وَسَيَكُوْنُ فِيْ قُرُوْنٍ بَعْدِيْ . رواه الترمذي .

وخوړل، پر سنت طريقه يې عمل وکړ او د هغه د زيان څخه خلك په امان كي سول هغه به جنت ته ځي ، يوه سړي پوښتنه وکړه اې دالله رسوله ! داسي خلك خو نن سبا ډير دي ، رسول الله ﷺ وفرمايل او زما وروسته به هم داسي خلك وي . ترمذي .

**تشريح** : د حلال رزق مطلب دادی که چيري تجارت وي يا مزدوري يا د معاش يو بله ذريعه وي په هرځای کي د ايمان دارو او ديانت دارو لمن نيولې لرئ او د شريعت د حدودو څخه تجاوز مه کوئ داسي هيڅ يو صورت مه اختياروئ چي په هغه سره ګټه حرامه سي ، لکه يو سړی په تجارت کي د رانيولو او پلورلو په وخت کي داسي طريقې اختياروي چي د شريعت په نظر کي جائز نه دي نو د هغه ګټلی مال پاک او حلال نه دي ، مګر که چيري د هغه طرز عمل د شريعت خلاف نه وي نو د هغه ګټه به حلاله وي .

د شريعت د نظره په تجارت کي د حلالي ګټي لپاره دا شرط دی چي د يو مال خرڅولو په وخت کي نه خو د عقيد بيع څخه مخکي نه د عقيد بيع په وخت او نه د عقيد بيع څخه وروسته يو داسي شکل اختيار کړي چي په شرعي توګه باندي مفسد بيع وي نو د هغه ګټلی مال به حلال او طيب وي او که دد ې پر خلاف عمل يې وکړ نو د هغه ګټه به حلاله نه وي مثلا يو تاجر د يو شی د پلورلو اراده وکړه او د عقد بيع څخه مخکي د دوکې او فريب ورکولو خيال يې وکړ لکه يو شی خرڅوي په هغه کي يو عيب دی مګر د هغه د نه ظاهرولو اراده يې وکړه که څه هم د عقد بيع په وخت کي ايجاب آو قبول په شرعي توګه سره وسو مګر د هغه د فاسد نيت په وجه د هغه ګټلی مال به حلال نه وي همداسي د پلورلو په وخت کي چي عقد بيع واقع کيدی يا د هغه بيع څخه وروسته تاجر يو داسي فاسد شرط کښيږدي چي جائز نه دی نو په دې صورت کي هم د هغه ګټلی مال به حلال نه وي لکه يو دوکاندار يو شی خرڅ کړ او رانيونکي ته يې وويل چي بيع وسوه مګر شرط دادی چي يو بوتل شراب به ماته راکوې نو دا په شرعي توګه سره جائز نه ده ځکه نو د هغه حاصل کړی مال به حلال نه وي .

په هر حال مطلب دادی چي د رانيولو او پلورلو په اړه په دغه درو سره وختونو کي داسي طريقه اختيارول پکار نه ده چي د شريعت خلاف وي تر څو چي د هغه مال حلال پاته سي ، او بيا دا مسئله پر تجارت باندي موقوف نه ده بلکه د مزدورۍ ، زراعت او داسي نورو هم دا معامله

ده چي هلته داسي طريقې اختيار نه کړل سي چي د حلال رزق په حصول کي خنډ جوړ سي.

په حديث شريف کي د جنت د داخلېدو لپاره دوهم صفت دا ګرځول سوی دی چي د سنت پوره پوره پيروي کوي يعني کوم کار چي وکړل سي يا کومه خبره چي وکړل سي هغه د سنت نبوي مطابق وي يعني د انساني ژوند چي کوم اړخ وي که هغه د عبادت وي يا معاملات يا د ټولني په ټولو کي د سنت نبوت رڼا او د اتباع رسول جذبه موجوده وي.

د کومو اعمالو په اړه چي حديثونه وارد سوي دي چي د هغه سره سم عمل وکړل سي تر دې چي بيت الخلاء ته د تلو او د لاري څخه د يو تکليف ورکونکي شی ليري کولو په باره کي چي کوم حديثونه وارد سوي دي يا کوم سنت چي منقول دي په هغه عمل وکړي او د هغه احکام پر ځای راوړي، د حديث په پای کي د صحابي د قول مطلب دا دی چي زموږ په زمانه کي خو داسي خلک زيات موجود دي چي د مذکوره اوصافو سره په متصف کېدو په وجه ددې زيري وړ دي مګر زموږ څخه وروسته به داسي خلک پيدا سي او که نه په دې الله تعالی غوره عالم دی.

د دې په جواب کي رسول الله ﷺ وفرمايل: زموږ څخه وروسته به هم داسي خلک وي يعني د دې امت څخه به خير او نيکي بالکل نه ختمېږئ مګر هو دا کېدای سي چي په آخره زمانه کي هر کله چي د فتنې او فساد دور وي د داسي خلکو کمي وي مګر بيا هم داسي نېک خلک به په دنيا کي اوسېږي چي د حديث او سنت پر طريقه به خپل ژوند تيروي او هغوئ به د ايمان او دين باندي په پوره يقين سره قائم او دائم وي.

| | |
|---|---|
| ﴿۱۶۹﴾ وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّكُمْ فِيْ زَمَانٍ مَّنْ تَرَكَ مِنْكُمْ عُشْرَ مَا أُمِرَ بِهِ هَلَكَ، ثُمَّ يَأْتِيْ زَمَانٌ مَنْ عَمِلَ مِنْهُمْ بِعُشْرِ مَا أُمِرَ بِهِ نَجَا. رواه الترمذي. | د حضرت ابوهريرة ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: تاسو په داسي زمانه کي ياست که په تاسو کي څوك د الله د احکامو لسمه برخه هم پرېږدي نو هلاك به سي مګر يوه زمانه به |

داسي راسي که څوك د احکامو لسمه برخه هم پر ځای کړي نو خلاصون به تر لاسه کړي. ترمذي.

**تشريح**: د دې حديث څخه د رسالت د زمانې او د وروسته فرق معلومېږي، د نبي کريم ﷺ په زمانه کي د امر بالمعروف او نهي عن المنکر اوازه دومره په شدت او کثرت سره وه چي لږ بنوئيدل د هلاکت او تباهي باعث جوړېدای سو مګر په آخره زمانه کي هر کله چي امر بالمعروف او نهي عن المنکر کي کمزوري پيدا سي نو هغه وخت به دومره فرق وسي که يو سړی د احکامو په لسمه برخه هم عمل وکړي نو د هغه د خلاصون لپاره به کافي وي.

﴿۱۷۰﴾: وَ عَنْ أَبِيْ أُمَامَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا ضَلَّ قَوْمٌ بَعْدَ هُدًى كَانُوْا عَلَيْهِ إِلاَّ أُوْتُوْا الْجَدَلَ . ثُمَّ قَرَأَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هٰذِهِ الآيَةَ ( مَا ضَرَبُوْهُ لَكَ إِلاَّ جَدَلاً بَلْ هُمْ قَوْمٌ خَصِمُوْنَ ) . رواه احمد والترمذي وابن ماجة .

د حضرت ابوامامه ﷜ څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل :د هدايت تر لاسه كولو او پر هدايت باندي قائم پاته كېدو وروسته هيڅ يو قوم گمراه سوى نه دى ، ددې وروسته رسول الله ﷺ دا آيت تلاوت كړ : (ما ضربوه لك الا جدلا....) هغوئ ستا لپاره مثال نه بيانوي خو د جگړې لپاره بلكه هغه جگړه كونكى قوم دى. احمد ،ترمذي، او ابن ماجه.

**تشريح** : د دې حديث شريف څخه معلومه سوه چي په ديني معاملو او شرعي مسائلو كي جگړه نه ده پكار او نه هر چا ته په دې كي د خپل عقل غشي چلول پكار دي ځكه چي په تيره زمانه كي د هدايت وركړل سوو قومونو د گمراهى زيات سبب دا وو چي خلكو به په ديني معاملو كي جگړې كولې او دا كار به علماء سوء او د نفساني خواهشاتو تابع خلكو كوى، د دې څخه د هغوئ مقصد دا وو چي په ديني معاملو كي تفرق پيدا سي او خلک په خپلو كي په جگړه اخته سي چي غلطو عقيدو او باطل مذهبونو ته ځاى وركړي او د حق او صداقت بنيادونه ختم كړي.

رسول الله ﷺ چي د كوم آيت تلاوت وكړ د هغه شان نزول دادى چي كله دا آيت :

إِنَّكُمْ وَمَا تَعْبُدُونَ مِن دُونِ اللَّهِ حَصَبُ جَهَنَّمَ . الانبياء ۹۸

ژباړه : (اې مشركانو !) تاسو هغه غير الله چي تاسو يې عبادت كوئ د دوزخ پيلوزي دي.

نازل سو نو مشركين ډير خوشحاله سول او ويل يې چي د دې آيت څخه معلومه سوه چي څومره غير الله معبود دي هغه ټول به دوزخ ته ځي او حضرت عيسى ﷤ هم د نصارا معبود دى چي د هغه عبادت كوي نو هغه به هم د دې آيت سره سم دوزخ ته ځي او زموږ بتان د حضرت عيسى ﷤ څخه په هر حال غوره نه دي ځكه موږ په دې راضي يو چي زموږ بتان هم د حضرت عيسى ﷤ سره دوزخ ته ولاړ سي.

د مشركينو د دغه غلطي نظريې په رد كي مذكوره آيت : (مَا ضَرَبُوْهُ لَكَ إِلاَّ جَدَلاً بَلْ هُمْ قَوْمٌ خَصِمُوْنَ) نازل سو ، د دې مطلب دادى چي اې محمد ! ﷺ دا مشركين د دې آيت په اورېدو سره چي ستا سره كوم بحث كوي او د خپل لوري غلطي معناوي اخلي دا محض د دوئ ناپوهي او ضد دى او د مخاصمت او مجادلت په توگه داسي غلطه خبره كوي حال دا چي دوئ صاحب

زبان دي او د عربي ژبي اصول او قواعد دوئ ته معلوم دي او دوئ په دې هم پوهيږي چې د (ما تعبدون) څخه ډبري وغيره بتان مراد دي ځکه لفظ د ما پر دې دلالت کوي چې دا حکم غير ذوي العقول معبودانو يعني ډبري وغيره بتانو په باره کي دی نه چې د حضرت عيسی ؑ او د الله تعالی د نورو نيکو بندګانو په اړه.

﴿۱۷۱﴾: وَعَنْ أَنَسٍ أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَقُوْلُ لَا تُشَدِّدُوْا عَلٰى أَنْفُسِكُمْ فَيُشَدِّدَ اللّٰهُ عَلَيْكُمْ فَإِنَّ قَوْمًا شَدَّدُوْا عَلٰى أَنْفُسِهِمْ فَشَدَّدَ اللّٰهُ عَلَيْهِمْ فَتِلْكَ بَقَايَاهُمْ فِي الصَّوَامِعِ وَالدِّيَارِ (رَهْبَانِيَّةً ابْتَدَعُوْهَا مَا كَتَبْنَاهَا عَلَيْهِمْ). رواه ابوداؤد.

د حضرت انس ؓ څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ به فرمايل: تاسو پر خپلو ځانونو سختي مه کوئ بيا به الله پاك هم سختي در باندي وکړي. په تحقيق سره يو قوم (بني اسرائيلو) پر خپلو ځانونو سختي کړې وه نو الله هم پر هغوئ سختي وکړه او نن چې کوم خلك په صوامعو او ديارونو (د نصارا او يهودو عبادت خانو) کي دي دا د هغه خلکو يادګارونه دي رهبانيت (دنيا پرېښودل) دغه خلکو منځته راوړی وو موږ پر فرض کړی نه وو. ابوداؤد

**تشريح**: مطلب دادی چې خپل ځانونه خامخا په زيات محنت، مشقت او تکليف کي مه اخته کوئ يعني په رياضت او مجاهده کي داسي طريقې مه اختياروئ چې ستاسو قوي يې د زغملو اهل نه وي او نه ستاسو نفس دومره محنت او مشقت زغملای سي او همدارنګه هغه شيان پر ځان مه حراموئ کوم چې الله تعالی ستاسو لپاره مباح ګرځولي دي ځکه که تاسو د خپل لوري پر ځانونو سختي کوئ او په زيات محنت او مشقت کي لوېږئ نو الله تعالی به هغه شيان پر تاسو فرض کړي مګر په تاسو کي به دومره طاقت نه وي چې تاسو د هغه حقوق ادا کړي په نتيجه کي به د آخرت تباهي او هلاکت پر خپل ذمه واخلئ.

صومعه هغه ځای ته وايي چيري چې عيسان عبادت کوي چې هغه ته کليسا ويل کيږي او ديار د يهودو د عبادت ځای ته وايي، رهبانيت دې ته وايي چې په عبادت او رياضت کي زياتوب وکړل سي خپل ځان په تکليفونو او مشقتونو کي واچول سي او د دنيا څخه بالکل بې تعلقه سي د ټولو خلکو څخه ځان جلا کړي، د ټاټ قميص استعمال کړي په غاړه کي زنځير وتړي او د قوتي مردانګي ختمولو لپاره د نفساني خواهشاتو وژلو لپاره بالکل په غير فطري توګه سره جنسي محرکات قطع کړي او په دنياوي ژوند کي ځان يوازي پرېښودو سره ځنګل او غره ته ولاړ سي هلته هستوګنه کوي، څرنګه چې رهبانيت اهل کتابو پر خپل ځان ضروري کړی

وو او د هغوئ عابدانو او زاهدانو خلكو داسي كول مگر رهبانيت د اسلام د اصولو څخه بالكل بيل شى دى ځكه چي شريعت هيڅكله دا جائز نه دى گرځولى .

رسول الله ﷺ رهبانيت په اسلام كي ناجائز گرځولى دى او فرمايلي يې دي : (لا رهبانية في الاسلام) يعني په اسلام كي رهبانيت جائز نه دى، بلكه د دې حديث څخه معلومه سوه چي رهبانيت هيڅكله په يو آسماني دين كي ضروري نه وو بلكه خپله دد دې دين منونكو رهبانيت د خپل ديني او دنياوي خلاصون او كاميابۍ ذريعه گڼل ، نو په يهودو او نصارا كي خلكو په خپله ددغه شيانو اختراع كړې وه او دا مشقتونه او تكليفونه يې پر ځان لازم كړي وه چي د شريعت د لوري پر هغوئ فرض سوي نه وه مگر دا قومونه فطرتا غير مستقل مزاج د خواهشات نفساني پابند او آزاد طبع واقع سوي دي ځكه هغوئ پر خپل ځان باندي حرام كړي شيان هم پوره نه كړلاى سول د هغوئ د ذهن او قوت د هغوئ حقوق ادا نه كړل او نه پر هغه باندي په مستقل مزاجي سره قائم پاته سول ، تر دې چي د رسول الله ﷺ زمانه يې تر لاسه كړه او پر هغه يې ايمان راوړ .

په هر حال د رسول الله ﷺ د ارشاد مطلب دادى چي تاسو رهبانيت مه اختياروئ او مه په غير شرعي او غير فطري توگه سره ځانونه په تكليفونو او ستونزو كي اخته كوئ بلكه شريعت چي كوم حدونه ټاكلي دي په هغه كي دننه خپل ژوند تيروئ او د الله تعالى او د هغه د رسول ښودل سوي دي فرضونه ادا كوئ .

﴿۱۷۲﴾ : وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَزَلَ الْقُرْآنُ عَلىٰ خَمْسَةِ أَوْجُهٍ حَلَالٌ وَحَرَامٌ وَمُحْكَمٌ وَمُتَشَابِهٌ وَأَمْثَالٌ .فَأَحِلُّوا الْحَلَالَ وَحَرِّمُوا الْحَرَامَ وَاعْمَلُوْا بِالْمُحْكَمِ وَآمِنُوْا بِالْمُتَشَابِهِ وَاعْتَبِرُوْا بِالْأَمْثَالِ .هٰذَا لَفْظُ الْمَصَابِيْحِ . وَرَوَى الْبَيْهَقِيِ فِي شُعَبِ الإِيْمَانِ وَلَفْظُهُ فَاعْمَلُوا بِالْحَلَالِ وَاجْتَنِبُوا الْحَرَامَ وَاتَّبِعُوا الْمُحْكَمَ .

د حضرت ابوهريرة ﵁ څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل : قرآن كريم په پنځو ځانگو (يا پنځه ډوله حكمو سره) نازل سوى دى ۱: حلال ۲: حرام ۳: حكم ۴: متشابه ۵: امثال ، نو تاسو حلال ، حلال وگڼئ حرام حرام وگڼئ په محكم عمل وكړئ په متشابه ايمان راوړئ او د امثالو څخه عبرت تر لاسه كړئ ، د حديث الفاظ په مصابيح كي دي او بيهقي په (شعب الايمان) كي چي كوم روايت ليكلي دى د هغه الفاظ دادى نو . په حلال عمل وكړئ د حرام څخه ځان وساتئ او د محكم پيروي وكړئ .

**تشريح** : قرآن كريم د خپل اسلوب او بيان په اعتبار پر پنځه ډوله آياتونو باندي مشتمل دى :

۱. داسي آياتونه چي په هغو کي د حلال ذکر سوی دی او د هغه احکام يې ښودلي دي.
۲. داسي آياتونه چي په هغه کي د حرامو ذکر سوی دی او د هغه احکام يې ښودلي دي.
۳. داسي آياتونه چي د هغه په معنا او مطلب کي ابهام او شک نسته بلکه هغه خپل مقصد او مراد صاف او واضح څرګندوي لکه : اقيموا الصلوة و آتوا الزکوة ، يعني لمونځ کوئ او زکوة ورکوئ ، په دې حديث کي دغه ټولو آياتونو ته محکم ويل سوي دي .
۴. داسي آياتونه چي د هغه مراد واضح نه وي او نه د هغه معنا او مطلب پر هر چا ظاهر کړل سوی دی مثلا : يد الله فوق ايديهم ، يعني د الله تعالی لاس د هغوئ پر لاسونو سربيره دی ، په حديث کي داسي آياتونو ته متشابه ويل سوي دي ، په دې اړه فرمايل سوي دي چي د داسي آياتونو د معنا او مطالب په لټون کي مه لګيږئ بلکه پر هغه يوازي ايمان راوړئ او يقين وکړئ چي د الله تعالی په نزد د هغه کومه معنا مراد وي هغه حق او صحيح ده که څه هم زموږ رسيد نه هغه ته نسته .
۵. داسي آياتونه چي په هغه کي د وروستني آياتونو د حالات او واقعاتو ذکر وسی دی يعني د نيک قومونو د فلاح او کاميابۍ او د بدو قومونو د تباهۍ او بربادۍ واقعې ښودل سوي دي د هغه په باره کي فرمايل سوي دي چي د دې پېښو څخه تاسو عبرت واخلئ او وګورئ چي الله تعالی پر خپل نيکو بندګانو باندي د خپلو رحمتونو او نعمتونو څنګه باران وکړ او بدکاره او سرکښان قومونه يې د تباهۍ او بربادۍ او هلاکت په شيلو کي څنګه په عبرتناک طريقې سره واچول .

| ﴿۱۷۳﴾ : وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلْأَمْرُ ثَلَاثَةٌ أَمْرٌ بَيِّنٌ رُشْدُه فَاتَّبِعْهِ وَاَمْرٌ بَيِّنٌ غَيُّهُ فَاجْتَنِبْهُ وَأَمْرٌ اُخْتُلِفَ فِيْهِ فَكِلْهُ إِلَى اللهِ عَزَّ وَجَلَّ ) (رواه احمد) | د حضرت ابن عباس ﷛ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د شريعت احکام پر درې ډوله دي ۱: يو حکم چي د هغه هدايت ظاهر دی د هغه پيروي کوئ ۲: دوهم حکم چي د هغه ګمراهۍ څرګنده ده د هغه څخه ځان وساتئ ۳: |
|---|---|

دريم حکم مختلف فيه دی او دا الله ﷻ ته وسپارئ .احمد .

**تشريح** : هغه امر چي د هغه هدايت څرګند دي داسي شيان دي چي د هغه حق او صحيح کېدل په څرګنده توګه د آياتونو او حديثونو څخه ثابت وي لکه د لمانځه، روژې، زکوة، حج وغيره فرض او واجب کېدل ، په دې اړه فرمايل سوي دي چي د دې پيروي کوئ .

همدارنګه هغه امر چي د هغه ګمراهي ښکاره ده داسي شيان دي چي د هغه باطل او فاسد کېدل په ښرګنده توګه معلوم وي لکه د کفارو رسمونه او د هغوئ پر طريقو باندي عمل کول او د هغو څخه د ځان ساتني حکم ورکول سوی دی . دريم امر مختلف فيه دی يعني داسي شيان چي د هغه حکم په ښرګنده توګه ثابت نه دی بلکه پټ او مشتبه وي ځينو خلکو د هغه تعريف داسي کړی دی چي امر مختلف فيه هغه شيان دي چي د هغه احکام الله او د هغه رسول نه وي ښودلي بلکه خلک د هغه په تعين کي اختلاف کوي لکه آيت متشابهات او د قيامت د وخت ټاکل وغيره ، په دې باره کي حکم ورکړل سوی دی چي په داسي شيانو کي د خپل لوري هيڅ مه واياست بلکه د هغه د حقيقي مراد او مفهوم تعين الله تعالی ته حواله کړئ هغه غوره عالم دی .

## الفصل الثالث

﴿۱۷۴﴾ : عَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ الشَّيْطَانَ ذِئْبُ الْإِنْسَانِ كَذِئْبِ الْغَنَمِ يَأْخُذُ الشَّاذَّةَ وَالْقَاصِيَةَ وَالنَّاحِيَةَ وَإِيَّاكُمْ وَالشِّعَابَ وَعَلَيْكُمْ بِالْجَمَاعَةِ وَالْعَامَّةِ . رواه أحمد .

د حضرت معاذ بن جبل ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : شيطان د انسان شرمښ دی لکه د پسو چي شرمښ وي چي هغه پسونه تښتوي کوم چي د رمې څخه تښتېدلي وي يا د رمې څخه لېري تللي وي يا د رمې پر غاړه وي او تاسو د غره د کندوونو (ګمراهيو) څخه ځان وساتئ او د جماعت او عوامو سره اوسئ .احمد.

**تشريح** : مطلب دادی چي څرنګه شرموښ يوازي پسه ويني چي د رمې څخه بيل سوی دی نو پر هغه ډېر زړوه ور وي او هغه تښتوي ، همداسي هر کله چي يو سړی د علماء دين د ډلي او د هغوئ د ډلي څخه په مخ ګرځولو سره بيل سي او د خپل عقل او فهم په طاقت نوي نوي مذهبونه راباسي او نوي نوي مذهبونه پيدا کوي نو پر هغه د شيطان په پوره توګه سره اختيار او تسلط وي ، نتيجه به دا سي چي داسي سړی د شيطان په ځنګل کي په پوره توګه سره راتلو سره د ګمراهۍ په انتهائي ژور کندو کي لويږي .

ځکه نو دحديث په پای کي وفرمايل سول چي د غره د کندو څخه ځان وساتئ يعني د اسلام د سيده لاري پرېښودو سره په داسي کندو کي مه کښېنئ چي د ضلالت او ګمراهۍ څخه ډک وي .

﴿۱۷۵﴾: وَعَنْ أَبِي ذَرٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ فَارَقَ الْجَمَاعَةَ شِبْرًا فَقَدْ خَلَعَ رِبْقَةَ الْإِسْلَامِ مِنْ عُنُقِهِ . رواه أحمد وأبو داود .

د حضرت ابوذر ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : څوك چي د جماعت څخه يوه لوېشت بیل سو نو هغه د اسلام پړی د خپلي غاړي څخه ایسته کړ .احمد او ابوداؤد.

**تشریح** : کوم سړی چي په کومه مرحله کي هم د ډلي څخه بیل سوی وي هغه به ددې خبري نښه وي چي هغه به اوس د اسلام د قیود او احکامو د پابندۍ څخه هم آزاد سي او خپل ذهني او فکري او عملي طاقتونه به داسي خوا ته گرځوي چیري چي نه یو قید وي او نه یو پابندي بلکه هغه به آزاد او د دین شریعت غیر پابند جوړ سي .

﴿۱۷۶﴾ : وَعَنْ مَالِكِ بْنِ أَنَسٍ مُرْسَلاً قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَرَكْتُ فِيكُمْ أَمْرَيْنِ لَنْ تَضِلُّوْا مَا تَمَسَّكْتُمْ بِهِمَا كِتَابُ اللهِ وَسُنَّةُ رَسُوْلِهِ . رواه في الموطأ .

حضرت مالك بن انس ﷺ په مرسل طریقه بیان کوي چي رسول الله ﷺ وفرمایل : ما په تاسو کي دوه شیان پرې ایښي دي تر څو پوري چي هغه مو په ټینگه نیولي وي نو گمراه به نه سئ ۱: د الله کتاب ۲: او دوهم د رسول الله ﷺ سنت. مؤطا .

﴿۱۷۷﴾: وَعَنْ غُضَيْفِ بْنِ الْحَارِثِ الثُّمَالِيِّ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَا أَحْدَثَ قَوْمٌ بِدْعَةً إِلاَّ رُفِعَ مِثْلُهَا مِنَ السُّنَّةِ فَتَمَسُّكٌ بِسُنَّةٍ خَيْرٌ مِّنْ إِحْدَاثِ بِدْعَةٍ. رواه احمد

د حضرت غضیف[۱] بن حارث الشمالي ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : کوم قوم چي (په دین کي) یو نوې خبره پیدا کړي د هغه په مثل یو سنت ځیني پورته کړل سي نو سنت ټینگ نیول تر نوي خبري پیدا کولو غوره دي . احمد

**تشریح** : پر سنت باندي عمل کول که څه هم د معمولي درجې وي تر بدعت پیدا کولو او پر بدعت باندي د عمل کولو څخه غوره دي که څه هم هغه بدعت حسنه وي ځکه چي د سنت نبوي اتباع او پیروي سره په روح کي ځلا پیدا کیږي چي په نور سره زړه او دماغ روښانه کیږي ، ددې پر خلاف بدعت د تاریکۍ او گمراهۍ سبب دی مثلا بیت الخلاء ته د آدابو او سنت او شریعت سره سم تلل تر سرایونو او مدرسو جوړولو غوره دي، ځکه که یو سړی د هغه آدابو رعایت کولو

[۱] د نوموړي نوم غضیف بن حارث شمالي دی او کنیت یې ابواسماء دی ، نوموړی صحابي او د انصارو څخه دی.

سره بيت الخلاء ته ځي کوم چي د حديث څخه منقول دي نو هغه ته به پر سنت باندي عمل کونکي ويل کيږي ، ددې پر خلاف که څه هم مدرسې او خانقاه جوړول ډير لوی کار دی مګر هغه بدعت حسنه دی ځکه نو پر دغه معمولي سنت باندي عمل کونکی به د دومره لوی کارکونکی څخه افضل وي ځکه چي د آداب سنت خيال کونکی او د سنت پيروي کونکي مقام عروج او قرب الهي ته ترقي کوي مګر سنت پرېښودونکی د مقيام عليا څخه لاندي رالويږي ، نتيجه به داسي چي داسي شيان چي افضل او اعلی وي هغه ترک کوي تر دې چي يو داسي مقام راسي چي هغه د زړه د سختوالي مرتبې ته ورسيږي چي هغه دين او طبع وايي .

د سيد جمال الدين افغاني رحمة الله عليه څخه دا منقول دي چي هغه ليکي په دې کي حکمت دا دی چي چا د آداب سنت رعايت وکړ مثلا د هغه بيت الخلاء ته تلل هم د سنت د آدابو سره سم وي نو د الله تعالی دلوري دا توفيق ورکول کيږي چي هغه ددې څخه پر اعلی سنت باندي عمل وکړي نو د توفيق الهي هغه نور اعلی مقامات ته د هغه رهنمايي کوي او په آخر کي هغه منزل مقصود ته رسيږي او کوم سړی چي معمولي سنت هم پريږدي نو نتيجه به دا وي چي په هغه کي به دا نقص پيدا کيږي چي هغه نور اعلی او افضل شيان هم پريږدي او د هغه د زړه سلامتي په پرېښودلو د سنت په تاريکۍ کي د منبلېدو سره تنزل کوي تر دې چي هغه په مقام رين او طبع کي لويږي .

ملا علی قاري رحمة الله عليه پر دې ځای يو ډيره ښه خبره کړې ده چي ايا تاسو دا نه وينئ چي د سستۍ په وجه سنت ترک کول د ملامتيا او عتاب باعث دی او د سنت ناقابل اعتبار ګڼلو سره پر هغه عمل نه کوي معصيت او د عذاب خداوندي سبب دی او د سنت څخه انکار د بدعتي کېدو اظهار دی مګر که يو بدعت که څه هم هغه بدعت حسنه وي ترک کړل سي نو دا ټول خبري نه لازميږي ،لکه سنت پرېښودل چي د بې شميره تاوانونو او فساد باعث دي مګر بدعت پرېښودل څه اثر نه اچوي ځکه نو دا معلومه سوه چي پر سنت باندي عمل کول که څه هم هغه معمولي وي د فلاح او سعادت او بهترۍ باعث دی او پر بدعت باندي عمل کول که څه هم هغه بدعت حسنه وي د هغه په مقابله کي غوره نه دي .

﴿۱۷۸﴾ : وَ عَنْ حَسَّانَ قَالَ مَا ابْتَدَعَ قَوْمٌ بِدْعَةً فِيْ دِيْنِهِمْ إِلاَّ نَزَعَ اللّٰهُ مِنْ سُنَّتِهِمْ مِثْلَهَا ثُمَّ لاَ يُعِيْدُهَا إِلَيْهِمْ إِلىٰ يَوْمِ الْقِيَامَةِ . رواه الدارمي .

د حضرت حسان[۱] بن ثابت ؓ څخه روایت دی کوم قوم چي په خپل دین کي یوه نوې خبره پیداکړل نو الله تعالی د هغوئ څخه په هغه ډول سنت پورته کوي او بیا هغه سنت تر قیامته پوري نه را گرځي . دارمي.

﴿۱۷۹﴾: وَعَنْ إِبْرَاهِيْمَ بْنِ مَيْسَرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ وَقَّرَ صَاحِبَ بِدْعَةٍ فَقَدْ أَعَانَ عَلىٰ هَدْمِ الْإِسْلاَمِ . رواه البيهقي في شعب الإيمان مُرْسَلاً .

د حضرت ابراهیم بن میسرة ؓ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : چا چي د بدعتي عزت وکړ هغه د دین په نړولو کي مرسته وکړه ، بیهقي په شعب الایمان کي مرسلا روایت کړی دی .

**تشریح** : د دې وجه داده هر کله چي یو سړی د یو بدعتي عزت کوي نو د هغه مطلب به داوي چي د هغه په مقابله کي هغه ته د سنت د عزت او احترام هیڅ خیال نسته همداسي د هغه د سنت تحقیر (بې عزتي) باعث کیږي او ښکاره ده چي د سنت تحقیر د اسلام عمارت نړوي ، په دې داهل سنت تحقیر هم قیاس کیدای سي که یو سړی د یو پابند شریعت او سنت توهین کوي نو هغه د دین او سنت عمارت ته تاوان رسوي د هغه پر خلاف که یو سړی د یو بدعتي تحقیر او تذلیل کوي نو دا به د دې خبري اظهار وي چي د هغه د سنت سره مینه ده چي د دین اسلام او د بنیادونو ټینګولو سبب دی چي پر هغه د بې شمیره حسناتو مستحق ګرځي .

﴿۱۸۰﴾ : وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ مَنْ تَعَلَّمَ كِتَابَ اللّٰهِ ثُمَّ اتَّبَعَ مَا فِيْهِ هَدَاهُ اللّٰهُ مِنَ الضَّلاَلَةِ فِي الدُّنْيَا وَ وَقَاهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ سُوْءَ الْحِسَابِ . وَفِيْ رِوَايَةٍ قَالَ مَنِ اقْتَدىٰ بِكِتَابِ اللّٰهِ لاَ يَضِلُّ فِي الدُّنْيَا وَلاَ يَشْقٰى فِي الْآخِرَةِ ثُمَّ تَلاَ هٰذِهِ الْآيَةَ ( فَمَنِ اتَّبَعَ هُدَايَ فَلاَ يَضِلُّ وَلاَ يَشْقٰى ) رواه رزين.

د حضرت ابن عباس ؓ څخه روایت دی چا چي د الله د کتاب علم تر لاسه کړ او بیا څه چي په کتاب الله کي دي د هغه پیروي یې وکړل نو الله پاك به یې په دنیا کي د ګمراهۍ څخه وساتي او دهدایت پر لاره به یې لري، او د قیامت په ورځ به یې د خراب حساب څخه وساتي ، پــــه یوه

---

[۱] د نوموړي نوم حسان بن ثابت او کنیت یې ابوالولید دی نوموړی انصاري او خزرجي دی ، ځینو حضراتو ویلي دي چي کنیت یې ابوالحسام دی ، حضرت حسان ؓ د حضرت علي ؓ د خلافت په زمانه کي په کال (۴۰هـ) کي وفات سوی دی او ځیني خلك وایي چي په (۵۰هـ) کي وفات سوی دی .

روایت کي دا الفاظ دي چا چي د الله ﷻ د کتاب پیروي وکړه هغه به په دنیا کي نه گمراه کیږي او نه به په آخرت کي بدنصیب وي . د دې وروسته ابن عباس دا آیت تلاوت کړ : فمن اتبع هدای .. رزین.

**تشریح** : د قرآن کریم لوستل د سعادت باعث او پر دې عمل کول د خلاصون ذریعه ده ، کوم سړی چي قرآن کریم په پوهه سره وایي او د پوهېدو چي کوم شرطونه دي د هغه سره سم د هغه علوم او معارف تر لاسه کړي بیا قرآن کریم چي کوم احکام ښودلي دي په هغه عمل وکړي او د هدایت کومه لار چي یې ښکلې ده پر هغه ځي نو پر هغه د دین او دنیا دواړو د سعادت او رحمت دروازې خلاصیږي ، په دنیا کي به پر هغه د الله تعالی د لوري دا رحمت وي چي هغه به قرآن کریم خپل رهبر جوړ کړي ځکه گناه او معصیت څخه به خوندي وي د بدی لار به پرېږدي ، د هغه نتیجه به په آخرت کي دا وي چي هلته به د الله تعالی د بې شمیره رحمتونو په سایه کي وي او نه به ورسره د حساب او کتاب سختي وي او نه به په عذاب کي اخته وي او دا دبنده په حق کي تر ټولو لوی خلاصون او سعادت دی .

﴿۱۸۱﴾: وَعَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ ضَرَبَ اللهُ مَثَلاً صِرَاطًا مُّسْتَقِيْمًا وَعَنْ جَنْبَتَيْ الصِّرَاطِ سُوْرَانِ فِيْهِمَا أَبْوَابٌ مُّفَتَّحَةٌ وَعَلَى الْأَبْوَابِ سُتُوْرٌ مُّرْخَاةٌ وَعِنْدَ رَأْسِ الصِّرَاطِ دَاعٍ يَقُوْلُ اسْتَقِيْمُوْا عَلَى الصِّرَاطِ وَلاَ تَعْوَجُّوْا وَفَوْقَ ذٰلِكَ دَاعٍ يَدْعُوْ كُلَّمَا هَمَّ عَبْدٌ أَنْ يَّفْتَحَ شَيْئًا مِّنْ تِلْكَ الْأَبْوَابِ قَالَ وَيْحَكَ لاَ تَفْتَحْهُ فَإِنَّكَ إِنْ تَفْتَحْهُ تَلِجْهُ . ثُمَّ فَسَّرَهُ فَأَخْبَرَ أَنَّ الصِّرَاطَ هُوَ الْإِسْلَامُ وَأَنَّ الْأَبْوَابَ الْمُفَتَّحَةَ مَحَارِمُ اللهِ وَأَنَّ السُّتُوْرَ الْمُرْخَاةَ حُدُوْدُ اللهِ وَأَنَّ الدَّاعِيَ عَلَى رَأْسِ الصِّرَاطِ هُوَ الْقُرْآنُ وَأَنَّ الدَّاعِيَ مِنْ فَوْقِهِ وَاعِظُ اللهِ فِيْ قَلْبِ كُلِّ مُؤْمِنٍ . رواه رزين وأحمد . والبيهقي في شعب الإيمان عن النواس بن سمعان وكذا الترمذي عنه إلا أنه ذكر أخصر منه .

د حضرت ابن مسعود ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : الله ﷻ یو مثال بیان کړی دی یوه سیده لاره ده او د هغې دواړو خواوو ته دوه دیوالونه دي په دې دیوالو کي خلاصي دروازې دي او پر دروازو پردې پرتې دي او د لارې په سر کي دعوت ورکونکی ولاړ دی چي په لوړ آواز سره وایي پر سیده لار راځئ آخوا دېخوا مه ځئ او دهغه بلونکي لوړ یو بل بلونکی ولاړ دی هر کله چي یو بنده په دې دروازو کي یوه دروازه خلاصول غواړي نوهغه دوهم بلونکی ورته په لوړ آواز وایي پر تا افسوس دی دا مه خلاصوه که ته دا خلاصه کړې نو په دې کي به دننه داخل سې ، د دې مثال په بیانولو سره رسول الله ﷺ د دې تفسیر داسي وفرمایه : چي سیده لار اسلام دی او په دیوالو کي چي کومي دروازې خلاصي دي د هغه څخه

مراد هغه شیان دي چي الله تعالی حرام کړی دی او کومي پردې چي پر دروازو دي هغه دالله تعالی حدود دي او هغه بلونکی چي دسیده لاري پر سر ولاړ دی هغه قرآن دی او هغه بلونکی چي د دغه څخه پورته ولاړ دی هغه د الله واعظ (نصیحت کونکی) دی چي د هر مؤمن په زړه کي موجود دی (رزین او احمد) بیهقي دا روایت د نواس بن سمعان څخه نقل کړی دی او ترمذي هم د هغه څخه روایت کړی دی خو ترمذي په لنډو الفاظو بیان کړی دی.

**تشریح** : شرعي احکام زیات وخت د دوو ډولونو سره متعلق دي یعني حلال او حرام، او دا دواړه شریعت په وضاحت سره بیان کړي دي کوم شیان چي حلال دي د هغه په اړه هم اعلان سوی دی او کوم شیان چي حرام دي د هغه هم وضاحت سوی دی او ښودل سوي دي چي د داسي شیانو په اختیارولو سره د سزا وړ ګرځي ، کوم شیان چي حرام ګرځول سوي دي د هغه او بندګانو په مینځ کي الله تعالی د خپل احکامو سره حدونه قائم کړي دي چي بندګان د هغه څخه په تجاوز کولو سره د محرماتو د کولو مجرم نسي، دا حرام شیان او حدود چي الهي احکام دي په مثال کي د دروازو او پردو سره تشبیه ورکړل سوې ده .

همداسي په پورتني مثال کي فرمایل سوي دي چي د هر مؤمن پر زړه یوه ملائکه وي چي د زړه ساتونکې وي د هغې کار دا وي چي هغه بنده د نیکۍ پر لار بیولو هڅه کوي دې ته تائید الهي او توفیق الهي وایي ، که د یو بنده سره تائید الهي او توفیق خداوندي نه وي نو انسان هر څومره که غواړي د هدایت پر لار نسي تلای ، په مثال کي قرآن کریم رهبر ښودل سوی دی خو دې طرف ته هم اشاره سوې ده چي د قرآن کریم هدایت هم هغه وخت په کار کیږي هر کله چي د بنده سره تائید الهي او توفیق خداوندي هم شامل حال وي ، قرآن کریم خو لار ښیي او پر سیده لار باندي د تلو هدایت کوي د دې څخه نصیحت حاصلول او پر هغه لار تللو سره منزل مقصود ته رسیدل هغه وخت کیدای سي هر کله چي د بنده په زړه کي د الله ﷻ د لوري هدایت واچول سي.

﴿۱۸۲﴾: وَعَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ مَنْ كَانَ مُسْتَنًّا فَلْيَسْتَنَّ بِمَنْ قَدْ مَاتَ فَإِنَّ الْحَيَّ لاَ تُؤْمَنُ عَلَيْهِ الْفِتْنَةُ . أُوْلٰئِكَ أَصْحَابُ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانُوْا أَفْضَلَ هٰذِهِ الْأُمَّةِ أَبَرَّهَا قُلُوْبًا وَأَعْمَقَهَا عِلْمًا وَأَقَلَّهَا تَكَلُّفًا اِخْتَارَهُمُ اللّٰهُ لِصُحْبَةِ نَبِيِّهٖ وَلِإِقَامَةِ دِيْنِهٖ فَاعْرِفُوْا لَهُمْ فَضْلَهُمْ وَاتَّبِعُوْهُمْ عَلٰى آثَرِهِمْ

د حضرت ابن مسعود ﷺ څخه روایت دی : څوک چي د یوې طریقې پیروي کوي نو هغه ته پکار دي چي د هغو خلګو پیروي وکړي کوم چي مړه سوي دي ځکه چي ژوندي د فتنې څخه خوندي نه وي او هغه (وفات سوي) د محمد ﷺ صحابه کرام دي چي ددې امت غوره خلك وه د زړونو په

وَتَمَسَّكُوْا بِمَا اسْتَطَعْتُمْ مِنْ أَخْلَاقِهِمْ وَسِيَرِهِمْ فَإِنَّهُمْ كَانُوْا عَلَى الْهُدَى الْمُسْتَقِيْمِ . (رواه رزين)

اعتبار د علم په اعتبار پوره او ډير کم تکليف کونکی خدای د خپل نبي د صحبت لپاره او دخپل دين د قائم ساتلو لپاره خوښ کړي وه نو تاسو د هغوئ بزرگي و پيژنئ او تر څو پوري چي ممکن وي د هغو عادات او اخلاق غوره کړئ متابعت يې وکړئ د دوئ پر قدمونو منگولي ښخي کړئ په هغو چي په وس کي مو وي له خويونو د هغوئ او له طريقو د هغوئ او همدغه خلك پر صراط مستقيم باندي وه . رزين .

**تشريح** : د مړو سوو خلکو څخه مراد صحابه کرام او د ژونديو خلکو څخه د ابن مسعود ﷺ د زمانې خلک او تابعين مراد دي، ابن مسعود ﷺ دا ارشاد د تابعين په مخکي د نصيحت لپاره وفرمايه، او کيدای سي چي په هغه دور کي د باطل ډلي پيدا سوي وي چي د صحابه کرامو پر پاکو لمنو يې د نجاست او غلاظت څاڅکي اچول ، څرنگه چي د رافضي او ملحدينو ډلي په دې ناپاکه بوختيا کي لگيدلي وه ځکه ابن مسعود ﷺ د هغوئ غلط الزامات (درواغو) او پر صحابه کرامو باندي د تړلي بهتان په رد کي د صحابه کرامو د بزرگۍ او فضيلت اظهار وکړ .

ابن مسعود ﷺ شهادت ورکوي چي صحابه کرام د امت غوره او د انتهائي درجې نيک خلک وه ، يعني د هغوئ زړونه د ايمان او اسلام په رڼا سره په پوره توگه منور سوي وه د خلوص او استقامت په صفتونو سره متصف وه د ايمان کامل په دولت مشرف وه او د زهد، تقدس او خشيت الهي څخه د هغوئ زړونه ډک وه .

بيا دوهمه خبره داده چي دا هغه مقدسه ډله وه چي تر ټولو مخکي د رسول الله ﷺ پر آواز يې لبيك ووايه او د الله تعالى د دين په خپرولو کي معين او مرستيالان وه ، د هغه په نتيجه کي چي کوم مصيبتونه هغوئ زغملي دي او د ظلم او ستم او تشدد زمانه تيره سوه او د اسلام د اشاعت او بقاء په لړ کي چي کومي قرباني هغوئ ورکړي دي نو هغه د تاريخ اسلام تر ټولو تابناك باب دی .

په اسلامي تاريخ پوهيدونکي پوهيږي چي دغه مقدسو حضراتو د رسول الله ﷺ معاونت او رفاقت او ددين اسلام په تبليغ او خپرولو کي د څومره سختيو او مشکلاتو مقابله وکړه ، د ژوند هيڅ يو داسي تکليف نه وو چي په هغه کي دوئ اخته نه سول هيڅ يو داسي امتحان نه وو چي پر هغه دوئ تير نه سول، او دا ټول د الله تعالى د لوري يوازي د دې لپاره وه چي د هغوئ زړونه ښه معلوم کړل سي او وکتل سي چي د کوم عظيم مشق چلولو لپاره هغوئ ټاکل کيږي او

د کوم رسول د رفاقت په شان عظیم منصب لپاره هغوئ تاکل کیږي د هغوئ ذهن، فکر او دماغ د هغه اهل دی که یا .

د هغوئ زړونه د سختیو زغملو قابل او پر مشکلاتو باندي صبر کونکي او شکر کونکي دي که یا، هغوئ په امتحان کي واچول سول ازموینه پر وکړل سول خو هغه حضرات د امتحان او ازمويني په هره مرحله کي کامیاب سول او د مصیبت او سختۍ د هري بتۍ څخه راووتل ، د هغوئ د صبر او رضا چي امتحان واخیستل سو نو داسي صابر او شاکر وختل چي د لوی څخه لوی سختۍ باندي هم د هغوئ په قدم کي د لړزېدو پر ځای نور استقامت پیدا سو او هغوئ پر خپل ایمان او یقین باندي په پوره یقین او اعتماد سره قائم او ټینګ پاته سول . د هغوئ ددغه عظیم وصف شاهدي قرآن کریم داسي ورکړې ده :

أُولَٰئِكَ الَّذِينَ امْتَحَنَ اللَّهُ قُلُوبَهُمْ لِلتَّقْوَىٰ . سورة البقرة ۴

ژباړه : دا (صحابه کرام) هغه کسان دي چي الله پاک د هغوئ زړونه د تقوا لپاره ازمویلي دي .

که د علم او فضل دا ازموینه وکتل سي نو بلا مبالغه نتیجه به دا وي چي هر صحابي د علم او معرفت، فهم او فراست، تدبر او تفکر ، عقل او پوهي د نور مینارونه وه چي د هغوئ څخه دنیا د ظلم او جهل په دې ماحول کي د تعلیم او ترقۍ، تهذیب او شرافت او د انسانیت رڼا تر لاسه کړه، څوک په حدیث او تفسیر کي بې مثاله وو، څوک د فقه او قرائت امام وو، په چا کي د تصوف او فرائضو علم په پوره کمال سره وو، په چا کي د معاني او آدابو بحر ځپې وهونکی وو، غرض دا چي هر یو پر خپل ځای په علمي حیثیت سره هم کامل او اکمل وو، او بیا دا چي د رسول الله ﷺ د شرف صحبت اثر کمال هم وو چي نه یوازي نارینه صحابه کرام بلکه ښځینه صحابیه هم پر خپل خپل ځای د علم او معرفت لمر او سپوږمۍ د هدایت وې چي د هغوئ څخه لویو لویو صحابه کرامو رڼا تر لاسه کړه ،

د روحاني او اُخروي عظمت او سعادت په دې عظیمه مرتبه کېدو سره د دې مقدس حضراتو د بې تکلفی دا حال وو چي په علمی نړۍ کي هم د دولت، حکمرانۍ او ملک او وجاهت سربیره نه هغوئ ته لوښي پنبې تلل پیغور وو نه پر ځمکه او فرش باندي د لمانځه کولو ناسته او ولاړي څه شرم محسوس کېدی ، د ساد‌ګۍ حدود چي د خاورو او لرګیو په لوښو کي خوراک او څښاک هیڅ تکلیف نه وو د نورو خلکو پاته سوي شیان خوړل د هغوئ په نزد هیڅ عیب نه وو ، د خبرو اترو او ادب یې دا کیفیت وو چي په ذاتي خبرو اترو کي هم د شرافت او

تهذيب لمن پرې نه ښودل .

د بيكاره خبرو لايعني او پالتو بحثونو څخه به ډېر ليري اوسيدل ، كلام او خبري به يې هغه وخت كولې چې ضروري او بالمقصد به وې ، صاف ويانده د دې درجې وه چې كومه مسئله به ورته معلومه نه وه په ډېره صفائي سره به يې ويل چې موږ ته دا معلومه نه ده چې د نن سبا په ډول خامخا په تكلف سره په تقريرونو سره مسئله به يې نه بيانول بلكه څوك چې به يې د ځان څخه غوره ګڼي نو په ډېر خلوص سره به يې مسائل هغه ته ليږل ، د استفادې لپاره هغه ته په ورتلو كي به هغوئ ته هيڅ شرم نه محسوس كيدى .

څرنګه چې ښودل سوي دي چې د هغوئ ژوند په هيڅ برخه كي تصنع (ځان ښودني) نوم قدري هم نه وو ، تر دې چې هغه خلګو به قرآن كريم لوستى نو هغه به يې د رياء او ځان ښودني بغير په پوره حقوق او اداب محلوظ ساتلو سره خالص په عربي لهجه كي به يې ساتى دا نه چې خامخا په آواز جوړولو سره راګ او سُر به يې لوستى .

همدا حال د هغوئ د باطن هم وو هغوئ د رسول كريم ﷺ د قرب او صحبت شرف حاصل وو ځكه د هغوئ زړونه په پوره توګه سره روښانه او صفا كېدو سره هر وخت په ياد الهي او ذكر الله كي مصروف وه ، د هغوئ افكار د عرفان او حقيقت پر انتهائي لوړتيا باندي وه .

د نن زمانې جاهل صوفيانو او پيرانو په شان هغوئ د ښودني لپاره په حال كي راتلو سره رقص نه كوى او نه به يې هو هو شور او غالمغال كوى او نه هغوئ د خپلو زړونو د صفائي لپاره د هارمونيم ساز او ډول او قوالۍ سره د حصول معرفت دعوه كول ، څرنګه چې په نن زمانه كي د اهل الله پر مزارونو د دې لغويات سره د تصوف او طريقت په نامه سر او كيف حاصلول كيږي او نه هغوئ د يو سكيم او تنظيم په اړه يو حلقه وغيره جوړولو سره په مسجد او كورونو كي په زوره ذكر كوى بلكه په ډېره سادګۍ سره چيري چې به موقع وه په ياد الهي كي به په ډېر صبر او سكون سره بوخت كېدل ، د هغوئ د دې سادګۍ او خلوص په وجه په ظاهره خو د هغوئ بدنونه پر فرش معلومېدل مګر د هغوئ روحونو به دعرش سيل كوى ، د هغوئ ظاهري بدن به د خلكو سره وو مګر د هغوئ زړونه به د مقام مقرب په انتهائي لوړتيا كي وه ، د صحابه كرامو ټولنيز ژوند هم د تصنع او تكلف څخه بالكل صاف وو هغوئ ته به چې څه حاصل سول هغه به يې خوړل څه چې به يې پيدا كړل هغه به يې اغوستل كه غټه جامه به وه هغه به يې واغوستل او كه ښه به ورته ترلاسه سول نو هغه به يې استعمال كړل دا نه چې دنيا ته د ښووني لپاره يا دخپل زهد او

تقدس رعب کولو لپاره داسي جامي يې پرځان لازمي کړي وي ، مګر هو چا ته چي به دا جامه تر لاسه سوه نو دا به يې هم استعمالول ، په خوراک او څښاک کي به دا تامل وو چي حلال رزق به څرنګه وو خوړی به يې ، خوندور شيان مثلاً غوښه ، شيدې او ميوه وغيره د الله تعالی نعمتونه که به ورته حاصل سول نو هغه به يې په خوند سره خوړل او که سپيره دال وغيره به الله تعالی ورکړل نو هغه به يې په ډير صبر او شکر سره خوړل ، په هر حال عبادات وي يا معاملات ، اخلاق وي که عادات يا معيشت او معاشرت د ژوند په هر اړخ کي په هغوئ کي خلوص ، بې تکلفي او سادګي وه .

هغوئ خپل د ژوند نظام په يو داسي قالب کي اچولی وو چي خالص اسلامي دين او اخلاقي وو او دا ټول د نبوت پيرزوينه وه او د هغه د مبارک ذات د صحبت اثر وو چي خپله د خپل قول سره سم (ادبني ربي فاحسن تاديبي ) يعني الله تعالی ما ته ادب وښودل او د ادب انتهائي درجې ته يې ورسولم ، د دې سره سم اخلاق او آداب ، تهذيب او شرافت ټول جواهر چي د ازل څخه په ځان کي ځای کړي وه چي کوم قوم د دنيا د ټولو څخه زيات غير مهذب ، غير متمدن او غير ترقي يافته وو ، د اصلاح او تربيت په ذريعه هغه د تهذيب او تمدن ، او اخلاق او احسان هغه رفيع مقام ته ورسوی چي هلته نه يوازي دا چي هغوئ خپله يو کامل او عظيم قوم ثابت سو بلکه د دنيا نورو قومونو د هغوئ نقش قدم د ځان لپاره جائز منزل جوړ لو سره د تهذيب او تمدن انتهائي لوړتياوو باندي تکيه وکړل .

په دغه حديث کي ابن مسعود ﷺ خلکو تــــه دا هدايت کوي چي که چيري تاسو هدايت غواړئ ، د فلاح د منزل غوښتونکي ياست ، عرفان الهي او د حب رسول انتهائي مقام ته رسيدل غواړئ نو ستاسو لپاره ضروري ده چي د دې مقدس ډلي لار اختيار کړئ د دوئ اخلاق او عادت د ځان لپاره د منزل لار وګرځوئ د دوئ پيروي د کاميابۍ ذريعه وګڼئ او د دوئ عقيدت او محبت سره د ژوند هر اړخ منور کړئ .

دلته بايد په دې پوه سو چي د ابن مسعود ﷺ د ارشاد څخه په څرګنده دا معلوميږي چي کوم صحابه کرام وفات سوي دي د هغوئ پيروي او اطاعت کول پکار دي حال دا چي مقصد دادی چي د پيروي لائق د صحابه کرامو ډله ده که هغه ژوندي وي يا ددې دنيا څخه رخصت سوي وي ، د خلکو خاصوالی ځکه سوی دی چي اکثر صحابه کرام هغه وخت وفات سوي وه کنه نو دلته ژوندي او مړه دواړه مراد دي .

د دې حديث څخه د صحابه کرامو د ډير عظمت او فضل و کمال اظهار کيږي ، په ټول مخلوق او انسانانو کي (د پيغمبرانو څخه پرته) دوئ تر ټولو افضل دي او د حق او صداقت د قبلولو صلاحيت په هغوئ کي په پوره توګه موجود وو ، ځکه نو الله تعالى هغوئ د خپل نبي د ملګرتيا لپاره خوښ کړل او په قرآن کريم کي په دې توګه د هغوئ د فضل او کمال شاهدي ورکړل سوې ده: وَأَلْزَمَهُمْ كَلِمَةَ التَّقْوَى وَكَانُوا أَحَقَّ بِهَا وَأَهْلَهَا. سورة الفتح ۲۶
ژباړه : او دا (صحابه کرام) يې د پرهيزګارۍ پر خبره قائم وساتل او هغوئ ددې مستحق او اهل دور وه . په ځينو آثارو کي راغلي دي چي پروردګار عالم د ټولو بندګانو پر زړونو باندي نظر وفرمايه نو د رسول الله ﷺ زړه مبارک تر ټولو زيات منور او روښانه وو نو ځکه نور نبوت يې په هغه کي وديعت (سپارلو) وفرمايه ، او د صحابه کرامو زړونه هم ډير زيات پاک او صاف او اهل لائق وه نو هغوئ يې د خپل نبي د ملګرتيا لپاره غوره کړل .
او په دې خبره خو نن سبا موږ په خپله هم پوهيږو چي يو سړى هر کله د يو پير پر حق مريد سي نو د دې سربيره چي هغه د مخکي څخه خالي وي مګر د پير د صحبت او د هغه د خدمت او پيروي په وجه هغه ځومره اعلى مقام حاصلوي نو ايا دا ممکن ده چي صحابه کرام خپل ژوند د رسول الله ﷺ په مينه کي او خپل عمر د رسول الله ﷺ په خدمت کي صرف کړي او فضل او کمال دي ترلاسه نه کړي.

﴿۱۸۳﴾: وَعَنْ جَابِرٍ أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ أَتَى رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِنُسْخَةٍ مِّنَ التَّوْرَاةِ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللهِ هٰذِهٖ نُسْخَةٌ مِّنَ التَّوْرَاةِ فَسَكَتَ فَجَعَلَ يَقْرَأُ وَوَجْهُ رَسُوْلِ اللهِ يَتَغَيَّرُ فَقَالَ أَبُوْ بَكْرٍ ثَكِلَتْكَ الثَّوَاكِلُ أَمَا تَرٰى مَا بِوَجْهِ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَنَظَرَ عُمَرُ إِلٰى وَجْهِ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّم فَقَالَ أَعُوْذُ بِاللهِ مِنْ غَضَبِ اللهِ وَغَضَبِ رَسُوْلِهٖ رَضِيْنَا بِاللهِ رَبًّا وَّبِالْإِسْلَامِ دِيْنًا وَّبِمُحَمَّدٍ نَّبِيًّا فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالَّذِيْ نَفْسُ مُحَمَّدٍ بِيَدِهٖ لَوْ

د حضرت جابر ﷛ څخه روايت دی چي (يوځل) حضرت عمر ﷛ رسول الله ﷺ ته د تورات نسخه راوړل او عرض يې وکړ اې دالله رسوله ! دا د تورات نسخه ده، رسول الله ﷺ پټه خوله سو ، بيا حضرت عمر تورات ويل پيل کړل او درسول الله ﷺ مخ مبارك متغير کيدی ، د دې په ليدو سره ابوبکر صديق ﷛ وويل اې عمر ! پر تا دې وير کونکي ښځي وير وکړي (مور دې در باندي بوره سي) ايا ته د رسول الله ﷺ مخ مبارك نه وينې . حضرت عمر ﷛ چي رسول الله ﷺ ته وکتل نو وه يې ويل : زه د الله او د هغه د رسول د ناراضګۍ څخه

بَدَا لَكُمْ مُوْسٰى فَاتَّبَعْتُمُوْهُ وَتَرَكْتُمُوْنِيْ لَضَلَلْتُمْ عَنْ سَوَاءِ السَّبِيْلِ وَلَوْ كَانَ مُوْسٰى حَيًّا وَأَدْرَكَ نُبُوَّتِيْ لَاتَّبَعَنِيْ. (رواه الدارمي)

په الله تعالى پناه غوارم موږ د الله په رب کېدو پر دين اسلام او د محمد ﷺ پر نبوت راضي يو . نو رسول الله ﷺ وفرمايل : په هغه ذات دي مي قسم وي د چا په واك کي چي د محمد ﷺ روح ده که تاسو ته موسى ﷤ ښکاره سي نو تاسو به د هغه اطاعت قبول کړى واى او زه به مو پرېښى واى (او ددې نتيجه به دا واى چي) تاسو به د سيده لاري څخه گمراه سوي واى حال دا چي که موسى ﷤ ژوندى واى او زما د نبوت زمانه يې تر لاسه کړې واى نو يقينا به يې زما پيروي کولاى . دارمي .

**تشريح** : جمله د (ثَكِلَتْكَ الثَّوَاكِلُ) يعني ورکونکى دي تا ورک کړي، د خپل معنا او مفهوم په اعتبار د مرګ لپاره ښيرا ده ، مګر دا د اهل عربو يوه محاوره ده چي په خپل اصلي معنا او مفهوم کي نه استعمالېږي بلکه پر داسي موقع باندي ويل کېږي هر کله چي د يو بې تکلفه ملګري سره د يو تعجب اظهارول مقصد وي لکه څرنګه چي يو سړى بې تکلفه مخاطب ته پر داسي موقع باندي چي هغه په يو څرګنده خبره هم نه پوهېږي نو دا ورته ووايي چي ما ته ډېر تعجب دى چي ته په دې څرګنده خبره هم نه پوهېږې .

د دغه حديث څخه معلومه سوه چي د کتاب او سنت په پرېښودو سره د يهودو او نصاراوو د حاکمانو او فيلسوفانو طرف ته بې ضرورته رجوع کول او هغه خوا ته التفات کول مناسب نه دي بلکه دا د ګمراهۍ خبره ده .

﴿۱۸۴﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَلَامِيْ لَا يَنْسَخُ كَلَامَ اللهِ وَكَلَامُ اللهِ يَنْسَخُ كَلَامِيْ وَكَلَامُ اللهِ يَنْسَخُ بَعْضُهُ بَعْضًا .

د حضرت جابر ﷺ څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل : زما کلام (خبري) کلام الله نه سي منسوخ کولاى او کلام الله زما کلام منسوخ کوي او د کلام الله ځيني برخه ځيني نوري برخي هم منسوخ کولاى سي .

**تشريح** : د نسخ معنا په لغت کي د يو شي نړول يا په نقل او تحويل کي راتلل دي لکه چي ويل کيږي : (نسخت الريح آثار القوم) يعني هواء د خلکو د پښو نښي خرابي کړې ، يا داسي ويل کيږي : (نسخ الكتاب الى كتاب) يعني د يو ځاى څخه کتاب بل ځاى ته نقل کړه .

د علماؤ په اصطلاح کي نسخ دې ته وايي چي په يو شرعي حکم کي د دين د اصلاح په خاطر د دوهم حکم په ذريعه تغير او تبديل وکړل سي يا يو داسي حکم نافذ کول چي د هغه

وروسته د هغه څخه مخکنی حکم چې مقدم وو لوړ سي ، لومړی حکم ته منسوخ او دوهم حکم ته ناسخ وایي .

د نسخ څلور ډولونه دي : (۱): د کتاب الله نسخ په کتاب الله سره . (۲) دحدیثو نسخ په حدیث سره . (۳) :د کتاب الله نسخ په حدیث سره . (۴) : د حدیث نسخ په کتاب الله سره .

د دې وضاحت دادی چې مثلا مخکې یو حکم په قرآن کریم کي د الله تعالی د لوري نازل سو مگر وروسته د یو خاص حکمت په وجه د قرآن کریم د دوهم آیت په راتلو سره هغه حکم منسوخ کړ ، اوس ددې دوه صورتونه دي یا خو هغه آیت په قرآن کریم کي پاته سو او یوازي تلاوت یې کیږي مگر د هغه حکم کالعدم (لکه نیستي) وگرځول سو یا دا چې د حکم سره آیت هم منسوخ کړل سو ، او همداسي د نسخ دوهم صورت دادی چې د حدیث یو حکم د حدیث په ذریعه منسوخ کړل سوی وي ، دریم شکل د نسخ دادی چې د قرآن کریم یو حکم د حدیث په ذریعه رسول الله ﷺ منسوخ فرمایلی وي مگر په هغه کي دا اشکال نسي پیدا کیدای چې رسول یو انسان دی او هغه حکم الهي څرنگه کالعدم گرځولای سي ، دا اشکال هلته رفع سوی دی چیري چې دا ښودل سوي دي چې حدیث خو په ظاهره د رسول الله ﷺ د ژبې مبارکي څخه د وتلو الفاظو د ټولگي نوم دي مگر په حقیقت کي حدیث هم وحي من الله دي ، فرق یوازي دومره دی چې قرآن کریم داسي وحي دی چې د هغه تلاوت نه کیږئ او د هغه مضمون د الله تعالی د دربار څخه نازلیږي مگر الفاظ د رسول وي په دې صورت کي دا حدیث متعارض معلومیږي چې د هغه څخه معلومیږي چې حدیث د قرآن کریم حکم منسوخ کولای نسي نو ددې جواب به دا وي چې په حدیث کي د لفظ کلامي څخه مراد د رسول الله ﷺ ذاتي رایه او د جتهاد پر طریقه وارد وي نه دا چې هغه ارشاد چې د وحي په توگه د رسول الله ﷺ پره زړه القاء کړل سوی دی ، ددې تاویل څخه وروسته دا تعارض رفع کیږي یا دا تاویل به دا کیږي چې دا حدیث خپله منسوخ دی نو په دې سره پر هغه کلیه باندي اثر نه لویږي .

څلورم صورت د نسخ دادی چې د حدیث یو حکم د کتاب الله په ذریعه منسوخ کړل سوی وي چې دلته په دې خبره هم پوهېدل پکار دي چې په یو قانون کي تبدیلي یا د یو حکم منسوخ کېدل په دوو وجو سره کیږي لومړی خو دا چې قانون جوړولو په وخت کي د قانون جوړونکي څخه کوتاهي یا غلطي سوې وي چې د هغه په وجه وروسته په هغه قانون کي تبیدلي او منسوخي ضروري گرځول سوې وي .

ځرګنده ده چي په کلام الله کي دا محال ده ځکه چي د الله تعالی علیم او خبیر ذات د هیڅ ډول غلطی او هیري څخه بالکل پاک او صاف دی ځکه نو کوم قانون چي جوړوي یا کوم حکم ورکوي هغه به بالکل کامل او صحیح وي په هغه کي د غلطی امکان نسي کیدلای، همدارنګه د رسول په ښودل سوو احکامو کي هم دا شی نسي کیدلای ځکه چي داسي احکام چي د هغه تعلق د دیني امورو سره وي هغه د الله تعالی دلوري نازلیږي او د الله تعالی د لوري د هغه جاري کېدل په عمل کي راځي ، لکه هغه چي خپله هم د احکام الله په مرتبه کي وي دا وجه ده چي ځرنګه د قرآن په احکامو عمل کول فرض دي همداسي د حدیث د احکامو پیروي کول هم ضروري او لازم دي نود حدیث په احکامو کي هم د یو حکم د تبدیلی سبب دا نسي کیدلای، د یو تاوان او حکم د تبدیلی او منسوخ کېدو دوهمه وجه دا وي چي د محکوم حالت پر بدلیدو باندي نسخه هم بدلولای سي .

مثلا یو قانون جوړ سو یا یو حکم ورکړل سو هغه وخت ماحول د هغه ډول قانون غوښتونکی وو یا د محکوم ذهن او مزاج د هغه حکم وړ وو مګر وروسته هر کله چي په ماحول کي تبدیلي راغلل د محکوم ذهن او مزاج هم دوهم قانون اختیار کړ ، اوس د پاته قانون حکمت هم بدل سو نو هغه د محکوم او ماحول د خیر او اصلاح په خاطر د هغه څخه مخکي قانون بدل کړ او د هغه پر ځای یې یو بل دوهم قانون جاري کړ ، ځرګنده ده چي داسي نسخ به صحیح او جائز وي په دې کي د هیڅ ډول غلطی او نقلي اشکال نسي پیدا کیدای او دا تبدیلي او تغیر او نسخ د قرآن کریم او حدیثو په احکامو کي کیږي نو په دې کي هیڅ شبه نسي کیدلای .

﴿۱۸۵﴾: وَعَنْ اِبْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ اَحَادِيْثَنَا يَنْسَخُ بَعْضُهَا بَعْضًا كَنَسْخِ الْقُرْآنِ .

د حضرت ابن عمر ﷛ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : زموږ ځیني حدیثونه ځیني منسوخ کوي لکه ځرنګه چي قرآن (د قرآن ځیني برخي) منسوخ کوي

﴿۱۸۶﴾: وَعَنْ أَبِيْ ثَعْلَبَةَ الْخُشَنِيِّ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ اللهَ فَرَضَ فَرَائِضَ فَلاَ تُضَيِّعُوْهَا وَحَرَّمَ حُرُمَاتٍ فَلاَ تَنْتَهِكُوْهَا وَحَدَّ حُدُوْدًا فَلاَ تَعْتَدُوْهَا وَسَكَتَ عَنْ أَشْيَاءَ مِنْ غَيْرِ نِسْيَانٍ فَلاَ تَبْحَثُوْا عَنْهَا .رَوَى الأَحَادِيْثَ الثَّلاَثَةَ الدَّارَقُطْنِيُّ .

د حضرت ابو ثعلبة[1] الخشني ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : الله تعالى څو خبري فرض كړي دي تاسو هغه مه ضائع كوئ او څو شيان الله پاك حرام كړي دي هغه ته مه نژدې كيږئ او څو حدونه يې ټاكلي دي د هغو څخه تجاوز مه كوئ او د څو شيانو په بيانولو كي يې سكوت اختيار كړی دی بې له هيروالي نو تاسو په دغه شيانو كي بحث مه كوئ .(ذكر سوي) درې سره احاديث دار قطني روايت كړي دي ) .

[1]- د نومونړي په نامه كي ډير اختلاف دی ځينو جرهم بن ثابت وايي او ځيني جرثوم بن ثابت او عمر ابن جرثوم ليكلي دی ، په هر حال دی په خپل كنيت ابو ثعلبه سره مشهور دی ، د عبدالملك بن مروان په زمانه كي په كال (۷۵ھ) كي وفات سوی دی .

بسم الله الرحمن الرحيم

# كِتَابُ الْعِلْمِ

## (علم او د هغه د فضيلت بيان)

علم څه شي دی ؟ دا هغه عظيم وصف دی چي انسان ته نه يوازي دا چي د شرافت او تهذيب سرمايه وربخښي بلکه د عزت او عظمت په دولت سره يې هم نازوي، په اخلاق او عاداتو کي ځلا پيدا کوي او انسانيت ډيري لوړی ته رسوي بلکه انساني زړه د عرفان الهي په مقدسه رڼا سره منور کوي، ذهن او فکر ته د صحيح عقيدې معراج بخښي او زړه او دماغ د خدا پرستی او اطاعت پر لاره مستقيم روانوي.

اسلام چي د انسان لپاره د پرمختګ او عظمت په لار کي تر ټولو عظيم د نور منار دی، هغه دا عظيم وصف د انسانيت لپاره ضروري ګرځوي او ددې تر لاسه کول د ديني او دنياوي ترقی او کاميابی زينه جوړوي، دا خبره په ذهن کي کښېنول پکار ده چي اسلام هر هغه علم ته د قدر په نظر ګوري چي د اسلامي عقيدو او عمل سره د مزاحم کېدو پرته د انساني معراج ضامن وي، اسلام د هيڅ علم د تر لاسه کولو څخه منعه نه کوي مګر د داسي علم څخه د بيزاری اظهار هم کوي چي ذهن او فکر د ګمراهی په لور اړوي يا انسان د الله تعالى او د رسول څخه په نا اشنا کولو سره د الحاد او دهريت پر لار روانوي.

دلته د کتاب العلم د عنوان ورکولو سره چي د کوم علم ضرورت او فضيلت باندي مشتمل د حديثو بيان جاري دی هغه علم دين دی چي په شريعت کي بنيادي او ضروري حيثيت لري، ديني علم د نورو علومو په مقابله کي د اسلام په نظر کي تر ټولو مقدم او ضروري دی، د دې تر لاسه کول د هر مسلمان لپاره ضروري ګرځول سوی دی لکه چي ارشاد دی :

(طلب العلم فريضة على كل مسلم)

ژباړه : د علم تر لاسه کول پر هر مسلمان باندي فرض دی، څرګنده ده چي اسلام د کوم ژوند غوښتنه کوي او انسان د عبوديت په کوم معراج ليدل غواړي هغه پر علم دين باندي موقوف دی د علم دين په وجه انسان انسان جوړيږي او بنده د خپل حيثيت پېژندلو سره د ذات حق عرفان تر لاسه کوي او د عقيدې او عمل ټولي لاري ددې څخه راوځي چي پر هغه تللو سره بنده د خپل پروردګار حقيقي اطاعت کونکی او د رسول فرمانبردار او د دين او شريعت پابند جوړيږي.

د دين علم چي پر كتاب الله او سنت رسول الله باندي مشتمل دى ، د دې دوه ډوله كيږي : لومړى مبادي يعني وسائل ، دوهم مقاصد .

مبادي هغه علم ته وايي چي د هغه پر حصول باندي د كتاب او سنت معرفت موقوف وي يعني تر څو پوري چي دا علم تر لاسه نه كړي ذ قرآن او حديث د علوم د معارف عرفان نسي تر لاسه كيداى مثلاً ، لغت، صرف ، نحو او داسي نور، تر څو چي دا حاصل نه كړي او په دې نظر نه وي چي د كتاب او سنت علم په صحيح توګه باندي نسي راتلاى او نه د هغه حقيقي منشا او مقصد تر لاسه كيداى سي .

مقاصد هغه علم دى چي د عقائدو ، اعمالو او اخلاقو سره متعلق وي يعني دا هغه علم دى چي مقصود بالذات او في نفسه ضروري وو ، او د دې حاصلولو سره د دين او شريعت د پابندۍ سيده لار مخته راځي دې ډولو ته علم معاملت هم وايي ، همدا رنګه يو علم مكاشفه هم وي ، دا په اصل كي هغه نور وي چي پر علم ظاهر باندې په عمل كولو سره په زړه كي پيدا كيږي چي د هغه په مقدسه رڼا سره د هر شي حقيقت ښكاره كيږي او د حق تعالى ذات او صفات او د احوالو معرفت پيدا كيږي ، دغه علم مكاشفه ته علم حقيقت او علم وراثت هم وايي څرنګه چي د رسول الله ﷺ ارشاد دى : من عمل بما علم ورثه الله ما لم يعلم .

ژباړه : كوم سړى چي په علم باندي عمل كوي الله تعالى هغه ته هغه علم په برخه كوي چي نه پيژندل كيږي او نه لوستل كيږي .

په هر حال د علم ظاهر او علم باطن چي كوم ډولونه مشهور دي هغه هم دادى چي د يو بل لپاره لازم او ملزوم دي او په دغه دواړو كي د بدن او روح او د پوست او مغز نسبت دى او د علم په فضيلت كي چي كوم آياتونه راغلى دي يا كوم حديثونه منقول دي هغه ټول اقسام د مراتبو د درجاتو په تفاوت سره شامل دي .

## الفصل الاول

﴿۱۸۷﴾: عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَلِّغُوْا عَنِّيْ وَلَوْ آيَةً وَحَدِّثُوْا عَنْ بَنِيْ إِسْرَائِيْلَ وَلاَ حَرَجَ وَمَنْ كَذَبَ عَلَيَّ مُتَعَمِّدًا فَلْيَتَبَوَّأْ مَقْعَدَهُ مِنَ النَّارِ . رواه البخاري

د حضرت عبدالله بن عمرو ﷺ څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل : زما د لوري ورسوئ كه څه هم يو آيت وي او ذ بني اسرائيلو څخه چي كومي قصې واورئ هغه د خلكو په وړاندي بيان

کړئ په دې کي څه ګناه نسته او څوك چي په قصد سره ما ته د دروا غو خبره منسوبه کړي نو هغه دي خپل ځای په دوږخ کي ولټوي . بخاري .

**تشریح** : د آیت کریمه څخه مراد هغه حدیث دي چي په ظاهره خو ډیر کوچني کوچني دي مګر د ګټي د لحاظه د علوم او معارف بحر وي لکه چي یو کوچنی حدیث دی :

(من صحبت نجا) یعني څوک چي پټه خوله سو هغه خلاصون تر لاسه کړي، یا دا رنګه نور مختصر مګر جامع حدیثونه لکه چي ددې جملې مطلب دا سو که څه هم تاسو زما څخه یو حدیث اورئ چي د الفاظو او جملې په اعتبار ډیر کوچنی او مختصر وي خو هغه نورو ته ضرور رسوئ او د هغه د ګټي څخه نور خلک ګټور کړئ ، علماء لیکي چي ددې حدیث اصل مقصد علم خپرول او نور خلک د علم په رڼا سره منور کولو سره ترغیب ورکول دي تر څو پوري چي کیدای سي په علم خپرولو او ددین د خبرو رسولو کي سعي او هڅه کول پکار ده ، کیدای سي چي تاسو کومه خبره نورو ته ورسوئ که څه هم هغه ډیره مختصره وي نو څه تعجب چي په هغه سره به د هغه دنیا هم سمه سي او دین به یې هم جوړ سي او هغه به د هدایت لار تر لاسه کړي چي د هغه په نتیجه کي نه یوازي دا چي یو سړي ته هدایت وسي او هغه پر سیده لار روان سي بلکه د هغه په وجه تا ته هم علم تر لاسه سي او په بې شمیره نیکیو سره ونازول سې .

په حدیث کي دوهمه خبره دا ښودل سوې ده که تاسو د بني اسرائیلو څخه یو قصه واورئ یا تاسو ته د هغوئ څخه یو واقعه معلومه سي نو تاسو هغه خلکو ته بیانولای سئ مګر د هغوئ د احکامو وغیره نقل کولو اجازه نسته لکه چي په تیر حدیث کي تیر سوي دي ځکه چي یو واقعه او یا قصه صرف د خبر په توګه بیانول په شرعي امورو کي څه تاوان نه پیدا کوي مګر دهغوئ احکام نقل کول یا د هغوئ تبلیغ کول د شریعت محمدي د بنیادي اصولو خلاف دي ، هر کله چي په دې دنیا کې د شریعت محمدي نفاذ سوی دی نو اوس ټول نور شریعتونه منسوخ او کالعدم ګرځول سوي دي ، د شریعت محمدي پرېښودو سره د بل شریعت د احکامو او اعمالو د تبلیغ اجازه نسي ورکول کیدای

د حدیث په پای کي رسول الله ﷺ ته د یو غلطي خبري پر نسبت کولو باندي په سختو الفاظو کي زجر او توبیخ فرمایل سوی دی . فرمایلي یې دي کوم سړی چي ما ته د یو غلطي خبري انتساب وکړي او پر ما باندي بهتان وتړي نو هغه ته پکار ده چي د جهنم په اور کي د سوځېدو لپاره تیار سي ، داسي بدبخت چي د دنیا د ترټولو لوی صادق او مصدوق ذات باندي

بهتان تړي ددې سزا مستحق دی چي هغه د جنهم شغلو ته حواله کړل سي .

په دې اړه تر ټولو پوري چي د مسئلې تعلق دی علماؤ په اتفاق سره دا ليکلي دي چي د رسول الله ﷺ د ذات اقدس په لور د داسي خبري يا عمل نسبت کول چي واقعتا د رسول الله ﷺ څخه ثابت نه وي حرام او گناه کبيره ده او داسي درواغجن انسان به د الله په سخت عذاب کي اخته سي او ځيني علماء مثلا امام محمد جويني رحمة الله عليه خو دا جرم دومره قابل نفرت او سخت بولي چي هغه د داسي سړي په باره کي د کفر حکم کوي .

د ﴿مَنْ كَذَبَ عَلَيَّ مُتَعَمِّدًا فَلْيَتَبَوَّأْ مَقْعَدَهُ مِنَ النَّارِ﴾ يعني کوم سړی چي په قصد سره ما ته د درواغ خبري نسبت وکړي نو هغه ته پکار ده چي خپل ځای په دوږخ کي ولټوي، د دې په باره کي ويل کيږي چي ډير لوی او د لوړي درجې حديث دی او د دې شمير په متواتر کي کيږي بلکه نور متواتر حديثونه دې مرتبې ته نه رسيږي ځکه دا حديث د صحابه کرامو د يو لوی ډلي څخه نقل دی ، ځينو محدثينو ليکلي دي چي دا حديث دو شپيته (۶۲) صحابه کرامو روايت کړی دی چي په هغو کي عشره مبشره هم شامل دي .

﴿۱۸۸﴾: وَعَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ وَالْمُغِيْرَةِ بْنِ شُعْبَةَ قَالَا قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ حَدَّثَ عَنِّيْ بِحَدِيْثٍ يَرٰى اَنَّهُ كَذِبٌ فَهُوَ أَحَدُ الْكَاذِبِيْنَ . رواه مسلم .

د حضرت سمرة [۱] بن جندب او مغيرة بن شعبة څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : څوک چي زما يو داسي حديث بيان کړئ چي د هغه په اړه دهغه دا خيال وي چي هغه درواغ دی نو هغه د درواغجنانو څخه يو درواغجن دی . مسلم .

**تشريح** : مطلب دا که يو سړی داسي حديث د خلکو په مخ کي بيان کړي او هغه خپور کړي چي واقعتا زما حديث نه وي او بيا هغه ته دا معلومه هم وي چي زه کوم حديث بيانوم هغه په حقيقت کي د رسول الله ﷺ حديث نه دی بلکه جوړ کړل سوی دی نو هغه سړی چي دا د درواغو حديث يې جوړ کړی دی ځکه درواغجن دی چي هغه نبي کريم ﷺ ته د غلطي او درواغ خبري نسبت کړی دی نو دا سړی چي هغه حديث بيانوي ځکه درواغجن دی چي هغه په اشاعت کولو سره او په دې پوهېدو سره هم چي دا غلط حديث دی نورو ته په رسولو سره د هغه سړي مرسته کوي او څرگنده ده چي څرنگه د درواغو حديث جوړونکي به د الله تعالی په عذاب کي اخته وي

[۱] د نوموړي نوم سمره بن جندب او کنيت يې ابوسعد يه دی ، په کال (۵۸هـ) يا (۵۹هـ) کي وفات سوی دی

همداسي د هغه بيانونكى ته به هم په آخرت كي عذاب وركول كيږي او هغه ته به سخته سزا وركول كيږي.

﴿۱۸۹﴾: وَعَنْ مُعَاوِيَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ يُرِدِ اللّٰهُ بِهِ خَيْرًا يُفَقِّهْهُ فِي الدِّيْنِ وَإِنَّمَا أَنَا قَاسِمٌ وَاللّٰهُ يُعْطِيْ. (متفق عليه)

د حضرت معاوية [۱] ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د چا سره چي الله پاك د نيكۍ اراده كوي نو هغه ته د دين پوهه په برخه كړي او زه خو ويشونكى يم وركونكى الله تعالى دی. بخاري او مسلم

**تشريح**: د دغه حديث څخه د علم او د عالم د فضيلت اظهار كيږي، الله تعالى چي كوم سړی د خير او ښيگڼي پر لار روانول غواړي نو هغه ته د علم دولت وركړي، او څرگنده ده چي دا د الله تعالى ډير لوی نعمت دی چي هغه يو سړي ته د ديني امورو يعني د احكام شريعت او د طريقت لار او حقيقت پوهه وركړي چي د هدايت او راستۍ او د خير او فلاح د ټولو څخه لويه لار ده، د حديث د دوهم جز مطلب دادی چي د علم حقيقي مبداء خو د الله ﷻ ذات دی زما كار خو صرف دادی چي زه ديني مسائل او شرعي احكام خلكو ته رسوم او حديث بيان كړم اوس مخته د الله تعالى خوښه ده هغه چي چا ته څومره غواړي په هغه د عمل كولو توفيق او د غور او فكر صلاحيت وركوي.

﴿۱۹۰﴾: وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلنَّاسُ مَعَادِنُ كَمَعَادِنِ الذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ خِيَارُهُمْ فِي الْجَاهِلِيَّةِ خِيَارُهُمْ فِي الْإِسْلَامِ إِذَا فَقِهُوْا. رواه مسلم.

د حضرت ابوهريرة ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: خلك كانونه دي لكه څرنگه چي د سرو او سپينو (زرو) كانونه وي كوم خلك چي د جاهليت په زمانه كي غوره وه نو هغوئ په اسلام كي هم غوره دي كه هغوئ دين و پيژني. مسلم.

**تشريح**: انسان ته په كان (د مځكي ذخيرو) سره تشبيه وركړل سوې ده او دا تشبيه د نيكو اخلاقو او عاداتو او صفاتو او كمالاتو د استعداد او صلاحيت په تفاوت كي وركړل سوې ده چي څرنگه په يو كان كي لعل او ياقوت پيدا كيږي او او په بل كان كي سره زر، او په ځينو كانو كي چونه، رانجه، ډبري وغيره پيدا كيږي همداسي د انسان ذات دی چي ځينو خو د خپل اخلاق

[۱] د نوموړي نوم مغيره بن شعبه دی او كنيت يې ابوعبدالله دی او د ځينو حضراتو د قول سره سم ابوعيسى دی. په كال (۵۰هـ) كي وفات سوی دی. اسد الغابة.

او عادات او صفاتو په وجه د عظمت او شان خاوندان وي ځيني د هغوئ څخه د کمي درجې وي او ډير داسي هم وي چي په دغه صفاتو کي ډير کم او بې وقعته وي.

د حديث د آخري جملې مطلب دادی چي کوم خلک د ايمان راوړلو څخه مخکي د کفر په حالت کي د غوره اخلاقو او عاداتو مالک وه مثلاً په سخاوت، ميړانه او اخلاقو او ديانتداری سره متصف وه نو هغوئ د اسلام راوړلو څخه وروسته هم د هغه صفاتو په وجه غوره ګرځول سوي دي.

بالکل همداسي څرنګه چي سره زر او سپين زر په کان کي دننه پراته وي چي هغه په خاورو کي د ننه کېدو په وجه په خپل اصلي حالت کي وي هر کله چي د کان څخه راوکښل سي او په بټۍ کي په اچولو سره ګرم کړل سي نو نه يوازي دا چي هغوئ په خپل اصلي حالت کي راسي بلکه د هغوئ په ښکلا کي هم زياتوب کيږي همداسي تر څو پوري چي يو سړی د کفر په تيارو کي پټ وي نو هغه که هر څومره بااخلاقه وي او په هغه کي هر څومره سخاوت او ميړانه وي غوره والی نه ورته حاصليږي مګر کله چي د کفر د پردو شکولو سره د تاريکۍ څخه راووځي او د ايمان او اسلام په قبلولو سره په علم د دين کي کمال تر لاسه کوي او بيا خپل په رياضت، مجاهده او ديني محنت او مشقت ته حواله کوي نو ددې څخه وروسته نه يوزي دا چي هغه په خپل اصلي حالت کي راسي بلکه د علم او معرفت په رڼا سره د هغه زړه او دماغ منور کيږي او هغه د عزت او عظمت و لوړو درجو او مرتبو ته رسيږي.

﴿۱۹۱﴾: وَعَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لاَ حَسَدَ إِلاَّ فِي اثْنَتَيْنِ رَجُلٌ آتَاهُ اللّٰهُ مَالاً فَسَلَّطَهُ عَلٰى هَلَكَتِهِ فِي الْحَقِّ وَرَجُلٌ آتَاهُ اللّٰهُ الْحِكْمَةَ فَهُوَ يَقْضِيْ بِهَا وَيُعَلِّمُهَا. (متفق عليه)

د حضرت ابن مسعود ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د دوو کسانو سره حسد کول صحيح دي يو هغه کس چي هغه ته الله پاك شتمني ورکړې وي او بيا يې هغه ته د الله ﷻ په لاره کي د خرڅولو توفيق هم ورکړی وي او دوهم هغه کس چي هغه ته الله پاك حکمت ورکړی وي او هغه د حکمت سره سم پريکړي کوي او د هغه تدريس هم کوي. بخاري او مسلم.

**تشريح**: حسد دې ته وايي چي د دوهم سړي سره يو نعمت ووينې نو دا آرزو وکړل سي چي کاشکي دا نعمت ما ته راسي او د هغه څخه ختم سي څرګنده ده چي دا ډير خراب خصلت او د ډير ذلت خبره ده، اسلام چي د اخلاقو د پاکۍ تر ټولو لوی بيرغ لرونکی دی دا غير اخلاقي او ذليل خصلت نه خوښوي او د دې څخه د ځان ساتني حکم ورکوي، د حسد په مقابله کي غبطه

ده، غبطه دې ته وايي چې د چا سره د يو نعمت په ليدو سره دا آرزو وکړي چې څرنګه دا نعمت د هغه سره دی په دې نعمت سره الله تعالى ما هم مشرف کړي، شريعت دا جائز ګرځوي مګر دا هم د نيکو خبرو مثلا نيک اخلاق او عادتونه، غوره خصلتونه او فضل او کمال په باره کي جائز دي، په دې حديث کي چې کوم حسد فرمايل سوی دی هغه غبطه ده.

﴿۱۹۲﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا مَاتَ الْإِنْسَانُ انْقَطَعَ عَنْهُ عَمَلُهُ إِلاَّ مِنْ ثَلاَثَةٍ صَدَقَةٍ جَارِيَةٍ أَوْعِلْمٍ يُنْتَفَعُ بِهِ أَوْ وَلَدٍ صَالِحٍ يَدْعُوْ لَهُ ) . رواه مسلم

د حضرت ابوهريرة ﷺ څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل : هر کله چې انسان مړ سي نو د هغه د عمل (د ثواب) لړۍ پرې سي مګر د درو شيانو ثواب يې بيا هم جاري وي ۱: صدقه جاريه ۲: علم چې د هغه څخه ګټه تر لاسه سي ۳: نيك اولاد چې د مرګ وروسته هغه ته دعاء کوي. مسلم.

**تشريح** : داسي اعمال چې د هغه تعلق د دنياوي ژوند سره وي د هغه اثرات د مرګ څخه وروسته په دنيا کي ختم سي مثلا لمونځ، روژه وغيره، داسي اعمال دي چې د انسان په ژوند کي ادا کيږي که څه هم د هغه ثواب په دې توګه باقي وي چې هغه د آخرت ذخيره سي او د مرګ څخه وروسته پر هغه جزا ورکول کيږئ مګر د هغه لړۍ د مرګ څخه وروسته جاري نه پاته کيږي ځکه چې په ژوند کي تر څو پوري دا اعمال کول د هغه ثواب ورته حاصليدی هر کله چې ژوند ختم سو نو دا اعمال هم ختم سول او هر کله چې دا اعمال ختم سول نو پر هغه د جزا او سزا ترتيب هم ختم سو.

مګر ځيني اعمال داسي هم دي چې د هغه د ثواب لړۍ نه يوازي دا چې په ژوند کي حاصليږي بلکه د مرګ څخه وروسته هم باقي او جاري وي د داسي اعمالو په اړه په دې حديث کي ارشاد فرمايل سوی دی. درې اعمال داسي دي چې د ژوند ختميدو څخه وروسته هم د هغه د ثواب لړۍ جاري وي او مړی د هغه څخه منتفع کيږي.

لومړنی شی صدقه جاريه ده يعني که يو سړی د الله تعالى په لار کي مځکه وقف کړي، يا څاه، تالاب وغيره يې جوړ کړی وي يا داسي د مخلوق د ګټي لپاره يو بل شی يې تر شا پرې ايښی وي نو تر څو پوري چې هغه شيان قائم وي او خلک د هغه څخه ګټه اخلي هغه ته به يې ثواب رسيږي.

دوهم شی علم نافع دی، يعني داسي عالم وفات سي چې په خپل ژوند کي هغه خلکو ته د خپل علم څخه ګټه ورسول او بيا يې خپل علوم او معارف د کتاب په ذريعه محفوظ کړل چې

همیشه د خلکو لپاره کټور او د رشد او هدایت سبب جوړیږي یا یو داسي سړی یې شاګرد جوړ کړي چي د هغه د علم صحیح وارث دی چي د هغه څخه خلک ګټه اخیستلای سي نو دا ټول شیان داسي دي چي د ژوند ختمېدو څخه وروسته به د هغه لپاره سرمایه او سعادت وي او د هغه ثواب به هغه ته رسیږي

دریم شی صالح اولاد دی ، ظاهره ده چي د انسان لپاره تر ټولو لوی سعادت او د افتخار وړ شی صالح اولاد دی ، ځکه چي صالح اولاد نه یوازي دا چي د مور او پلار لپاره په دنیا کي د سکون او راحت باعث جوړیږي بلکه د هغوئ د وفات څخه وروسته د هغوئ لپاره د نجات وسیله او فلاح ذریعه هم جوړیږي او هغه داسي چي نیک او لائق زوی د خپل مور او پلار قبرونو ته ځي هلته فاتحه خواني کوي ،د مغفرت دعا کوي ، په قرآن کریم ویلو سره هغوئ ته یې بخښي او د هغوئ د لوري خیرات او صدقې کوي ، او څرګنده ده چي دا ټول شیان د مړي لپاره د ثواب باعث دي چي په هغه سره هغه په اُخروي ژوند کي کامیاب کیږي .

﴿۱۹۳﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ نَفَّسَ عَنْ مُؤْمِنٍ كُرْبَةً مِنْ كُرَبِ الدُّنْيَا نَفَّسَ اللّٰهُ عَنْهُ كُرْبَةً مِّنْ كُرَبِ يَوْمِ الْقِيَامَةِ وَمَنْ يَّسَّرَ عَلٰى مُعْسِرٍ يَّسَّرَ اللّٰهُ عَلَيْهِ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ .وَمَنْ سَتَرَ مُسْلِمًا سَتَرَهُ اللّٰهُ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ وَاللّٰهُ فِيْ عَوْنِ الْعَبْدِ مَا كَانَ الْعَبْدُ فِيْ عَوْنِ أَخِيْهِ وَمَنْ سَلَكَ طَرِيْقًا يَلْتَمِسُ فِيْهِ عِلْمًا سَهَّلَ اللّٰهُ لَهُ بِهِ طَرِيْقًا إِلَى الْجَنَّةِ وَمَا اجْتَمَعَ قَوْمٌ فِيْ بَيْتٍ مِّنْ بُيُوْتِ اللّٰهِ يَتْلُوْنَ كِتَابَ اللّٰهِ وَيَتَدَارَسُوْنَهُ بَيْنَهُمْ إِلاَّ نَزَلَتْ عَلَيْهِمُ السَّكِيْنَةُ وَغَشِيَتْهُمُ الرَّحْمَةُ وَحَفَّتْهُمُ الْمَلَائِكَةُ وَذَكَرَهُمُ اللّٰهُ فِيْمَنْ عِنْدَهُ وَمَنْ بَطَّأَ بِهِ عَمَلُهُ لَمْ يُسْرِعْ بِهِ نَسَبُهُ . رواه مسلم .

د حضرت ابوهریرة ﷛ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : څوك چي یو مسلمان د دنیا د سختیو او ستونزو څخه خلاص کړي نو الله تعالی به هغه د قیامت په ورځ د قیامت د سختیو څخه خلاص کړي او چا چي د یو تنګدست مشکل آسان کړ نو الله به په دنیا او آخرت کي پر هغه آساني راولي او چا چي د یو مسلمان عیب پټ کړ نو الله تعالی به په دنیا او آخرت کي د هغه پرده پوشي وکړي او الله پاك تر هغه وخته پوري د بنده مرسته کوي تر څو چي هغه د خپل مسلمان وروړ مرسته کوي ، څوك چي د علم په لټه کي وي الله پاك به پر هغه د جنت لار آسانه کړي او کوم خلك چي د الله کور (مسجد یا مدرسه) کي را ټول سي د الله کتاب وايي او نورو ته یې ښیي تو پر هغوئ دالله پاك تسکین نازلیږي د الله رحمت پر هغوئ خپور سي او ملائکي شاوخوا پر را ټولي سي

او الله پاك د هغو خلکو يادونه د هغه ملائکو په وړاندي کوي کوم چي د هغه سره وي او چا چي په عمل کي کوتاهي وکړه نو د هغه نسب به د هغه پکار ور نه سي . مسلم .
**تشريح** : د دغه حديث څخه د اسلام د اخلاقي تعليماتو د عظمت او غوره والي معلومات کيږي ، اسلام د خپلو تعليماتو په ذريعه د پوره انسانيت په منځ کي د ميني او مروت انساني همدردي ، مرسته او معاونيت، او د حسن سلوک اعلی روح پيدا کول غواړي چي انسان د اخلاق او ميني په يو کړۍ کي په منسلک کېدو سره په پوره امن او سکون او راحت سره د بندګۍ حقوق ادا کړي.
فرمايل سوي دي که تاسو د قيامت د ورځي د سختۍ څخه ځان ساتل غواړئ نو تاسو د خپل هغه ورور خبر اخلي چي د دنيا په سختۍ کي موښتی وي که پر هغه يو سخت وخت راغلی وي نو د هغه مرسته وکړئ که هغه په ژوند کي په يو مشکل کي وي نو خلاصون ورکړئ ، که په مصيبت او تکليف کي اخته وي نو هغه ځيني ليري کړئ ځکه چي د حسن سلوک دا هغه لار ده چي پر هغه باندي په تلو سره تاسو د آخرت د سختيو څخه په ډېره اساني سره تيريدای سئ ، اعلان کيږي که تاسو د دين او دنيا دواړه ځايونو آساني غواړئ او ددې خواهشمند ياست چي د دنيا کاميابي ستاسو قدمونه مچ کړي او د اخرت فلاح او سعادت ستاسو په برخه کي راسي نو د خپل ورور مرسته وکړئ کوم چي تنګدست وي ، د مفلسۍ په جال کي موښتی وي ، د بې کارۍ او تباه حالۍ په چکر کي وي که هغه پوروړی وي او الله تعالی تاسو وسعت درکړی دی نو د هغه قرض ادا کړئ که ځوک خپله ستاسو پوروړی وي او تاسو پوهيږئ چي هغه پر قرض ادا کولو باندي قادر نه دی نو قرض ورته معاف کړئ که ځوک ډير پريشان وي نو د هغه مرسته کولو سره هغه خلاص کړئ ، که يو ځوک د خپل مفلسۍ په وجه خپل ضرورت نسي پوره کولای نو تاسو د هغه ضرورت پوره کړئ ، بيا وګورئ چي الله تعالی څرنګه زيات تاسو خپل په رحمت کي پټوي، د دنيا عزت او عظمت به ستاسو په قدمونو کي لوبي کونکي ووينئ او د ژوند هره آساني به ستاسو لپاره تياره وي او نه يوازي په دنيا کي بلکه په آخرت کي به هم د الله تعالی رحمت ستاسو سره وي د هغه ځای په هره سختۍ او ازموينه کي به ستاسو حسن سلوک ستاسو مرستيال او معاون وي او تاسو به د هغه ځای په هر امتحان کي کامياب ياست، همداسي فرمايل سوي دي که تاسو په دنيا او آخرت کي پر خپل عيبونو باندي پرده اچول غواړئ نو په دنيا کي د خپل ورور پرده پټوئ يعني د يو چا عيب د خلکو په مخکي په بيانولو سره هغه مه

رسوا او ذليل كوئ يا كه د يو چا څخه يو ګناه وسي نو هغه د خلكو په مخكي په ښكاره ولو سره هغه مه شرمنده كوئ ځكه چي دا د الله تعالى معامله ده كه هغه غواړي نو په دنيا كي يا په آخرت كي به سزا وركړي كنه په خپل رحمت سره به يې معاف كړي.

يا د پردې پټولو مطلب دادى چي يو څوک د خپل ناداري او مفلسى په وجه د جامې د نعمت څخه محروم دى او دومره غريب دى چي خپل ستر هم نسي پټولاى نو پكار ده چي د خپل دغه ناچار ورور پرده پټه كړل سي ځكه چي څوک د خپل ورور پرده پټه كړي نو الله تعالى به په دنيا او قيامت كي د هغه د عيبونو او ګناهونو پرده پټه كړي، او په پاى كي په عامه توګه سره دا كليه ښودل سوې ده چي تر څو پوري يو بنده د خپل ورور په مرسته كي لګيدلى وي او د الله تعالى د مخلوق په خبر اخستلو كي مصروف وي نو د هغه سره د الله تعالى مرسته او نصرت وي.

په حديث شريف كي د طلب علم او طالب علم فضيلت ښكاره سوى دى لكه چي ارشاد دى: كوم سړى چي د علم دين د حصول لپاره خپل هيواد اوښار پرېښودو سر د خپل قريبانو څخه په بيليدو سره د عيش او آرام د ژوند پرېښودو سره د حصول علم د جذبې سره ووځي او د علم د تر لاسه كولو لپاره د مسافرۍ پر لار روان سي نو الله تعالى د هغه ددغه رياضت او تكليف او پريشانۍ په وجه پر هغه د جنت لار آسانه كوي يعني د طالب علم د هځو په بدله كي هغه په جنت كي داخلوي يا دا چي هغه ته به د الله تعالى د لوري د هغه عظيم سعادت توفيق وركړي چي هغه د كوم علم په لټه كي دومره مصيبتونه او تكليفونه زغمي او پر دې هغه نيک عمل هم وكړي چي په جنت كي د داخليدو سبب او باعث دي.

همدارنګه كوم خلک چي په مسجدونو او مدرسو كي د علم په تر لاسه كولو كي بوخت وي او د قرآن كريم د علوم او معارف څخه په استفاده كولو او نورو ته په ښودلو كي بوخت وي پر هغوئ د الله تعالى د لوري د بې پايه رحمت دروازې خلاصيږي او پر هغوئ د الله تعالى د لوري د تسكين نزول كيږي يعني د علم د طلب په لړ كي اطمينان او د زړه سكون وي چي د هغه په وجه د هغوئ زړونه د دنيا د عيش او عشرت، راحت او آرام او د غير الله د خوف څخه پاک صاف كېدو سره هر وخت د الله تعالى په لوري په محبت كي لګيدلي وي او د هغه نتيجه دا وي چي د هغوئ زړونه د نور الهي په مقدسه رڼا سره ځليږي، ملائكي د هغوئ عزت او توقير كوي او فرط عقيد څخه پر هغه خلكو چاپيره وي، بيا الله تعالى د هغه مقدسي ډلي چي په درس او

تدريس كي بوختي وي د خپلو هغه ملائكو په مينځ كي يادوي كوم چي د هغه سره وي دا د هغه ډلي د ډير عظمت او فضيلت دليل دی.

د حديث په پای كي دې خبري ته اشاره وفرمايل سول چي د آخرت كاميابي ، فلاح او سعادت دار او مدار پر عمل باندي دی كه په دنيا كي د خير په عمل كي كوتاهي ونه كړي نو په آخرت كي به د عزت او عظمت حقدار وي او كه په دنيا كي يو چا په عمل كي كوتاهي وكړه كه څه هم په دنيا كي هر څومره بااقبال او باعظمت وي او هر څومره لوی حسب او نسب والا وي په آخرت كي به د هغه څخه پوښتنه كيږي او هلته به ددنيا عالي نسبي او دبدبه هيڅ په كار نه ورځي. شعر:

| | |
|---|---|
| بنده عشق شدي ترک نسب كن جامي | كه درين راه فلان ابن فلان چيزي نيست |

﴿۱۹۴﴾ : وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ أَوَّلَ النَّاسِ يُقْضٰى عَلَيْهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ رَجُلٌ اسْتُشْهِدَ فَأُتِيَ بِهِ فَعَرَّفَهُ نِعَمَهُ فَعَرَفَهَا فَقَالَ فَمَا عَمِلْتَ فِيهَا ؟ قَالَ قَاتَلْتُ فِيكَ حَتّٰى اسْتُشْهِدْتُ قَالَ كَذَبْتَ وَلٰكِنَّكَ قَاتَلْتَ لِأَنْ يُقَالَ جَرِيْءٌ فَقَدْ قِيلَ ثُمَّ أَمَرَ بِهِ فَسُحِبَ عَلٰى وَجْهِهِ حَتّٰى أُلْقِيَ فِي النَّارِ وَرَجُلٌ تَعَلَّمَ الْعِلْمَ وَعَلَّمَهُ وَقَرَأَ الْقُرْآنَ فَأُتِيَ بِهِ فَعَرَّفَهُ نِعَمَهُ فَعَرَفَهَا قَالَ فَمَا عَمِلْتَ فِيهَا؟ قَالَ تَعَلَّمْتُ الْعِلْمَ وَعَلَّمْتُهُ وَقَرَأْتُ فِيكَ الْقُرْآنَ قَالَ كَذَبْتَ وَلٰكِنَّكَ تَعَلَّمْتَ الْعِلْمَ لِيُقَالَ عَالِمٌ وَقَرَأْتَ الْقُرْآنَ لِيُقَالَ هُوَ قَارِئٌ فَقَدْ قِيلَ ثُمَّ أُمِرَ بِهِ فَسُحِبَ عَلٰى وَجْهِهِ حَتّٰى أُلْقِيَ فِي النَّارِ وَرَجُلٌ وَسَّعَ اللّٰهُ عَلَيْهِ وَأَعْطَاهُ مِنْ أَصْنَافِ الْمَالِ كُلِّهِ فَأُتِيَ بِهِ فَعَرَّفَهُ نِعَمَهُ فَعَرَفَهَا قَالَ فَمَا عَمِلْتَ فِيهَا ؟ قَالَ مَا تَرَكْتُ مِنْ سَبِيلٍ تُحِبُّ أَنْ يُنْفَقَ فِيهَا إِلَّا أَنْفَقْتُ فِيهَا لَكَ قَالَ كَذَبْتَ

د حضرت ابوهريرة ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل :تر ټولو لومړی كس چي پر هغه به د قيامت په ورځ (د خلوص نيت د پرېښودلو) حكم ولګول سي هغه وي چي شهيد سوی وي ، هغه به د قيامت ميدان ته راوستل سي او الله به هغه ته خپل نعمتونه ور ياد كړي او هغه به ټول هغه ته ور ياد سي بيا به الله پاك وفرمايي تا د هغه نعمتو په شكر كي څه وكړل هغه به وايي ما ستا په لار كي غزا وكړل تر دې چي شهيد سوم الله تعالى به ورته وفرمايي ته دروا‌غجن يې ته خو د دې لپاره جنګېدلی وې چي خلك تا ته زړه ور ووايي نو تا ته زړه ور وويل سول بيا به حكم وركړل سي چي دی دي پړمخی په اور كي وغورزول سي ، بيا به هغه كس وي چي هغه علم تر لاسه كړی وي او بل ته يې ښودلی وي او قرآن يې ويلی وي هغه به د الله تعالى په حضور كي راوستل سي او الله تعالى به هغه ته خپل نعمتونه ور ياد كړي هغه ته به ور ياد سي بيا به الله تعالى د هغه څخه پوښتنه وكړي تا

وَلٰكِنَّكَ فَعَلْتَ لِيُقَالَ هُوَ جَوَادٌ فَقَدْ قِيْلَ ثُمَّ أُمِرَ بِهٖ فَسُحِبَ عَلٰى وَجْهِهٖ ثُمَّ أُلْقِيَ فِي النَّارِ . رواه مسلم

ددې نعمتو شکر څنګه ادا کړ يعني څه کار دي وکړ هغه به وايي ما علم زده کړ او نورو ته مي هم وښودی او ستا لپاره مي قرآن كريم ووايه ، الله تعالى به ورته وفرمايي ته دروا غجن يې تا خو علم د دې لپاره زده کړی وو چي خلك تاته قاري او عالم ووايي نو تاته عالم او قاري وويل سول بيا به ږغ وکړل سي چي دی دي پړمخی و غورزول سي او په اور کي دي واچول سي ، بيا به هغه کس راسي چي هغه ته الله پاك پراخي ورکړې وه د هغه روزي يې زياته کړې وه او ډول ډول مال او دولت يې ورکړی وو هغه به د الله تعالى په حضور کي حاضر کړل سي او الله به هغه ته خپل نعمتونه ور ياد کړي هغه به دغه نعمتونه ياد کړي بيا به الله تعالى پوښتنه وکړي ددې نعمتو په شکر کي تا څه کار وکړ هغه به وايي ما په هيڅ يو داسي لاره کي خرڅ کول نه دي پرې ايښي په کوم کي چي خرڅ کول پکار وه او ستا د رضا لپاره مي په هغه کي خرڅ کاوه ، الله تعالى به ورته وفرمايي ته دروا غجن يې تا خو ددې لپاره خرڅ کړی وو چي تا ته سخي وويل سي نو تاته سخي وويل سول حکم به ورکړل سي او هغه به پړمخی وغورزول سي او په اور کي به واچول سي . مسلم .

**تشريح** : په اعمالو کي د نيت کومه درجه ده او د خلوص څومره ضرورت دی ؟ په دې حديث کي په ښه ډول واضح کيږي ، بنده که هر څومره لوی د خير عمل وکړي او لويه نيکي وکړي مګر د هغه نيت که پر خير نه وي نو د هغه عمل او نيکي به هيڅ په کار نه راځي ، الله تعالى ته هغه عمل خوښ دی چي په هغه کي صرف د الله تعالى رضا او د هغه خوښي نيت وي او د اطاعت جذبه د خلوص څخه ډکه وي کنه کوم عمل چي پرته د اخلاص او پرته د خير دنيت څخه وکړل سي که هغه هر څومره عظيم عمل وي د الله تعالى د دربار څخه رد کيږئ او پر هغه هيڅ کټوره نتيجه نه مرتب کيږي بلکه په عذاب الهي کي نيول کيږي څرنګه چي د دې حديث څخه معلومه سوه .

﴿۱۹۵﴾: وَعَنْ عَبْدِاللهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ اللهَ لَا يَقْبِضُ الْعِلْمَ اِنْتِزَاعًا يَنْتَزِعُهُ مِنَ الْعِبَادِ وَلٰكِنْ يَّقْبِضُ الْعِلْمَ بِقَبْضِ الْعُلَمَاءِ حَتّٰى إِذَا لَمْ يُبْقِ عَالِمًا اِتَّخَذَ النَّاسُ رُءُوْسًا جُهَّالًا فَسُئِلُوْا فَأَفْتَوْا بِغَيْرِ عِلْمٍ فَضَلُّوْا وَأَضَلُّوْا . ( متفق عليه )

د حضرت عبدالله بن عمرو ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : الله پاك به علم (په آخري زمانه کي) داسي نه پورته کوي چي هغه علم به د خلکو د زړو او دماغ څخه وکاږي بلکه علم به داسي پورته کړل سي چي علماء به واخيستل سي (يعني عالمان به وفات سي) تر دې چي هيڅ يو عالم به پاته نه سي نو خلك به جاهلان خپل پيشوا جوړ کړي د هغوئ څخه به د دين

خبري پوښتي او هغوئ به بېله علمه فتوا ورکوي هغوئ به په خپله هم گمراه وي او نور به هم گمراه کوي بخاري او مسلم

﴿۱۹۶﴾ : وَعَنْ شَقِيْقٍ قَالَ كَانَ عَبْدُاللهِ يُذَكِّرُ النَّاسَ فِيْ كُلِّ خَمِيْسٍ فَقَالَ لَهُ رَجُلٌ يَا أَبَا عَبْدِالرَّحْمٰنِ لَوَدِدْتُ أَنَّكَ ذَكَّرْتَنَا فِيْ كُلِّ يَوْمٍ قَالَ أَمَا إِنَّهُ يَمْنَعُنِيْ مِنْ ذٰلِكَ أَنِّيْ أَكْرَهُ أَنْ أُمِلَّكُمْ وَإِنِّيْ أَتَخَوَّلُكُمْ بِالْمَوْعِظَةِ كَمَا كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَخَوَّلُنَا بِهَا مَخَافَةَ السَّآمَةِ عَلَيْنَا .(متفق عليه)

د حضرت شقيق[۱] ؓ څخه روايت دی چي حضرت عبدالله بن مسعود ؓ به هره پنجشنبه خلکو ته نصيحت کاوه (يوه ورځ) يو سړی هغه ته وويل اې ابوعبدالرحمن زه غواړم چي تاسو هره ورځ موږ ته نصيحت وکړئ ، عبدالله بن مسعود ؓ ورته وفرمايل زه داسي ځکه نه کوم چي ستاسو به زړه موړ سي ، زه د نصيحت په اړه تاسو ته دا پاملرنه درکوم لکه څرنگه چي رسول الله ﷺ زموږ پاملرنه کول او زموږ د تنگيو خيال به يې ساته . بخاري او مسلم

**تشريح** : د دغه حديث څخه دا خبره واضح سول چي د وعظ او نصيحت په معامله کي د ميانه روۍ څخه کار اخيستل پکار دي هر وخت او په هر ځای کي وعظ او نصيحت کول پکار نه دی ځکه چي په دې سره د خلکو زړونه تنگيږي ، نتيجه به داسي چي هغوئ به هيڅکله خبره په سکون او د زړه په اخلاص سره نه اوري بلکه پر هغوئ به يو ښه اثر هم نه مرتب کيږي همداسي په دې معامله کي رټل، لعنت ويل، بدمزاجي او بداخلاقي کول هم نه دي پکار ځکه چي په دې سره د مخاطب په ذهن کي خراب اثر لويږي چي په هغه سره پر ځای د دې چي هغه يو نيک اثر قبول کړي نور زيات خلاف سي، کوم نصيحت چي پر خپل وخت باندي او په ډير اخلاق او مينه او شفقت سره کيږي په اصل کي هغه د مخاطب په زړه کي اثر کوي او هغه غوره ثمره مرتب کيږي .

﴿۱۹۷﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا تَكَلَّمَ بِكَلِمَةٍ أَعَادَهَا ثَلَاثًا حَتّٰى تُفْهَمَ عَنْهُ وَإِذَا أَتٰى عَلٰى قَوْمٍ فَسَلَّمَ عَلَيْهِمْ سَلَّمَ عَلَيْهِمْ ثَلَاثًا . رواه البخاري .

د حضرت انس ؓ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به يو خبره کول نو درې واره به يې هغه تکرارول تر څو چي خلک به ښه په پوه سول او کله چي به رسول الله ﷺ يو ډلي ته نژدې تيريدی او هغوئ ته به يې د سلام کولو اراده کول نو درې واره به يې ورته سلام کاوه . بخاري

[۱] د نوموړي نوم شقيق ابن مسلمه او کنيت يې ابو وايل دی ، نوموړی تابعي دی د حجاج په زمانه کي وفات سوی دی خيني وايي چي په (۹۹هـ) کال کي وفات سوی دی .

**تشریح** : د دې دا مطلب نه دی چې رسول الله ﷺ به د هرې خبرې په وخت کې داسې عمل اختیاروئ بلکه مطلب دادی چې کله به رسول کریم ﷺ یوه ډیر مهمه خبره کول یا د یو خاص مسئلې وضاحت به مقصود وو یا یو دیني حکم به یې بیانوي او دا اراده به یې وه چې دا خبره په خاصه توګه بیانول دې یا دا خیال به یې وو چې خلکو به په ښه ډول سره خبره نه وي اوریدلې نو رسول الله ﷺ به درې ځله هغه خبره تکرارول او هغه خبره به یې په ځو واره کول چې خلک یې ښه واوري او پوه سي.

همدارنګه درې ځله سلام به یې ځکه کوی چې یو سلام خو به رسول الله ﷺ هغه وخت کوی هر کله چې یو ځای ته دننه د ورتلو اجازه به یې غوښتل، دوهم سلام تحیة به یې کوی (دا سلام د ملاقات په وخت کې کیږي) او دریم سلام به یې د رخصت پر وخت کوئ.

﴿۱۹۸﴾ : وَعَنْ أَبِيْ مَسْعُوْدِ الْأَنْصَارِيِّ قَالَ جَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ إِنَّهُ أُبْدِعَ بِيْ فَاحْمِلْنِيْ فَقَالَ مَا عِنْدِيْ فَقَالَ رَجُلٌ يَا رَسُوْلَ اللهِ أَنَا أَدُلُّهُ عَلَى مَنْ يَحْمِلُهُ فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ دَلَّ عَلَى خَيْرٍ فَلَهُ مِثْلُ أَجْرِ فَاعِلِهِ . رواه مسلم.

د حضرت ابومسعود[۱] الانصاري ﷺ څخه روایت دی چې یو سړی د نبي کریم ﷺ په خدمت کې حاضر سو او عرض یې وکړ چې زه د سپرلۍ څخه عاجزه سوی یم تاسو یو سپرلۍ راته راکړئ ، رسول الله ﷺ وفرمایل : زما سره سپرلۍ نسته یو بل سړي وویل اې دالله رسوله ! زه داسې سړی درته وښیم چې سپرلۍ ورکړي ، رسول الله ﷺ وفرمایل څوک چې د نیکۍ په لور لارښوونه وکړي نو هغه ته هم دومره ثواب رسیږي څومره چې نیکي کونکي ته رسیږي.

﴿۱۹۹﴾: وَعَنْ جَرِيْرٍ قَالَ كُنَّا فِي صَدْرِ النَّهَارِ عِنْدَ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَجَاءَهُ قَوْمٌ حُفَاةٌ عُرَاةٌ مُجْتَابِي النِّمَارِ أَوِ الْعَبَاءِ مُتَقَلِّدِي

د حضرت جریر[۲] ﷺ څخه روایت دی چې موږ د ورځې په پیل کې د رسول الله ﷺ په خدمت کې ناست وو ، د رسول الله ﷺ په خدمت کې څو خلک

---

[۱] د نوموړي نوم عقبه ابن عمره دی مګر دی هم په ابومسعود انصاري کنیت سره مشهور دی ، د حضرت علي ﷺ د خلافت په زمانه کې وفات سوی دی ځیني خلک وایي چې په (۴۱) یا (۴۲هـ) کال کې وفات سوی دی ﷺ.

[۲] د نوموړي نوم جریر بن عبدالله دی او کنیت یې ابوعمرو یا ابوعبدالله دی د قبیله بحیله سره تعلق لري د رسول الله ﷺ د وفات څخه څلوېښت ورځې مخکې د اسلام په نعمت مشرف سو او د قرئیسیا په ځای کې په کال (۵۱هـ) یا (۵۲هـ) کې وفات سوی دی ﷺ.

السُّيُوفِ عَامَّتُهُمْ مِنْ مُضَرَ بَلْ كُلُّهُمْ مِنْ مُضَرَ فَتَمَعَّرَ وَجْهُ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِمَا رَأَى بِهِمْ مِنَ الْفَاقَةِ فَدَخَلَ ثُمَّ خَرَجَ فَأَمَرَ بِلاَلاً فَأَذَّنَ وَأَقَامَ فَصَلَّى ثُمَّ خَطَبَ فَقَالَ (يَا أَيُّهَا النَّاسُ اتَّقُوا رَبَّكُمْ الَّذِي خَلَقَكُمْ مِنْ نَفْسٍ وَاحِدَةٍ إِلَى آخِرِ الْآيَةِ إِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَلَيْكُمْ رَقِيبًا ) وَالْآيَةَ الَّتِي فِي الْحَشْرِ ( اتَّقُوا اللّٰهَ وَلْتَنْظُرْ نَفْسٌ مَا قَدَّمَتْ لِغَدٍ ) تَصَدَّقَ رَجُلٌ مِنْ دِينَارِهِ مِنْ دِرْهَمِهِ مِنْ ثَوْبِهِ مِنْ صَاعِ بُرِّهِ مِنْ صَاعِ تَمْرِهِ حَتَّى قَالَ وَلَوْ بِشِقِّ تَمْرَةٍ قَالَ فَجَاءَ رَجُلٌ مِنَ الْأَنْصَارِ بِصُرَّةٍ كَادَتْ كَفُّهُ تَعْجِزُ عَنْهَا بَلْ قَدْ عَجَزَتْ قَالَ ثُمَّ تَتَابَعَ النَّاسُ حَتَّى رَأَيْتُ كَوْمَيْنِ مِنْ طَعَامٍ وَثِيَابٍ حَتَّى رَأَيْتُ وَجْهَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَهَلَّلُ كَأَنَّهُ مُذْهَبَةٌ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ سَنَّ فِي الْإِسْلَامِ سُنَّةً حَسَنَةً فَلَهُ أَجْرُهَا وَأَجْرُ مَنْ عَمِلَ بِهَا بَعْدَهُ مِنْ غَيْرِ أَنْ يَنْقُصَ مِنْ أُجُورِهِمْ شَيْءٌ وَمَنْ سَنَّ فِي الْإِسْلَامِ سُنَّةً سَيِّئَةً كَانَ عَلَيْهِ وِزْرُهَا وَوِزْرُ مَنْ عَمِلَ بِهَا مِنْ بَعْدِهِ مِنْ غَيْرِ أَنْ يَنْقُصَ مِنْ أَوْزَارِهِمْ شَيْءٌ (رواه مسلم)

حاضر سول چي لوڅ وه او پر بدن يې كمبلي وغيره اچولي وې او په غاړو كي يې توري زړېدلې په هغو كي زيات بلكه ټول د مضر د قبيلې خلك وه هغوئ يې وږي وليدل نو د رسول الله ﷺ د مخ رنگ بدل سو ، رسول الله ﷺ چي دوئ په لوږه كي وليدل نو كور ته يې تشريف يووړ كله چي راووتی نو بلال ته يې د آذان كولو حكم وركړ نو تكبير وسو لمونځ ادا سو او په وعظ كي يې دا آيت تلاوت كړ : ياايها الناس اتقوا ربكم الذين ...... الخ (اې خلكو د خپل پروردگار څخه و بيريږئ چي تاسو يې د يوه نفس (آدم ﷺ) څخه پيدا كړي ياست ) د آيت تر پايه پوري . چي د هغه آخري برخه داده البته الله ستاسو ساتونكی دی بيا يې هغه آيت تلاوت كړ كوم چي په سورة حشر كي دی يعني د الله څخه و بيريږئ او هر چا ته پكار ده چي هغه پر هغه شي نظر وساتي كوم چي يې د سبا (قيامت) لپاره ترمخه استولی دی ، بيا رسول الله ﷺ وفرمايل : سړی دي د خپل دينار څخه د خپل درهم څخه د خپلو جامو څخه د خپلو غنمو د پيمانو څخه د خپلو خرماوو څخه تر دې چي رسول الله ﷺ وفرمايل خيرات دي كړي كه څه هم د خرما يوه ټوټه وي ، د راوي (جرير) بيان دی چي (د دې په اورېدو سره) يو انصاري سړي يوه هميانۍ راوړل چي د هغې د دروندوالي له كبله نژدې وه چي لاس يې ستړی سي بلكه د هغه لاس ستړی سوی وو بيا خلكو شيان راوړل پيل كړل تر څو چي ما وليدل چي د غلو او جامو دوې كوټنۍ جوړي سوې بيا مي وليدل چي د رسول الله ﷺ مخ مبارك ځلانده سو ،بيا رسول الله ﷺ وفرمايل : څوك چي په اسلام كي د يو نيكي طريقه رواج كړي هغه ته به د هغې ثواب رسيږي او د هغه ثواب هم د هغه وروسته به پر هغه عمل كيږي مگر د عمل

كونكو په ثواب كي به هيڅ كمي نه راځي او چا چي په اسلام كي يوه خرابه طريقه رواج كړل نو پر هغه به د هغه ګناه هم وي او د هغه كس ګناه به هم وي چي د هغه وروسته عمل په كوي مګر د عمل كونكي په ګناه كي به هيڅ كمي نه راځي .مسلم شريف .

**تشريح** : رسول الله ﷺ چي مخكي آيت تلاوت كړ هغه په سورة النساء كي دى ، په دې آيت كي د خيرات كولو او د قريبانو سره د ښه چلن او د هغوئ د حقونو د ادا كولو په باره كي ذكر سوى دى چي په هغه سره رسول كريم ﷺ صحابه كرامو ته د خيرات كولو او د راغلي ډلي پر مرسته او اعانت باندي ترغيب وركړ .

د حديث په پيل كي د راوي بيان دى چي راغلي ډلي كمبل يا عبا اچولي وه ، د راوي اشتباه ده چي يا خو په حديث كي لفظ د النمار دى يا العباء دى ، په هر حال دواړه د كمبل ډولونه دي او د دواړو معناه يوه ده .

﴿۲۰۰﴾: وَ عَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لاَ تُقْتَلُ نَفسٌ ظُلْمًا اِلاَّ كَانَ عَلَى ابْنِ آدَمَ الْأَوَّلَ كِفْلٌ مِنْ دَمِهَا لِأَنَّهُ أَوَّلُ مَنْ سَنَّ الْقَتْلَ . وَسَنَذْكُرُ حَدِيْثَ مُعَاوِيَةَ لاَ يَزَالُ مِنْ أُمَّتِيْ فِيْ بَابِ ثَوَابِ هٰذِهِ الْأُمَّةِ إِنْ شَاءَ اللّٰهُ تَعَالَى .

د حضرت ابن مسعود ﷺ څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل : هر كله چي يو ثوك په ظلم سره ووژل سي نو د آدم ﷺ پر لومړني زوى (قابيل) باندي د هغه يوه برخه راځي ځكه چي هغه لومړنى سړى دى چي د قتل طريقه يې رواج كړل (بخاري او مسلم) او د معاويه هغه حديث چي د هغه پيل دادى : لايزال من امتي .... هغه به موږ انشاء الله په باب د (ثواب هذه الامة) كي ذكر كړو .

**تشريح** : د انساني ظلم او ستم تاريخ د حضرت آدم ﷺ د لومړني زوى قابيل د ژوند څخه پيل كيږي چي هغه د خپل يو معمولي نفساني خواهش د پوره كولو لپاره خپل حقيقي ورور هابيل قتل كړ ، څرنګه چي مخكي بيان سوي دي هر كله چي يو ثوک يوه نيكه طريقه رواج كوي نو هغه ته د هغه نيک كار ثواب هم وركول كيږي همداسي خرابه طريقه رواج كونكي ته خپله د هغه عمل او د هغه طريقې باندي د عمل كونكي هم ګناه وركول كيږي ، ځكه چي دلته فرمايل سوي دي چي كله يو سړى د ظلم په طريقه قتل كيږي نو د هغه د خون يوه برخه پر قابيل هم وي ځكه چي د ناحقويني تويولو او ظلم او ستم سره د قتل اول موجد (پيدا كونكى) هغه دى .

# الفصل الثاني

﴿۲۰۱﴾: عَنْ كَثِيْرِ بْنِ قَيْسٍ قَالَ كُنْتُ جَالِسًا مَعَ أَبِي الدَّرْدَاءِ فِيْ مَسْجِدِ دِمَشْقَ فَجَاءَهُ رَجُلٌ فَقَالَ يَا أَبَا الدَّرْدَاءَ إِنِّيْ جِئْتُكَ مِنْ مَدِيْنَةِ الرَّسُوْلِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِحَدِيْثٍ بَلَغَنِيْ اَنَّكَ تُحَدِّثُهُ عَنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا جِئْتُ لِحَاجَةٍ قَالَ فَإِنِّيْ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ مَنْ سَلَكَ طَرِيْقًا يَطْلُبُ فِيْهِ عِلْمًا سَلَكَ اللّٰهُ بِهِ طَرِيْقًا مِنْ طُرُقِ الْجَنَّةِ وَاَنَّ الْمَلَائِكَةَ لَتَضَعُ أَجْنِحَتَهَا رِضًا لِطَالِبِ الْعِلْمِ وَإِنَّ الْعَالِمَ لَيَسْتَغْفِرُ لَهُ مَنْ فِي السَّمٰوٰاتِ وَمَنْ فِي الْأَرْضِ وَالْحِيْتَانُ فِيْ جَوْفِ الْمَاءِ وَإِنَّ فَضْلَ الْعَالِمِ عَلَى الْعَابِدِ كَفَضْلِ الْقَمَرِ لَيْلَةَ الْبَدْرِ عَلٰى سَائِرِ الْكَوَاكِبِ وَإِنَّ الْعُلَمَاءَ وَرَثَةُ الْأَنْبِيَاءِ وَإِنَّ الْأَنْبِيَاءَ لَمْ يُوَرِّثُوْا دِيْنَارًا وَلَا دِرْهَمًا وَإِنَّمَا وَرَّثُوْا الْعِلْمَ فَمَنْ أَخَذَهُ أَخَذَ بِحَظٍّ وَافِرٍ.

رواه أحمد والترمذي وأبو داود وابن ماجه والدارمي وسماه الترمذي قيس بن كثير.

د حضرت کثیر بن قیس ؓ څخه روایت دی چي زه په دمشق کي د ابودرداء ؓ سره ناست وم یو سړی هغه ته راغلی او ورته وه یې وویل اې ابودرداء! زه د رسول الله ﷺ د مدینې د ښار څخه ددې لپاره راغلی یم چي ستاسره یو حدیث دی چي ته یې د رسول الله ﷺ څخه روایت کوې او ددې پرته بل څه غرض نه لرم ، ابودرداء ؓ ورته وویل ما درسول الله ﷺ څخه اورېدلي دي څوک چي د علم د تر لاسه کولو لپاره سفر غوره کړي نو الله تعالی هغه د جنت پر لار روانوي او ملائکي د هغه د رضامندۍ لپاره په خپلو وزرونو سره پر هغه سایه کوي او د عالم لپاره هر هغه شی چي په آسمانونو کي وي لکه (ملائکي) او څه چي په مځکه کي وي (لکه انسان، پیریانان، حیوانان وغیره) ټول مخلوقات د هغه لپاره بخښنه غواړي تر دې چي ماهیان په اوبو کي دننه د هغه لپاره د بخښني دعاء کوي او عالم ښېګڼه پر عابد داسي ده لکه د څورلسمي شپې د سپوږمۍ ښېګڼه چي پر ستورو ده ، او عالمان د پیغمبرانو وارثان دي او د انبیاؤ میراث درهم او دینار نه دي بلکه د هغوئ میراث علم دئ چي د هغه وارث (هغوئ) عالم جوړ کړی دی نو چا چي علم تر لاسه کړ هغه پوره برخه تر لاسه کړل . احمد، ترمذي، ابوداؤد، ابن ماجه او دارمي .

**تشریح** : د صحابي په خدمت کي د راتلونکي د علمي طلب او د حصول دین د حقیقي جذبې اظهار کیږي چي هغوئ په راتلو سره تر ټولو مخکي دا ویلي وه چي تاسو ته زما د راتلو غرض یو دنیوي ګټه یا صرف ملاقات نه دی بلکه زه خو د علم دین د حصول د حقیقي او د خلوص څخه ډکي جذبې سره راغلی یم او زما خواهش دی چي ستاسو د ژبي څخه د رسول الله ﷺ د مقدس

حديثونو په اوريدو سره خپل زړه او دماغ د علوم نبوي په رڼا سره منور کړم، کيداى سي چي ذکر سوى طالب علم د يو حديث د اوريدو طلب کړى وي او هغه حديث په اجمالي توګه سره اوريدلى وي اوس د هغه خواهش دا وو چي هغه په تفصيلي توګه سره هم واوري يا دا چي هغه حديث هغه په تفصيل سره اوريدلى وي مګر د دې جذبې سره د حضرت ابودرداء ﷺ په خدمت کي حاضر سو چي حديث بلا واسطه د صحابي څخه واوري.

ابودرداء ﷺ چي د سوال کونکي په جواب کي کوم حديث بيان کړ کيداى سي چي هغه دا حديث وي او دا حديث د هغه مطلوب وي مګر دا هم احتمال سته چي دا حديث کوم چي دلته نقل سوى دى هغه د طالب مطلوب نه وي بلکه طالب په ډير مشقت او پريشاني زغملو او د ليري سفر کولو سره د طلب علم او حصول حديث په خاطر راغلى وي ځکه د هغه د سعادت او خوش بختۍ د اظهار په توګه د هغه ثواب يې بيان کړ او د هغه مطلوب حديث چي هغه بيان کړ هغه ددې باب مناسب نه وي ځکه مصنف د کتاب هغه دلته نقل نه کړ، په حديث کي فرمايل سوي دي چي هر کله طالب علم د علم په خاطر د خپل کور څخه ووځي او سفر اختياروي نو ملائکي د هغه د رضا مندۍ لپاره خپل وزر غوړوي ، د دې په شرح کي ويل کيږي چي يا خو واقعي د طالب د شرف او عزت په خاطر ملائکي خپل وزر خپروي يا دا چي د طالب علم د عزت او عظمت او هغه طرف ته د الله تعالى د رحمت د نزول لپاره دا کنايه ده.

او فرمايلي يې دي چي په آسمانونو او مځکو کي چي د الله تعالى څومره مخلوق دي ټول د عالم د بخښني لپاره دعاء غواړي (الحمد لله) د دې څخه وروسته بيا صراحت سوى دى چي په اوبو کي دننه اوسيدونکي ماهيان هم د هغه لپاره استغفار کوي، څرګنده ده چي د مځکي په مخلوق کي ماهيان هم شامل دي د هغوئ په بيل ذکر کولو کي ضرورت نه وو مګر په دې نکته داده چي د دې څخه په اصل کي د عالم د ډير فضيلت او عظمت اظهار مقصود دى او دې ته اشاره ده چي د اوبو اوريدل چي د الله تعالى د رحمت نښه او د نعمت الهي علامه ده او د دنيا اکثر آسانۍ او راحتونه چي د دې څخه حاصليږي او ټول خير او نيکۍ چي د دې څخه پرته دي ټول عالم د برکته دي تر دې چي د ماهيانو په اوبو کي دننه ژوندي اوسيدل چي خپله دقدرت خداوندي يوه نښه ده د علماء د برکت په وجه دي.

په دغه حديث کي د عالم او عابد فرق څرګندولو سره پر عابد باندي د عالم فوقيت او غوره والى ورکړل سوى دى او ددې وجه داده چي د عالم ګټه متعدي ده يعني د هغه فيضان

یوازي د هغه خپل ځان پوري محدود نه دی ځکه چي عالم او عابد ته د سپوږمۍ او ستورو سره مشابهت ورکړل سوی دی ځرنګه چي د څورلسمي شپې سپوږمۍ په خپل پوره روښنايي سره پر آسمان باندي ښکاره کیږي نو د دنيا ټول مخلوق په هغه سره روښانه کيږي او د هغه رڼا هر ځای ته رسيږي چي د هغه څخه دنيا ګټه تر لاسه کوي ، ستوري خپله پر خپل ځای خو روښانه او منور وي مګر د هغه فيضان دومره عام نه وي چي د هغه رڼا په هر ځای کي خپره سي او ټولو ته ګټه ورسولای سي .

که یو څوک دا شک رامخته کړي چي په عالم او عابد کي څه فرق نه وي ځکه که عالم پر یوازي علم باندي باور کوي او پر علم باندي عمل نه کوي نو ظاهره ده چي د هغه هيڅ فضيلت نسته همداسي عابد پرته د علم څخه عابد کیدای نسي ځکه چي د عبادت حقيقي او اصلي روح په علم کي پټه ده ، عبادت پرته د علم څخه په صحيح توګه نسي ادا کیدای نو معلومه سوه چي کوم عالم باعمل وي هغه به عابد هم وي او څوک چي عابد وي هغه به عالم هم وي ځکه نو په واړو کي فرق څه فرق سو ؟ د دې جواب دادی چي د عالم څخه مراد هغه سړی دي چي د علم تر لاسه کولو څخه وروسته پر عبادات ضروريه مثلاً فرضونه، واجبات، سنن او مستحبات باندي په اکتفاء کولو سره د خپل پاته وختونو برخه په درس او تدريس کي مشغول ساتي يعني د هغه کار درس او تدريس ، دعوت او تبليغ او ددين ترويج او خپرول وي .

او د عابد څخه مراد هغه سړی دی چي د علم تر لاسه کولو څخه وروسته د خپل ژوند ټوله برخه یوازي په عبادت کي تيروي نه خو د هغه د علم د خپرولو سره زړه وي او نه تعليم او تعلم د هغه مقصد وي بلکه هغه ټول وخت په عبادت کي بوخت وي .

او ځرګنده ده که د علم د خپرېدو او تعليم او تعلم د فضيلت ژوره کتنه وسي نو معلومه به سي چي دا عمل د فائدې په اعتبار تر ټولو لوړ مقام لري چي په هر حال کي د عبادت څخه افضل دی ځرنګه چي د اکثرو حديثونو څخه ثابت ده ، نو معلومه سوه چي په عالم او عابد کي په دې اعتبار سره فرق دی او پر عابد باندي عالم ته لوتيا او فضيلت تر لاسه دی .

په شرح السنة کي د حضرت سفيان ثوري رحمة الله عليه څخه نقل سوي دي چي هغه فرمايي : زه دنن ورځي د طالب علم څخه غوره هيڅ دوهم شی نه پيژنم، خلکو عرض وکړ ايا د خلکو په خلوص نيت کي فضيلت نسته ، هغه وفرمايل طالب علم خپله د نيت سبب دی يعني نيت د هغه سره خپله سميږي، د ځيني علماؤ قول نقل کيږي چي هغوئ ويلي دي موږ علم د غير الله لپاره

حاصل کړ مګر وروسته هغه د الله تعالی لپاره سو یعني زموږ نیت مخکي مخلص او صاف نه وو مګر کله چي د طالب علم حقیقي جذبه پیدا سوه او د علم رڼا زړه منور کړ نو نیت مخلص او صحیح سو .

د علم د فضیلت د دې څخه هم اندازه کیدای سي چي حضرت امام شافعي رحمة الله علیه فرمایي د علم طلب کول د نفل لمانځه څخه غوره دی ځکه چي هغه علم چي طلب یې کیږي یا خو به فرض عین وي یا فرض کفایه وي او ظاهره ده چي دواړه د نفل څخه په هر حال کي افضل دي .

﴿۲۰۲﴾: وَعَنْ أَبِيْ أُمَامَةَ الْبَاهِلِيِّ قَالَ ذُكِرَ لِرَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلَانِ أَحَدُهُمَا عَابِدٌ وَالْآخَرُ عَالِمٌ فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَضْلُ الْعَالِمِ عَلَى الْعَابِدِ كَفَضْلِيْ عَلٰى أَدْنَاكُمْ ثُمَّ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ اللهَ وَمَلَائِكَتَهُ وَأَهْلَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ حَتَّى النَّمْلَةَ فِيْ جُحْرِهَا وَحَتَّى الْحُوْتَ لَيُصَلُّوْنَ عَلٰى مُعَلِّمِ النَّاسِ الْخَيْرَ . رواه الترمذي وَرَوَاهُ الدَّارِمِي عَنْ مَكْحُوْلٍ مُرْسَلًا وَلَمْ يَذْكُرْ رَجُلَانِ وَقَالَ فَضْلُ الْعَالِمِ عَلَى الْعَابِدِ كَفَضْلِيْ عَلٰى أَدْنَاكُمْ ثُمَّ تَلَا هٰذِهِ الْآيَةَ ( إِنَّمَا يَخْشَى اللهَ مِنْ عِبَادِهِ الْعُلَمَاءُ ) . وَسَرَدَ الْحَدِيْثَ إِلٰى آخِرِهِ

د حضرت ابوامامه الباهلي ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ ته د دوو خلکو ذکر وسو چي په هغوئ کي یو عابد وو او دوهم عالم (یعني دا پوښتنه وسوه چي په دوئ کي کوم یو غوره دی) رسول الله ﷺ وفرمایل : عالم پر عابد داسي فضیلت لري لکه څرنګه چي زه په تاسو کي پر یو ادنا صحابي فضیلت لرم د دې وروسته رسول الله ﷺ وفرمایل : یقینا الله او د هغه ملائکي او په آسمانو او مځکو کي ټول مخلوقات تر دې چي میږیان په خپلو سوریانو کي او ماهیان د هغه لپاره د خیر دعاء کوي چي خلکو ته نیکي ښیي . (ترمذي) او دارمي په مرسل طریقې سره د مکحول څخه روایت نقل کړی دی چي په هغه کي د دوو خلکو ذکر نسته او ویلي یې دي چي رسول الله ﷺ وفرمایل عالم پر عابد دومره فضیلت لري لکه څرنګه چي زه په تاسو کي پر یو ادنا صحابي فضیلت لرم بیا رسول الله ﷺ دا آیت تلاوت کړ : انما یخشی الله ...... (د الله په بندګانو کي عالمان د الله څخه زیات بیریږي ) بیا یې تر پایه پوري حدیث بیان کړ .

**تشریح** : د دغه حدیث څخه معلومه سوه چي عالم ته ډیر زیات عظمت او فضیلت حاصل دی او هغه ته پر عابد باندي لوړتیا او غوره والی تر لاسه دی ، رسول الله ﷺ په عابد او عالم کي دا فرق ښکاره کړی دی چي څرنګه زه په تاسو کي پر هغه سړي فضیلت لرم کوم چي په تاسو کي تر ټولو د ادنا درجې وي همدا سي یو عالم هم پر عابد باندي فضیلت لري .

څرګنده ده چي رسول الله ﷺ ته پر يو ادنا سړي باندي کوم فضيلت حاصل دی د هغه اندازه نسي کيدای همداسي اوس د دې اندازه هم کيدای سي چي يو عالم ته پر عابد باندي فضيلت او فوقيت په د کومي مرتبې او درجي وي.

د حديث په پای کي ويل سوي دي چي دا حديث دارمي د مکحول څخه په مرسل طريقې سره نقل کړی دی او په دې کي د هغه حديث د ابتدائي الفاظو (رجلان) ذکر يې نه دی کړی يعني د هغوئ په روايت کي دا الفاظ نسته کوم چي د رسول الله ﷺ په مخکي د دوو خلکو ذکر وسو چي په هغوئ کي يو عابد وو او دوهم عالم بلکه د هغوئ روايت د قال رسول الله ﷺ څخه پيل کيږي.

﴿۲۰۳﴾: وَعَنْ أَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ النَّاسَ لَكُمْ تَبَعٌ وَإِنَّ رِجَالاً يَأْتُوْنَكُمْ مِنْ أَقْطَارِ الْأَرْضِ يَتَفَقَّهُوْنَ فِي الدِّيْنِ فَإِذَا أَتَوْكُمْ فَاسْتَوْصُوْا بِهِمْ خَيْرًا . رواه الترمذي .

د حضرت ابوسعيد الخدري ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: خلك ستاسو تابع دي او البته ډير خلك به تاسو ته د مځکي د لوري څخه په علم دين د پوهېدلو لپاره راځي هر کله چي هغوئ تاسو ته راسي نو تاسو د هغوئ په اړه د نيکۍ وصيت قبلوئ. ترمذي.

**تشريح**: د دغه ارشاد مقصد صحابه کرامو ته دا ښودل دي چي زما څخه وروسته به ستاسو ذات د دنيا لپاره رهبر او رهنما وي او تاسو به د خلکو امامان جوړيږي ځکه د ټولي نړۍ خلک به تاسو ته د علم دين د طلب او زما د حديثو د تر لاسه کولو لپاره راځي نو تاسو ته پکار ده چي کله هغوئ راسي نو تاسو د هغوئ سره د خير او ښيګڼي معامله کوئ او د هغوئ په روزنه کي کوتاهي مه کوئ او د هغوئ سره د شفقت او محبت چلن کوئ او د هغوئ زړونه د علم دين د هغه مقدسي رڼا څخه چي په هغه سره ستاسو زړونه فيضاب سوي دي منور کړئ.

﴿۲۰۴﴾: وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلْكَلِمَةُ الْحِكْمَةُ ضَالَّةُ الْحَكِيْمِ فَحَيْثُ وَجَدَهَا فَهُوَ أَحَقُّ بِهَا . رواه الترمذي وابن ماجه وقال الترمذي هذا حديث غريب وإبراهيم بن الفضل الراوي يضعف في الحديث .

د حضرت ابوهريرة ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: ګټه ورکونکي خبره د عقلمند سړي ورک سوی شی دی کوم ځای چي يې تر لاسه کړي د هغه حقدار دی (ترمذي او ابن ماجه) ترمذي ويلي دي دا حديث غريب دی او ددې حديث راوي ابراهيم بن فضل د حديث په روايت کي ضعيف ګڼل کيږي.

**تشریح** : دا حدیث پوه او صاحب فهم انسان ته دا احساس او شعور بخښي چي هر کله د یو چا شخه د دین یو ګټوره خبره واوریدل سي نو د عقل دا غوښتنه کېدل پکار ده چي سمدستي د هغه په قبلولو سره په هغه عمل وکړل سي ځکه د عقل دا تقاضا د انسان د معراج (لوړي مرتبې) ضامن کیږي .

دا د ډیري بې عقلي او کم ظرفۍ خبره ده چي یو غوره او ګټوره خبره د یو چا شخه واورېدل سي چي د ځان شخه یې کم رتبې والا وي نو هغه ځکه ناقابل اعتبار او ناقابل عمل وګرځول سي چي هغه غټه خبره او کوچنۍ خوله ده پر دې علماؤ لیکلي دي که یو سړی هغه غوره او حق خبره خو قابل قبول او قابل عمل وګڼي چي د حضرت بایزید بسطامي رح په ډول صاحب عقل او تقدس شخه منقول وي مګر هر کله چي هغه خبره د خپل مینځي شخه واوري نو هغه ناقابل اعتبار وګڼي نو هغه سړي ته به مغرور او متکبر ویل کیږي .

مرد باید که گیرد اندر گوش گرنوشت ست پند بر دیوار

﴿۲۰۵﴾ : وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقِيْهٌ وَاحِدٌ أَشَدُّ عَلَى الشَّيْطَانِ مِنْ أَلْفِ عَابِدٍ . رواه الترمذي وابن ماجه )

د حضرت ابن عباس ﷺ شخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : یو فقیه (د دین عالم) پر شیطان تر زرو عابدانو زیات سخت دی .

**تشریح** : د مقابلې دا مُسَلم (مضبوط) اصول دي چي کامیابي د هغه سړي په برخه وي چي د خپل مقابل د حال شخه په ښه ډول خبر وي او د هغه دفع کول پیژني .

موږ په خپله وینو چي د مقابلې په میدان کي هغه سړی چي د خپل ظاهري قوت او جسم په اعتبار اهمیت نه لري نو خپل هغه مقابل را غورځولای سي چي د بدن او جسم په اعتبار د هغه شخه څو برابر زیات طاقتور وي ځکه چي هغه کله مقابلې ته راځي نو د هغه دماغ په بنیادي توګه سره د مقابل د هر وار شخه د ساتني شکل او د هغه د هر ګزار په خزانه (فکر) کي لري نتیجه به داوي چي کامیابي به د هغه وي .

په دنیا کي په باطني توګه باندي د هر انسان تر ټولو لوی دښمن شیطان دی چي د خپل مکر او فریب شخه خبر نه وي او د هغه د طاقت او قوت جواب نه لري هغوئ ګمراه سي مګر داسي خلک چي د هغه د هري حملې جواب لري او د هغه د طاقت او قوت باندي د هغوئ لاس وي هغوئ نه یوازي دا چي په خپله د هغه د ګمراهۍ شخه خوندي وي بلکه نور خلک هم ځیني خوندي ساتي او دا خلک هغه عالمان دي چي د هغوئ زړه او دماغ د نور الهي په مقدس رڼا

سره منور او د هغوئ ذهن او فکر د علم او معرفت د طاقت څخه ډک وي .
ځکه نو په حديث کي فرمايل سوي دي چي د شيطان په مقابله کي زر عابدان چي څومره طاقت لري هغومره طاقت يوازي د يوه عالم سره وي ځکه چي هر کله شيطان پر خلکو باندي د خپل مکر او فريب جال اچوي او هغوئ په خواهشات نفساني کي را وستلو سره د گمراهي پر لار روانول غواړي نو عالم د هغه په چال پوه سي نو هغه پر خلکو د شيطان گمراهي ښکاره کندوي او داسي تدبيرونه هغوئ ته ښيي چي په هغه عمل کولو سره هغوئ د شيطان د هزي حملې څخه خوندي وي.
د دې پر خلاف هغه عابد چي يوازي عبادت کول غواړي او د علم او معرفت څخه په ميلونو ليري وي هغه خو يوازي په خپل رياضت، مجاهده او عبادت کي بوخت وي هغه ته دا خبر هم نه وي چي شيطان د کومي دروازې څخه د هغه په عبادت کي خلل اچوي او د هغه ټول سعي او کوښښ برباد وي ، نتيجه داسي چي په ظاهري توگه سره خو هغه په عبادت کي بوخت وي مګر د بې علمي کېدو په وجه د شيطان په مکر او فريب کي موښتی وي ځکه نه هغه خپله د شيطان د گمراهي څخه خوندي وي او نه نور خلک خوندي ساتلای سي .

﴿۲۰۶﴾ : وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طَلَبُ الْعِلْمِ فَرِيْضَةٌ عَلٰى كُلِّ مُسْلِمٍ وَوَاضِعُ الْعِلْمِ عِنْدَ غَيْرِ أَهْلِهِ كَمُقَلِّدِ الْخَنَازِيْرِ الْجَوْهَرَ وَاللُّؤْلُؤَ وَالذَّهَبَ . رواه ابن ماجه وروى البيهقي في شعب الإيمان إلى قوله مسلم . وقال هذا حديث متنه مشهور وإسناده ضعيف وقد روي من أوجه كلها ضعيف

د حضرت انس ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د علم تر لاسه کول پر هر مسلمان فرض دی او نا اهل ته علم ښودل داسي دي لکه څوک چي د خنزير په غاړه کي د جواهراتو ، ملغلرو او سروزرو پټې واچوي (ابن ماجه) دا حديث بيهقي په شعب الايمان تر (کل مسلم) پوري ليکلي دی او ويلي يې دي چي ددې حديث متن مشهور دی او اسناد يې ضعيف دي او دا حديث په ډول ډول طريقو سره بيان سوی دی او دا ټولي طريقې ضعيفي دي .

**تشريح** : ددغه حديث څخه د علم ارزښت او عظمت او د هغه ضرورت ښکاره کيږي چي هر مسلمان سړی او ښځي لپاره د علم تر لاسه کول ضروري دي ځکه چي انسان د کوم مقصد لپاره خليفة الله جوړولو سره دې دنيا ته را ليږل سوی دی هغه پر ته د علم څخه نسي پوره کېدلای

انسان پرته د علم څخه نه د الله تعالى ذات پيژني او نه د خپل حقيقت عرفان تر لاسه کولای سي .

څرنګه چي مخکي هم ښودل سوي دي دلته د علم څخه مراد علم دين دی چي د هغه ضرورت د ژوند په هر وخت او هره لحظه کي وي مثلا کله چي سړی مسلمان سي يا د احساس او شعور منزل ته ورسيږي نو هغه ته ددې خبري ضرورت وي چي هغه د خپل پيدا کونکي ذات او د هغه د صفاتو معرفت تر لاسه کړي او د عرفان الهي په مقدسه رڼا سره د زړه او دماغ هره تياره ختم کړي . همداسي د رسول د نبوت او رسالت پيژندل يا د داسي شيانو علم تر لاسه کول چي پر هغه د ايمان او اسلام بنياد وي د هغه لپاره ضروري دي .

بيا چي د علمي ژوند سره د هغه واسطه سي نو هغه ته ضرورت وي چي د اعمالو د احکامو علم ورته تر لاسه سي يعني هر کله چي د لمانځه وخت راسي نو پر هغه د لمانځه د احکامو او مسائل زده کول واجب دي که الله تعالى هغه ته مالي وسعت ورکړی وي او صاحب نصاب وي نو د زکوة مسائل پيژندل ورته ضروري دي هر کله چي واده يې وکړ او ښځه يې کور ته راوستل نو د حيض او نفاس مسائل ، طلاق وغيره داسي شيان چي د ښځي او خاوند د ژوندي سره تعلق وي د هغه تر لاسه کول واجب کيږي .

همداسي تجارت، زراعت د رانيولو او پلورلو احکام او مسائل زده کول يا عبادات او معاملات وي يا تعلقات چي د ټولو شيانو بصيرت تر لاسه کول او په هغه پوهېدل او زده کول پر هغه فرض دي که هغه داسي ونه کړي نو د دې په وجه به هغه په هر ځای کي د شريعت د حدودو څخه تجاوز کوي او د ديني احکامو او مسائلو څخه د ناخبرتيا په وجه د هغه هر فعل او عمل به د شريعت خلاف وي چي د هغه په وجه به سخت ګناه کار وي ، ځيني حضراتو دا هم ويلي دي چي دلته د علم څخ مراد علم اخلاص او د آفات نفس معرفت دی يعني هر د هر مسلمان نارينه او ښځينه لپاره ضروري دي چي هغه د نفس ټول بدی مثلا حسد ، بغض، کينه او دښمني و پيژني او د هغه ټولو شيانو علم تر لاسه کړي کوم چي دا اعمال خير فاسد کوي .

د حسد څخه دا هم معلومه سوه چي د علم مقدس رڼا خو د هغوئ نصيب کيږي چي ددې اهل وي او د هغوئ د صلاحيت طبع ميلان همدې خوا ته وي او د چا چي څومره استعداد او صلاحيت وي هغه ته د علم هغومره برخه تر لاسه کيږي نو په علم ښودلو کي د دې خبري خيال په خاصه توګه ساتل پکار دي چي د چا څومره استعداد وي او د کوم معيار صلاحيت لري د هغه

په اعتبار سره هغه ته علم وښودل سي داسي نه دي پکار چي د يو سړي استعداد او صلاحيت خو د ډيري کمي درجې وي مګر علم هغه ته د ډيري لوړی او اعلی درجي وښودل سي، همداسي د هر علم د ښودلو موقع او محل وي کوم علم چي پر کوم موقع باندي ضروري وي او د کوم علم چي محل وي د هغه سره سم علم دي ورته وښودل سي مثلا که يو سړی د عوام او جاهلانو په مخکي د تصوف اسرار او معاني او د هغه باريکی بيانول پيل کړي نو د هغوئ د دې څخه ګټه اخيستل خو پريږده بلکه زيات ګمراه به سي.

﴿۲۰۷﴾: وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَصْلَتَانِ لاَ تَجْتَمِعَانِ فِيْ مُنَافِقٍ حُسْنُ سَمْتٍ وَّلاَ فِقْهٌ فِي الدِّيْنِ . رواه الترمذي .

د حضرت ابوهريرة ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: دوه عادتونه داسي دي چي په يو منافق کي نه سي يو ځای کيدلای يو نيک خصلت (اخلاق) او دوهم ديني پوهه.

**تشريح**: په دې حديث کي د دې خبري ترغيب ورکول کيږي چي دا دوه صفتونه داسي دي چي د مخلص مؤمن برخه ده ځکه هر مسلمان ته پکار ده چي دا دواړه عادتونه په ځان کي پيدا کړي يعني نيک عادتونه ښه اخلاق او د غوره صفتو جوهر په ځان کي پيدا کړي او د علم تر لاسه کولو سره ديني پوهه هم پيدا کړي.

علامه تورپشتي رحمه الله فرمايي د تفقه في الدين يعني د ديني پوهي حقيقت دادی چي په زړه کي د دين معرفت ځای سي او بيا په ژبه سره د هغه اظهار کوي او د هغه سره سم عمل کوي چي د هغه په وجه خوف الهي او تقوا تر لاسه سي.

﴿۲۰۸﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ خَرَجَ فِيْ طَلَبِ الْعِلْمِ فَهُوَ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ حَتّٰى يَرْجِعُ . رواه الترمذي والدارمي .

د حضرت انس ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: څوک چي د علم د تر لاسه کولو لپاره د کور څخه ووزي نو هغه تر هغه وخته پوري تر څو چي کور ته راستنيږي د الله په لار کي دی.

**تشريح**: د دغه ارشاد مطلب دادی چي کوم سړی خپل قريبان پريږدي، د مور او پلار د ميني او شفقت څخه زړه صبر کړي او د کور ټول راحتونه پرېښودو سره د علم دين تر لاسه کولو لپاره خپل هيواد او ښار څخه ووځي که څه هم هغه علم فرض عين وي يا فرض کفايه، يعني د ضرورت او اړتيا څخه زيات نو هغه طالب علم د مجاهد في سبيل الله په مرتبه کي وي، کوم

ثواب چي د الله تعالى په لار کي د جهاد کونکى لپاره وي هغه ثواب هغه طالب علم ته هم تر لاسه کيږئ ځکه چي څرنګه يو مجاهد پر سر کفن تړلو سره محض په دې جذبې سره ميدان جنګ ته ځي چي هغه د الله تعالى دين سرلوړى کړي او د الله تعالى او د هغه د رسول د نامه خبره لوړه کړي همداسي طالب علم محض ددې مقصد لپاره د علم دين تر لاسه کولو لپاره د کور څخه وځي چي د خپل نفس ټول خواهشات ختمولو سره او کسر نفسي اختيارولو سره د علم الهي په مقدسه رڼا سره د ظلم او جهل ټولي تيارې ليري کړي د الله تعالى دين په ټول عالم کي خپور کړي او د شيطان د مکر او فريب څخه خلک په خوندي ساتلو سره شيطان ذليل او خوار کړي تر څو پوري چي د دې علم د تر لاسه کولو سره خپل کور ته راستون نسي نو هغه ته د جهاد د ميدان ثواب ورکول کيږي.

په دغه حديث کي دې ته هم اشاره ده چي طالب علم دعلم د تر لاسه کولو څخه د فارغه کېدو سره خپل کور ته راستون سي نو د هغه څخه هم زياته مرتبه او درجه تر لاسه کوي هر کله چي د تعليم په مکمل کولو سره راستنيږي نو په دنيا کي د علم او معرفت رڼا خپرولو، خلکو ته د تعليم ورکولو، د انساني ژوند په عمل سره د کامل کولو لپاره د يو مصلح او معلم په حيثيت راځي چي د هغه په وجه د وارث الانبياء په معزز او مقدس لقب سره نازول کيږي.

﴿۲۰۹﴾ : وَعَنْ سَخْبَرَةَ الْأَزْدِيِّ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ طَلَبَ الْعِلْمَ كَانَ كَفَّارَةً لِّمَا مَضٰى . رواه الترمذي والدارمي وقال الترمذي هذا حديث ضعيف الإسناد وأبو داود الراوي يضعف

د حضرت سخبرة[1] الازدي ﷺ څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل : څوک چي علم تر لاسه کوي (نو د هغه دا طلب) د هغه د ګناهو کفاره کيږي کوم چي تر دې وړاندي يې کړي وي (ترمذي او دارمي) ترمذي ويلي دي چي د دې حديث اسناد ضعيف دي او ددې راوي ابوداؤد ضعيف ګڼلى دى.

﴿۲۱۰﴾ : وَعَنْ أَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِي قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَنْ يَّشْبَعَ الْمُؤْمِنُ مِنْ خَيْرٍ يَّسْمَعُهُ حَتّٰى يَكُوْنَ مُنْتَهَاهُ الْجَنَّةَ . رواه الترمذي .

د حضرت ابوسعيد الخدري ﷺ څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د مؤمن نس د نيکۍ (يعني علم) څخه نه ډکيږي هغه دا اوري تر څو چي جنت ته ورسيږي.

---

[1] د نوموړي نوم سخبرة او کنيت يې عبدالله دى، نوموړى ازدي دي او ځيني خلک وايي چي اسدي دى.

**تشریح** : د علم تر لاسه کول د ایمان خاصه ده او ایمان نور دی ځکه هغه علم چي نور الهي دی په پوره توګه سره په خپل ځان کي جذب کول غواړي ځکه نو فرمایل سوي دي چي د انسان زړه او دماغ د ایمان په رڼا سره منور کیږي نو هغه د علم او معرفت په نور سره د انسان معراج لوړتیا ته رسیدل غواړي ، دا وجه ده چي د مؤمن نس هیڅکله په علم نه ډکیږئ هغه چي ځومره د علم لوړوالي ته رسیږي د هغه خواهش او آرزو دا وي چي هغه ددې منزل آخري حدودو ته ورسیږي که څه هم د علم میدان دومره وسیع او پراخ وي که انسان خپل لوی ژوند سره هم یوه لحظه تیرولو پرته په دې کي ځغلي نو هغه ددې انتهائي حدودو ته نسي رسیدلای خو ددې سربیره مؤمن ټول عمر د علم په تلاش کي وي او د هغه د عمر تر آخري برخي پوري د علم لمن پرېښودل نه غواړي تر دې چي د هغه ژوند پر خپل ټاکلي وخت باندي ختم سي او هغه د علم دې صادق طلب او ریښتوني فکر په عوض کي چي په هغه کي ټول ژوند مصروف وو د جنت په ابدي سعادتونو سره نازول کیږي . الحمد لله.

په حیقیت کي په دې حدیث کي د طالب علم او اهل علم لپاره عظیم زیری دی چي دا خلک د دنیا څخه په ایمان رخصتیږي او د رضائي مولا سره د هغوئ لمن ډکه وي دا وجه ده چي اکثر اهل الله د خپل ژوند آخري لمحې پوري د علم په تر لاسه کولو کي بوخت وي د دې سربیره چي د هغوئ علمي فضیلت او عظمت د انتهائي درجې وي مګر هغوئ ددې سعادت د تر لاسه کولو په خاطر تل د علم په تر لاسه کولو کي بوخت وي .

په دې اړه باید دا خبره په ذهن کي وي چي د علم دائره ډیره وسیع او پراخه ده او په خپلو ډیرو کونجانو (قسمونو) شامل ده ځکه هغه حضرات چي په تصنیف او تالیف او ترجمه او تعلیم او تعلم کي بوخت وي هغوئ ته هم د طالب علم او تکمیل علم ثواب ورکول کیږي او هغوئ هم په دې زُمره کي شمیرل کیږي . الحمد لله .

| | |
|---|---|
| ﴿۲۱۱﴾: وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ سُئِلَ عَنْ عِلْمٍ عَلِمَهُ ثُمَّ كَتَمَهُ أُلْجِمَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ بِلِجَامٍ مِّنْ نَّارٍ . رواه أحمد وأبو داود والترمذي . ورواه ابن ماجه عن أنس . | د حضرت ابوهریرة ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : د یو چا څخه چي د علم یو داسي پوښتنه وسي چي هغه ته معلومه وي او هغه یې پټه کړي نو د قیامت په ورځ به د اور قیزې (په خوله کي) ور واچول سي . احمد ، |

ابوداؤد ، ترمذي او ابن ماجه د انس ﷺ څخه روایت کړی دی .

**تشریح** : په دې حدیث کي د داسي علم په اړه وعید (سزا) بیانیږي چي د یو دیني خبري د معلومېدو سربیره هغه خلکو ته نه ښیي او پوښتنه کونکي ته جواب نه ورکوي مګر دا وعید د داسي علم په اړه دی چي د هغه تعلیم ضروري او واجب وي مثلاً یو سړی د اسلام راوړلو اراده وکړي او یو عالم ته ووایي چي د اسلامي تعلیماتو څخه ما خبر کړه چي اسلام څه شي دی یا هغه د لمانځه په اړه د عالم څخه پوښتنه وکړي چي د لمانځه کوم احکام او مسائل دي د هغه څخه ما خبر کړه، یا د یو حلال او حرام شي یو فتوا معلومول غواړي نو د دې ټولو شیانو جواب ورکول او تر ټولو پوري چي هغه ته معلومه وي صحیح خبره ښودل د عالم لپاره ضروري او واجب دي البته د نوافلو او مباح شیانو په اړه به دا حکم نه وي .

﴿۲۱۲﴾: وَعَنْ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ طَلَبَ الْعِلْمَ لِيُجَارِيْ بِهِ الْعُلَمَاءَ أَوْ لِيُمَارِيَ بِهِ السُّفَهَاءَ أَوْ يَصْرِفَ بِهِ وُجُوْهَ النَّاسَ إِلَيْهِ أَدْخَلَهُ اللّٰهُ النَّارَ . رواه الترمذي . ورواه ابن ماجه عن ابن عمر .

د حضرت کعب بن مالك ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : څوك چي علم د دې لپاره تر لاسه کوي چي په دې سره په علماؤ فخر وکړي یا د جاهلانو سره جګړه وکړي یا خلك د ځان په لوري متوجه کړي نو الله به هغه په اور کي داخل کړي ترمذي او ابن ماجه .

**تشریح** : علم د خپل نورانیت او لطافت په سبب ریاکاري ، غرور تکبر او بې ځایه فخر او غلاظتونه نسي زغملای ، هر کله چي د علم اولین پلوشه دا غواړي چي هغه د انسان د زړه او دماغ څخه د ظلم او جهل تیاره لیري کړي نو دا څنګه زغمل کېدای سي چي یو عالم چي د هغه دماغ د علم د مقدسې رڼا څخه ډک وي د غیر اسلامي اخلاقو مظاهره وکړي ، د علم غوښتنه خو داده چي یو انسان د تهذیب، شرافت او د تعلیم او پرمختګ لوړو درجو رسیدو سربیره سر تر پایه انکسار او متواضع جوړ سي ، د ریاکارۍ او ځان ښوونې څخه لیري وي او د اخلاق او احسان ژوند اختیار کړي او سیږي .

ځکه نو فرمایل سوي دي که یو علم صرف د دنیوي ګټي او ذاتي دبدبې او عزت په خاطر تر لاسه کوي که د هغه مقصد دا وي چي د علم تر لاسه کولو څخه وروسته به ځیني خلک زموږ په لور متوجه سي د عوامو څخه د خپل علم په وجه د هغوئ څخه مال او دولت تر لاسه کړل سي ، علم د دنیا د کاروبار او نفساني خواهشاتو د تکمیل لپاره آله جوړ کړل سي او نه یوازي دا بلکه د علم تر لاسه کولو څخه وروسته هغه د علماء حق سره د غرور او تکبر معامله کوي د جاهلانو

سره موښلي د خلکو په مخکي بې ځايه فخر او غرور کوي نو داسي عالم په خلاصو غوږونو سره اوريدل پکار دي که څه هم هغه په دنياوي اعتبار سره کامياب هم سي او تقدير الهي د هغه خواهشاتو او مقاصدو تکميل هم وکړي مګر په آخرت کي د هغه دد نيت په وجه به د هغه څخه سختي پوښتني کيږي هلته به يې نه علم پکار راسي او نه د هغه سرداري او غرور بلکه هغه ته به د عوامو د اخلاص سزا په دې توګه سره ورکول کيږئ چي هغه به د جهنم شغلو ته حواله کړل سي.

مګر هو داسي سړی چي مخکي په خپل نيت کي مخلص وو د هغه په اراده کي کوږوالی نه وو او د هغه مقصد د علم تر لاسه کولو څخه صرف اعلاء كلمة الله او د الله تعالى رضا وه، وروسته د فطرت په غوښتني او انساني طبيعت د هغه په نيت کي کوږوالي پيدا کړ او په هغه کي د نمود او ښووني او رياکارۍ اثر پيدا سو نو هغه به په دې حکم کي داخل نه وي ځکه چي په دې اړه هغه په هر حال کي معذور دی.

﴿۲۱۳﴾: وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ تَعَلَّمَ عِلْمًا مِمَّا يُبْتَغٰى بِهٖ وَجْهُ اللّٰهِ لَا يَتَعَلَّمُهُ إِلَّا لِيُصِيْبَ بِهٖ عَرَضًا مِنَ الدُّنْيَا لَمْ يَجِدْ عَرْفَ الْجَنَّةِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ . يَعْنِيْ رِيْحَهَا . رواه أحمد وأبو داود وابن ماجه .

د حضرت ابوهريرة ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: چا چي هغه علم تر لاسه کړ چي په هغه سره د الله رضا طلب کيږي مګر که د دې لپاره يې تر لاسه کړ چي په هغه سره د دنيا متاع تر لاسه کړي نو د قيامت په ورځ به پر ده د جنت خوشبويي هم ونه لګيږي. احمد، ابوداؤد او ابن ماجه.

**تشريح**: ښوک چي علم دين صرف د دې لپاره تر لاسه کړي چي د دې په ذريعه د دنيا دولت او عزت راجمع کړي او دا حصول د دنيا لپاره وسيله جوړه کړي نو د هغه لپاره دا وعيد (سزا) بيانيږي.

مګر که چيري علم ديني نه وي بلکه دنياوي وي نو د هغه لپاره دا مقصد چي د دنيا د تر لاسه کولو لپاره يې وسيله او ذريعه معاش جوړ کړي هيڅ پرواه نسته مګر په دې کي هم دا شرط دی چي هغه علم داسي نه وي چي د هغه تر لاسه کولو شريعت صحيح نه ګڼي مثلاً علم نجوم يا داسي نور علوم چي پر عقيده او عمل باندي اثر اچوي.

په دغه حديث کي دا ويل چي داسي عالم چي د هغه نيت د حصول علم په اړه خالص لله ﷻ نه وي هغه ته به د جنت خوشبويي هم تر لاسه نه سي دا کنايه ده په جنت کي د نه داخليدو او

مبالغه ده د جنت څخه د محرومۍ او د دې څخه مراد دادی چې داسې سړی به د مخلص او مقرب بندګانو سره پرته د عذاب څخه په جنت کې نه داخلیږي .

《۲۱۴》 : وَعَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَضَّرَ اللّٰهُ عَبْدًا سَمِعَ مَقَالَتِيْ فَحَفِظَهَا وَ وَعَاهَا وَأَدَّاهَا فَرُبَّ حَامِلِ فِقْهٍ غَيْرُ فَقِيْهٍ وَرُبَّ حَامِلِ فِقْهٍ إِلَى مَنْ هُوَ أَفْقَهُ مِنْهُ . ثَلَاثٌ لَا يُغِلُّ عَلَيْهِنَّ قَلْبُ مُسْلِمٍ إِخْلَاصُ الْعَمَلِ لِلّٰهِ وَالنَّصِيْحَةُ لِلْمُسْلِمِيْنَ وَلُزُوْمُ جَمَاعَتِهِمْ فَإِنَّ دَعْوَتَهُمْ تُحِيْطُ مِنْ وَّرَائِهِمْ . رواه الشافعي والبيهقي في المدخل . ورواه أحمد والترمذي وأبو داود وابن ماجه والدارمي عن زيد بن ثابت . إلا أن الترمذي وأبا دواد لم يذكرا ثلاث لا يغل عليهن . إلى آخره .

د حضرت ابن مسعود ﷺ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل : الله دې هغه بنده تازه (خوشحاله او با عزته) ولري چې هغه زما یو خبره اورېدلې وي هغه یې یاد ساتلې وي او د همیشه لپاره یې یاد ساتلې وي او هغه یې خلکو ته ورسول ځیني حامل فقه (یعني د علم دین عامل یا ددیني خبرې محافظ) پوهه لرونکي نه وي او ځیني د پوهې خاوندان یې هغو خلکو ته ورسوي چې د هغوئ څخه زیات د پوهې خاوندان وي ، درې خبرې داسې دي چې په هغه کې د مسلمان زړه خیانت نه کوي ۱: یو عمل خاص د الله لپاره کول . ۲: دوهم د مسلمانانو خیر خواهي کول ۳: او دریم د مسلمانانو جماعت لازم نېول (یعني د مسلمانانو په ډله کې شاملېدل) د هغوئ دعاء د څلور طرفه څخه راچاپیریږي .شافعي، بیهقي په مدخل کې، او احمد، ترمذي ، ابوداؤد ، ابن ماجه او دارمي د زید بن ثابت څخه روایت کړی دی مګر ترمذي او ابوداؤد دا الفاظ (ثَلَاثٌ لَا يُغِلُّ عَلَيْهِنَّ.....) نه دي ذکر کړي .

**تشریح** : مطلب دا چې حدیث محفوظ او یاد ساتونکي ځیني خو داسې وي چې خپله زیات پوه نه وي او ځیني پوهه لري مګر داسې هم کیږي چې د چا په مخکې حدیث بیانوي هغه د هغوئ څخه زیات پوه وي نو پکار ده چې حدیث څرنګه واوري هم هغسې یې نورو ته ورسوي چا ته چې حدیث رسول کیږي او د چا په مخکې بیانیږي هغوئ د حدیث په مطلب ښه پوه سي ، په دې حدیث کې دې ته اشاره ده چې د حدیث روایت کونکو ته پکار ده چې هغوئ حدیث په کومو الفاظو کې واوري بعینه په هغه الفاظو کې یې نقل کړي .

(يَغُلُّ) که د یاء په زور او د غین په زیر سره وي نو د هغه معنا د حِقد یعني کینه کیږي ، او که د یاء په پېښ او د غین په زور سره وي یا د حرف یاء زور او غین په پېښ سره وي نو ددې معنا د خیانت کیږي ، فرمایل سوي دي چې مؤمن په دغه درو شیانو کې خیانت نه کوي یعني په

مؤمن كي دا درې شيان ضرور تر لاسه كيږي او هر كله چي د مؤمن څخه دا درې اعمال صادريږي نو په هغه كي كينه نه داخليږي چي هغه د دې شيانو څخه منحر كړي .

د خلوص عمل مطلب او د هغه انتهائي درجه داده چي بنده كوم عمل كوي هغه صرف د الله تعالى د رضا او خوښي لپاره وكړي د دې څخه علاوه د هغه بل هيڅ مقصد نه وي نه يو دنيوي مقصد يې په نظر كي وي او نه يو اخروي ګټه يوازي د مولا رضا يې مخته وي او هغه يې مقصد وي ، بيا په هغه كي دوې درجي كيږي د عامو خلكو چي خلوص عمل وي هغه خاص يعني د الله د خلوص عمل څخه د كمتر درجې وي ځكه چي دا خلک د رياضت او مجاهدې او د تعلق مع الله په وجه د خلوص انتهائي درجو ته رسيدلي وي .

د مسلمانانو سره د نيكۍ كولو طريقه داده چي د خپل وس سره سم خپلو نورو وړونو ته د خير او نيكۍ نصيحت كوي او هغوئ پر سيده لار روانولو كي هڅه كوي او په دنياوي اعتبار سره د هغوئ مرسته وكړي او په هر مشكل او ستونزه كي د هغوئ خبر واخلي .

د مسلمانانو ډله لازم نيولو معنا داده چي د ژوند په هره مرحله باندي د اجتماعيت پر اصول كاربند اوسي او خپل ځان هيڅكله د انفراديت پر لار روان نه كړي ، د علماء دين او علماء امت د متفقه عقائدو او اعمال صالحه موافقت كوي او د هغوئ سره اوسي مثلا د جمعې لمونځ ، جماعت وغيره كي د هغه خلكو سره په پاته كېدو سره اجتماعيت ته فروغ وركړي چي په اسلامي طاقت او قوت كي هم اضافه وي او د رحمت الهي د نزول سبب هم وي ځكه چي پر جماعت د الله تعالى رحمت وي ،

د (من ورائهم) لفظ د مشكوة په ځينو نسخو كي د ميم په زير سره دى او په ځينو نسخو كي په زور سره دى ، د دې معنا داده چي د شيطان د مكر او فريب څخه د ځان ساتلو لپاره د جماعت سره د مسلمانانو دعاوي چي د هغه په وجه هغوئ د شيطان د ګمراهۍ څخه خوندي كيږي ، په دې كي دا خبره مقصد ده چي څوک د علماء دين او نېكو بندګانو د جماعت څخه ځان بيلوي هغه ته نه د جماعت بركت تر لاسه كيږي او نه ورته د مسلمان دعاء په برخه كيږي .

﴿٢١٥﴾ : وَعَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ نَضَّرَ اللّٰهُ امْرَأً سَمِعَ مِنَّا شَيْئًا فَبَلَّغَهُ كَمَا سَمِعَهُ فَرُبَّ مُبَلَّغٍ أَوْعٰى لَهُ مِنْ سَامِعٍ . رواه الترمذي وابن ماجه . ورواه الدارمي عن أبي الدرداء .

د حضرت ابن مسعود ﷺ څخه روايت دى چي د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي چي : الله د هغه بنده تازه (خوشحاله او باعزته) لري چي هغه زموږ څخه يو خبره واوري او څرنګه چي يې

اوريدلې وي هغسي يې وړاندي ورسوي نو اكثر هغه خلك چي هغوئ ته (خبره ورسول سي ) د اوريدونكي څخه زيات ياد لرونكي وي . ترمذي، ابن ماجه او دارمي د ابودرداء څخه روايت كړي دي.

**تشريح** : د رسول الله ﷺ مقدس حديثونه اوريدل د هغه پر احكامو عمل كول او د هغه حديثونه نورو خلكو ته رسول د سعادت او بركت او په دين او دنيا كي د كاميابۍ ذريعه ده ، پر دې د پوره امت عقيده او ايمان دى چي د حديث نبوي تعليم او تعلم د دواړو جهانو خوش بختي او د الله تعالى د رضا سبب دى مګر د دې سربيره علماء ليكي كه چيري د حديث په تر لاسه كولو او د هغه په ياد ساتلو او نورو ته په رسولو كي كه بالفرض څه كته نه وي نو د حديثونو د عظمت او رفعت په وجه د دين او ددنيا دواړو ځايو كي د حصول بركت او رحمت لپاره د رسول الله ﷺ دا مباركه دعاء په كافي وي .

﴿۲۱۶﴾ : وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ اتَّقُوْا الْحَدِيْثَ عَنِّيْ إِلاَّ مَا عَلِمْتُمْ فَمَنْ كَذَبَ عَلَيَّ مُتَعَمِّدًا فَلْيَتَبَوَّأْ مَقْعَدَهُ مِنَ النَّارِ . رواه الترمذي . ورواه ابن ماجه عن ابن مسعود وجابر وَلَمْ يَذْكُرِ اتَّقُوْا الْحَدِيْثَ عَنِّيْ إِلاَّ مَا عَلِمْتُمْ .

د حضرت ابن عباس ﷺ څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل : زما د لوري د حديث بيانولو څخه ځان وساتئ . خو (يوازي هغه حديثونه بيانوئ) كوم چي تاسو ته معلوم وي (يعني چي ربښتوني وي) چا چي په قصد سره پر ما درواغ وويل هغو ته پكار دي چي خپل ځاى په دوږخ كي و لټوي ، (ترمذي) او ابن ماجه د حضرت ابن مسعود ﷺ او حضرت جابر ﷺ څخه روايت كړى دى چي په هغه كي د (اتقو الحديث عني الا ماعلمتم ) الفاظ نه دي بيان سوي .

**تشريح** : مقصد دادى چي د حديثو په بيانولو كي د احتياط څخه كار اخيستل پكار دى او د كوم حديث په اړه چي په يقين سره دا معلوم نه وي چي دا حديث واقعي د رسول كريم ﷺ دى نو هغه د خلكو په مخكي بيانول نه دى پكار، هغه حديثونه بيانول پكار دي چي د هغه په اړه په يقين سره يا په غالب ګمان سره دا معلوم وي چي هغه د رسول الله ﷺ حديث دى، تر څو د رسول الله ﷺ ذات اقدس ته د غلط حديث نسبت ونه كړل سي او نه د رسول الله ﷺ و لوري ته د دروا غ خبري نسبت وي چي په هغه د الله تعالى د لوري د سخت عذاب قيد دى .

﴿۲۱۷﴾ : وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ قَالَ فِي الْقُرْآنِ بِرَأْيِهِ فَلْيَتَبَوَّأْ مَقْعَدَهُ مِنَ النَّارِ . وفي رواية مَنْ قَالَ فِي الْقُرْآنِ بِغَيْرِ عِلْمٍ فَلْيَتَبَوَّأْ

د حضرت ابن عباس ﷺ څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل: چا چي په قرآن كريم كي د خپلي رايي څخه څه وويل نو هغه ته پكار دي

مَقْعَدَهُ مِنَ النَّارِ. رواه الترمذي

چي خپل ځای په دوږخ کي و لټوي او په روایت کي دا الفاظ دي : چا چي بېله علمه په قرآن کريم کي څه وويل نو هغه ته پکار دي چي خپل ځای په اور کي و لټوي .ترمذي .

**تشريح** : څرنګه چي په حديثونو بيانولو کي د احتياط څخه د کار اخيستلو هدايت سوی دی همداسي د قرآن کريم په ترجمه او تفسير بيانولو کي هم د احتياط څخه د کار اخيستلو هدايت سوی دی چي د آيت کريمه هغه تفسير بيان کړل سي کوم چي د حديث څخه ثابت او علماء د امت څخه منقول سوی وي او پر هغه نقلا سند موجود وي ، داسي نه ده پکار چي د آياتونو تفسير او د هغه مطالب او مقاصد بيانولو کي خپل عقل او خپل رايي ته دخل ورکړل سي ځکه چي داسي د قرآن کريم په معنا او مفهوم کي فرق پيدا کيږي چي د عذاب الهي موجب دی .

﴿۲۱۸﴾ : وَعَنْ جُنْدُبٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ قَالَ فِي الْقُرْآنِ بِرَأْيِهِ فَأَصَابَ فَقَدْ أَخْطَأَ . رواه الترمذي وأبو داود .

د حضرت جندب[۱] ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : چا چي په قرآن کريم کي د خپلي رايي څخه څه وويل او د هغه رايه د حقيقت مطابق سوه نو بيا يې هم غلطي وکړه . ترمذي او ابوداؤد.

**تشريح** : يعني کوم سړی چي د يو آيت تفسير داسي بيان کړي چي نه په حديثونو ثابت وي او نه د علماء د امت څخه منقول وي بلکه صرف په خپل رايه او عقل باندي په باور کولو سره د آيت تفسير بيان کړي مګر په اتفاق سره د هغه بيان کړی تفسير صحيح او واقعي بالکل مطابق سو چي د هغه څخه د آيت په معنا او مطالب کي څه غلطي ونه سوه نو د هغه په اړه فرمايل سوي دي چي ده هم هغه غلطي وکړه ځکه چي تفسير که څه هم صحيح سو مګر هغه په قصد سره خپل عقل او رايي ته د قرآن په تفسير کي دخل ورکړ او د تفسير چي کومه شرعي قاعده او طريقه ده د هغه څخه يې مخ وګرځوی ځکه نو هغه به هم د خطاکارو په حکم کي شامل سي ، د مجتهد معامله د دې برعکس ده که څه هم مجتهد په خپل اجتهاد کي غلطي وکړي نو پر هغه نه يوازي دا چي مؤاخذه نسته بلکه هغه ته ثواب هم ورکول کيږي .

تفسير دې ته وايي چي د آيت کومه معنا او مطالب بيان کړل سي د هغه په باره کي دا يقين وي چي د آيت مراد او د هغه حقيقي مطلب دادی او دا خبره پرته د اهل تفسير د نقل څخه چي د

[۱] د نوموړي نوم جندب ابن عبد الله ابن سقيان بجلي عقلي دی . د عبدالله بن زبير او د يزيد په حاميانو کي چي کومه جګړه کېدل نو هغه وخت ژوندی وو د دې فتني څخه ځلور ورځي وروسته وفات سوی دی .

هغه سند رسول الله ﷺ ته رسيدلی وي صحيح نه ده، يعني داسي يقين او اطمينان به په هغه تفسير صحيح وي چي معتبرو علماء او مستند مفسرين څخه منقول وي ځکه چي هغوئ هغه معنا او مطالب بيان کړي دي کوم چي د رسول الله ﷺ څخه منقول دي او واسطه بالواسطه هغوئ ته رسيدلي دي.

تاويل دې ته وايي چي د يو آيت معنا او مطالب بيانولو سره د احتمال په طريقه دا وويل سي چي زه کومه معنا بيانوم او د آيت کوم تفسير کوم کيدای سي چي د هغه اصلي مراد دا وي، دا سي کول صحيح دی مګر دا به هم هلته صحيح وي چي بيان سوی تفسير د قواعد عربي او شريعت سره سم وي.

| | |
|---|---|
| ﴿۲۱۹﴾: وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلْمِرَاءُ فِي الْقُرْآنِ كُفْرٌ . رواه أحمد وأبو داود . | د حضرت ابوهريرة ؓ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: په قرآن کريم کي جګړه کول کفر دی. احمد او ابوداؤد. |

**تشريح**: هغه خلک د کفر دائري ته نژدې سوي دي چي د قرآن معنا او مطالب او د مقاصدو او مراد په تعين کي جګړې کوي او د چا په غقل کي چي څه رايه راځي هغه په حق او صحيح ګڼلو سره د ثابت کولو کوښښ کوي او داسي کم فهم خلکو ته چي په ظاهري توګه سره د قرآن کريم په آياتونو کي د معنا او مقصد د لحاظ څخه فرق په نظر راځي نو هغه څخه د يو آيت ناقابل اعتبار، ناقابل قبول او ناقابل استشهاد ګرځولو سره دوهم آيت راجح کوي نو لکه هغوئ چي د قرآن په يوه آيت سره بل آيت ساقطوي.

ظاهره ده چي داسي کول د شريعت له نظره انتهائي جرم دی بلکه په داسي شکل کي هر کله چي په دوو آياتونو کي په خپل منځ کي اختلاف او تضاد معلوميږي نو حتی الامکان په دواړو کي د تطابق او توافق پيداکولو هڅه کول پکار ده که د چا لپاره دا ممکن نه وي نو هغه ته دا عقيده ساتل پکار ده چي دا زما د کم علمۍ او بد فهمۍ په وجه ده او د حقيقي مفهوم او مراد علم دي الله تعالی او د هغه رسول ته وسپاري چي هغوئ بنه پوهيږي.

د مثال په توګه د اهل سنت والجماعة عقيده ده چي خير او شر ټول د الله تعالی د لوري دي او هغه د خپل عقيدې بنياد پر دې آيت لري چي:

(قل كل من عند الله) ژباړه: يعني (اې محمد ﷺ) وفرمايه چي هر څه د الله تعالی د لوري دي.

د اهل السنت والجماعة دا عقيده او د هغوئ دليل بالكل صحيح ، صاف او واضح دی مګر اهل قدر ددې ترديد کوي او ددې پر خلاف خپل عقيده يې دا قائمه کړې ده چې د خير خالق الله تعالى دی او د شر خالق خپله انسان دی او د خپلې عقيدې بنياد پر دې آيت کريمه وايي چې په ښکاره د لومړني آيت متضاد دی يعني :

مَّا أَصَابَكَ مِنْ حَسَنَةٍ فَمِنَ اللَّهِ وَمَا أَصَابَكَ مِن سَيِّئَةٍ فَمِن نَّفْسِكَ. سورة النساء ۷۹

ژباړه : کوم ډول نيکي چې تاسو ته رسيږي هغه د الله تعالى د لوري ده او څه ډول بدي چې تاسو ته رسيږي هغه ستا د نفس د لوري ده .

په هر حال د دې ډول اختلاف او په آياتونو کې تضاد پيدا کول منعه دي بلکه دا پکار ده چې په داسې آياتونو کې پر داسې يو آيت باندې عمل وکړل شي چې پر هغه د مسلمانانو اتفاق او اجماع وي او په دوهم آيت کې داسې تاويل وکړل شي چې د شريعت سره سم وي څرنګه چې په پورتنې دواړو آياتو کې ليدل کيږي چې پر لومړني آيت باندې د مسلمانانو اجماع ده چې خير او شر ټول د الله تعالى د لوري دي او هر شي د تقدير سره سم کيږي نو پر دې عمل پکار دي ، او د دوهم آيت دا تاويل وکړل شي چې په اصل کې د دې آيت تعلق د ماقبل آيت سره دی چې په دې کې د منافقانو بدي او د هغوئ عقيده بيانيږي چې دغه منافقانو ته څه سوي دي چې کوم شی صحيح او واضح دی په هغه نه پوهيږي بلکه دا وايي چې نيکي او بدي خو د الله تعالى د لوري دي او بدي خپله د بنده د نفس د لوري ده لکه چې په داسې دواړو آياتو نو کې به تطبيق وسي ،همداسې په نورو آياتونو کې هم مطابقت پيدا کول پکار دي .

﴿۲۲۰﴾: وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ قَالَ سَمِعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَوْمًا يَتَدَارَؤُوْنَ فِي الْقُرْآنِ فَقَالَ إِنَّمَا هَلَكَ مَنْ كَانَ قَبْلَكُمْ بِهٰذَا ضَرَبُوْا كِتَابُ اللّٰهِ بَعْضَهُ بِبَعْضٍ وَإِنَّمَا نَزَلَ كِتَابُ اللّٰهِ يُصَدِّقُ بَعْضُهُ بَعْضًا فَلاَ تُكَذِّبُوْا بَعْضَهُ بِبَعْضٍ فَمَا عَلِمْتُمْ مِنْهُ فَقُوْلُوْا وَمَا جَهِلْتُمْ فَكِلُوْهُ إِلَى عَالِمِهِ . رواه أحمد وابن ماجه .

حضرت عمرو بن شعيب[۱] د خپل پلار څخه روايت کوي او هغه د هغه د نيکه څخه هغه وويل : رسول الله ﷺ د ځينې خلکو په اړه واوريدل چې هغوئ په قرآن کريم کې يو د بل سره جګړه کوي ، نو رسول الله ﷺ وفرمايل : ستاسو څخه وړاندې خلك په دې سبب هلاك سول چې هغوئ د الله د کتاب ځينې برخې د ځينې خلاف وګرځولې او حال دا چې د الله ﷻ

[۱] نوموړی تابعي دی او د عمرو بن العاص د کورنۍ څخه دی .

كتاب يوه برخه د بلي برخي تصديق كوي ، تاسو د قرآن كريم يوه برخه په بله برخي مه درواغ كوئ او په قرآن كريم كي چي څومره تاسو پوهيږئ هغه بيانوئ او په كومه برخه چي نه پوهيږئ هغه پوهېدونكو ته پريږدئ . احمد او ابن ماجه .

**تشريح** : څرنګه چي د دې څخه په مخکي حديث کي تير سوي دي چي د کومو خلکو علم ناقص وي او د هغوئ په ناقص ذهن او فکر کي چي کوم مفهوم راځي هغه بيانوي او پر هغو د خپل نظرياتو او اعتقاداتو بنياد هم ايږدي چي د هغه مثال په مخکي حديث کي بيان سوی دی .

په دې اړه دلته فرمايل سوي دي که تاسو ته په ځيني آياتونو کي اختلاف معلوم سي نو په هغه کي د يو بل په ذريعه مه ساقط کوئ او مه د هغه تکذيب کوئ بلکه تر څو پوري چي ستاسو علم مرسته کولای سي په هغه کي تطبيق پيدا کړئ که داسي نسئ کولای نو بيا تاسو د دې پر ځای چي د خپل عقل او پوهې غشي وڅغلوی نو د هغه حقيقي معنا او مفهوم الله تعالی او د هغه رسول ته وسپارئ بيا داسي علماء او صلحاء چي د علم په اعتبار ستاسو څخه اعلی او افضل او پر تاسو فوقيت لري هغوئ ته رجوع وکړئ .

﴿۲۲۱﴾ : وَعَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أُنْزِلَ الْقُرْآنُ عَلٰى سَبْعَةِ أَحْرُفٍ لِكُلِّ آيَةٍ مِّنْهَا ظَهْرٌ وَبَطْنٌ وَلِكُلِّ حَدٍّ مُّطَّلَعٌ. رواه في شرح السنة .

د حضرت ابن مسعود ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : قرآن كريم په اوو طرزو (يعني د عربو په اوو لغتو) نازل سوی دی په دې کي د هر يوه آيت يوه ظاهري معنا ده او يوه باطني معنا او د هر حد لپاره يو ځای د خبرداری دی .

**تشريح** : د دنيا په هره ژبه کي د فصاحت، بلاغت او لهجې په اعتبار مختلف اسلوب او مختلف لغات وي همداسي د عربي ژبي هم اووه لغات په عربو کي مشهور وه ، په دې اړه فرمايل سوي دي چي قرآن كريم اووه شان يعني اووه لغات کي نازل سوی دی ، د دې اوو لغاتو تفصيل داسي دی : (۱) لغت قريش (۲) لغت طی (۳) لغت هوازن (۴) لغت اهل يمن (۵) لغت ثقيف (۶) لغت هزيل (۷) لغت بني تميم .

قرآن كريم تر ټولو وړاندي د قريشو د لغت سره سم نازل سوی وو چي د رسول الله ﷺ لغت وو ، هر کله چي په ټولو عربو کي د دې لغت سره سم قرآن كريم ويل مشکل سول ځکه چي د هري قبيلې او هر قوم خپل يو مستقل لغت او د ژبو د لهجو بيل بيل انداز وو نو رسول الله ﷺ په دربار الهي کي درخواست وکړ چي په دې اړه وسعت وکړل سي نو حکم وسو چي هر سړی قرآن كريم د

خپل لهجې سره سم ویلای سي ، د حضرت عثمان ﷺ تر زمانې پوري همداسي روان وو او خلکو به د خپل خپل لغت په اعتبار قرآنکریم وایه .

کله چي حضرت عثمان ﷺ قرآن کریم یو ځای کړ او د هغه کتابت یې د اسلامي سلطنت هري سیمي ته ولیږی نو هغوئ هغه لغت مستقل وګرځوی چي پر هغه حضرت زید بن ثابت ﷺ د حضرت ابوبکر صدیق ﷺ او د حضرت عمر فاروق ﷺ د مشورې سره سم قرآن کریم جمع کړی وو او هغه لغت قریش وو ، او حضرت عثمان ﷺ دا حکم هم وکړ چي نور ټول لغات دي منسوخ کړل سي یوازي دا یو لغت دي پاته سي ، د حضرت عثمان ﷺ د حکم په وجه د یو لوی فتنې ریښې هم ختم کړل سوې او فتنه دا وه چي د لغات د اختلاف په وجه مسلمانانو په خپلو کي جګړې کولې او نوبت دې ځای ته رسیدلی وو چي یو سړي به بل سړی د خپل لغت خلاف قرآن کریم ویلو باندي ولیدی نو په دا ګڼلو سره چي یوازي زما د قبیلې لغت صحیح دی هغه ته به یې کافر ویل نو د لغت قریش څخه پرته چي په هغه قرآن کریم نازل سوی وو پاته ټول لغات ختم کړل سول او که یو لغت باقي هم پاته سو نو هغه چي پر هغه به د صحابه کرامو اتفاق وو او د سند متصل او تواتر سره په آخر کي قراء سبعه ته رسیدل د دې څخه پرته په لغت کي مکرر یعني د اماله او ادخام وغیره اختلاف هم باقي پاته سو چي تر ننه پوري په قراء سبعه کي موجود دي .

ځیني علماء وایي دا چي فرمایل سوي دي چي قرآن کریم پر اووه ډوله باندي نازل سوی دی نو د اووه ډوله څخه مراد هغه اووه قرائتونه دي چي قراء سبعه یې وایي ، بیا علماؤ دا هم ویلي دي که څه هم قرائتونه تر اوو زیات دي مګر دلته د اوو تهدید ځکه سوی دی چي دا اختلاف هم اووه ډوله دی چي هغه ته دا اووه قرائتونه راجمع دي لکه :

۱. په کلمه د ذات کي اختلاف یعني په کلمه کي امر زیاتي .
۲. د جمع او مفرد اختلاف .
۳. د مذکر او مؤنث اختلاف .
۴. صرفي اختلاف یعني د تخفیف او تشدید ، فتح او کسره وغیره اختلاف لکه مَيْتٌ او مَيِّتٌ ، يَقْنُطُ او يَقْنَطُ .
۵. د اعراب اختلاف .
۶. د حروفو اختلاف لکه په لکن الشیطین کي د نون تشدید او تخفیف .
۷. د لغات د ادا کولو اختلاف لکه تفخیم ، اماله او داسي نور .

د حديث په پای کي فرمايل سوي دي چي هر آيت ظاهر دی او باطن دی د دې مطلب دادی چي د هر آيت يو ظاهري معنا ده چي ټول اهل زبان په پوهيږي او يو باطني معنا ده چي يوازي د الله تعالی هغه خاص بندګان په پوهيږي چي هغوئ زړه او د ماغ د معرفت د رڼا څخه ډک وي .

بيا فرمايل سوي دي چي د هر حد لپاره يو ځای د خبرداري دی ، د حدق معنا د طرف او نهايت ده مطلب دادی چي د هر ظاهر او باطن يو حد او نهايت دی او د حد او نهايت لپاره يو مطلع يعني داسي مقام وي چي هغه ته رسيدو او د هغه د حاصلولو څخه وروسته سړی په هغه حد او نهايت باندي مطلع کيږي .

د ظاهر مطلع يعني هغه مقام چي هغه ته په رسيدو سره حد او نهايت معلوميږي دادی چي عربي ژبه او د هغه اصول او قواعد زده کړل سي د صرف او نحو علم تر لاسه کړل سي چي د قرآن کريم ظاهري معنا د هغه سره متعلق ده او د هر آيت شان نزول او د ناسخ او منسوخ علم حاصل کړي يا داسي هغه نور شيان دي چي پر هغه د قرآن کريم د ظاهري معنا پوهېدل منحصر دي .

د باطن مطلع داده چي رياضت او مجاهده وکړل سي ، د قرآن کريم د ظاهري معنا او د هغه د احکامو اتباع او په هغه عمل وکړل سي ، نفس د ټولو خرابی ، ګناه او معصيت څخه پاک کړل سي ، زړه ته د عبادت الهي او رضائي الهي د نور څخه ځلا وبخښل سي او داسي نور ، دا هغه شيان دي چي د هغه د حصول څخه وروسته باطني علوم او د هغه د اسرار او معارف د انسان زړه کي کشف کيږي ، امام محي السنة رحمة الله عليه په خپل تفسير معالم التنزيل کي ليکلي دي چي د حديثو د الفاظو (ظهر) څخه مراد د قرآن الفاظ دي او د بطن څخه مراد د الفاظو تاويل دی ، د مطلع څخه مراد فهم يعني پوهه ده چي د هغه په وجه په قرآن کريم کي غور او فکر کونکي باندي د قرآن کريم د کومو علومو او معناوو د تاويل انکشاف کيږي هغه پر نورو نه کيږي .

﴿۲۲۲﴾ : وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلْعِلْمُ ثَلَاثَةٌ آيَةٌ مُحْكَمَةٌ أَوْ سُنَّةٌ قَائِمَةٌ أَوْ فَرِيْضَةٌ عَادِلَةٌ وَمَا كان سِوٰى ذٰلِكَ فَهُوَ فَضْلٌ . رواه أبو داود وابن ماجه .

د حضرت عبدالله بن عمرو ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د دين علم درې ډوله دی : ۱: يو آيت محکمه (ټينګ او غير منسوخ) ۲: دوهم سنت قائمه (يعني مستند حديثونه) ۳: او دريم فريضه عادله (يعني اجماع امت او قياس) او ددې څخه پرته

څه چي دي هغه زيات دی ; ابوداؤد او ابن ماجه.

**تشريح**: مطلب دادی چي د دين علم درې ډوله دی یا دا چي د علم دين بنیاد پر درو شیانو دی. آیت محکم هغه آیاتونه دي چي ټینګ او غير منسوخ دي د دې څخه مطلب کتاب الله ته اشاره ده چي اصل قرآن آيات محكمات دي ځکه دلته یوازي هغه ذکر کړل سوي دي او هغه نور علوم چي د هغه لپاره وسیله دي هغه هم د هغه سره متعلق دي، سنت قائمه یعني هغه حدیث چي متن او د اسناد د محافظت سره ثابت دي.

د فریضه عادله څخه مطلب قیاس او اجماع ته چي د کتاب او سنت څخه مستنبط کیږي دې ته فریضه ځکه ویل سوي دي چي پر قیاس او اجماع باندي عمل کول هم داسي واجب دي لکه پر کتاب الله او سنت رسول باندي، د عادله معنا داده چي داسي فريضه چي د کتاب او سنت مثل او عدیل وي.

په هر حال د حدیث وضاحت دا وسو چي د دين اصول څلور دي چي پر هغه د دين او شريعت پوره بنیاد دی (۱) کتاب یعني قرآن کریم (۲) سنت یعني احادیث، (۳) اجماع، (۴) قیاس، او د دې څخه پرته چي کوم علوم دي هغه به زائد او د ديني حيثيت څخه بې معنا وي.

﴿۲۲۳﴾ : وَعَنْ عَوْفِ بْنِ مَالِكِ الْأَشْجَعِيِّ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لاَ يَقُصُّ إِلاَّ أَمِيْرٌ أَوْ مَأْمُوْرٌ أَوْ مُخْتَالٌ . رواه أبو داود . ورواه الدارمي عن عمرو بن شعيب عن أبيه عن جده وفي روايته أَوْ مُرَاءٍ بَدَلَ أَوْ مُخْتَالٌ.

د حضرت عوف[۱] بن مالك الاشجعي ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: قصه نه بیانوي (یعني نصیحت نه کوي) مگر حاکم یا محکوم او یا مغرور او متکبر (په دې درو کي ذوو لومړنیو کسانو لره خو نصیحت کول جائز او مغرور او متکبر لپاره ناجائز او ممنوع دي). ابوداؤد او دارمي.

**تشريح**: د قصې بیانولو څخه مطلب وعظ او نصیحت کول او حکایات او قصې بیانول دي، مطلب دا چي وعظ او تقرير په عامه توګه درې ډوله خلک کوي، په هغوئ کي دوه پر حق دي یعني حاکم او محکوم، دې خلکو ته وعظ بیانول پکار دي، دریم سړی متکبر دی هغه ته وعظ کول نه دی پکار ځکه چي هغه د وعظ کولو اهل نه دی.

لکه چي د حدیث مفهوم داسو چي وعظ کول لومړی خو د امير یعني حاکم حق دی، ځکه چي هغه پر رعیت تر ټولو زیات مهربان وي او د رعایت د اصلاح امور په ښه ډول پیژني که حاکم

---
[۱] د نوموړي نوم عوف بن مالك اشجعي او کنیت یې ابوعبدالرحمن دی. ځیني حضراتو ابوحماد او ځیني عمرو هم لیکلی دی. په دمشق کي په کال (۷۳هـ) کي وفات سوی دی. اسد الغابة.

خپله وعظ نه کوي نو په علماء کي چي کوم عالم په تقوا او تقدس کي تر ټولو افضل او اعلی وي او دنیاوي طمع نه لري هغه دي وتاکي چي خلکو ته وعظ او نصیحت کوي نو د مامور څخه مراد دوهم هغه سړی دی چي د الله تعالی د لوري د مخلوق د هدایت او اصلاح لپاره مامور کړل سوی وي لکه علماء او اولیاء الله چي د خلکو په مخکي وعظ بیانوي او د مخلوق په اصلاح او هدایت کي لګیدلي وي نو په دې حدیث کي پر داسي خلکو باندي زورونه او توبیخ (غصه) مقصد دی چي د دولت او عزت په خاطر نصیحت کوي حال دا چي هغوئ په علمي حیثیت سره د دې عظیم منصب اهل نه وي او نه په عملي توګه سره د دې وړ وي چي د خلکو اصلاح وکړلای سي ، وعظ کول یوازي د دوو خلکو برخه ده او هغوئ یې مستحق او اهل دي ، د هغوئ څخه پرته چي څوک وعظ کوي نو د هغه مطلب به دا وي چي هغه د فخر او تکبر په وجه او د عزت حاصلولو په خاطر دا کار کوي کوم چي د الله تعالی د عذاب باعث دی .

﴿۲۲۴﴾ : وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ أُفْتِيَ بِغَيْرِ عِلْمٍ كَانَ إِثْمُهُ عَلَى مَنْ أَفْتَاهُ وَمَنْ أَشَارَ عَلَى أَخِيْهِ بِأَمْرٍ يَعْلَمُ أَنَّ الرُّشْدَ فِيْ غَيْرِهِ فَقَدْ خَانَهُ . رواه أبو داود .

د حضرت ابوهریرة ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : کومه فتوا چي بېله علمه ورکړل سي د هغه ګناه به پر فتوا ورکونکي وي او چا چي یو ورور ته غلطه مشوره ورکړه نو هغه خیانت وکړ . ابوداؤد.

**تشریح** : د مثال په توګه یو جاهل سړی یو عالم سړي ته د یو مسئلې پوښتلو لپاره راسي ، عالم پوښتني کونکي ته د هغه د سوال صحیح جواب ور نه کړ بلکه د کم علمی یا بلي وجي څخه غلطه مسئله یې ورته وښودل او هغه جاهل په دې نه پوهیدی چي دا مسئله غلطه ده نو په هغه یې عمل وکړ نو د هغه ګناه به پر هغه جاهل سړي نه وي بلکه پر هغه عالم به وي چي هغه ته یې غلطه مسئله ښودلو سره هغه یې په غلط عمل کولو مجبور کړ ، مګر شرط دادی چي عالم په خپل اجتهاد کي غلطي کړې وي .

د حدیث د دوهمي برخي مطلب دادی که یو سړی د خپل یو ورور بدخواهي داسي وغوښتل چي هغه ته یې د هغه شي مشوره ورکړل د کوم په اړه چي هغه ته معلومه ده چي په هغه کي د هغه خیر نسته بلکه په دوهم کار کي دی نو دا د هغه خیانت دی هغه به د خپل غیر اخلاقي او غیر شرعي عمل په وجه خائن (خیانت کونکی) ګڼل کیږي .

﴿۲۲۵﴾ : وَعَنْ مُعَاوِيَةَ قَالَ إِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهٰى عَنِ الْأُغْلُوْطَاتِ . رواه أبو داود .

د حضرت معاوية ﷛ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ د هغه مسئلې د پوښتني څخه منعه کړې ده چي عالمان په شك او شبه کي اچوي . ابوداؤد .

**تشريح** : د دې ارشاد مقصد د دې خبري خبرداری دی چي د علماؤو څخه د داسي مسائلو پوښتني کول چي د مشکل او پیچیده کېدو په وجه هغوئ په مغالطه (شک او شبهې) کي لويږي يا د هغه څخه د سائل مقصد علماء پريشان کول او هغوئ په مغالطه کي اچول وي ځکه چي اکثر داسي کيږي چي ځيني حضرات چي د هغوئ زړه او دماغ د علماؤ د عظمت او عزت څخه خالي وي هغوئ په امتحان اچولو کي يا د خلکو په مخکي د هغوئ د سپکاوي کولو لپاره داسي مسئلې جوړوي چي هغوئ په مغالطه او چکر کي واچوي .

په دې اړه تر ټولو چي د مسئلې تعلق دی هغه دادی که یو څوک په پيل کي داسي سوال وکړ نو دا حرام دی ځکه چي په دې سره د یو مؤمن د ضرر رسولو او د ذهني تکليف سامان برابريږي او دا د فتنې او فساد او عداوت او نفرت سبب دی، دوهم دا چي پر داسي ځای باندي د فخر او تکبر په وجه د خپل فضيلت او قابليت اظهار مقصود وي او څرګنده ده چي دا ټول شيان حرام دي . مګر که داسي صورت وي چي دوهم د هغه څخه سوال وکړ او هغه د هغه په جواب کي التزاما داسي سوال وکړ نو دا حرام نه دی .

﴿۲۲۶﴾: وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَعَلَّمُوا الْفَرَائِضَ وَالْقُرْآنَ وَعَلِّمُوْا النَّاسَ فَإِنِّيْ مَقْبُوْضٌ . رواه الترمذي .

د حضرت ابوهريرة ﷛ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : تاسو فرضونه او قرآن کريم زده کړئ او خلکو ته يې و ښياست ځکه چي زه به پورته کړل سم

﴿۲۲۷﴾: وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ قَالَ كُنَّا مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَشَخَصَ بِبَصَرِهِ إِلَى السَّمَاءِ ثُمَّ قَالَ هٰذَا أَوَانٌ يُخْتَلَسُ فِيْهِ الْعِلْمُ مِنَ النَّاسِ حَتّٰى لَا يَقْدِرُوْا مِنْهُ عَلٰى شَيْءٍ . رواه الترمذي .

د حضرت ابوالدرداء ﷛ څخه روايت دی چي موږ د رسول الله ﷺ سره ملګري وو چي رسول الله ﷺ د آسمان په لور وکتل بيا يې وفرمايل : دا وخت دی چي علم به د خلکو څخه پورته کړل سي تر دې چي هغوئ به د علم په ذريعه په هيڅ شي قدرت نه لري (د علم څخه مراد وحي ده او د خپل وفات په لور د مبارك اشاره وه) . ترمذي .

**تشريح** : دلته د علم څخه مراد وحي دي او اشاره ده د خپل وفات په لور ، يعني رسول الله ﷺ

آسمان ته و كتل لكه چي د وحي منتظر وو ، د الله تعالى د دربار څخه وحي نازلې سوي او خبر وركړل سو چي اوس ستاسو اجل راغلى دى او تاسو ددې دنيا څخه په رخصتېدو سره واصل بحق كېدونكي ياست ځكه نو رسول الله ﷺ وفرمايل : اوس وخت راغلى دى چي د دې دنيا څخه وحي منقطع سي.

﴿۲۲۸﴾:وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ رِوَايَةً يُوْشِكُ أَنْ يَضْرِبَ النَّاسُ أَكْبَادَ الْإِبِلِ يَطْلُبُوْنَ الْعِلْمَ فَلاَ يَجِدُوْنَ أَحَدًا أَعْلَمَ مِنْ عَالِمِ الْمَدِيْنَةِ . رواه الترمذي في جامعه . قال ابن عيينه إنه مالك بن أنس ومثله عن عبد الرزاق قال إسحق بن موسى وسمعت ابن عيينه أنه قال هو العمري الزاهد واسمه عبد العزيز بن عبد الله

د حضرت ابوهريرة ﷺ څخه روايت دى چي هغه زمانه نژدې ده چي خلك به د علم د تر لاسه كولو لپاره د اوښانو ځيگر ځيري كړي (يعني د ليري ليري ځايو سفرونه به كوي) مگر په هيڅ يو ځاى كي به د مدينې د عالم څخه زيات عالم پيدا نه كړي (ترمذي او جامع ترمذي كي د ابن عبينه څخه منقول دى چي د مدينې هغه عالم . مالك بن انس دى او عبدالرزاق هم داسي ليكلي دي او د اسحاق بن موسى بيان دى چي ما د ابن عيينه څخه دا اوريدلي دي چي د مدينې هغه عالم عمري (يعني د حضرت عمر ﷺ كورنۍ څخه) زاهد دي او د هغه نوم عبدالعزيز بن عبدالله دى).

**تشريح** : د (روايةً منقول) مطلب دادى چي حضرت ابوهريره ﷺ دا حديث د رسول الله ﷺ څخه مرفوعا روايت كړى دى مگر د ابوهريره ﷺ شاگرد ته د ابوهريره ﷺ الفاظ ياد نه دي ځكه هغه دا حديث همداسي نقل كړ. د اوښانو ځيگر شكولو مطلب دادى چي هر كله د خلكو په منځ كي د علم آوازه او د علم تر لاسه كولو شوق زيات سي نو خلك به ليري ليري سفر كوي او د علم په خاطر به په تهوله نړۍ كي گرځي يا دا چي علم ته د ژر رسيدو لپاره به اوښان په تيزي سره شړي او په تيزي سره به د علم منزل مقصود ته رسيږي . د حديث د الفاظو په مصداق كي كلام دى رسول الله ﷺ چي دا فرمايلي دي چي د مدينې د عالم څخه زيات عالم به بيا نه پيدا كيږي نو د مدينې عالم څخه مراد څوك دى ؟ سفيان بن عيينه چي د امام مالك د اصحاب او د امام شافعي د شيوخ څخه دى فرمايي چي د رسول الله ﷺ د ارشاد څخه مراد د امام مالك رحمه الله ذات محترم دى ، همداسي حضرت عبدالرزق چي د حديثو جليل القدر او مشهور امام دى دا فرمايي چي په حديث كي د كوم عالم مدينه ذكر سوى دى د هغه څخه مراد حضرت امام مالك رحمة الله عليه دى .

مګر د ابن عینیه یو شاګرد اسحاق بن موسی فرمایي چې ما دابن عینیه ځخه دا اوریدلي دي چې د عالم مدینه ځخه مراد عمري زاهد دی د هغه نوم عبدالعزیز بن عبدالله دی چې د حضرت عمر فاروق ﷛ د کورنۍ ځخه دی ځکه ورته عمري وایي او زاهد د هغه صفت دی ځکه چې دی د مدینې یو جلیل القدر عالم کېدو سره سره یو لوی زاهد او متقي هم وو، د هغه نسب داسي دی: عبدالعزیز بن عبدالله بن عمرو بن حفص بن عاصم بن عمر فاروق ﷛.

په هر حال امام ترمذي چې د یحیی واسطي سره د ابن عینیه کوم قول نقل کړی دی هغه د هغه قول مخالف دی چې ابن عینیه ځخه اسحاق بن موسی نقل کوي همداسي د ابن عینیه په اقوالو کي اختلاف دی او ددې وجه داده چې دغه دواړو حضراتو د عینیه ځخه کوم قول نقل کړی دی هغه باعتبار ظن (شکمن) دی په یقیني او حتمي توګه سره هغه د خلکو ځخه نه دی نقل کړی.

په دې خبره هم پوهېدل پکار دي چې د رسول الله ﷺ دا ارشاد اصحابو او تابعینو د زمانې په اعتبار دی چې د هغو په زمانه کي د مدینې د عالم ځخه زیات عالم به په بل ځای کي نه وي ځکه چې صحابه کرامو او تابعینو ځخه وروسته هر کله چې د علم مقدسه رڼا د مدینې ځخه په وتلو سره په شاوخوا نړۍ کي خپره سوه نو د هغه په نتیجه کي په نورو هیوادونو او ښارونو کي داسي عالمان او فاضلان پیدا سول چې د خپل علم او فضل او دیني فهم او فراست په اعتبار د مدینې د عالمانو ځخه زیات سوي دي.

د دغه حدیث ظاهري معنی چې ارشاد نبوي ته زیات نژدې او مناسب ده، داده چې د رسول الله ﷺ مقصد د دې ارشاد ځخه ددې خبري خبر ورکول دی چې په آخره زمانه کي به علم د خپل وسعت او پراخۍ سربیره یوازي په مدینه منوره کي منحصر سي څرنګه چې په نورو حدیثونو کي دا خبره په صراحت سره معلومیږي. والله تعالی اعلم.

﴿۲۲۹﴾: وَعَنْهُ فِيْمَا أَعْلَمُ عَنْ رَّسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ اللهَ عَزَّ وَجَلَّ يَبْعَثُ لِهٰذِهِ الْأُمَّةِ عَلٰى رَأْسِ كُلِّ مِائَةِ سَنَةٍ مَنْ يُجَدِّدُ لَهَا دِيْنَهَا. رواه أبو داود.

د حضرت ابوهریرة ﷛ ځخه روایت دی چې د رسول الله ﷺ ځخه چې څه ما ته معلوم سوي دي هغه دادي چې رسول الله ﷺ فرمایلي دي چې الله پاك د دې امت لپاره په هره صدۍ (پیړۍ) کي یو سړی رالیږي چې د هغه دین به تازه کوي. ابوداؤد.

**تشریح**: اکثرو علماؤ د دې حدیث ځخه دا مراد اخیستی دی چې په هره زمانه کي په هر امت کي

د خپل علم او فضل په اعتبار په ټولو کي ممتاز یو داسي سړی موجود وي چي دین ځلوي او تازه کوي یې هغه ته مجدد وایي ، مجدد په خپله زمانه کي هره پیدا سوې بده خبره او خرابي لیري کوي بدعت او د رواجونو ژوري پردې چي ددین پر حقیقت لویږي هغه د خپل علم او معرفت په قوت سره پرې کوي او دامت په مخکي پوره دین په صاف او پاک کولو سره په خپل اصلي شکل کي وړاندي کوي .ځینو حضراتو تعین هم کړی دی چي په فلانی پیړۍ کي فلانی مجدد پیدا سوی وو او په فلانی پیړۍ کي فلانی مجدد موجود وو ، ځیني علماؤ د حدیث معنا پر عمومیت باندي محمول کړې ده یعني که چیري د دین تجدید کونکی یو سړی وي یا یوه ډله وي چي په دین کي پیدا سوي بدۍ او خرابۍ ختم کړي .

﴿۲۳۰﴾: وَعَنْ إِبْرَاهِيْمَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ الْعُذْرِيِّ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَحْمِلُ هٰذَا الْعِلْمَ مِنْ كُلِّ خَلَفٍ عُدُوْلُهُ يَنْفُوْنَ عَنْهُ تَحْرِيْفَ الْغَالِيْنَ وَانْتِحَالَ الْمُبْطِلِيْنَ وَتَأْوِيْلَ الْجَاهِلِيْنَ . رواه البيهقي في كتاب المدخل من حديث بقية بن الوليد عن معان بن رفاعة عن ابراهيم بن عبدالرحمن العذري و سنذكر حديث جابرفانما شفاء العي السوال في باب التيمم ان شاء الله تعالى .

د حضرت ابراهیم بن عبدالرحمن العذري ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : دا علم (د کتاب او سنت) به هر راتلونکي ټولۍ څخه د هغه نیك خلك تر لاسه کوي چي ددې څخه به د حد څخه د تیریدونکو خلکو تحریف د باطلو خلکو درواغ تړل او د جاهلانو تاویلات لري کوي ، بیهقي په مدخل کي دا حدیث د بقیه بن ولید ، معان بن رفاعه او هغوئ د ابراهیم بن عبدالرحمان عذري چي د هغه پیل دادی : فانما شفاء العي السوال . به مورږ د تیمم په باب کي ذکر کړو

## الفصل الثالث

﴿۲۳۱﴾: عَنِ الْحَسَنِ مُرْسَلاً قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ جَاءَهُ الْمَوْتُ وَهُوَ يَطْلُبُ الْعِلْمَ لِيُحْيِيْ بِهِ الْإِسْلَامَ فَبَيْنَهُ وَبَيْنَ النَّبِيِّيْنَ دَرَجَةٌ وَاحِدَةٌ فِي الْجَنَّةِ . رواه الدارمي .

د حضرت حسن[1] (بصري) ﷺ څخه مرسلا روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : څوك چي په داسي حال کي مړ سي چي هغه په دې غرض علم تر لاسه کاوه چي په هغه سره اسلام ته تازه ژوند ورکړي نو په جنت کي به د هغه او د انبیاؤ په منځ کي یوازي د یوې درجې فرق وي . دارمي .

[1] حسن بصري تابعي دی ، په مدینه کي پیدا سوی دی او په کال (۱۱۰هـ) کي وفات سوی دی .

﴿۲۳۲﴾ : وَعَنْهُ مُرْسَلاً قَالَ سُئِلَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ رَجُلَيْنِ كَانَا فِيْ بَنِيْ إِسْرَائِيْلَ أَحَدُهُمَا كَانَ عَالِمًا يُصَلِّيْ الْمَكْتُوْبَةَ ثُمَّ يَجْلِسُ فَيُعَلِّمُ النَّاسَ الْخَيْرَ وَالْآخَرُ يَصُوْمُ النَّهَارَ وَيَقُوْمُ اللَّيْلَ أَيُّهُمَا أَفْضَلُ؟ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَضْلُ هٰذَا الْعَالِمِ الَّذِيْ يُصَلِّيْ الْمَكْتُوْبَةَ ثُمَّ يَجْلِسُ فَيُعَلِّمُ النَّاسَ الْخَيْرَ عَلَى الْعَابِدِ الَّذِيْ يَصُوْمُ النَّهَارَ وَيَقُوْمُ اللَّيْلَ كَفَضْلِيْ عَلٰى أَدْنَاكُمْ . رواه الدارمي .

د حضرت حسن بصري ﷺ څخه مرسلاً روایت دي چي رسول الله ﷺ ته د بني اسرائیلو د ددو خلکو حال بیان کړل سو چي په هغوئ کي یو عالم وو چي فرض لمونځ به يې کاوه بیا به کښېناست خلکو ته به يې علم ښودی او دوهم سړی به د ورځي روژه نیول او ټوله شپه به يې عبادت کاوه ،د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وسول چي په دوئ کي کوم یو غوره دی ؟ رسول الله ﷺ وفرمایل د هغه عالم چي فرض لمونځ به يې کاوه او خلکو ته به يې علم ښودی پر دغه عابد چي د ورځي به يې روژه نیول او ټوله شپه به يې عبادت کاوه داسي فضیلت لري لکه زما فضیلت چي ستاسو پر یو ادنا صحابي دی. دارمي .

**تشریح** : د بني اسرائیلو ذکر سوي دواړه عالمان خو د خپل علم او فضل په اعتبار هم په رتبه کي یو شان وه مګر فرق دا وو چي عابد خو د خپل ژوند مقصد یوازي عبادت الهي جوړ کړی وو ، شپه، ورځ او هر وخت به په عبادت کي بوخت وو، د بندګانو د اصلاح او تعلیم يې څه غرض نه وو مګر عالم به فرض عبادت هم په پوره توګه سهر ادا کول او د خپل وخت پاته برخه به يې د خلکو په اصلاح او تعلیم کي صرف کول نو په دواړو کي افضل هغه سړی ګرځول سوي دی چي خپله يې هم پر خپل علم عمل کوی او نورو ته يې هم په علم ښودلو سره د هدایت لاره ښودل .

﴿۲۳۳﴾ : وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نِعْمَ الرَّجُلُ الْفَقِيْهُ فِي الدِّيْنِ إِنِ احْتِيْجَ إِلَيْهِ نَفَعَ وَإِنِ اسْتُغْنِيَ عَنْهُ أَغْنٰى نَفْسَهُ . رواه رزين .

د حضرت علي ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : د دین هغه عالم ښه دی چي هغه ته که یو حاجت راوړل سي نو هغه ګټه رسوي او که د هغه څخه بې پرواهي وکړل سي نو هغه هم خپل ځان بې پروا ساتي .

**تشریح** : د دغه حدیث مطلب دادی چي د یو عالم دا شان کېدل پکار دي چي خپل ځان د نورو محتاج کولو سره خپل حیثیت کم نه کړي او د غلط اغراضو او مقاصدو په خاطر د عوام د مصاحبت طرف ته میلان ونه کړي او نه د هغوئ څخه د یو دنیوي غرض او ګټي طمع کوي .

مګر د دې مطلب دا هم نه دی چي خپل ځان د عوامو څخه بالکل بې تعلقه کړي او د خپل علم څخه د الله تعالی مخلوق محروم کړي که عوام د دین د ضروریاتو په اړه یوازي د هغه

محتاج وي او د هغه شخه پرته د بل عالم نه كېدو په وجه د خلكو رجوع هغه ته وي نو هغه ته پكار ده چي د خلكو په مينځ كي ورسي او د هغوئ ديني او اسلامي ضروريات پوره كولو سره هغوئ ته ګټه ورسوي.

كه چيري عوام خپله د هغه شخه بې پرواهي كوي چي نه هغوئ ته د هغه شخه د ګټې اخيستلو خواهش وي او نه د هغه محتاج وي نو پكار ده چي هغه هم د هغوئ شخه بې پرواه وي او د هغوئ سره تعلق قطع كولو سره خپل وخت په عبادت كي مشغول ساتي يا د خدمت علم دين په خاطر د ديني كتابونو مطالعه او تصنيف او تاليفه او ترجمه كي مصروف كېدو سره په دې ذريعه د علم رڼا خپره كړي.

﴿۲۳۴﴾ : وَعَنْ عِكْرَمَةَ أَنَّ ابْنَ عَبَّاسٍ قَالَ حَدِّثِ النَّاسَ كُلَّ جُمُعَةٍ مَرَّةً فَإِنْ أَبَيْتَ فَمَرَّتَيْنِ فَإِنْ أَكْثَرْتَ فَثَلاَثَ مَرَّاتٍ وَلاَ تُمِلَّ النَّاسَ هٰذَا الْقُرْآنَ وَلاَ أُلْفِيَنَّكَ تَأْتِيْ الْقَوْمَ وَهُمْ فِيْ حَدِيْثٍ مِّنْ حَدِيْثِهِمْ فَتَقُصُّ عَلَيْهِمْ فَتَقْطَعُ عَلَيْهِمْ حَدِيْثَهُمْ فَتُمِلُّهُمْ وَلٰكِنْ أَنْصِتْ فَإِذَا أَمَرُوْكَ فَحَدِّثْهُمْ وَهُمْ يَشْتَهُوْنَهُ وَانْظُرِ السَّجْعَ مِنَ الدُّعَاءِ فَاجْتَنِبْهُ فَإِنِّيْ عَهِدْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَصْحَابَهُ لاَ يَفْعَلُوْنَ ذٰلِكَ. رواه البخاري

د حضرت عكرمه ﷺ شخه روايت دی چي ابن عباس ﷺ (يوه ورځ) عكرمه ته وويل چي ته هره جمعه خلكو ته حديث بيانوه، كه چيري دا لږ وي نو بيا په اونۍ كي دوې ورځي او كه تر دې زيات ضرورت سي نو په اونۍ كي درې ځله د قرآن (نصيحت ورته كاوه) او تر دې يې زيات مه تنګوه ، د دې وروسته ابن عباس وويل او داسي هم مه كوه چي خلك په خپلو خبرو كي بوخت وي او ته د هغو په خبرو كي ور ولوېږې او نصيحت پيل كړې او هغوئ تنګ كړې په داسي حال كي تا ته پكار ده چي پټه خوله پاته سې البته كه چيري هغوئ ستاځخه د نصيحت غوښتنه وكړي نو د هغوئ په وړاندي تر څو پوري چي هغوئ د دې غوښتونكي وي حديث بيانوه او په دعاء كي قافيه دار عبارت مه استعمالوه . څرګنده سوې ده چي رسول الله ﷺ او د هغوئ صحابه كرامو به داسي نه كول. بخاري.

**تشريح** : څرنګه چي په مخكني مخونو كي تير سوي دي په دې حديث كي هم پر دې زور اچول سوی دی چي د وعظ او نصيحت په معامله كي د اعتدال ، ځای او ماحول رعايت كول ضروري دی او د آثر اندازې د دعوت او تبليغ دا بنيادي بنسټ دی چي پر دې د تبليغ د كاميابۍ پوره دارمدار دی.

په دې اړه په خاصه توګه دا ښودل سوي دي كه خلك په يو خبره يا په خپل منځ كي په خبرو

بوخت وي نو داسي موقع ته په رسيدو سره وعظ او نصيحت پيل کول نه دي پکار، که څه هم هغه خبري دنياوي امورو سره تعلق لري يا پر ديني خبرو باندي مشتمل وي، که هغوئ د دين په خبرو کي بوخت وي نو ظاهره ده چي په درجه اولی د هغوئ خبره قطع کول مناسب نه دي ، او که د خبرو اترو موضوع يوازي د دنيا وي نو داسي کول مناسب نه دي .

ځکه کله چي يو سړی په خپل يو ضروري خبره کي بوخت وي او هلته په رسيدو سره وعظ او نصيحت پيل کړل سي نو په خبرو اترو کي د خلل په وجه کيدای سي چي هغوئ د بشريت په غوښتنه هغه ونه زغمي او پر داسي موقع د قرآن او حديثو خبري اوريدل خوښ نه کړي چي د هغه په وجه نه يوازي دا چي هغه په خپله په ګناه کي اخته سي بلکه د هغه پر زړه د دين دعظمت او اهميت نقش هم قائم نسي . هو که چيري د حکمت غوښتنه وي چي هغوئ د هغه خبرو څخه منعه کړل سي نو بيا د داسي انداز او طريقې اختيارول پکار دي چي هغوئ ته ناخوښه هم نه وي او هغوئ د هغه خبرو څخه منعه هم سي ، مقصد دا چي حکمت او ضرورت پر وخت بآندي ساتل پکار دي .

او تر څو چي د ابن عباس ﷺ د قول تعلق دی نو په دې اړه دا ويل سوي دي چي د هغوئ عکرمه ﷺ ته حکم ورکول د اکثر په اعتبار وو يعني دا د هغه وخت خبره ده هر کله چي اکثر او ډير خلک به صرف په دنياوي خبرو کي بوخت وه .

په دعاء کي د مقفی عبارت مطلب دادی چي دعاء د تاثير په اعتبار هغه غوره وي چي پرته د تصنع (ځان ښودني) په ساده الفاظو کي وي او د زړه د کومي وتلې وي ، ځکه چي د دعاء عبارت ته د شعر او شاعري په رنګ ورکولو الفاظو کي قافيه او تکليف کول نه دي پکار ، د دې سره د رسول الله ﷺ پر هغه دعاګانو اعتراض نسي کيدای چي مقفی او مسجع ثابت وي او په هغه کي قافيه بندي هم وه ځکه چي دا شيان خود رسول الله ﷺ څخه بې تکلفه او بې زحمته د خپله ځانه صادريدل په هغه کي د رسول الله ﷺ د تکلف او کوښښ دخل نه وو .

﴿۲۳۵﴾ :وَعَنْ وَاثِلَةَ بْنِ الْأَسْقَعِ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ طَلَبَ الْعِلْمَ فَأَدْرَكَهُ كَانَ لَهُ كِفْلَانِ مِنَ الْأَجْرِ فَإِنْ لَّمْ يُدْرِكْهُ كَانَ لَهُ كِفْلٌ مِّنَ الْأَجْرِ . رواه الدرامي .

د حضرت واثلةبن الاسقع ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : چا چي علم طلب کړ او تر لاسه يې کړ نو هغه ته به دوچنده ثواب ورکول کيږي او که يې علم تر لاسه نه کړ نو يو ثواب به ورته ورکول کيږي. دارمي .

**تشريح** : دوه ثوابه به داسي ورکول کيږي چي يو ثواب خو به د طلب علم او د هغه د محنت او مشقت وي چي هغه د علم په تر لاسه کولو کي پر ځان ګاللي وي او دوهم ثواب د علم د تر لاسه کېدو او بيا نورو ته د علم ښودلو به وي، يا دوهم ثواب به د عمل وي چي هغه په علم کړی وي ، مګر هو هغه سړي ته چي د طلب او هڅي سربيره علم ورته تر لاسه نه سو يوازي يو ثواب به د هغه د محنت او مشقت ورته تر لاسه کيږئ ، په هر حال دا خبره خو سوې ده چي په هر تقدير د علم په طلب کي لګېدل پکار دي که علم حاصل سو نو نور علی نور چي هغه ته به دوه ثوابه حاصليږي او که علم ورته حاصل نه سو نو دا څه کمه خبره ده چي په طلب علم کي مړ کېدل هم سعادت دی .

ګرچه نه توان بد دست راه برون
شرط ياري ست در طلب مردن

﴿۲۳٦﴾ : وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ مِمَّا يَلْحَقُ الْمُؤْمِنَ مِنْ عملِهِ وحسناتِهِ بَعْدَ مَوْتِهِ عِلْمًا عَلِمَهُ وَنَشَرَهُ وَوَلَدًا صَالِحًا تَرَكَهُ اَوْمُصْحَفًا وَرَّثَهُ أَوْ مَسْجِدًا بَنَاهُ أَوْ بَيْتًا لِابْنِ السَّبِيْلِ بَنَاهُ أَوْ نَهْرًا أَجْرَاهُ أَوْ صَدَقَةً أَخْرَجَهَا مِنْ مَّالِهِ فِيْ صِحَّتِهِ وَحَيَاتِهِ تَلْحَقُهُ مِنْ بَعْدِ مَوْتِهِ . رواه بن ماجه والبيهقي في شعب الإيمان .

د حضرت ابوهريرة ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : مؤمن ته د هغه عمل يا نيکيو چي د مرګ وروسته ثواب رسيږي په هغو کي يو علم دی چي هغه زده کړ او خپور يې کړ او دوهم نيك اولاد دی چي پاته سي او دريم قرآن کريم دی چي د وارثانو لپاره يې پرېښود څلورم مسجد چي په خپل ژوند کي يې جوړ کړی وي پنځم سرای يا مسافرخانه چي هغه يې جوړه کړې وي شپږم ويااله ده چي هغه يې جاري کړې وي اووم هغه خيرات دی چي هغه په خپل روغتيا او ژوند کي د خپل مال څخه کړی وي ، د دې ټولو ثواب د هغه د مرګ وروسته هم هغه ته رسيږي . ابن ماجه او بيهقي .

**تشريح** : د قرآن کريم په حکم کي شرعي کتابونه هم داخل دي ، همداسي د مسجد په حکم کي د علماؤ قائم سوي مدرسې او خانقاوي چي د ذکر الله او تزقيه (پاکوالي) نفس لپاره دي هم شاملي دي يعني د دې ټولو ثواب د مرګ څخه وروسته ورته رسيږي .

﴿۲۳۷﴾ : وَعَنْ عَائِشَةَ أَنَّهَا قَالَتْ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ إِنَّ اللّٰهَ عَزَّ وَجَلَّ أَوْحٰى إِلَيَّ أَنَّهُ مَنْ سَلَكَ مَسْلَكًا فِيْ طَلَبِ الْعِلْمِ سَهَّلْتُ لَهُ طَرِيْقَ الْجَنَّةِ وَمَنْ سَلَبْتُ

د حضرت بي بي عائشې (رض) څخه روايت دی چي ما د رسول الله ﷺ څخه واوريدل چي فرمايل يې : الله تعالی ما ته دا وحي راليږلې ده چي څوك د علم د تر لاسه کولو لپاره لار پرې کړي نو پر هغه به د جنت لار آسانه کړم او د چا څخه چي ما دواړي سترګي

كَرِيْمَتَيْهِ أَثَبْتُهُ عَلَيْهِمَا الْجَنَّةَ . وَفَضْلٌ فِيْ عِلْمٍ خَيْرٌ مِّنْ فَضْلٍ فِيْ عِبَادَةٍ وَمِلَاكُ الدِّيْنِ الْوَرَعُ . رواه البيهقي في شعب الإيمان .

اخيستي دي زه به د هغه په بدل كي جنت وركړم او په علم كي زياتوالى په عبادت كي تر زياتوالي غوره دى او د دين رښنه پرهيزگاري ده . بيهقي .

**تشريح** : د ارشاد مقصد دادى چي كوم سړى د علم دين د حصول لپاره يو لار غوره كړي نو الله تعالى به پر هغه د جنت لار آسانه كړي يعني په دنيا كي به يې په معرفت او حقيقت ونازوي او د عبادت خداوندي توفيق به وركړل سي چي د دې په سبب به په جنت كي داخل سي يا دا معنا ده چي پر داسي سړي باندي به په آخرت كي د جنت د روازې او په جنت كي چي كوم محل د اهل علم لپاره مخصوص دي د هغه لار به ورته آسانه سي .

دلته دې طرف ته اشاره ده چي په دنيا كي د علم كومه لار ده هغه په آخرت كي د جنت لار هم ده او د علم د دروازو څخه پرته د جنت ټولي لاري بندي دي يعني پرته د علم څخه په جنت كي داخلېدل مشكل دي مگر شرط دادى چي علم په خلوص نيت او د الهي جذبې سره تر لاسه كړل سوى وي او بيا پر هغه د عمل توفيق هم وي كنه علم پرته د خلوص او پرته د عمل څخه هيڅ حقيقت نه لري او داسي به وي لكه : چارپايه بروكتا بې چند . د حديث په پاى كي فرمايل سوي دي چي د دين اصل او بنياد ورع (پرهيزگاري) ده ، ددې مطلب دادى چي د حرامو ، منكراتو او طمع څخه ځان ساتل پكار دي چي په عبادت كي ريا او عدم اخلاص پيدا نسي .

﴿۲۳۸﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ تَدَارُسُ الْعِلْمِ سَاعَةً مِّنَ اللَّيْلِ خَيْرٌ مِّنْ إِحْيَائِهَا . رواه الدارمي

د حضرت ابن عباس ﷺ څخه روايت دى چي لږ وخت درس وركول تر ټوله شپه عبادت غوره دى . دارمي

**تشريح** : يعني ټوله شپه په لمانځه كولو او عبادت كي د بوختيا څخه دا ډېر زيات غوره دى چي تر لږ وخته پوري په خپل منځ كي د تعليم او تعلم او درس او تدريس كي بوخت سي ، په دې حكم كي د حصول مقصد لپاره د علم ليكل يعني تصنيف ، تاليف او ترجمه او ديني او علمي كتابونو مطالعه هم داخل دي .

﴿۲۳۹﴾ : وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَرَّ بِمَجْلِسَيْنِ فِيْ مَسْجِدِهِ فَقَالَ كِلَاهُمَا عَلَى خَيْرٍ وَّأَحَدُهُمَا أَفْضَلُ مِنْ

د حضرت عبدالله بن عمرو ﷺ څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ پر دوو مجلسو تير سو چي په مسجد كي راجمع سوي وه رسول الله ﷺ وفرمايل دواړي ډلي د نيكۍ دي مگر په دې كي يوه ډله

صَاحِبِهِ أَمَّا هٰؤُلَاءِ فَيَدْعُوْنَ اللّٰهَ وَيَرْغَبُوْنَ إِلَيْهِ فَإِنْ شَاءَ أَعْطَاهُمْ وَإِنْ شَاءَ مَنَعَهُمْ . وَأَمَّا هٰؤُلَاءِ فَيَتَعَلَّمُوْنَ الْفِقْهَ أَوِ الْعِلْمَ وَيُعَلِّمُوْنَ الْجَاهِلَ فَهُمْ أَفْضَلُ وَإِنَّمَا بُعِثْتُ مُعَلِّمًا ثُمَّ جَلَسَ فِيْهِمْ . رواه الدارمي

تر بلي غوره ده ، په دې دواړو ډلو كي يوه په عبادت كي مصروف ده او د الله څخه دعاء غواړي او هغه ته د خپل رغبت او خواهش اظهار كوي كه خوښه يې سي ور به يې كړي او كه خوښه يې سي منعه به وكړي او دوهمه ډله فقه يا علم تر لاسه كوي او جاهلانو ته علم ښيي نو دا خلك غوره دي او زه هم معلم راليږل سوى يم او بيا په دا دوهمه ډله كي كښيناست. دارمي .

**تشريح** : يو وار رسول الله ﷺ مسجد نبوي ته تشريف راوړ او وه يې ليدل چي صحابه كرامو په دوو ډلو كي بيل بيل ناست دي يوه ډله په ذكر او دعاء كي بوخت وه او بله ډله په مذاكره علم كي بوخت وه، رسول كريم ﷺ په هغه دواړو كي يوه ډله غوره وګڼل كوم چي په مذاكره د علم كي بوخت وه او بيا نه يوازي دا چي په ژبه سره يې د هغوئ د فضيلت اظهار وكړ بلكه خپله هم د علماء په مجلس كي په كښينستو سره نور عزت او شرف يې وركړي .

د علم او عالمانو تر دې زيات فضيلت نور څه كيداى سي چي سردار انبياء ﷺ د عابدانو مجلس پريښودو سره د عالمانو ناسته يې اختيار كړه او خپل ځان يې په هغوئ كي وشمارى .

ګدايان را ازين معنى خبر نيست　　　　كه سلطان جهان باماست امروز

﴿۲۴۰﴾: وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ قَالَ سُئِلَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا حَدُّ الْعِلْمِ الَّذِيْ إِذَا بَلَغَهُ الرَّجُلُ كَانَ فَقِيْهًا ؟ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ حَفِظَ عَلٰى أُمَّتِيْ أَرْبَعِيْنَ حَدِيْثًا فِيْ أَمْرِ دِيْنِهَا بَعَثَهُ اللّٰهُ فَقِيْهًا وَكُنْتُ لَهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ شَافِعًا وَشَهِيْدًا . (بيهقي)

د حضرت ابودرداء ﷛ څخه روايت دى چي د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وسول چي د علم اندازه څه ده چي هغومره علم تر لاسه كولو سره څوك فقيه جوړ سي ؟ رسول الله ﷺ وفرمايل : څوك چي زما امت ته د ګټي رسولو لپاره د دين دكار څلوېښت حديثونه ياد كړي (وښيي) نو الله ﷻ به د قيامت په ورځ هغه فقيه را پورته كړي او د قيامت په ورځ به زه د هغه شفاعت كونكى او شاهد يم. بيهقي

**تشريح** : علماء كرام ليكي چي د دې څخه مراد څلوېښت حديثونه نورو خلكو ته رسول دي كه څه هم هغه يې ياد نه وي ، ددې حديث په رڼا كي ډيرو علماؤ څلوېښت حديثونه په جمع كولو سره خلكو ته رسولي دي او همدارنګه په قيامت كي د رسول كريم ﷺ د شفاعت او شاهدى اميدوار سوي دي .

﴿۲۴۱﴾: وَعَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَلْ تَدْرُوْنَ مَنْ أَجْوَدُ جُوْدًا ؟ قَالُوْا اَللّٰهُ وَرَسُوْلُهُ أَعْلَمُ . قَالَ اللّٰهُ تَعَالَى أَجْوَدُ جُوْدًا ثُمَّ أَنَا أَجْوَدُ بَنِيْ آدَمَ وَأَجْوَدُهُمْ مِنْ بَعْدِيْ رَجُلٌ عَلِمَ عِلْمًا فَنَشَرَهُ يَأْتِيْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ أَمِيْرًا وَّحْدَهُ أَوْ قَالَ أُمَّةً وَّاحِدَةً .(بيهقي)

د حضرت انس بن مالك ﷺ څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل : ايا تاسو پوهيږئ چي تر ټولو زيات سخي څوك دى ؟ صحابه كرامو عرض وكړ الله او د هغه رسول ښه پوهيږي . رسول الله ﷺ وفرمايل : په سخاوت كي الله تر ټولو زيات دى بيا د آدم ﷺ په اولاد كي تر ټولو زيات زه سخي يم او زما وروسته زيات سخي هغه څوك دى چي هغه علم زده كړ او خپور يې كړ دا كس به د قيامت په ورځ يوازي د يو امير يا يو ډلي (د شان او شوكت) په شان راځي . بيهقي .

**تشريح** : د روايت په پاى كي راوي ته شک سوى دى چي رسول الله ﷺ (اميرا وحده) وفرمايل او كه (أمه واحدة) يې وفرمايل، يعني داسي سړى چي هغه علم زده كړ او هغه يې د خلكو په منځ كي خپور كړ په دې اړه رسول الله ﷺ وفرمايل چي هغه به په آخرت كي د يو امير په مثال راځي چي هغه به د چا تابع نه وي بلكه د هغه سره به تابع او خادمان وي ، يا رسول الله ﷺ داسي وفرمايل چي هغه يوازي سړى به د يو ډلي او جماعت په مثل وي ددې مطلب به دا وي چي هغه به د مخلوق خدا په مينځ كي معزز او مكرم وي او په آخرت كي به په شوكت او دبدبې سره راځي .

﴿۲۴۲﴾ : وَعَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْهُوْمَانِ لاَ يَشْبَعَانِ مَنْهُوْمٌ فِي الْعِلْمِ لاَ يَشْبَعُ مِنْهُ وَهُوَ مَنْهُوْمٌ فِي الدُّنْيَا لاَ يَشْبَعُ مِنْهَا . روى البيهقي الأحاديث الثلاثة في شعب الإيمان وقال قال الإمام أحمد في حديث أبي الدرداء هذا متن مشهور فيما بين الناس وليس له إسناد صحيح .

د حضرت انس بن مالك ﷺ څخه روايت دى چي نبي كريم ﷺ وفرمايل : دوه حريصان داسي وي چي د هغوئ نس هيڅكله نه ډكيږي [1]: يو د علم حريص چي په علم حاصلولو هغه هيڅكله نه مړيږي او دوهم د دنيا غوښتونكى چي په دنيا هغه هيڅكله نه مړيږي، ذكر سوي درې سره حديثونه بيهقي په شعب الايمان كي روايت كړي دي او ددې حديث اسناد صحيح نه دى .

**تشريح** : امام نووي رحمة الله عليه فرمايي چي دا حديث ضعيف دى مگر ددې طرق متعدد دي چي په هغه كي ځينو ته د ځينو نورو په وجه تقويت حاصل دى مگر په دې خبره پوهيدل پكار دي چي د علماؤ پر دې خبره اتفاق دى چي د اعمالو د فضائلو په اړه پر ضعيف حديث باندي هم عمل كول جائز دي .

﴿۲۴۳﴾: وَعَنْ عَوْنٍ قَالَ قَالَ عَبْدُ اللهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ مَنْهُوْمَانِ لَا يَشْبَعَانِ صَاحِبُ الْعِلْمِ وَصَاحِبُ الدُّنْيَا وَلَا يَسْتَوِيَانِ أَمَّا صَاحِبُ الْعِلْمِ فَيَزْدَادُ رِضًى لِلرَّحْمٰنِ وَأَمَّا صَاحِبُ الدُّنْيَا فَيَتَمَادٰى فِي الطُّغْيَانِ. ثُمَّ قَرَأَ عَبْدُ اللهِ (كَلَّا إِنَّ الْإِنْسَانَ لَيَطْغٰى أَنْ رَّآهُ اسْتَغْنٰى) قَالَ وَقَالَ الْآخَرُ (إِنَّمَا يَخْشَى اللهَ مِنْ عِبَادِهِ الْعُلَمَاءُ. رواه الدارمي.

حضرت عون ﷺ د عبدالله بن مسعود ﷺ څخه بيان کوي چي دوه حريصان دي چي هيڅکله نه مړيږي ۱: اهل دنيا، ۲: اهل علم او دا دواړه برابر نه دي علم خو د الله رضامندي زياتوي او دنيادار په سرکښۍ کي زياتيږي . بيا عبدالله بن مسعود ﷺ دا آيت تلاوت کړ: ان الانسان ليطغی ان راه استغنی، (البته انسان سرکښي کوي ځکه چي ځان بې پروا ګڼي) حضرت عون وايي چي عبدالله بن مسعود د عالم په حق کي دا آيت تلاوت کړ: انما يخشی الله من عباده العلماء (د الله په بندګانو کي عالمان د الله څخه زيات بيريږي) دارمي

﴿۲۴۴﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ أُنَاسًا مِّنْ أُمَّتِيْ سَيَتَفَقَّهُوْنَ فِي الدِّيْنِ وَيَقْرَءُوْنَ الْقُرْآنَ يَقُوْلُوْنَ نَأْتِي الْأُمَرَاءَ فَنُصِيْبُ مِنْ دُنْيَاهُمْ وَنَعْتَزِلُهُمْ بِدِيْنِنَا وَلَا يَكُوْنُ ذٰلِكَ كَمَا لَا يُجْتَنٰى مِنَ الْقَتَادِ إِلَّا الشَّوْكُ كَذٰلِكَ لَا يُجْتَنٰى مِنْ قُرْبِهِمْ إِلَّا قَالَ مُحَمَّدُ بْنُ الصَّبَّاحِ كَأَنَّهُ يَعْنِي الْخَطَايَا. رواه ابن ماجه.

د حضرت ابن عباس ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل :زما په امت کي به ډير خلك علم تر لاسه کړي او قرآن به وايي او وايي به چي موږ اميرانو ته ورځو چي د هغوئ د د نيا څخه خپله برخه تر لاسه کړو او خپل دين به د هغو څخه بيل ساتو مګر داسي نه ده ځرنګه چي د ازغني درختي څخه يوازي ازغي تر لاسه کيږي همدغسي د اميرانو د صحبت څخه ګناه تر لاسه کيږي ، په دې موقع باندي محمد بن صباح ويلي دي چي هغه د دې څخه مراد ګناهونه اخيستل دي

**تشريح**: د حديث د الفاظو څخه ځرګنديږي چي رسول کريم ﷺ د (الا) څخه وروسته يو لفظ ونه فرمايه ، محمد بن صباح چي يو جليل القدر محدث او د حضرت امام بخاري او امام مسلم په ډول امامانو استاد دی د دې وضاحت فرمايي چي د رسول الله ﷺ مراد دلفظ الا څخه وروسته خطايا دي مګر رسول الله ﷺ هغه حذف کړ او د هغه تکلم يې ونه کړ ، نو په دې سره به د حديث آخري الفاظ داسي سي : (لا يجتنی من قربهم الا الخطايا) يعني د اميرانو د صحبت څخه به د ګناه څخه پرته نور څه نه تر لاسه کيږي، اوس پاته سو دا سوال چي رسول الله ﷺ لفظ د خطايا ولي حذف کړ نو په دې کي يوه نکته ده او هغه دا چي په دې کي دې ته اشاره مقصد ده چي د اميرانو د صبحت نقصان دومره زيات دی چي هغه په ژبه سره نسي ويل کيدای .

په هر حال د حدیث مطلب دادی چي په دې امت کي به هم داسي عالمان پیدا سي چي ځان ته به سید، صاحب حق او مفتي وغیره وایي مګر د هغوئ مطلب به د حصول علم څخه محض دا وي چي هغوئ په علم حاصلولو سره او قرآن لوستلو سره امیرانو ته ورسیږي او د هغوئ په مخکي د خپل بزرګي او فضیلت اظهار وکړي و مال او دولت ځیني ترلاسه کړي او د علم چي کومه حقیقي منشا او مدعا وي یعني د مخلوق هدایت او د عوام الناس پرته د یو طمع څخه دیني رهبري او د هغه سره به یې قطعا یو مطلب نه وي او هر کله چي هغوئ ته وویل سي چي دا څرنګه ممکن ده چي په یو وخت تفقه في الدین او د امیرانو قرب او صحبت جمع کیدای سي نو هغوئ به په جواب کي وایي چي موږ به د هغوئ څخه مال او دولت حاصل کړو مګر خپل دین به د هغوئ څخه وساتو حال دا چي دا کار محال (ناممکن) دی.

﴿۲۴۵﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ لَوْ أَنَّ أَهْلَ الْعِلْمِ صَانُوْا الْعِلْمَ وَوَضَعُوْهُ عِنْدَ أَهْلِهِ لَسَادُوْا بِهِ أَهْلَ زَمَانِهِمْ وَلٰكِنَّهُمْ بَذَلُوْهُ لِأَهْلِ الدُّنْيَا لِيَنَالُوْا بِهِ مِنْ دُنْيَاهُمْ فَهَانُوْا عَلَيْهِمْ سَمِعْتُ نَبِيَّكُمْ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ مَنْ جَعَلَ الْهُمُوْمَ هَمًّا وَّاحِدًا هَمَّ آخِرَتِهِ كَفَاهُ اللّٰهُ هَمَّ دُنْيَاهُ وَمَنْ تَشَعَّبَتْ بِهِ الْهُمُوْمُ أَحْوَالُ الدُّنْيَا لَمْ يُبَالِ اللّٰهُ فِيْ أَيِّ أَوْدِيَتِهَا هَلَكَ.

رواه ابن ماجه . ورواه البيهقي في شعب الإيمان عن ابن عمر من قوله من جعل الهموم إلى آخره .

حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ فرمایلي دي چي اهل علم د علم ساتنه وکړي او ددې اهل ته یې و ښیي نو هغوئ به د خپلي زمانې سرداران جوړ سي مګر که اهل علمو داسي ونه کړل بلکه هغوئ علم پر شتمنو خرڅ کړ چي د هغې په ذریعه د هغوئ څخه دنیا تر لاسه کړي نو هغوئ د دنیادارو په نظر کي ذلیل سول، ما د رسول الله ﷺ څخه اوریدلي چا چي په خپلو مقصدو کي یوازي یو مقصد یعني د آخرت اختیار وکړ نو الله به د هغه دنیاوي مقصدونه خپله پوره کړي او د چا مقصد چي متفرق وي څنګه چي د دنیا حالات دي نو بیا دالله په دې هیڅ پروا نسته که په شیله د دنیا کي هلاك سي او یا په شیله د غمو کي هلاك سي . ابن ماجه او بیهقي.

**تشریح** : دا حدیث علماؤ ته د احساس او شعور دولت بخښي او د علم او د علم د مرتبې تر ټولو د اعلی او لوړ مقام په ګوته کوي، د ابن مسعود ﷺ د ارشاد مقصد دادی چي علماء خپله مرتبه او مقام وپیژني او هغوئ چي پر کوم عرفاني مقام باندي فائز دي د هغه د اهمیت او نزاکت احساس وکړي ځکه چي علم دین د کوم لوړ او اعلی احساساتو حامل دی همداسي هغه خپل لوښی هم لوړ او اعلی غواړي، د علم شان عظمت دادی چي هغه د قدر کونکو او باشعور

اشخاصو سره وي كه چيري د حصول جلال او عزت په خاطر علم د دنيا د سردارانو او ظالمانو د دربار سجده كونكي جوړ كړل سي نو دا د علم تر ټولو لوى سپكاوى او د عالم تر ټولو لوى ذلت دى.

حضرت ابن مسعود ﷺ تر دې يو لويه خبره هم فرمايي هغه وايي چي په دنياوي اعتبار سره سرداري شوكت او حشمت او عزت او عظمت هيڅ يو لوى شى نه دى بلكه اصل او حقيقي سرداري او امارت خو هغه دى چي د فضل او كمال برزګۍ په اعتبار وي، دا وجه ده چي علماء دا شان نه وي چي هغوئ خو د علم، فضل او بزرګۍ د طاقت سره د دنيا روحاني تاجدار وي او د خلكو په زړه او دماغ حكمرانان وي او د هغوئ څخه پرته د هغوئ زير قدم، زير قلم او د هغوئ د عقل او احكامو تابعدار وي څرنګه چي قرآن كريم شاهد دى:

يَرْفَعِ اللَّهُ الَّذِينَ آمَنُوا مِنكُمْ وَالَّذِينَ أُوتُوا الْعِلْمَ دَرَجَاتٍ. سورة المجادلة آية ۱۱

ژباړه: الله تعالى په تاسو كي د هغه چي ايمان يې راوړى دى او علم يې وركړې دى درجات لوړوي.

د رسول الله ﷺ د ارشاد مقصد دادى چي د بنده احساس او د هغه شعور دومره پاك او لطيف كېدل پكار دي چي د هغه د زړه او دماغ په يوه يوه كونج كي د يوه مقصد رڼا وي او هغه مقصد آخرت دى د دې څخه پرته د هغه هيڅ مقصد او غرض نه وي نو بيا د الله تعالى د لوري پر هغه د دنياوي پراخۍ دروازې هم په خپله خلاصيږي.

مګر كه چيري د بنده زړه او دماغ دومره چټل وي چي هر وخت د دنيا په شيانو كي لګيدلى وي او د دنيا په كفر كي ډوب وي نو د الله تعالى د لوري د هغه سره څه معامله نه كيږئ تر دې چي الله تعالى د هغه څخه دومره بې تعلقه سي كه هغه بنده د دنيا په يو تكليف او مصيبت كي هلاك سي نو الله تعالى د هغه هيڅ پرواه نه لري، نه په دنياوي او نه په ديني اعتبار سره د رحمت خداوندي نظر او كرم پر هغه كيږي همداسي هغه په دنيا او آخرت كي په تاوان او خسران كي مبتلا كيږي.

﴿۲۴۶﴾: وَعَنِ الْأَعْمَشِ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ آفَةُ الْعِلْمِ النِّسْيَانُ وَإِضَاعَتُهُ أَنْ تُحَدِّثَ بِهِ غَيْرَ أَهْلِهِ. رواه الدارمي مرسلا.

د حضرت اعمش ﷺ څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د علم آفت هيربدل دي او علم ضائع كول دادي چي ته هغه د نااهل په وړاندي بيان كړي. دارمي مرسلا.

**تشريح**: د علم تر لاسه كېدو څخه مخكي خو ډير آفات او مصيبتونه وي (لكل شئ آفة وللعلم

آفات) يعني د هر شي يو آفت وي مګر د علم ډير آفات دي ، مګر د علم تر لاسه کولو څخه وروسته يو آفت دی او هغه نسيان يعني هيره ده او يقينا د يو شي د حاصليدو څخه وروسته زائل کېدل او په ذهن کي د راتلو سره بيا محوه کېدل يو ډير سخت روحاني اذيت دی .

په اصل کي د دې حديث څخه په دې خبره باندي تنبيه ورکول مقصد ده چي طالب علم او اهل علم ته پکار ده چي هغوئ د داسي خبرو څخه پرهيز وکړي کوم چي دهيري سبب دي يعني د ګناه او معصيت څخه ځان وساتي او په هغه شيانو کي زړه ونه لګوي کوم چي ذهن او فکر غافل کوي لکه د دنيا په مزو او چرچو او خواهشات نفساني کي زړه لګول .

امام شافعي رحمة الله عليه دا مضمون په دې شعر کي فرمايلی دی :

شکوت الی وکيع سوء حفظي      فاوصاني الی ترک المعاصي

ژباړه : ما خپل استاذ (وکيع) ته د خپل حافظې د کمزورۍ شکايت وکړ نو هغه ما ته د معصيت د پرېښودو نصيحت وکړ .

فان الفضل مــــن اله      وفضل الله لا يعطی العاص

ژباړه : ځکه چي علم خو د الله تعالی يو فضل دی او د الله تعالی فضل ګناه کار په برخه کي نه وي.

د حديث په پای کي فرمايل سوي دي چي علم د نااهل او قدردان په مخکي وړاندي کول په اصل کي د علم ضائع کول دي او نااهل هغه سړی دی چي نه په علم پوهيږي او نه د علم قدر پيژني ، هر کله چي هغه ته علم وړاندي کړل سي نو هغه علم ضائع سي ځکه علم هغه چا ته ښودل پکار دي چي د هغه اهل او قدردان وي يعني هغه په علم د پوهيدو صلاحيت هم لري او په هغه د عمل کولو جذبه هم په هغه کي موجود وي .

﴿۲۴۷﴾ : وَعَنْ سُفْيَانَ أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ قَالَ لِكَعْبٍ مَنْ أَرْبَابُ الْعِلْمِ ؟ قَالَ الَّذِيْنَ يَعْمَلُوْنَ بِمَا يَعْلَمُوْنَ . قَالَ فَمَا أَخْرَجَ الْعِلْمَ مِنْ قُلُوْبِ الْعُلَمَاءِ ؟ قَالَ الطَّمْعُ . رواه الدارمي .

حضرت سفيان وايي چي عمر بن الخطاب ﷺ د کعب ﷺ څخه پوښتنه وکړه (ستا په نزد) د علم خاوندان څوك دي ؟ کعب ﷺ جواب ورکړ هغه چي د خپل علم موافق عمل وکړي بيا حضرت عمر ﷺ پوښتنه وکړه د عالمانو د زړونو څخه کوم شی علم کاږي ؟ کعب ﷺ جواب ورکړ : حرص . دارمي

**تشريح** : د حضرت عمر ﷺ د سوال مطلب دا وو چي د علماؤ د زړونو څخه د علم نور او د علم عظمت او برکت ايستونکی کوم شی دی او هغه کوم شی دی چي د هغه شتون د علم خلاف دی؟ کعب ﷺ وفرمايل : حرص، دا هغه خراب عادت دی چي د علم نور د عالم د زړه څخه ضائع

کوي هر کله چي په عالم کي د عزت او جلال طمع او د دنیاوي اسبابو د عیش او عشرت طمع پیدا سي نو بیا د علم نور او د علم برکت خپل ځای پرېږدي او د عالم زړه او دماغ د علم د حقیقي رڼا څخه منور کیدلای نه سي.

﴿۲۴۸﴾: وَعَنِ الْأَحْوَصِ بْنِ حَكِيْمٍ عَنْ أَبِيْهِ قَالَ سَأَلَ رَجُلُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الشَّرِّ فَقَالَ لاَ تَسْأَلُوْنِيْ عَنِ الشَّرِّ وَسَلُوْنِيْ عَنِ الْخَيْرِ يَقُوْلُهَا ثَلاَثًا ثُمَّ قَالَ أَلاَ إِنَّ شَرَّ الشَّرِّ شِرَارُ الْعُلَمَاءِ وَإِنَّ خَيْرَ الْخَيْرِ خِيَارُ الْعُلَمَاءِ . رواه الدارمي

حضرت احوص بن حکیم د خپل پلار څخه روایت کوي چي یو سړي د رسول الله ﷺ څخه د شر په اړه پوښتنه وکړه ، رسول الله ﷺ وفرمایل : د شر په اړه زما څخه پوښتنه مه کوه ، بلکه د خیر په اړه زما څخه پوښتنه کوه رسول الله ﷺ د دې وروسته درې واره وفرمایل : خبردار اوسئ ! چي د شر بد ترین شکل بد علماء دي او د خیر بهترین شکل ښه علماء دي . دارمي .

**تشریح** : د صحابي د سوال مقصد یا خو د نفس د خرابۍ په باره کي پوښتنه کول وو ، څرنګه چي د ترجمې څخه معلومه سول ، یا هغه دا معلومول غوښتل چي بدترین کوم سړی دی او په جواب اوریدو سره دا مقصد زیات څرګند دی ، رسول الله ﷺ د داسي سوال کولو څخه منعه وفرمایل او وجه د دا ظاهره ده چي د رسول الله ﷺ ذات مبارک سر تر پایه رحمت او سر تر پایه خیر وي نو ځکه دا خبره مناسب نه ده چي د رسول الله ﷺ څخه صرف د بدۍ او شر پوښتنه سوې وای ، رسول الله ﷺ د خیر او شر دواړو په باره کي په جواب ورکولو سره دې ته اشاره وفرمایل .

د حدیث مطلب دا دی چي د علماؤ ذات په عامو خلکو کي یو معیار او نمونه وي نو خلک د هغه تابع او معتقد وي ، د عالم هر صفت د هغه په خپل ذات پوري محدود نه وي بلکه د هغه اثرات نورو ته هم رسیږي عالم که نیک اخلاقه او ښه خصلتونه ولري نو د هغه منونکي او د هغه اتباع کونکي هم د نیک اخلاقو او عاداتو خاوندان وي او که خدای مه کړه عالم بد اخلاقه او بدکرداره سي نو بیا د هغه جراثیم نورو ته هم رسیږي او د هغه منونکي هم د هغه په رنګ کیږي .

﴿۲۴۹﴾ : وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ قَالَ إِنَّ مِنْ أَشَرِّ النَّاسِ عِنْدَ اللهِ مَنْزِلَةً يَوْمَ الْقِيَامَةِ عَالِمٌ لاَ يَنْتَفِعُ بِعِلْمِهِ. رواه الدارمي .

حضرت ابودرداء ﷛ وایي چي د الله ﷻ په نزد د قیامت په ورځ د مرتبې په اعتبار تر ټولو بدتر بنده هغه عالم دی چي هغه د خپل علم څخه ګټه تر لاسه نه کړي . دارمي .

**تشریح** : یا خو د هغه څخه مراد هغه عالم دی چي داسي علم یې زده کړ چي ګټه رسونکی نه دی یعني غیر شرعي علوم یې حاصل کړل چي ګټور نه دي یا بیا هغه عالم مراد دی چي هغه علم

شرعي او ديني خو تر لاسه كړ مګر عمل يې په ونه كړ.

د داسي عالم په اړه ويل كيږي چي د قيامت په ورځ به د مرتبې په اعتبار هغه د الله تعالى په نزد تر ټولو بدتر وي يعني د جاهل شخه به هم زيات خراب وي دا وجه ده چي پر هغه كوم عذاب وي هغه به د جاهل د عذاب شخه زيات سخت وي لكه چي نقل دي : (ويل للجاهل مرة و ويل للعالم سبع مرات) يعني جاهل لپاره يو وار بربادي ده او د عالم لپاره اووه واره بربادي ده ، او ويل سوي دي چي د قيامت په ورځ به تر ټولو زيات او شديد عذاب پر داسي عالم وي چي الله تعالى علم وركړ او ګټه ئيني وا نه خستل.

﴿۲۵۰﴾ : وعَنْ زِيادِ بْنِ حُدَيْرٍ قَالَ قَالَ لِيْ عُمَرُ هَلْ تَعْرِفُ مَا يَهْدِمُ الْإِسْلَامَ ؟ قَالَ قُلْتُ لاَ . قَالَ يَهْدِمُهُ زَلَّةُ الْعَالِمِ وَجِدَالُ الْمُنَافِقِ بِالْكِتَابِ وَحُكْمُ الْأَئِمَّةِ الْمُضِلِّيْنَ . رواه الدرامي .

حضرت زياد بن حدير ؓ وايي زما شخه حضرت عمر ؓ پوښتنه وكړه ايا تا ته معلومه ده چي د اسلام تباه كونكى كوم شى دى ؟ ما ورته وويل ما ته نه ده معلومه. نو حضرت عمر ؓ وويل د عالم ښوېيدل يعني د هغه غلطي يا ګناه او د منافق د كتاب الله په اړه جګړه كول او د ګمراه سردارانو حكم جاري كول اسلام تباه كوي.

**تشريح** : د اسلام د ماتې نړولو مطلب دادى چي د اسلام كوم پنځه بنيادي اصول دي يعني كلمه توحيد، لمونځ ، روژه، زكوة او حج، هغه بيكاره پاته سي ، هر كله چي عالم د خپل حقيقي فرضونو امر بالمعروف او نهي عن المنكر ادا ينه د خپل هواهشات نفساني نذر كړي نو په دغه شيانو كي سستي او فساد واقع كيږي.

همدارنګه منافق يعني هغه سړى چي په ظاهره د اسلام ساه اخلي مګر په دننه كي د كفر او بدعت په پوره توګه سره همنوا وي چي په قرآن كريم كي جګړه كوي نو په دې توګه چي هغه د قرآن د معنا او مفهوم غلط تاويلات كولو سره احكام شرعيه رد كوي نو په دې سره د اسلام په اركانو كي سستي او په دين كي فساد پيدا كيږي ، په دې لړ كي هغه روافض او خوارج او داسي نور د باطل عقيدو خلك هم داخل دي چي د خپل نفساني خواهشاتو او ذاتي اغراضو په خاطر غلط تاويلونو كولو سره په دين او شريعت كي د شك او شبهې تخم كري .

﴿۲۵۱﴾ : وَعَنِ الْحَسَنِ قَالَ الْعِلْمُ عِلْمَانِ فَعِلْمٌ فِي الْقَلْبِ فَذَاكَ الْعِلْمُ النَّافِعُ وَعِلْمٌ عَلَى اللِّسَانِ فَذَاكَ حُجَّةُ اللهِ عَزَّ وَجَلَّ عَلَى ابْنِ

حضرت حسن بصري ؓ وايي علم پر دوه ډوله دي يو هغه علم چي په زړه كي وي او دا علم ګټه وركوي او دوهم هغه چي په ژبه كي وي او دا پر بني آدم باندي د

آدَمَ . رواه الدارمي . | الله تعالى حجت او دليل دى .دارمي .

**تشريح** : حضرت حسن بصري رحمة الله عليه چي د علم دوه ډوله کړي دي په هغه کي لومړني ته علم باطن وايي او دوهم ته علم ظاهر، تر څو پوري چي د ظاهر اصلاح نه وي سوې د علم باطن څخه هيڅ نه تر لاسه کيږي همداسي تر څو پوري چي د باطن اصلاح نه کيږي د علم ظاهر تکميل نه کيږي .

ابو طالب مکي رحمة الله عليه وايي دا دواړه علمه اصل او بنيادي دي او په دې دواړو کي د دې درجې ارتباط دى چي په دې کي يو د بل څخه بيليداى نسي څرنګه چي ايمان او اسلام د يو بل څخه پرته نه صحيح کيږي يا څرنګه چي زړه او بدن د يو بل څخه بيليداى نسي ، بالکل همداسي د دغه دواړو علمونو په منځ کي ارتباط او تعلق دى . ملا علي قاري .

شيخ عبدالحق محديث دهلوي ليکلي دي چي ګټه ورکونکى علم هغه دى چي هر کله د هغه په رڼا سره زړه منوړ سي نو د زړه هغه پردې ليري سي چي د حقائق اشياء د معرفت او فهم لپاره مانع دي.

د علم نافع دوه ډوله دي : (١) يو خو علم معامله چي د عمل باعث وي ، (٢) او دوهم علم مکاشفه چي د عمل اثروي، الله تعالى په خپلو بندګانو کي چي چا ته غواړي د هغه په زړه کي دا د علم نور اچوي او حسن بصري چي کوم علم نافع ګرځولى دى هغه دا علم دى او کوم علم چي يوازي پر ژبه وي دا هغه علم دى چي نه خو تاثير لري او نه په زړه کي نورانيت پيدا کوي .

نه علم چون بر درل زنده باى شود      علم چون بر تن زنده ماري شود

دې علم ته ويل کيږي چي دا پر بندګانو د الله تعالى د لوري حجت او دليل دى چي الله پاک به بندګانو ته په الزام ورکولو سره فرمايي چي ما خو تاسو ته علم درکړى وو تاسو په هغه عمل ولي ونه کړ او ځکه ويل سوي دي چي د جاهل لپاره يو ځل بربادي ده او د عالم لپاره اووه ځله ځکه چي دى پوه او په قصد سره ګمراه سو .

﴿٢٥٢﴾ : وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ حَفِظْتُ مِنْ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ وِعَاءَيْنِ فَأَمَّا أَحَدُهُمَا فَبَثَثْتُهُ فِيْكُمْ وَأَمَّا الْآخَرُ فَلَوْ بَثَثْتُهُ قُطِعَ هٰذَا الْبُلْعُوْمُ يَعْنِي مَجْرَى الطَّعَامِ رواه البخاري .

د حضرت ابوهريرة ﷛ څخه روايت دى چي ما د رسول الله ﷺ څخه دوې خبري (يعني دوه ډوله علم) ، ياد کړى دى چي په هغو کي خو يو (علم ظاهر) ما ستاسو په منځ کي خپور کړى دى او دوهم (علم باطني) که هغه زه بيان کړم نو زما دا غاړه به پرې کړل سي . بخاري.

**تشريح** : د لومړني علم څخه مراد علم ظاهر دی چي د هغه تعلق د احکامو ، اخلاقو وغيره سره دی ، د دوهم علم څخه دوه مفهومه اخيستل کيږي لومړی دا چي د دې څخه مراد هغه علم باطن دی چي د هغه اسرار او معاني د عوام څخه د هغوئ د نيګمړي پوهي په وجه پټ وي او هغه علم خواص علماء او عارفينو سره مخصوص دی ، يا دوهمه معنا دا کيدای سي چي ابوهريره ﷺ ته رسول الله ﷺ ښودلي وه چي زما څخه وروسته به د يو ډلي د خوا څخه يوه لويه فتنه پورته کيږي چي په هغه سره به د بدعاتو بنياد ولويږي ، ابو هريره ﷺ ته هغه قوم او د هغه د کسانو نومونه هم په علم کي وه ، کيدای سي چي د دې څخه د ابو هريره ﷺ مراد هغه علم وي چي د هغه په باره کي د هغه دا خيال وو که زه دا د خلکو په وړاندي بيان کړم نو زما سره به په خطره کي ولويږي .

﴿۲۵۳﴾ : وَعَنْ عَبْدِاللهِ قَالَ يَا أَيُّهَا النَّاسُ مَنْ عَلِمَ شَيْئًا فَلْيَقُلْ بِهِ وَمَنْ لَّمْ يَعْلَمْ فَلْيَقُلْ اَللهُ أَعْلَمُ فَإِنَّ مِنَ الْعِلْمِ أَنْ تَقُوْلَ لِمَا لاَ تَعْلَمُ اَللهُ أَعْلَمُ . قَالَ اللهُ تَعَالَى لِنَبِيِّهِ ( قُلْ مَا أَسْأَلُكُمْ عَلَيْهِ مِنْ أَجْرٍ وَمَا أَنَا مِنَ الْمُتَكَلِّفِيْنَ ) (متفق عليه)

د حضرت عبد الله بن مسعود ﷺ څخه روايت دی چي هغه خلکو ته وويل : اې خلکو ! په تاسو کي چي څوك په يو خبره پوهيږي هغه دي د هغې په اړه ووايي چي الله ښه پوهيږي ځکه چي د کوم شي هغه ته علم نسته .په هغه الله ښه پوهيږي او داسي ويل هم د علم يو ډول دی الله پاك د خپل نبي لپاره فرمايلي دي : قل ما اسئلکم عليه من اجر وما انا من المتکلفين ( زه په دې قرآن ستاسو څخه څه مزدوري او يا بدل نه غواړم او زه د تکليف ورکونکو څخه نه يم ) بخاري او مسلم .

**تشريح** : د دغه آيت په ذريعه رسول الله ﷺ ته حکم ورکول کيږي چي خلکو ته ووايه چي الله تعال يما ته څه علم راکړ او څومره يې چي ما ته وښودل او بيا د هغه د خپرولو او خلکو ته د ښودلو حکم يې راکړ هغه خلکو ته رسوم او هغوئ ته يې ښيم د دې څخه پرته د يو بل شي دعوه زه د خپل ځان څخه نه کوم او نه پر هغه شيانو بحث کوم چي مشکل او د سخت کېدو په وجه د عوامو د فهم څخه لوړ دي ځکه چي داسي کول تکلف کول دي .

﴿۲۵۴﴾: وَعَنِ ابْنِ سِيْرِيْنَ قَالَ إِنَّ هٰذَا الْعِلْمَ دِيْنٌ فَانْظُرُوْا عَمَّنْ تَأْخُذُوْنَ دِيْنَكُمْ . رواه مسلم .

حضرت ابن سيرين ﷺ فرمايلي دي چي دا علم (يعني د کتاب او سنت علم) دين دی هر کله چي دا تر لاسه کوئ نو وګورئ چي د چا څخه خپل دين تر لاسه کوئ. مسلم .

**تشريح** : د دغه ارشاد څخه اصل خبره پر دې خبري باندي تنبيه ورکول مقصد دي چي هر کله د علم تر لاسه کولو اراده مو وکړه ، حديث تر لاسه کوئ نو د دې خبري ښه فکر وکړئ چي تاسو د

چا ځخه علم تر لاسه کوئ هغه کوم ډول سړی دی ایا هغه د باور وړ دی که نه ، هر کله چي تاسو ته د هغه عالم یا راوي د حالاتو پوره علم وسي چي هغه واقعي دیندار، پرهیزګار او قوي الحافظه دی نو د هغه ځخه علم تر لاسه کړئ ، هر کس او ناکس خپل استاد مه جوړوئ او مه د هر سړي ځخه حدیث روایت کوئ ، په خاصه توګه د اهل بدعت، د نفساني خواهشاتو غلام او غیر دیندارو خلکو ځخه په دې باره کي ځان ساتئ.

﴿۲۵۵﴾: وَعَنْ حُذَيْفَةَ قَالَ يَا مَعْشَرَ الْقُرَّاءِ اسْتَقِيمُوْا فَقَدْ سَبَقْتُمْ سَبْقًا بَعِيْدًا وَإِنْ أَخَذْتُمْ يَمِيْنًا وَشِمَالاً لَقَدْ ضَلَلْتُمْ ضَلاَلاً بَعِيْدًا . رواه البخاري .

حضرت حذیفة ﷺ قاریانو ته وویل اي قاریانو ! سیده اوسئ یقینا تاسو مختنه والی وړی دی او که تاسو د صراط مستقیم ځخه آخوا دېخوا سو اوښتنو په لوی ګمراهي کي به ولوېږئ .بخاري .

**تشریح** : دا هغه صحابه کرامو ته خطاب دی چي په پیل کي د اسلام په دولت سره مشرف سوي وه، دغه خلکو په پیل کي کتاب او سنت په ټینګه نیولي وه ځکه چي د خپل فضل او کمال په وجه هغوئ د هغه خلکو ځخه مخکي سوي دي کوم چي وروسته مسلمانان سوي دي که څه هم د هغوئ اعمال هم د هغوئ په ډول دي مګر وروسته خلک د مخکي خلکو مرتبې او درجې ته د هغوئ د سبقت اسلام په وجه نسي رسیدلای .

په هر حال دا مقدس حضرات ، حضرت حذیفه ﷺ مخاطب فرمایي چي تاسو خلک د شریعت او طریقت پر لار مستقیم اوسئ ځکه چي استقامت د کرامت ځخه غوره دی .

د استقامت معنی داده چي پر ښه عقیده په ټینګه قائم اوسئ ، ګټه ورکونکی علم او عمل صالح باندي همیشتوب اختیارول پکار دي ، اخلاص دي خالص ساتي او د الله تعالی ځخه پرته د ټولو شیانو خیال آخوا کولو سره د حق تعالی سره تعلق قائم ولرئ .

﴿۲۵۶﴾ : وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَعَوَّذُوْا بِاللّٰهِ مِنْ جُبِّ الْحُزْنِ قَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ وَمَا جُبُّ الْحُزْنِ ؟ قَالَ وَادٍ فِيْ جَهَنَّمَ يَتَعَوَّذُ مِنْهُ جَهَنَّمُ كُلَّ يَوْمٍ أَرْبَعَمِائَةِ مَرَّةٍ . قُلْنَا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ وَمَنْ يَدْخُلُهَا قَالَ الْقُرَّاءُوْنَ الْمُرَاؤُوْنَ بِأَعْمَالِهِمْ . رواه الترمذي وكذا ابن ماجه وزاد فيه وإن من أبغض القراء إلى الله تعالى الذين يزورون الأمراء . قال المحاربي يعني الجورة .

د حضرت ابوهریرة ﷺ ځخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : تاسو د الله په مرسته د غم د څاه ځخه پناه غواړئ . صحابه کرامو عرض وکړ اي دالله رسوله ! د غم څاه څه شي دی؟ رسول الله ﷺ وفرمایل د دوږخ یوه شېله ده چي د هغې ځخه دوږخ په ورځ کي څلور سوه ځله پناه غواړي، صحابه کرامو عرض وکړ چي

په دې کي به څوك وي ؟ رسول الله ﷺ وفرمایل د قرآن هغه ویونکی چي خپل اعمال د ښودلو (ریا) لپاره کوي (ترمذي) ابن ماجه او د ابن ماجه په یوه روایت کي دا الفاظ زیات دي چي د الله په نزد مبغوض ترین هغه قاریان دي چي د امیرانو سره ملاقات کوي . د دې حدیث راوي محاربي ویلي دي چي د امیرانو څخه مراد ظالم امیران دي .

**تشریح** : (جب الحزن) د دوږخ د یوې شیلې نوم دی چي ډیره ژوره ده او د څاه مشابه ده، دا دومره هیبت ناکه او بېرونکې ده چي دوږخي خو پرېږده خپله دوږخ په ورځ کي څلور سوه واره پناه ځیني غواړي، ویل کیږي چي هغه قاري چي خپل عمل یعني قرآن کریم لوستل صرف د ښوونې او ریا لپاره کوي نو هغه به دغه وحشت ناکه شیلې ته ور لویږي ، په دې حکم کي ریاکار عالم او عابد هم داخل دي ځکه چي د علم اصل بنیاد خو قرآن دی همداسي عبادت هم د قرآني احکامو سره سم وي ځکه داسي عالم او عابد چي ریا کونکي وي هغه هم ددغه قاریانو سره ددې شیلې ګوله جوړیږي .

د سردارانو د ملاقات مطلب دادی چي کوم قاري د سردارانو سره محض د د نیاوي مطلب ، عزت او دنیاوي طمع په حرص په خاطر یو ځای کیږي هغه د الله تعالی په نزد مبغوض ترین دی ، مګر که چیري د سردارانو سره یو ځای کېدل د امر بالمعروف او نهي عن المنکر لپاره وي یا د زور په طریقه سره وي او یا د هغوئ د شر د دفع لپاره وي نو په دې کي څه پرواه نسته .

دلته د سردارانو څخه هغه مشران مراد دي چي ظالم او جابر وي ، نیک سردار یا عادل امیر او حاکم لپاره دا حکم نه دی ځکه چي داسي امیران او مشران چي د الله تعالی نیک بندګان وي د هغوئ سره ملاقات کول په عبادت کي داخل دي .

﴿۲۵۷﴾ : وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ يُوْشِكُ أَنْ يَّأْتِيْ عَلَى النَّاسِ زَمَانٌ لاَ يَبْقٰى مِنَ الْإِسْلَامِ إِلاَّ اِسْمُهُ وَلاَ يَبْقٰى مِنَ الْقُرْآنِ إِلاَّ رَسْمُهُ مَسَاجِدُهُمْ عَامِرَةٌ وَهِيَ خَرَابٌ مِّنَ الْهُدٰى عُلَمَاؤُهُمْ شَرُّ مَنْ تَحْتَ أَدِيْمِ السَّمَاءِ مِنْ عِنْدِهِمْ تَخْرُجُ الْفِتْنَةُ وَفِيْهِمْ تَعُوْدُ . رواه البيهقي في شعب الإيمان .

د حضرت علي ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : نژدې ده چي پر خلکو به داسي وخت راسي چي په اسلام کي به یوازي د هغه نوم پاته سي او په قرآن کي به یوازي د هغه نقوش پاته سي د هغوئ مسجدونه به په څرګنده آباد وي مګر په حقیقت کي به د هدایت څخه خالي وي ، د هغوئ علماء به د آسمان لاندي مخلوق کي تر ټولو بد تر وي د هغوئ څخه به په دین کي فتنه را پورته کیږي او هم هغوئ ته به دا راګرځي . بیهقي .

**تشريح** : دا حديث هغه زمانه په ګوته کوي هر کله چي په عالم کي خو به اسلام موجود وي مګر د مسلمانانو زړونه به د اسلام د حقيقي روح څخه خالي وي په خوله به هغوئ ته مسلمانان ويل کيږئ مګر د اسلام چي کومه حقيقي مدعا او منشا ده د هغه څخه به په ميلونو ليري وي، قرآن کريم چي د مسلمانانو لپاره يو مستقل ضابطه حيات او نظام عمل دی او ددې يو يو لفظ د ديني او دنياوي ژوند لپاره راهنما دی يوازي د برکت لپاره د لوستلو يو کتاب پاته سوی وي، دلته د رسم قرآن څخه مراد دادی چي په تجويد او قرائت سره به قرآن ويل کيږئ مګر ددې د معنا او مفهوم څخه به ذهن قطعا نا اشنا وي د دې په اوامرو او نواهي به عمل هم کيږي مګر زړونه به د اخلاص د دولت څخه محروم وي.

مسجدونه به زيات وي او آباد به هم وي مګر په دې شکل سره به آباد وي چي مسلمانان به مسجد ته راځي مګر عبادت الهي، ذکر الله او درس او تدريس چي د مسجد اصلي مقصد دی هغه به په پوره توګه سره حاصل نه وي، همداسي کوم علماء چي خپل ځان ته روحاني او ديني پيشوا وايي د خپل مذهبي فرائضو څخه په آخوا کېدو سره د مذهب په نامه په امت کي تفرقې پيدا کوي، د ظالمانو او جابرانو مرسته او حمايت به کوي همداسي په دين کي د فتنې او فساد تخم کرلو سره د خپل ذاتي اغراضو تکميل به کوي.

﴿۲۵۸﴾ : وَعَنْ زِيَادِ بْنِ لَبِيْدٍ قَالَ ذَكَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَيْئًا فَقَالَ ذَاكَ عِنْدَ أَوَانِ ذَهَابِ الْعِلْمِ . قُلْتُ يَارَسُوْلَ اللهِ وَكَيْفَ يَذْهَبُ الْعِلْمُ وَنَحْنُ نَقْرَأُ الْقُرْآنَ وَنُقْرِئُهُ أَبْنَاءَنَا وَيُقْرِؤُهُ أَبْنَاؤُنَا أَبْنَاءَهُمْ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ فَقَالَ ثَكِلَتْكَ أُمُّكَ زِيَادُ إِنْ كُنْتُ لَأَرَاكَ مِنْ أَفْقَهِ رَجُلٍ بِالْمَدِيْنَةِ أَوَلَيْسَ هٰذِهِ الْيَهُوْدُ وَالنَّصَارٰى يَقْرَءُوْنَ التَّوْرَاةَ وَالْإِنْجِيْلَ لَا يَعْمَلُوْنَ بِشَيْءٍ مِّمَّا فِيْهِمَا . رواه أحمد وابن ماجه وروى الترمذي عنه نحوه . وكذا الدارمي عن أبي أمامة .

د حضرت زياد بن لبيد ﷛ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ د يو شی ذکر وکړ (يعني د ابتلاء او فتنې) بيا يې وفرمايل دا به هغه وخت وي هر کله چي علم ولاړ سي، د دې په اورېدو سره ما عرض وکړ اې د الله رسوله! علم به څنګه ولاړ سي حال دا چي موږ قران وايو او خپلو اولادو ته يې ښيو او هغوئ به يې خپلو اولادو ته ښيي دغسي دا لړۍ به تر قيامته پوري جاري وي. رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: زياد! مور دې در باندي بوره سي ما خو ته په مدينه کي پوه سړی ګڼلې ايا دا يهود او نصارا تورات او انجيل نه وايي؟ مګر څه چي په دې کتابو کي دي په هغه کي په هيڅ شي باندي عمل نه کيږي. احمد، ابن ماجه او ترمذي.

**تشریح** : رسول کریم ﷺ زیاته تنبیه (خبرداری) ورکړ چي تا زما د خبري د مقصد پوهېدو څخه پرته دا خیال وکړ چي یوازي د قرآن کریم لوستل او ددې علم حاصلول کافي دي یعني چا چي قرآن کریم ووایه او ددې علم یې حاصل کړ لکه هغه چي عمل هم په وکړ حال دا چي داسي نه ده څکه چي صرف قرآن کریم لوستل کافي نه دي بلکه اصل شی خو د هغه اتباع او د هغه په احکامو عمل کول دي او دا شی به هغه وخت متصور وي ، قرآن کریم به مسلمانان وایي او ددې علم به هم تر لاسه کوي مګر د هغه عمل به د قرآن کریم سره سم نه وي څرنګه چي یهود او نصارا چي هغوئ هم خپل خپل کتابونه یعني تورات او انجیل وایي او د هغه علم هم تر لاسه کوي مګر د هغه په احکامو د یوې ذرې برابر هم عمل نه کوي .

﴿۲۵۹﴾ : وَعَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ قَالَ لِيْ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَعَلَّمُوا الْعِلْمَ وَعَلِّمُوْهُ النَّاسَ تَعَلَّمُوا الْفَرَائِضَ وَعَلِّمُوْهُ النَّاسَ تَعَلَّمُوا الْقُرْآنَ وَعَلِّمُوْهُ النَّاسَ فَإِنِّيْ امْرُؤٌ مَقْبُوْضٌ وَالْعِلْمُ سَيُقْبَضُ وَيَظْهَرُ الْفِتَنُ حَتّٰى يَخْتَلِفُ اثْنَانِ فِيْ فَرِيْضَةٍ لاَ يَجِدَانِ أَحَدًا يَفْصِلُ بَيْنَهُمَا . رواه الدارمي والدارقطني .

د حضرت ابن مسعود ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ ما ته وفرمایل : علم زده کړه او وښیه او د فرضو علم هم زده کړه او خلکو ته یې و ښیه، زده کوئ قرآن او خلګو ته یې وښیاست نو زه خو یو سړی یم چي پورته به سم (یعني وفات به سم) او علم به هم پورته کړل سي او فتنې به څرګندې سي تر دې چي دوه کسه به په یوه فرض خبره کي اختلاف کوي او داسي هیڅ به بیا تر لاسه نه کړي چي د هغوي په منځ کي پریکړه وکړي .دارمي او دار قطني .

﴿۲۶۰﴾ : وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَثَلُ عِلْمٍ لاَ يُنْتَفَعُ بِهِ كَمَثَلِ كَنْزٍ لاَ يُنْفَقُ مِنْهُ فِيْ سَبِيْلِ اللهِ . رواه احمد والدارمي .

د حضرت ابوهریرة ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : د هغه علم مثال چي ګټه ځیني وا نه خیستل سي د هغه خزانې په مثل دی چي د هغې څخه د الله په لار کي هیڅ خرڅ نه کړل سي. احمد او دارمي .

بسم الله الرحمن الرحيم

# كِتَـــابُ الطَّهَارَةِ

## (د پـاكـۍ بـيـان)

طهارت په لغت كي نظافت او پاكى ته وايي چي د نجاست ضد دى، طُهور: د طاء په پيښ سره مصدر دئ او هغه شيانو ته هم طهور وايي چي پاكوالى راولي لكه اوبه او خاوري، طَهور: د طاء په زور سره د مصدر په توګه استعماليږي، د شريعت په اصطلاح كي د طهارت مفهوم دادى چي نجاست حكمي يعني حدث د نجاست حقيقي څخه يعني د خبث څخه پاكي تر لاسه كول.

## الفصل الاول

﴿۲۶۱﴾: عَنْ اَبِيْ مَالِكِ الْاَشْعَرِيِّ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الطُّهُوْرُ شَطْرُ الْإِيْمَانِ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ تَمْلَأُ الْمِيزَانَ وَسُبْحَانَ اللّٰهِ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ تَمْلَآنِ أَوْ تَمْلَأُ مَا بَيْنَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَالصَّلَاةُ نُوْرٌ وَالصَّدَقَةُ بُرْهَانٌ وَالصَّبْرُ ضِيَاءٌ وَالْقُرْآنُ حُجَّةٌ لَكَ أَوْ عَلَيْكَ كُلُّ النَّاسِ يَغْدُو فَبَايِعٌ نَفْسَهُ فَمُعْتِقُهَا أَوْ مُوبِقُهَا (رواه مسلم) وَ فِيْ رِوَايَةٍ لَاإِلٰهَ إِلَّااللّٰهُ وَاللّٰهُ اَكْبَرُ تَمْلَآنِ مَا بَيْنَ السَّمَاءِ وَالْاَرْضِ لَمْ اَجِدْ هٰذِهِ الرِّوَايَةَ فِي الصَّحِيْحَيْنِ وَ لَا فِيْ كِتَابِ الْحُمَيْدِيِّ وَ لَا فِي الْجَامِعِ وَلٰكِنْ ذَكَرَهَا الدَّارِمِيُّ بَدَلَ سُبْحَانَ اللّٰهِ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ

د حضرت ابومالك [۱] اشعري ﷜ څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل: پاك اوسيدل نيم ايمان دى او الحمدلله ويل (د اعمالو) تله ډكوي او سبحان الله او الحمدلله ويل د آسمانو او مځكي منځ ډكوي او لمونځ نور دى او صدقه دليل دى او صبر رڼا ده او قرآن ستا لپاره يا پر تا دليل دى هر سړى چي سهار راكښيني نو خپل ځان په خپلو كارو كي بوخت كړي بيا خپل ځان آزاد كړي يا يې هلاك كړي (مسلم) او په يوه روايت كي دې چي لااله الاالله او الله اكبر ويل مځكه او آسمان ډكوي او ما دا روايت په صحيحين حميدي او جامع الاصول كي پيدا نه كړ مګر دارمي دا د سبحان الله او الحمدلله پر ځاى ذكر كړى دى.

[۱] د نوموړي په نامه كي اختلاف دى، ځينو ويلي دي چي نوم يې كعب بن مالك دى او ځيني وايي چي كعب بن عاصم دى، عبيده حارث او عمرو هم بيان سوي دي، كنيت يې ابومالك دى، مشهور صحابي دى د حضرت عمر فاروق ﷜ د خلافت په زماني كي وفات سوى دى.

**تشریح** : د دغه حدیث څخه د پاکۍ او طهارت ډیر عظمت او فضیلت معلومیږي چي په اسلام کي طهارت ته کوم مقام حاصل دی ، نو فرمایل سوي دي چي پاک اوسیدل نیم ایمان دی او وجه ښکاره ده چي په ایمان سره کوچني او لوی ټول ګناهونه بخښل کیږي او په اوداسه سره یوازي کوچني ګناهونه بخښل کیږي ځکه نو طهارت ته د ایمان نیمه درجه تر لاسه ده .

د روایت په مینځ کي راوي ته شک کیږي چي رسول کریم ﷺ لفظ د تملاء مفرد فرمایلی دي او که تملان یعني تثنیه یې فرمایلی دی ځکه هغوئ دواړه نقل کوي د دې جملې مطلب دادی چي سبحان الله والحمدلله ویل او ددې ورد کول دومره د فضیلت خبره ده او ددې دومره ارزښت دی که دا دواړې کلمې یو سي نو دا دومره عظیم دي چي د آسمان او مځکي درمیاني برخه به ډکه کړي .

لمانځه ته نور فرمایل سوي دي ځکه چي لمونځ هغه شی دی چي د قبر په تیاره او د قیامت په تیارو کي د رڼا باعث دی یا دا چي لمونځ د یو رڼا په ډول دی چي مؤمن د ګناهونو او خرابو خبرو څخه ساتي او د نیکۍ او خیر او د ثواب کارونو ته یې رهنمائي کوي ، یا لمانځه ته نور ځکه ویل سوي دي چي د مؤمن زړه د الله تعالی د ذات د عرفان په رڼا سره منور کوي او عبادت خداوندي د ادا کولو او د اطاعت الهي په وجه د لمانځه کونکي پر مخ د سعادت او نیک بختۍ ځلا پیدا کوي .

صدقه یعني د الله تعالی په لار کي خرڅ کولو ته دلیل ځکه ویل سوي دي چي دا د مؤمن د ایمان دعوا او صداقت او د پروردګار عالم سره پر میني باندي دلالت کوي یا دا معنا چي هر کله په قیامت کي د شتمن څخه الله تعالی پوښتنه وکړي چي موږ تا ته په مال او دولت کي دومره وسعت درکړی وو تا هغه مال او دولت په کوم ځای خرڅ کړ؟ او د هغه مصرف څه وو؟ یعني تا زموږ بخښلې نعمت په ښه لاره کي خرڅ کړ او که په بده لاره کي دي ضائع کړ؟ نو ددې په جواب کي به صدقه د دلیل په توګه وړاندي کیږي چي الله تعالی ما ستا راکړی مال په خرابه لاره کي نه دی خرڅ کړي بلکه ستا په لار کي او ستا د رضا لپاره مي خرڅ کړی دی .

صبر دې ته وایي چي د ګناهونو څخه ځان وساتي، پر طاعات باندي اماده سي او د مصیبت او تکلیف پر موقع ژړا او فریاد ونه کړي ، په دې اړه فرمایل سوي دي چي دا د کاملي رڼا سبب دی ځکه چي د صابر زړه او دماغ د ایماني عزت او یقین په رڼا سره همیشه منور وي او هغه د دین او دنیا په هره مرحله کي کامیاب وي . د قرآن کریم په اړه ارشاد دی چي دا ستاسو

لپاره یا ستاسو سربیره دلیل دی یعني تاسو قرآن وایاست او په هغه عمل کوئ نو قرآن به درته ګټه ورسوي او که عمل په ونه کړئ نو ستاسو لپاره به د ضرر باعث وي .

د ځان مصرفولو معنا داده چي د کوم کار په لور سړی متوجه وي په هغه کي خپل ذات خرڅ کړي د دې جملې مطلب دادی چي هر کله یو سړی د خوب څخه راکښیني نو په خپل کار کي مصروف سي او په دنیا کي مشغول سي که چیري هغه ددغه کار په بدله آخرت رانیوی په دې توګه چي پر هغه کار یې آخرت ته ترجیح ورکړه نو هغه خپل نفس د آخرت د عذاب څخه آزاد کړ او که خدای مه کړه هغه دنیا او ددنیا هغه کار د آخرت په بدله کي رانیوی یعني ددنیا کار ته پر آخرت باندي ترجیح ورکړي نو هغه خپل ځان هلاک کړ او خپل نفس یې په عذاب کي واچوی .

به دنیا تواني که عقبی خری بخرجان من ورنه حسرت بري

﴿۲۶۲﴾ : وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَلَا أَدُلُّكُمْ عَلَى مَا يَمْحُو اللّٰهُ بِهِ الْخَطَايَا وَيَرْفَعُ بِهِ الدَّرَجَاتِ قَالُوا بَلَى يَا رَسُولَ اللّٰهِ قَالَ إِسْبَاغُ الْوُضُوءِ عَلَى الْمَكَارِهِ وَكَثْرَةُ الْخُطَا إِلَى الْمَسَاجِدِ وَانْتِظَارُ الصَّلَاةِ بَعْدَ الصَّلَاةِ فَذٰلِكُمْ الرِّبَاطُ . وَفِيْ حَدِيْثِ مَالِكِ بْنِ انَسٍ فَذٰلِكُمُ الرِّبَاطُ فَذٰلِكُمُ الرِّبَاطُ رَدَّدَ مَرَّتَيْنِ. رواه مسلم و في رواية الترمذي ثلثا .

د حضرت ابوهریرة رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : ایا زه تاسو ته هغه شی و نه ښیم چي ستاسو څخه ګناهونه لیري کړي او ستاسو درجې لوړي کړي ، صحابه کرامو عرض وکړ چي هو اې د الله رسوله ! نو رسول الله ﷺ وفرمایل د ناروغۍ یا تکلیف په وخت کي اودس پوره کول د مسجد په لور ډیر قدمونه اېښودل او د یوه لمانځه څخه وروسته تر بل لمانځه پوري انتظار کول دا رباط دی ، د مالك بن انس په حدیث کي د رباط لفظ دوه واره راغلی دی او په ترمذي کي درې واره .

**تشریح** : په دې حدیث کي د هغه شیانو ذکر سوی دی چي د هغه په وجه الله تعالی پر خپلو بندګانو باندي داسي فضل او کرم فرمائي چي د هغوئ د عمل نامې څخه ګناهونه لیري کوي او په جنت کي د هغوئ په مرتبو او درجو کي ترقي ورکوي ، نو تر ټولو لومړی شی اودس دی ، هسي خو اودس د لمانځه لپاره شرط او ضروري دی نو ځوک چي لمونځ کوي هغه به اودس هم کوي که هغه هر وخت او هر ډول موسم وي ، مګر دلته یو خاص خبري ته اشاره ده هغه دا چي ډیر واره داسي کیږي چي په یو سخت وخت کي مثلاً د ناروغۍ په حالت کي یا د سخت یخ په موسم کي په خاصه توګه د اوداسه په معامله کي سستي کیږي اول خو د زور او د صحت خلاف

طريقې اختيارولو سره دوه او درې وخته د اودس پاته ساتلو کوښښ کولای سي بيا که اودس کولای سي نو په داسي طريقه سره چي نه خو په هغه کي د اوداسه آداب او د هغه د سنتو او مستحباتو خيال ساتل کيږي او نه اودس په پوره طريقې سره مکمل کيږي .

د داسي موقع لپاره فرمايل سوي دي چي په دا سخت او شديد وخت کي که د اوداسه پوره آداب او طريقې لحاظ او د ټولو سنتونو او مستحباتو خيال وساتل سي او ټولو اندامونو ته اوبه په ښه ډول سره ورسول سي او هغه درې درې واره پريولل سي نو دا به د فضل خداوندي سبب وي .

دوهم شی د مسجد په لور ډير قدمونه اخيستل دي يعني داسي مسجد ته د لمانځه کولو لپاره ځي چي د کور څخه ليري وي ځکه چي څومره زيات قدمونه د مسجد په لور اخيستل کيږي هغومره زيات ثواب به تر لاسه کيږي .

د يوه لمانځه څخه وروسته د دوهم لمانځه انتظار دادی چي په مسجد کي د يوه لمانځه کولو سره سره د دوهم لمانځه په انتظار کي ناست وي ، يا که د مسجد څخه ووځي نو په زړه کي يې د دوهم لمانځه کولو فکر وي د دې ډير زيات فضيلت او عظمت بيانيږي او دې ته رباط ويل کيږي .

(رباط) دې ته وايي که يو مسلمان د اسلامي هيواد پر سرحد د دښمنانو مقابلې ته د ساتني لپاره ناست وي چي د ښمن د سرحد څخه په اوښتلو سره په اسلامي هيواد کي داخل نسي د دې ثواب او لوی فضيلت دی ، خپله په قرآن کريم کي د دې حکم هم فرمايل سوی دی :

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُواْ اصْبِرُواْ وَصَابِرُواْ وَرَابِطُواْ

ژباړه : اې مؤمنانو ! (پر تکليفونو باندې) صبر کوئ او په مقابله کي صبر کوئ او د مقابلې لپاره تيار اوسئ . سورة النساء .

دلته دا ښودل سوي دي چي د لمانځه په انتظار کي ناسته په اصل کي رباط دی څرنګه چي هلته د کفارو په مقابله کي کښيني همداسي دلته د شيطان په مقابله کي کښيني چي د دين تر ټولو لوی دښمن دی ، څرنګه فضيلت او سعادت چي په رباط کي دی همداسي فضيلت او سعادت د لمانځه په انتظار کي هم دی ، په دې حديث کي د اوداسه ذکر راغلی دی ځکه د هغه په اړه دلته بيان مناسب دی :

**په اوداسه كي څلور شيان فرض دي :**

۱. د ټول مخ پريولل .
۲. د لاسونو تر څنګلو پوري پريولل .
۳. د سر د څلورمي برخي مسحه كول .
۴. د پښو تر بجلكو پوري پريولل .

په اوداسه كي د پوره مخ پريولل فرض دي او په دې كي ږيره هم داخله ده ، البته د ږيري په تعين كي لږ اختلاف دى ، په متنو كي ليكلي دي چي د ږيري د هغه وريښتانو مسحه كول چي د مخ د پوست سره لګيدلي وي فرض دي ، په فتاوى عالمګيريه او درمختار كي صحيح او مفتى به قول دا ليكل سوي دى چي د پوره ږيري پريولل چي د مخ د پوست سره موښتي وي فرض دي او د زړېدلي برخي پريولل فرض نه دي بلكه سنت دي ..والله اعلم .

**په اوداسه كي دا شيان سنت دي :**

۱. د لاسونو تر مړوندو پوري پريولل .
۲. د اوداسه په پيل كي بسم الله ويل .
۳. مسواک وهل .
۴. په خوله اوبه لغړول .
۵. په پزه كي اوبه اچول .
٦. د ږيري او ګوتو خلالول .
۷. هر اندام درې واره پريولل .
۸. نيت كول .
۹. په هغه ترتيب سره اودس كول كوم ترتيب چي په قرآن كريم كي ذكر دى .
۱۰. د ټول سر مسحه كول .
۱۱. د اوداسه اندامونه پرله پسې پريولل .
۱۲. د سر په اوبو سره د غوږونو مسحه كول ، يعني هر كله چي پر سر مسحه وكړل سي نو په هغه اوبو سره دي غوږونه هم مسحه كړي د غوږونو د مسحه لپاره د نورو اوبو ضرورت نسته .

**د اوداسه مستحبات دادي :**

۱. د اوداسه د اندامونو پريوللو لپاره د راسته اندام څخه پيل كول، مثلا اول دي راسته لاس پريولي او بيا چپه .
۲. د غاړي مسحه كول .
۳. د اوداسه لپاره مخ پر قبله كښېنستل .
۴. اندامونه د پريوللو پر وخت په اول وار موږل .
۵. غير معذور ته د وخت څخه مخكي اودس كول .
۶. ګوتمۍ وغيره ښورول او همداسي په غسل كي قرط يعني والي اړول را اړول ، مګر په دې اړه دومره خبره ياد ساتل پكار ده كه د غسل او اوداسه په وخت كي ه دې شيانو په اړه دا خيال وي چي د هغوئ لاندي پوست ته اوبه رسيږي نو بيا دا عمل به مستحب وي او كه په دې پوه سي چي د هغو لاندي پوست ته اوبه نه رسيږي نو بيا د هغه ښورول فرض دي .
۷. په خپله اودس كول مستحب دي په بل چا دي او دس نه كوي (يعني د اوداسه پر وخت دي د بل څخه كومك نه غواړي) .
۸. د اوداسه په وخت كي دنياوي خبري كول نه دي پكار ، مګر كه مجبوري وي چي پرته د خبرو كولو څخه د مقصد او حاجت فوت كېدو بيره وي نو كولاى يې سي .
۹. د هر اندام د پريوللو او مسحه كولو پر وخت بسم الله ويل .
۱۰. د هغه دعاوو ويل چي د هر اندام د پريوللو پر وخت يې ويل منقول دي .
۱۱. د اوداسه پوره كولو څخه وروسته پر رسول الله ﷺ باندي درود او سلام ويل .
۱۲. د اوداسه څخه وروسته شهادتونه او هغه دعاوي چي په حديث كي راغلي دي ويل، په راتلونكي حديث كي دا دعاګاني راځي .
۱۳. د اوداسه پاته اوبه مخ پر قبله په ولاړه يا ناسته څښل ،
۱۴. د ورځو ، بريتونو ، باڼوګانو او د پښو پوندو ته د اوبو رسولو لپاره كتل چي دا برخي وچي پاته نه سي .

**د اوداسه مکروهات په لاندي ډول دي :**

۱. پر مخ باندي په زور سره اوبه پاشل .
۲. اسراف کول یعني د ضرورت او اړتیا څخه زیاتي اوبه بیول .
۳. اندامونه تر درې واره زیات پریولل .
۴. په نوو اوبه را اخیستلو سره درې واره مسحه کول .

**د اوداسه منهیات (منعه شیان) په لاندي توګه دي :**

۱. د ښځي د اوداسه څخه په پاته شوو اوبو سره اودس کول نه دی پکار .
۲. په چټل ځای کي اودس کول نه دی پکار چي د اوداسه د اوبو بې حرمتي نه وي.
۳. په مسجد کي اودس کول نه دی پکار ، البته په یو لوښي کي یا د اوداسه لپاره پر ټاکل سوي ځای کي اودس کول صحیح دی .
۴. ناوړي او د پزي سوڼ د اوداسه په اوبو کي اچول نه دي پکار .

﴿۲۶۳﴾ : وَعَنْ عُثْمَانَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ تَوَضَّأَ فَأَحْسَنَ الْوُضُوْءَ خَرَجَتْ خَطَايَاهُ مِنْ جَسَدِهِ حَتَّى تَخْرُجَ مِنْ تَحْتِ أَظْفَارِهِ (متفق علیه)

د حضرت عثمان ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : څوک چي اودس وکړي او په ښه ډول اودس وکړي نو د هغه (ټول) ګناهونه د هغه د بدن څخه وزي تر دې چي د نوکانو د لاندي څخه هم . بخاري او مسلم .

**تشریح** : په دغه حدیث کي هم د اوداسه فضیلت او د پاکی لوی والی بیان سوی دی او دا ښودل سوي دي چي اودس کول په حقیقت کي خپل ګناهونه د خپل بدن څخه پریولل دي څومره چي ښه اودس وکړي هغومره ګناهونه ختمیږي او بیا د مبالغې په توګه فرمایل سوي دي چي د اودس کونکي د نوکونو لاندي ګناهونه هم په اودس کولو سره پاکیږي یعني د اوداسه کولو څخه وروسته هغه ته نه یوازي دا چي ظاهري پاکي او طهارت تر لاسه کیږي بلکه هغه د ګناهونو څخه هم ښه پاک سي ، دا جمله بالکل داسي ده څرنګه چي په موږ کي دا محاوره ویل کیږي چي ستا شیخي به ستا د پزي پر لار ووځي .

﴿۲۶۴﴾ : وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا تَوَضَّأَ الْعَبْدُ الْمُسْلِمُ أَوْ الْمُؤْمِنُ فَغَسَلَ وَجْهَهُ خَرَجَ مِنْ وَجْهِهِ كُلُّ

د حضرت ابوهریرة ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : هر کله چي یو مسلمان یا مؤمن بنده د اودس کولو اراده وکړي او خپل مخ پریولي نو په اوبو سره د هغه ټول ګناهونه چي د هغه

خَطِيئَةٍ نَظَرَ إِلَيْهَا بِعَيْنَيْهِ مَعَ الْمَاءِ أَوْ مَعَ آخِرِ قَطْرِ الْمَاءِ فَإِذَا غَسَلَ يَدَيْهِ خَرَجَ مِنْ يَدَيْهِ كُلُّ خَطِيئَةٍ كَانَ بَطَشَتْهَا يَدَاهُ مَعَ الْمَاءِ أَوْ مَعَ آخِرِ قَطْرِ الْمَاءِ فَإِذَا غَسَلَ رِجْلَيْهِ خَرَجَ كُلُّ خَطِيئَةٍ مَشَتْهَا رِجْلَاهُ مَعَ الْمَاءِ أَوْ مَعَ آخِرِ قَطْرِ الْمَاءِ حَتَّى يَخْرُجَ نَقِيًّا مِنَ الذُّنُوبِ (رواه مسلم)

سترگو کړي وي توئيږي يا د هغه اوبو د آخري ځاڅکي سره وزي بيا چي هغه خپل دواړه لاسونه پريولي نو د لاسو هغه ټول گناهونه چي هغو کړي وي په اوبو يا د اوبو په آخري ځاڅکي سره توئيږي بيا چي کله هغه خپل دواړي پښې پريولي نو د هغه د پښو هغه ټول گناهونه چي د هغه په لور تللي وي په اوبو يا د اوبو په آخري ځاڅکي سره توئيږي تر دې چي هغه د گناهونو څخه پاك سي .مسلم

﴿۲۶۵﴾ : وَعَنْ عُثْمَانَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا مِنِ امْرِئٍ مُسْلِمٍ تَحْضُرُهُ صَلَاةٌ مَكْتُوبَةٌ فَيُحْسِنُ وُضُوءَهَا وَخُشُوعَهَا وَرُكُوعَهَا إِلَّا كَانَتْ كَفَّارَةً لِمَا قَبْلَهَا مِنَ الذُّنُوبِ مَا لَمْ يُؤْتِ كَبِيرَةً وَذَلِكَ الدَّهْرَ كُلَّهُ (رواه مسلم)

د حضرت عثمان ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : هر کله چي يو مسلمان د لمانځه د وخت په راتلو سره په ښه اوداسه او خشوع او په رکوع سره لمونځ وکړي نو د هغه دا عمل د هغه د مخه گناهونو کفاره کيږي تر څو پوري چي هغه لويه گناه ونه کړي نو داسي به ټول وخت کيږي .مسلم .

**تشريح** : د لمانځه اصل روح خشوع او خضوع (د زړه عاجزي او زاري) ده ځکه لمونځ هغه عبادت دی چي د بنده ډيره بې چاري او د هغه عجز څرگندوي ، په لمانځه کي څومره خشوع او خضوع وي نو هغه د حسن قبول لپاره هغومره د اعلى درجې وي ، په لمانځه کي د خشوع مطلب دادی چي هر يو سړی لمونځ وکړي د لمانځه چي څومره ظاهري او باطني آداب دي ټول پر ځای راوړي او د ټولو رعايت وکړي چي زړه بيره کونکی وي ، هر کله چي د لمانځه لپاره ودريږي نو په ډير سکون سره دي ولاړ وي ، نظر دي د سجدې پر ځای وي پرته د لمانځه څخه په بل هيڅ شي کي دي بوخت نه وي ، د بدن، جامې، ږيري وغيره سره دي لوبي نه کوي ، راسته او چپه خوا ته دي نه گوري او سترگي دي نه بندوي ، دا ټول شيان که په لمانځه کي حاصل سي نو بيا انشاء الله د حضور قلب دولت هم ميسر کيږي چي د الله جَلَّ جَلَالُهُ په نزد د لمانځه د مقبوليت سبب دی .

په حديث کي يوازي د رکوع ذکر سوی دی د سجدې ذکر نه دی سوی ددې وجه داده چي رکوع يوازي د مسلمانانو لپاره مخصوص ده او د هغوئ په لمانځه کي مشروع ده ، د يهودو او نصارا په لمانځه او عبادت کي على العموم رکوع نه وي ځکه نو د دې بيانولو سره ددې

امتیازي حیثیت یې څرګند کړې دی ، په پای کې د دې وضاحت سوی دی چې داسې لمونځ یوازې د کوچنیو ګناهونو لپاره کفاره کیږي .

﴿۲۶۶﴾ :وَ عَنْهُ اَنَّهُ تَوَضَّأَ فَاَفْرَغَ عَلٰی یَدَیْهِ ثَلَاثًا ثُمَّ تَمَضْمَضَ وَاسْتَنْثَرَ ثُمَّ غَسَلَ وَجْهَهُ ثَلَاثًا ثُمَّ غَسَلَ یَدَهُ الْیُمْنٰی اِلَی الْمِرْفَقِ ثَلَاثًا ثُمَّ غَسَلَ یَدَهُ الْیُسْرٰی اِلَی الْمِرْفَقِ ثَلَاثًا ثُمَّ مسحه رَأْسَهُ ثُمَّ غَسَلَ رِجْلَهُ الْیُمْنٰی ثَلَاثًا ثُمَّ الْیُسْرٰی ثَلَاثًا ثُمَّ قَالَ رَأَیْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ تَوَضَّأَ نَحْوَ وُضُوْئِي هٰذَا ثُمَّ قَالَ مَنْ تَوَضَّأَ وُضُوْئِي هٰذَا ثُمَّ یُصَلِّيْ رَکْعَتَیْنِ لَا یُحَدِّثُ نَفْسَهُ فِیْهِمَا بِشَیْئٍ غُفِرَ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ. متفق علیه و لفظه للبخاري.

حضرت عثمان ﷺ وایي چې ده اودس وکړ (داسي چې) درې ځله یې پر خپلو لاسونو اوبه واچولې بیا یې خوله پریولل او پزه یې په اوبو پاکه کړه بیا یې درې ځله مخ پریولی بیا یې درې ځله راسته لاس تر څنګلي پورې پریولی او بیا یې چپه لاس درې ځله تر څنګلو پورې پریولی بیا یې د سر مسحه وکړل بیا یې درې ځله راسته پښه پریوله او بیا یې درې ځله چپه پښه پریوله ، بیا حضرت عثمان ﷺ وویل ما رسول الله ﷺ دغسې په اودس کولو لیدلی دی بیا یې وفرمایل :څوک چې زما د اوداسه په ډول اودس وکړي بیا دوه رکعته نفل لمونځ وکړي او په لمانځه کې د خپل زړه سره خبرې ونه کړي (یعني دنیاوي خیالات په زړه کې را نه ولي) نو د هغه مخکښې ټول ګناهونه بخښل کیږي . بخاري او مسلم .

**تشریح** : د اوداسه اندامونه تر درې واره زیات پریولل د ټولو علماؤ په نزد مکروه دي ، ددې مطلب دادی که پوره اندام یې درې واره پریولی وي نو بیا دې پر هغه زیاتوب نه کوي یعني تر درې واره دې یې زیات نه پریولي ، که داسې شکل وي چې په یوه لپه سره یې نیم اندام پریولي او بیا په دوهمه لپاره یې نیم پریولی نو دې ته به یو وار ویل کیږي مثلا یو اندام یې په درې لپو پریوللو سره درې واره پوره کړ نو دا به زیاتي نه وي بلکه درې واره به وي .

د اوداسه څخه وروسته دوه رکعته لمونځ کول لوړه درجه نه ده بلکه دا کمه درجه ده که زیات وکړل سي نو ښه دي، په هر حال دا حدیث پر دې خبرې باندې دلالت کوي چې د اوداسه څخه وروسته لمونځ یعني تحیة الوضوء کول مستحب دي که فرض یا سنت مؤکده وکړي نو دا هم کافي دي. د حدیث په پای کې دې ته اشاره ده چې په لمانځه کې حضور قلب، خشوع او خضوع ډیر زیات مطلوب دي، د آخري جملې مطلب دادی چې هر کله لمونځ پیل کړي نو بیا خپل زړه دې په لمانځه کې ولګوي خپل خیالات دې د لمانځه دباندې بلې خوا ته نه اړوي او په

زړه کي دي دنیاوي خیالونه او داسي فکر کول چي دلمانځه خلاف وي نه کوي ، خیال دي د الله تعالی په لور ساتي که خطرات او وسوسې په زړه کي راسي نو هغه دي دفع کړي ، که چیري په زړه کي داسي خطرات پیدا کیږي چي په لمانځه کي زړه د حضور خلاف نه وي نو دا بیا تاواني نه دي .

﴿۲۶۷﴾ : وَعَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا مِنْ مُسْلِمٍ يَتَوَضَّأُ فَيُحْسِنُ وُضُوْءَهُ ثُمَّ يَقُوْمُ فَيُصَلِّي رَكْعَتَيْنِ مُقْبِلٌ عَلَيْهِمَا بِقَلْبِهِ وَوَجْهِهِ إِلاَّ وَجَبَتْ لَهُ الْجَنَّةُ. (رواه مسلم)

د حضرت عقبه[۱] بن عامر ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : کوم مسلمان چي اودس وکړي او په ښه ډول اودس وکړي بیا ودریږي دوه رکعته لمونځ وکړي زړه او مخ (یعني ظاهر او باطن) سره متوجه سي نو د هغه لپاره جنت واجب سي . مسلم .

**تشریح** : فرمایل سوي دي هر کله چي په ښه ډول اودس وکړي ودریږي او دوه رکعته لمونځ وکړي نو دا درېدل یا خو حقیقتا وي یعني په واقعي درېدو سره لمونځ وکړي او یا درېدل حکما وي مثلا په ناسته لمونځ وکړي په خاصه توګه هر کله چي مجبوري او عذر وي او په ولاړه سره لمونځ نسي کولای نو دا دواړه صورتونه مراد دي .

﴿۲۶۸﴾: وَعَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا مِنْكُمْ مِنْ اَحَدٍ يَتَوَضَّأُ فَيُبْلِغُ أَوْ فَيُسْبِغُ الْوَضُوْءَ ثُمَّ يَقُوْلُ أَشْهَدُ أَنْ لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللّٰهُ وَأَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُوْلُهُ وَ فِيْ رِوَايَةٍ أَشْهَدُ أَنْ لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللّٰهُ وَحْدَهُ لاَ شَرِيْكَ لَهُ وَاَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُوْلُهُ إِلاَّ فُتِحَتْ لَهُ أَبْوَابُ الْجَنَّةِ الثَّمَانِيَةُ يَدْخُلُ مِنْ أَيِّهَا شَاءَ. هكذا رواه مسلم في صحيحه والحميدي في افراد مسلم و كذا ابن

د حضرت عمر بن الخطاب ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : په تاسو کي چي څوک اودس وکړي (یا یې دا وفرمایل چي پوره اودس وکړي) او بیا ووایي چي زه ددې خبري شاهدي ورکوم چي د الله څخه پرته بل د عبادت وړ نسته هغه یوازي دی شریك نه لري او شاهدي ورکوم چي محمد ﷺ د الله بنده او د هغه رسول دی او په یوه روایت کي داسي دي چي زه ددې خبري شاهدي ورکوم چي د یوه الله څخه پرته بل د عبادت وړ نسته هیڅوك د هغه شریك نسته او ددې خبري

[۱] د نوموړي نوم عقبه ابن عامر جهني دی او په کنیت یې زیات اختلاف دی ځیني وایي ابوحماد وو ځیني ابو لبید ، ابوعمر وغیره هم ویل سوي دي ، په مصر کي په کال ( هـ) کي وفات سوی دی .

الاثير في جامع الاصول و ذكر الشيخ محي الدين النووي في آخر حديث مسلم على ما رويناه و زاد الترمذي اللهم اجعلني من التوابين واجعلني من المتطهرين والحديث الذي رواه محي السنة رحمه الله في الصحاح من توضا فاحسن الوضوء الى آخره رواه الترمذي في جامعه بعينه الا كلمة اشهد قبل ان محمدا .

شاهدي ورکوم چي محمد ﷺ د الله بنده او د هغه رسول دی نو د هغه لپاره د جنت اته دروازې خلاصي سي پر کومه دروازه چي يې خوښه وي په جنت کي به داخل سي. (مسلم، حميدي، جامع الاصول، نووي، او ترمذۍ دا الفاظ زيات ليکلي دي : اللهم اجعلني الخ، اې الله ما د توبو کونکو څخه وشميرې او په پاکي کوونکو کي مي داخل کړې او هغه حديث چي محي السنة په صحاح کي بيان کړی دی هغه دادی چي اودس يې وکړ او په ښه ډول يې اودس وکړ ... تر پايه پوري ، ترمذي په خپل جامع کي بعينه ذکر کړی دی خو د ان محمدا څخه مخکي يې اشهد لفظ نه دی ذکر کړی .

**تشريح** : د مرتبو او درجو په اعتبار د جنت اته برخي دي، په دې حديث کي د اته سره دروازو چي ذکر سوی دی ددې څخه حقيقتا دروازې مراد نه دي بلکه هغه اته برخي اعتبار کړي دي او هره برخه يې په دروازه سره تعبير کړې ده ، هري يوې برخي ته هم جنت وايي په دې شمير سره اته جنتونه وايي .

(اللهم اجعلني ... الخ ) يعني اې الله ! ما د توبه کونکو څخه وګرځوې، مطلب دا چي اې الله موږ ته ددې توفيق راکړې که زموږ څخه چيري د بشريت په غوښتنه يو ګناه او لړزيدل وسي نو موږ د هغه څخه سمدستي توبه وباسو او خپلو عيبونو ته رجوع وکړو .

د دې دعاء دا مطلب نه دی چي زموږ ګناه زياته وسي بلکه دلته مراد دادی چي هر کله ګناه را څخه وسي نو زموږ په زړونو کي د توبه کولو داعيه پيدا کړې که هغه ګناه هر څومره وي، بلکه ددې آيت سره سم ستا د غوره او محبوب بندګانو په ډله کي شامل کړل سو .

إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ التَّوَّابِينَ : ژباړه : بيشکه الله تعالى توبه کونکي خوښوي .

يعني الله تعالى خپل هغه بندګان خوښوي چي د الله تعالى د دربار څخه مخ نه اړوي او پر هيڅ موقع د الله تعالى د رحمت څخه نه نااميده کيږي ، د دعاء اخري جمله چي په پاکي کونکو کي مو شامل کړې، مطلب دادی چي موږ د باطني پاکۍ په دولت سره ونازوې او په موږ کي چي څومره خراب اخلاق او بد فضائل دي د ټولو څخه موږ پاک او صاف کړې نو دې طرف ته اشاره ده چي د بدن او اندامونو د ظاهري طهارت او پاکۍ زموږ په اختيار کي وو هغه موږ پوره کړ

اوس د باطني احوال طهارت او دننه پاکي ستا په لاس کي ده نو په خپل فضل او کرم سره باطني صفائي هم راکړه

اې درخم چوګان تو دل هم چوګوئي — بيرون نه زفرمان تو جايک سرموئي

ژباړه : ستا په خم چوګان کي زموږ زړه د يو ګيند په ډول دی موږ ستاد فرمان څخه د بدن يو وريښته هم دباندي نه يو .

ظاهر که بدست ماست ششتيم تمام — باطن که بدست تست ان را توبشوئي

ژباړه : ظاهر چي زموږ په واک کي وو هغه موږ پريولي دي باطن چي ستا په واک کي دي هغه ته پريولې .

په پای کي د مشکوة شريف مؤلف پر صاحب مصابيح باندي يو اعتراض کوي ، اعتراض دادی چي صاحب مصابيح چي حديث (فاحسن الوضوء ثم قال اشهد ان لااله الاالله وحده لا شريک له واشهد ان محمدا عبده ورسوله اللهم اجعلني من التوابين واجعلني من المتطهرين فتحت له ثمانية ابواب الجنة يدخل من ايها شاء) نوموړي دا حديث د صحاح ستة څخه نقل کړي دي حال دا چي ددې حديث په صحاح کي نقل کول مناسب نه دي ځکه چي دا روايت په بخاري او مسلم کي نسته بلکه بعينه دا روايت جامع ترمذي کړی دی ، نو دا روايت د صحاح پر ځای په حسان کي نقل کول پکار وه ، بيا دوهمه خبره داده چي ترمذي هم په خپل روايت کي د ان محمدا څخه وروسته د اشهد لفظ ذکر نه دی کړی .

په دې خبره هم بايد پوه سو چي جزري رحمة الله عليه په حصن حصين کي د ابن ماجه او ابن ابي شيبه او ابن سني په حواله سره د شهادتين څخه وروسته د لفظ ثلاث مرات ذکر کړی دی يعني شهادتين درې واره ويل پکار دي او نسائي او حاکم په روايت کي اللهم اجلعني ...الخ څخه وروسته دا هم منقول دي : (سبحانک اللهم وبحمدک اشهد ان لااله الا انت استغفرک واتوب اليک) ، نو غوره خبره ده چي څومره دعاوي منقول دي د اوداسه څخه وروسته په يو ځای کولو سره وويل سي او د غسل کونکي لپاره هم دا دعاوي ويل مستحب دي .

﴿۲۶۹﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ أُمَّتِي يُدْعَوْنَ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ غُرًّا مُحَجَّلِينَ مِنْ آثَارِ الْوُضُوْءِ فَمَنِ اسْتَطَاعَ مِنْكُمْ اَنْ

د حضرت ابوهريرة ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : زما امت به د قيامت په ورځ د ځلانده تنديو او سپين اندامو والا په صفت و بلل سي او دا رڼا والی او سپين والی به د اوداسه له کبله وي نو په تاسو کي چي د چا

يُطِيْلَ غُرَّتَهُ فَلْيَفْعَلْ (منفق عليه)

لپاره دا ممكنه وي چي د خپل تندي رڼا زياته كړي نو هغه ته پكار دي چي هغه همداسي وكړي .بخاري او مسلم .

**تشريح** : لفظ د (غُر) جمعه د اَغَرّ ده، او د هغه معنا ده سپين مخ، او محجيل هغه سړي ته وايي چي د هغه لاسونه او پښې سپين وي ، ددې مطلب دادی چي د قيامت په ورځ به د اوداسه د اثر څخه دا ټول اندامونه ځلانده وي او هر كله چي په محشر كي لمونځ كونكی جنت ته د تللو لپاره را وبلل سي نو هغوئ به د خلكو د مينځ څخه داسي راوځي چي د هغوئ اندامونه به ځلانده وي .

په پای كي فرمايل سوي دي چي د كوم سړي دا خواهش وي چي د قيامت په ورځ د هغه د مخ ځلا او د هغه د اندامونو سپين والي زيات وي نو هغه ته پكار ده چي هغه په دغه عمل كولو كي د پوره احتياط څخه كار واخلي كوم چي ددې سعادت سبب به وي يعني اودس دي په پوره رعايت سره وكړي ، مخ د تندي د سربيره څخه د زني تر لاندي پوري او د يوه غوږ د نرمۍ څخه تر بل غوږ د نرمۍ پوري په ښه ډول پريولئ .

د تحجيل زياتوب دادی چي پښې په ښه ډول او تر بجلكو پورته پوري پريولي، دلته د تحجّيل د زياتوب حكم نه دی فرمايل سوی ځكه چي دا دواړه يعني غر او محجل كي لازم او ملزوم دي هر كله چي د يوه زياتوب ذكر يې وكړ نو دوهم په خپله مفهوم كيږي .

﴿۲۷۰﴾ : وَعَنْه قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَبْلُغُ الْحِلْيَةُ مِنَ الْمُؤْمِنِ حَيْثُ يَبْلُغُ الْوَضُوْءُ . (رواه مسلم)

د حضرت ابوهريرة ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : (په جنت كي) به د مؤمن ښكلا يا جامې (تر هغه ځايه) رسيږي تر كوم ځايه پوري چي د هغه د اوداسه اوبه رسيږي. مسلم .

**تشريح** : مطلب دادی چي د اوداسه اوبه كومو كومو اندامونو ته ورسيږي يعني كوم اندامونه چي په اوداسه كي پريولل سي په جنت كي به د هغه اندامونو په زياتو زيوراتو سره چي زيب او زينت كيږي همدارنګه چي اودس څومره زيات غوره او مكمل يعني د سنت سره سم وي په جنت كي به د هغه اندامونو د اوداسه ښكلا هغومره په لوړه درجه وي .

## الفصل الثاني

﴿۲۷۱﴾: عَنْ ثَوْبَانَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِسْتَقِيْمُوْا وَلَنْ تُحْصُوْا وَاعْلَمُوْا أَنَّ خَيْرَ أَعْمَالِكُمْ الصَّلَاةُ وَلاَ يُحَافِظُ عَلَى الْوُضُوْءِ إِلاَّ مُؤْمِنٌ . رواه مالك وأحمد وابن ماجه والدارمي .

د حضرت ثوبان[1] ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : پر سمه لار اوسئ او هیڅکله به پر سمه لار د اوسیدو توان ونه لرلای سئ او پوه سئ چي ستاسو په اعمالو کي غوره عمل لمونځ دی او د اوداسه ساتنه نه کوي مگر مؤمن . مالك. احمد ، ابن ماجه او دارمي.

**تشریح** : پر سمه لار د اوسیدو مطلب دادی چي پر اعمالو باندي مستقیم اوسي او همیشه پر سیده لار ځي ، آخوا دېخوا خرابو لارو ته میلان مه کوئ او دا کار مشکل وو ځکه مخکي یې وفرمایل چي (لن تحصوا) یعني په پوره کمال او رسوخ سره تاسو استقامت نسئ لرلای او د اعمالو او افعالو د استقامت چي کوم حقوق وي هغه په پوره توگه سره ادا کیدای نسي نو مخته د یوې ډیري اساني لاري په لور رهنمائي وکړل سوه یعني د عباداتو بنیاد او خلاصه پر لمانځه باندي ده که یوازي دا یو عمل او عبادت یعني په لمانځه کي استقامت اختیار کړي نو د ټولو غلطیو پرېښود به وسي نو پکار ده چي پر لمانځه باندي همیشتوب اختیار کړي ددې چي کوم شرطونه او آداب دي د هغو خیال وساتي او د هغه چي کوم حقوق دي هغه په پوره توگه سره ادا کوي .

وروسته د لمانځه مقدمه او شرط یعني اودس او طهارت ته اشاره سوې ده چي هغه ته نیم ایمان ویل سوي دي، نو وفرمایل سول چي د اوداسه ساتنه خو د مؤمن خاصه ده ځکه چي هغه مؤمن کامل چي د هغه زړه او دماغ د توجه الی الله په شغلو سره هر وخت منور وي هغه خپل زړه او بدن دواړو سره یعني ظاهرا هم او باطنا هم هر وخت د الله تعالی په دربار کي حاضر وي او په ظاهره چي په دربار الهي کي د حاضرۍ پرته د ظاهر او باطن د صفائي او پاکۍ او پرته د طهارت د آدب څخه خلاف شی دی او د شان عبودیت خلاف هم دی ځکه نو مؤمن د اوداسه حفاظت کوي او د اوداسه چي کوم آداب او شرطونه او مستحبات دي د هغه ټولو رعایت کوي .

---

[1] د نوموړي نوم ثوبان ابن مجدد دی کنیت یې ابوعبدالله دی ځیني حضراتو ابوعبدالرحمن هم لیکلي دي . په حمص نامي ځای کي په کال (۵۴هـ) کي وفات سوی دی .

﴿۲۷۲﴾ : وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ تَوَضَّأَ عَلٰى طُهْرٍ كُتِبَ لَهُ عَشْرُ حَسَنَاتٍ . رواه الترمذي .

د حضرت ابن عمر ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل:څوك چي داوداسه سربیره اودس وکړي نو د هغه لپاره لس نیکۍ ولیکل سي . ترمذي.

**تشریح** : یو خو مطلقا د اوداسه کولو ثواب او اجر تاکلی دی هغه خو تر لاسه کیږي مګر کوم سړی چي پر اوداسه سربیره اودس وکړي نو هغه د هغه ټاکل سوي اجر او ثواب څخه پرته نوري لس نیکۍ لیکل کیږي ، په دې مسئله کي علماء وايي چي دا اجر او ثواب هغه وخت تر لاسه کیږي هر کله چي د لومړي اوداسه څخه وروسته فرض یا نفل لمونځ یې کړی وي او د هغه څخه وروسته بیا دوهم اودس وکړي .

په شرح السنة کي منقول دي چي اودس نوی کول هغه وخت مستحب دی هر کله چي په لومړي اودس یې لمونځ کړی وي او د ځیني علماؤ په نزد که په لومړي اودس یې لمونځ نه وي کړی نو اودس کول مکروه دي .

## الفصل الثالث

﴿۲۷۳﴾ : عَنْ جَابِرٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِفْتَاحُ الْجَنَّةِ الصَّلَاةُ وَمِفْتَاحُ الصَّلَاةِ الطُّهُوْرُ . رواه أحمد .

د حضرت جابر ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : د جنت کیلي لمونځ دی او د لمانځه کیلي اودس دی . احمد

**تشریح** : څرنګه چي قلف سوې دروازه پرته د کیلي څخه نه خلاصیږي همدارنګه پرته د اوداسه څخه لمونځ نه کیږي او پرته د لمانځه څخه په جنت کي داخله نسي کیدلای ، په دې حدیث کي دلمانځه د پابندۍ ارزښت په خاصه مبالغه سره بیان سوی دی لکه چي لمونځ د ایمان په حکم کي دی چي پرته ددې څخه جنت ته تلل نه حاصلیږي نو پکار ده چي لمونځ په ښه ډول ادا کړل سي او هیڅ لمونځ ترک او قضاء نه کړل سي چي ددخول جنت سبب همدا دی .

﴿۲۷۴﴾: وَعَنْ شَبِيْبِ بْنِ أَبِيْ رَوْحٍ عَنْ رَجُلٍ مِّنْ أَصْحَابِ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَّى صَلَاةَ الصُّبْحِ فَقَرَأَ الرُّوْمَ فَالْتَبَسَ عَلَيْهِ فَلَمَّا صَلَّى قَالَ

حضرت شبیب بن ابو روح د رسول الله ﷺ د اصحابو څخه د یو صحابي څخه روایت کوي چي هغه وايي (یوځل) رسول الله ﷺ د سهار لمونځ ادا کړ او په هغه کي یې سورة روم وواېه ، رسول الله ﷺ لمونځ ادا کړ او وه یې فرمایل : د خلکو عجیبه حال دی زموږ سره

مَا بَالُ أَقْوَامٍ يُصَلُّوْنَ مَعَنَا لاَ يُحْسِنُوْنَ الطُّهُوْرَ وَإِنَّمَا يُلَبِّسُ عَلَيْنَا الْقُرْآنَ أُوْلٰئِكَ . رواه النسائي

لمونځ کوي او په ښه ډول اودس نه کوي او په دې وجه دا خلك مونږ ته په قرآن کي شك پيدا کوي .نسائي

**تشریح** : په دغه حديث کي دې ته اشاره ده چي د يو عمل او يو عبادت چي کوم سنتونه او آداب وي هغوئ واجب کامل کول د برکت سبب وي د دې برکت اثر نه يوازي دا چي د عامل په ذات پوري محدود وي بلکه هغه برکت په نورو کي هم سرايت کوي څرنګه چي د کوتاهۍ او قصور د عامل د ذات څخه پرته د نورو د ضرر هم باعث کيږي او ددې څخه دا معلومه سوه چي پر سنتو او آدابو باندي عمل نه کولو سره د فتوحات غيبيه دروازه بنديږي .

دا حديث په حقيقت کي د بې بصيرته خلکو لپاره عبرت دی چي د صحبت د تاثير څخه منکر او غافل دي ، نو د داسي خلکو لپاره د غور کولو ځای دی چي رسول الله ﷺ د دې مرتبې سربيره او د قرآن ويلو په حالت چي د تقرب الی الله وخت دی د يو اولی امتي د صحبت اثر وکړ چي د هغه څخه د اوداسه آداب او سنت کي يو کوتاهي يا قصور سوی وو چي د هغه په وجه رسول الله ﷺ ته په قرآئت کي متشابه سو بيا د داسي خلکو به څه حشر وي چي شپه او ورځ يې د اهل فسق او اهل بدعت اختيار کړې وي .

نو معلومه سوه چي خير او بهتري په دې کي ده چي د اهل فسق او اهل بدعت صحبت او هم نشني بالکل پرهېښودو سره د علماء حق ، صوفياني کرام او د الله تعالی د نيکو بنګانو صحبت اختيار کړل سي چي د هغوئ د ناستي او صحبت برکات او اثرات په خپل ځان کي پيدا کړي چي ددين او دنيا دواړو د خير لپاره ضامن دي .

د روايت په پيل کي راوي د هغه صحابي نوم نه ذکر کړی د چا څخه چي دا حديث تر لاسه سوی دی مګر حضرت ميرک شاه صاحب ليکلي دي چي هغه صحابي حضرت ابوذر غفاري ﷺ دی .

﴿۲۷۵﴾ : وَعَنْ رَّجُلٍ مِّنْ بَنِيْ سُلَيْمٍ قَالَ عَدَّهُنَّ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ يَدِيْ أَوْ فِيْ يَدِهِ قَالَ اَلتَّسْبِيْحُ نِصْفُ الْمِيْزَانِ ۔وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ يَمْلَؤُهُ وَالتَّكْبِيْرُ يَمْلَأُ مَا بَيْنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ وَالصَّوْمُ نِصْفُ الصَّبْرِ ۔وَالطُّهُوْرُ نِصْفُ الْإِيْمَانِ ۔ رواه الترمذي وقال هذا حديث حسن .

د بني سليم د قبيلې يو سړي روايت وکړ چي رسول الله ﷺ هغه خبري چي مخکي ذکر دي زما په لاس يا په خپل لاس شمير کړې نو وه يې فرمايل : تسبيح (سبحان الله ويل) نيمه تله ډکوي او الحمدلله پوره تله ډکوي او تکبير د آسمان او مځکي منځ ډکوي او روژه نيم صبر دی او پاکي نيم ايمان دی . ترمذي ويلي دي دا حديث حسن دی .

**تشریح** : د حدیث بیانولو په وخت کي راوي ته شک سوی دی چي رسول الله ﷺ دا خبري زما پر لاس یا پر خپل لاس شمیرلي دي په هر حال هغه یې داسي شمیر کړې چي یا خو د هغه صحابي ګوته یې ونیول یا خپل ګوته یې ونیول او هغه یې په بندولو سره دا پنځه خبري شمیر کړې .

په حدیث کي روژې ته نیم صبر ویل سوی دی ځکه چي پوره صبر خو دادی چي نفس پر طاعت ایسار کړي یعني احکام پر ځای کړي او د ګناهونو څخه منعه وکړي یعني منعه شیان نه کوي . او روژه نوم دی یوازي د نفس پر طاعت باندي ، یعني د حکم الهي پر ځای راوړلو نو په دې اعتبار سره روژه نیم صبر سو .

﴿۲۷۶﴾ :وَعَنْ عَبْدِ اللهِ الصُّنَابِحِيِّ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا تَوَضَّأَ الْعَبْدُ الْمُؤْمِنُ فَمَضْمَضَ خَرَجَتِ الْخَطَايَا مِنْ فِيْهِ وَإِذَا اسْتَنْثَرَ خَرَجَتِ الْخَطَايَا مِنْ أَنْفِهِ فَإِذَا غَسَلَ وَجْهَهُ خَرَجَتِ الْخَطَايَا مِنْ وَجْهِهِ حَتّٰى تَخْرُجُ مِنْ تَحْتِ أَشْفَارِ عَيْنَيْهِ فَإِذَا غَسَلَ يَدَيْهِ خَرَجَتِ الْخَطَايَا مِنْ يَّدَيْهِ حَتّٰى تَخْرُجَ مِنْ تَحْتِ أَظْفَارِ يَدَيْهِ فَإِذَا مسحه بِرَأْسِهِ خَرَجَتِ الْخَطَايَا مِنْ رَأْسِهِ حَتّٰى تَخْرُجُ مِنْ أُذُنَيْهِ فَإِذَا غَسَلَ رِجْلَيْهِ خَرَجَتِ الْخَطَايَا مِنْ رِّجْلَيْهِ حَتّٰى تَخْرُجَ مِنْ تَحْتِ أَظْفَارِ رِجْلَيْهِ ثُمَّ كَانَ مَشْيُهُ إِلَى الْمَسْجِدِ وَصَلَاتُهُ نَافِلَةً لَّهُ . رواه مالك والنسائي .

د حضرت عبدالله[۱] الصنابحي ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : کله چي مؤمن بنده د اوداسه اراده وکړي نو هغه چي خوله پریولي نو د هغه د خولې څخه ګناه وزي او هر کله چي په پزه کي اوبه واچوي نو ووزي ګناهونونه د پزي دده څخه او کله چي مخ پریولي نو د مخ او سترګو څخه ګناه وزي تر دې چي د ورځو لاندي ګناه یې هم ووزي او کله چي لاسونه پریولي نو د دواړو لاسونو ګناه یې پریولل سي تر دې چي د لاسو د نوکانو د لاندي ګناه یې هم پریولل سي او کله چي د سرمسحه وکړي نو د سر ګناه یې ووزي تر دې چي د غوږونو ګناه یې توی سي او کله چي ښې پریولي نو د پښو ګناه یې وزي تر دې چي د پښو د نوکانو ګناه یې توی سي ، بیا مسجد ته د هغه تلل او د هغه لمونځ کول (د هغه په اعمالو کي) زیاتوالی دی . مالك او نسائي .

**تشریح** : څرنګه چي په حدیث کي یادونه سوې ده چي کله اودس کونکی د خپل سر مسحه کوي نو د هغه ګناه د هغه د سر څخه وځي ، بیا وروسته فرمایل سوي دي تر دې چي د هغه د دواړو

---

[۱] د نوموړي په صحابي کېدو او نامه کي اختلاف دی . د یحیی بن معین قول دادی چي دده نوم عبدالله یا ابوعبدالله ویل کیږي .

غوږونو څخه هم ګناه وځي ، ددې جملې څخه دا خبره څرګندېږي چې غوږونه په سر کې داخل دي په دې توګه کوم حکم چې د سر وي هغه به د غوږو هم وي ، حنفي مسلک دادی ځکه دا مسئله ده چې هر کله د سر مسحه لپاره اوبه واخيستل سي نو په هغه اوبو سره دي د غوږونو مسحه هم وکړي ، د غوږونو د مسحه لپاره د نوو او بيلو اوبو اخيستلو ضرورت نسته .

د حديث په پای کې وفرمايل سول چې د هغه لمونځ ځکه په اعمالو کې زياتوب دی يعني هر کله چې هغه د اوداسه څخه فارغ سي نو ګناهونه د اوداسه په وجه پاک او صاف سوي وه او اوس لمونځ زائد دی چې د درجو د لوړې سبب دی .

﴿۲۷۷﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَتَى الْمَقْبَرَةَ فَقَالَ السَّلَامُ عَلَيْكُمْ دَارَ قَوْمٍ مُؤْمِنِينَ وَإِنَّا إِنْ شَاءَ اللّٰهُ بِكُمْ لاَحِقُونَ وَدِدْتُ أَنَّا قَدْ رَأَيْنَا إِخْوَانَنَا قَالُوا أَوَلَسْنَا إِخْوَانَكَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ قَالَ أَنْتُمْ أَصْحَابِي وَإِخْوَانُنَا الَّذِينَ لَمْ يَأْتُوا فَقَالُوا كَيْفَ تَعْرِفُ مَنْ لَمْ يَأْتِ بَعْدُ مِنْ أُمَّتِكَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ فَقَالَ أَرَأَيْتَ لَوْ أَنَّ رَجُلاً لَهُ خَيْلٌ غُرٌّ مُحَجَّلَةٌ بَيْنَ ظَهْرَيْ خَيْلٍ دُهْمٍ بُهْمٍ أَلاَ يَعْرِفُ خَيْلَهُ قَالُوا بَلَى يَا رَسُولَ اللّٰهِ قَالَ فَإِنَّهُمْ يَأْتُونَ غُرًّا مُحَجَّلِينَ مِنَ الْوُضُوءِ وَأَنَا فَرَطُهُمْ عَلَى الْحَوْضِ (رواه مسلم)

د حضرت ابوهريرة ﷺ څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ (جنت البقيع) هديرې ته تشريف راوړئ او وه يې فرمايل : اې د هديرې د مؤمنانو ډلې پر تاسو دي سلامتي وي او موږ هم انشاء الله تاسو ته راتلونکي يو او زما دا ارمان دی چې موږ خپل ورونه ووينو (د دې په اورېدو سره ) صحابه کرامو عرض وکړ اې دالله رسوله ! ايا موږ ستاسو ورونه نه يو ؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل تاسو زما اصحاب (ملګري) ياست او زما ورونه هغه دي چې اوس لا (دنيا ته ) نه دي راغلي . صحابه کرامو عرض وکړ تاسو به په قيامت کې دغه خلك څنګه پيژنئ چې تر اوسه ستاسو په امت کې نه دي راغلي ؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل ما ته دا ووايا ست چې که د يو سړي سره سپين تندي والا او سپين لاس او پښو والا آسان وي او هغه په ډېرو تورو آسانو کې ګډ سوي وي نو ايا هغه به خپل آسونه پيژني؟ صحابه کرامو عرض وکړ هو ، اې دالله رسوله ، نو رسول الله ﷺ وفرمايل هغوئ به (د قيامت په ورځ) د اوداسه د اثر په وجه سپين تندي او سپين لاس او پښو والا راځي او زه به پر حوض کوثر د هغوئ سردار يم . مسلم .

**تشريح** : په دې حديث کې رسول کريم ﷺ په صحابه کرامو او د هغو څخه وروسته پيدا کيدونکو مسلمانانو کې نه يوازې دا چې يو لوی او لطيف فرق بيان کړ بلکه صحابه کرامو ته يې امتيازي

شان هم ښخښلی دی ، رسول کریم ﷺ صحابه کرامو ته وفرمایل تاسو زما دوستان یاست او ورسته پیدا کېدونکي مسلمانان زما وروڼه دي نو ستاسو سره د تعلقات دوه ډولونه دي یو خو دا چي تاسو زما وروڼه یاست او دد ې سره سره زما خاص دوستان هم یاست، او کوم چي وروسته راتلونکي دي یعني تابعین وغیره د هغوئ سره زما تعلق یوازي دادی چي هغوئ زما اسلامي وروڼه دي .

د سامان د امیر مطلب دادی چي زه به د هغه خلکو څخه مخکي الله تعالی ته په رسیدو سره د هغوئ د مغفرت او بخښني او د درجو د لوړوالي اسباب سموم .

﴿۲۷۸﴾ :وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ( أَنَا أَوَّلُ مَنْ يُؤْذَنُ لَهُ بِالسُّجُوْدِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَأَنَا أَوَّلُ مَنْ يُؤْذَنُ لَهُ أَنْ يَّرْفَعَ رَأْسَهُ فَأَنْظُرُ إِلَى مَا بَيْنَ يَدَيَّ فَأَعْرِفُ أُمَّتِي مِنْ بَيْنِ الْأُمَمِ وَمِنْ خَلْفِي مِثْلَ ذٰلِكَ وَعَنْ يَّمِيْنِي مِثْلَ ذٰلِكَ وَعَنْ شِمَالِيْ مِثْلَ ذٰلِكَ . فَقَالَ رَجُلٌ يَا رَسُوْلَ اللهِ كَيْفَ تَعْرِفُ أُمَّتَكَ مِنْ بَيْنِ الْأُمَمِ فِيْمَا بَيْنَ نُوْحٍ إِلَى أُمَّتِكَ ؟ قَالَ هُمْ غُرٌّ مُّحَجَّلُوْنَ مِنْ أَثَرِ الْوُضُوْءِ لَيْسَ أَحَدٌ كَذٰلِكَ غَيْرُهُمْ وَأَعْرِفُهُمْ أَنَّهُمْ يُؤْتَوْنَ كُتُبَهُمْ بِأَيْمَانِهِمْ وَأَعْرِفُهُمْ تَسْعٰى بَيْنَ أَيْدِيْهِمْ ذُرِّيَّتُهُمْ .رواه احمد

د حضرت ابو درداء ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : د قیامت په ورځ به تر ټولو لومړی سړی زه یم چي د سجدې اجازه به راکړل سي او بیا به په هغه خلکو کي لومړی سړی یم چي د سجدې څخه د سر پورته کولو حکم راکړل سي زه به خپل په وړاندي د خلکو ګڼه ګونه ووینم او په هغوئ کي به خپل امت و پیژنم بیا به د خپل ځان څخه وروسته دا ډول ګڼه ګونه ووینم په نورو امتونو کي به خپل امت و پیژنم بیا به خپل راسته او چپه لوري ته ګڼه ګونه ووینم او خپل امت به پکښي و پیژنم ،یوه سړي وویل اې دالله رسوله ! د هغه امتونو په منځ کي به تاسو خپل امت څنګه پیژنئ په مابین د حضرت نوح علیه السلام د امت څخه بیا ستا تر امت پوري ؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمایل : زما د امت خلك به د اوداسه د اثر په وجه ځلانده مخان او سپین لاسونه او پښې وي او ددې پرته به بل هیڅ یو نښه نه وي او زه به هغوئ داسي پیژنم چي د هغوئ عمل نامه به یې په راسته لاسونو کي وي او داسي به یې پیژنم چي د هغوئ (کم عمره) ماشومان به د هغو څخه وړاندي منډې وهي . احمد

**تشریح** : په محشر کي به رسول کریم ﷺ د الله تعالی په دربار کي حاضر سي نو د شفاعت لپاره به پر سجده پریوځي او د یوې اونۍ په اندازه به پر سجده وي بیا به د الله تعالی د لوري حکم وسي چي اې محمد ﷺ ! خپل مبارک سر پورته کړ او اې زما محبوبه وغواړه څه چي غواړې، موږ به

ستاسو خواست ته قبولیت وبخښو ، ددې څخه وروسته به شافع محشر رسول کریم ﷺ د مخلوق خدا د شفاعت لپاره په خپل مبارکه ژبه سره د الله تعالی په دربار کي درخواست وړاندي کړي ، د حدیث په لومړنۍ برخه کي همدې ته اشاره سوې ده .

په دې حدیث کي په میدان حشر کي د امت محمدیه زیاتوب او کثرت او د هغوئ مرتبو ته اشاره فرمایل سوې ده : (فانظر الی مابین یدي) یعني زه به هغه شي ته گورم چي زما مخته وي (عن شمالي مثل ذالک) او چپه خوا ته به همداسي گورم ، ددې څخه دا مراد دی چي زما څلور خواوو ته به زما امت خپور وي او بیا په هغوئ کي به د مختلفو مرتبو او درجو خلک وي .

د صحابي د سوال مطلب دادی چي د نوح ﷺ د زمانې څخه تر نن وخت پوري ډیر اوږد وخت دی او یوه اوږده زمانه تیره سوې ده ، په دې دوران کي به یو او دوه نه بلکه ډیر زیات امتونه تیر سوي دي بیا د شمیر په لحاظ چي وکتل سي نو په دومره گڼه گوڼه او دومره امتونو کي به رسول الله ﷺ څرنگه خپل امت و پیژني، ددې په جواب کي رسول کریم ﷺ د هغه امتیازي صفت ذکر وفرمایه چي په هغه سره امت محمدي متصف وي او په ټولو امتونو کي به ممتاز وي . په دې اړه د حضرت نوح ﷺ د نامه په خاصه توگه اخیستو وجه داده چي اول خو ددې څخه د زمانې اوږدوالی مراد دی ، دوهم دا چي دی په ټولو انبیاؤ کي زیات مشهور دی ځکه نو د هغه نوم یې واخیستی .

# بَابُ مَا يُوْجِبُ الْوُضُوْءَ

## (د اوداسه واجب کونکو شیانو بیان)

په دې باب کې د هغه شیانو ذکر کیږي کوم چې اودس ماتوي ، د امام اعظم رحمة الله علیه د مذهب سره سم په دغه شیانو سره اودس ماتیږي :

۱. د ډکو بولو او تشو بولو د لارو څخه په وتونکي هر شي اودس ماتیږي لکه ، لوی بولي، وړې بولي، هواء وغیره ، کومه هواء چې د نارینه یا ښځینه د مخ د خوا څخه ووځي نو په هغه سره اودس نه ماتیږي .

۲. په هغه شي سره اودس ماتیږي چې نجس وي لکه وینه، نو او داسې نور او د بدن څخه په وتلو سره چې هغه برخې ته ورسیږي چې د هغه په غسل یا اوداسه کې پریولل لازم وي یعني که په پزه او سترګو کې دننه وي نو په هغه سره اودس نه ماتیږي ځکه چې د هغو پریولل لازم نه دي.

۳. په قی کولو سره اودس ماتیږي ، په ډکه خوله قی کولو کې که خوراک راووځي یا ترخې اوبه راووځي او یا یخی سوې وینه وغیره راووځي نو په دې سره اودس ماتیږي ، که چیرې بلغم راووځي نو اودس نه ماتیږي ، که د نرې ویني یا نو قی یې کړی وي نو په هغه کې د ډکې خولې شرط نسته بلکه د توکلو برابر یا پر ناوړ باندې غالب سي بیا هم اودس ماتیږي ، او که کم وي نو بیا نه ماتیږي ، که لږ لږ قی په دومره اندازه کې وکړې که هغه جمع کړل سي نو خوله په ډکیږي نو په هغه سره هم اودس ماتیږي ، په کومو شیانو چې اودس نه ماتیږي نو هغه نجس هم نه وي مثلاً لږ قی یې وکړ یا دبدن څخه یې دومره وینه ووتل چې هغه پر بدن باندې ونه بهېدل نو دا ناپاکه نه دي .

۴. په لیونتوب سره ، یعني په لیوني کېدو سره هم اودس ماتیږي .

۵. په نشه کېدو سره اودس ماتیږي .

۶. په بې هوشه کېدو سره اودس ماتیږي .

۷. د بالغ په قهقه خندا سره اودس ماتیږي په کومو لمنځو کې چې سجده او رکوع وي .

۸. په مباشرت فاحشه سره اودس ماتیږي، مباشرت فاحشه دې ته وایي چې په انتشار او جنسي هیجان سره د سړي ستر د ښځې د ستر سره او د ښځې ستر د سړي د ستر سره یو ځای

سي يا د دوو ښځو يا خلکو ستر سره يو ځای سي .

۹. په پروته سره يا پر خپل بدن يا ديوال وغيره باندي په تکيه کولو سره په بېده کېدو اودس ماتيږي ، مګر دا بيده کېدل داسي وي چي پر کوم شي يې تکيه کړې وي که هغه ليري سي نو را لويږي .

۱۰. که داسي بيده سي چي مقعد (شرمګاه) د مځکي څخه پورته سي ، يعني پر اړخ يا تشو باندي لګولو سره کښېنته سوی بيده سي نو اودس ماتيږي او که په ولاړه بيده سي يا د رکوع او سجدې په حالت کي بيده سي نو اودس نه ماتيږي . مګر شرط دادی چي رکوع او سجده پر مسنونه طريقه باندي وي ، که د زخم څخه چينجی ووځي يا غوښه په پرې کېدو سره ولويږي نو په دې سره اودس نه ماتيږي .

۱۱. که چينجی په ماړه نس وينه وڅښي نو اودس ماتيږي او که داسي نه وي نو اودس نه ماتيږي .

۱۲. که د چا سترګي خوږيږي او اوښکي ځيني بهيږي نو اودس ماتيږي ، په دې اړه اکثره خلک غافله وي ، ددې خيال نه کوي ځکه ددې خيال ساتل پکار دی ، مګر که يو سړی داسي وي چي د هغه سترګي هميشه خوږيږي او اوښکي ځيني بهيږي نو هغه صاحب عذر دی .

۱۳. که غوږ خوږيږي او د هغه څخه نو يا وينه راوځي نو اودس ماتيږي او که پرته د درد څخه نو وغيره د غوږ څخه وځي نو په هغه سره اودس نه ماتيږي .

دا ټول شيان چي د هغه ذکر وسو ټول اودس ماتونکي دي ، په دې سره اودس ماتيږي، په دې کي دوه شيان چي د دواړو بولو د ځايو څخه وتونکو شيانو او خوب باندي د ټولو علماؤ اتفاق دی چي په دې سره اودس ماتيږي او پاته شيان مختلف فيه دي .

## الفصل الاول

﴿۲۷۹﴾ : وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : لاَ تُقْبَلُ صَلاَةُ مَنْ أَحْدَثَ حَتَّى يَتَوَضَّأَ (متفق عليه) .

د حضرت ابوهريرة ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د بې اودسه لمونځ نه قبليږي تر څو پوري چي هغه اودس ونه کړي .بخاري او مسلم

**تشريح** : د دې تړاو د هغه سړي سره دی چي اوبه لري او د هغه د استعمال قدرت هم په هغه کي

وي ، د كوم سړي سره چي اوبه او د هغه د استعمالولو شرعي عذر هم نه وي نو هغه ته د لمانځه كولو لپاره اودس كول ضروري دي كه هغه اودس ونه كړي نو د هغه لمونځ نه ادا كيږي .

كه يو سړى اوبه پيدا نه كړي او يا د هغه د استعمال قدرت نه لري نو هغه دي د اوداسه پر ځاى په پاكه خاوره باندي تيمم وكړي ، داسي سړى چي اوبه پيدا نه كړي او نه پاكه خاوره او نه د هغه پر استعمال قدرت لري نو داسي سړي ته د شريعت په اصطلاح كي (فاقد الطهورين) وايي د دې سړي په اړه دا حكم دى چي هغه دي لمونځ نه كوي، مګر كله چي هغه اوبه وغيره پيدا كړي نو د اودس كولو سره لمونځ دي وكړي .

په دې مسئله كي د امام شافعي رحمة الله عليه مذهب بل دى هغه فرمايي چي داسي سړى يعني فاقد الطهورين ته پكار ده چي په دې صورت كي هم هغه بايد د لمانځه د وخت په احترام كي پرته د اوداسه او تيمم څخه لمونځ وكړي هر كله چي هغه اوبه يا خاوره پيدا كړي نو اودس يا تيمم كولو سره دي د لمانځه قضاء راوړي .

زموږ علماء فرمايي كه يو سړى په قصد سره پرته د طهارت څخه لمونځ وكړي او بيا دا چي د دې څخه د هغه مقصد د وخت احترام هم نه وي نو دا سړى كافر كيږي يا كه دخلكو د شرم په وجه يوازي د ښوونې لپاره هم پرته د طهارت څخه لمونځ وكړي نو هم كافر كيږي ځكه چي په دغه دواړو صورتونو كي هغه د شريعت تحقير (سپكاوى) كړى دى ځكه نو داسي سړى چي په خپل فعل يا قول سره د شريعت د حقارت سبب جوړيږي هغه ددې قابل نه دى چي د اسلام او ايمان په دائره كي پاته سي.

| ﴿۲۸۰﴾ : وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : لاَ تُقْبَلُ صَلاَةٌ بِغَيْرِ طُهُورٍ وَلاَ صَدَقَةٌ مِنْ غُلُولٍ (رواه مسلم) | د حضرت ابن عمر ﷺ څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل : بېله اوداسه لمونځ نه قبليږي او نه د حرام مال خيرات كيږي . مسلم . |
|---|---|

**تشريح** : د حرام مال څخه صدقه او خيرات كول د صدقې او خيرات توهين او تحقير دى ځكه نو دا ډير زيات د نفرت وړ شمير سوي دي ، علماؤ خو دا هم ويلي دي چي كوم سړى د حرام مال څخه صدقه او خيرات كوي او بيا ددې اميد هم لري چي ثواب به ورته حاصل سي نو هغه كافر كيږي .

﴿۲۸۱﴾ : وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ كُنْتُ رَجُلاً مَذَّاءً وَكُنْتُ أَسْتَحْيِي أَنْ أَسْأَلَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِمَكَانِ ابْنَتِهِ فَأَمَرْتُ الْمِقْدَادَ فَسَأَلَهُ فَقَالَ يَغْسِلُ ذَكَرَهُ وَيَتَوَضَّأُ (متفق عليه)

حضرت علي ﷛ فرمايي چي ما ته مذي زيات راتلل او زه په دې وجه چي د رسول الله ﷺ زوم وم د دې حکم پوښتلو څخه شرمېدم نو ما مقداد ته د پوښتني کولو لپاره وويل . مقداد د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وکړه ، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : د مذي په وتلو سره دي يوازي د تشو بولو ځاى پريولي او اودس دي وکړي . بخاري او مسلم .

**تشريح** : دا حديث په اخلاقي معامله کي يو ډېر نازک خبرداری ورکوي چي زوم ته د خپل خسر سره د شهوت د خبرو يادونه کول يا د داسي شيانو تذکره کول چي د هغه تعلق د ښځي د مباشرت سره وي چي د هغه بيان د اخلاقو او تهذيب او شرم او حيا خلاف وي مناسب نه دي .

﴿۲۸۲﴾: وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ الْوُضُوءُ مِمَّا مَسَّتْ النَّارُ (رواه مسلم) قَالَ الشَّيْخُ الإِمَامُ الاجل محي السنة هذا منسوخ بحديث ابن عباس قال ان رسول الله صلى الله عليه وسلم اكل كتف شاة ثم صلى و لم يتوضا .متفق عليه

د حضرت ابوهريرة ﷛ څخه روايت دى چي ما د رسول الله ﷺ اوريدلي دي چي فرمايل يې : کوم شی چي پر اور پخ سوی وي د هغه د خوړلو وروسته اودس کوئ . شيخ امام محي السنة فرمايي دا حديث د ابن عباس په هغه حديث سره منسوخ دی چي رسول الله ﷺ د پسه اوږه (ولې) وخوړل بيا يې لمونځ وکړ او اودس يې ونه کړ . بخاري او مسلم .

**تشريح** : د اول حکم منسوخ کېدل خو د ابن عباس ﷛ په ذکر سوي حديث سره وسول مگر په دې مسئله کي يو بل تاويل دا کيدای سي چي د رسول الله ﷺ د دې حکم چي د اور پاخه سوي شي خوړلو څخه وروسته اودس کوئ، ددې څخه مراد دادي چي هر کله تاسو يو پوخ کړی شی وخورئ نو د غوړ والي وغيره ليري کولو لپاره لاس او خوله پريولئ ځکه چي نه يوازي د نظاقت او صفائي دا غوښتنه ده بلکه دا سنت هم دي ، دې ته د خوراک اودس ويل کيږي ، په دې صورت کي د حديث د منسوخ کېدو ضرورت هم نه پاته کيږي .

﴿۲۸۳﴾ :وَعَنْ جَابِرِ ابْنِ سَمُرَةَ أَنَّ رَجُلاً سَأَلَ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَأَتَوَضَّأُ مِنْ

حضرت جابر[1] بن سمرة ﷛ وايي چي يو سړي د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وکړه ايا موږ د پسه د

[1] د نوموړي نوم جابر بن سمره او کنيت يې ابوعبدالله عامري دی . د نوموړي په وفات کي اختلاف دی ځينو په نزد په کال (۶۶هـ) کي او د ځينو د تحقيق سره سم په کال (۷۴هـ) کي وفات سوی دی .

لُحُومِ الْغَنَمِ قَالَ إِنْ شِئْتَ فَتَوَضَّأْ وَإِنْ شِئْتَ فَلاَ تَوَضَّأْ قَالَ أَتَوَضَّأُ مِنْ لُحُومِ الإِبِلِ قَالَ نَعَمْ فَتَوَضَّأْ مِنْ لُحُومِ الإِبِلِ قَالَ أُصَلِّي فِي مَرَابِضِ الْغَنَمِ قَالَ نَعَمْ قَالَ أُصَلِّي فِي مَبَارِكِ الإِبِلِ قَالَ لاَ . (رواه مسلم)

غوښو خوړلو وروسته اودس کوو؟ رسول الله ﷺ وفرمایل که دي زړه غواړي نو وه یې کړه او کنې مه یې کوه . بیا هغه پوښتنه وکړه ایا د اوښ د غوښو خوړلو وروسته اودس کوو؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمایل: هو، د اوښ د غوښو خوړلو وروسته اودس کوه بیا هغه پوښتنه وکړه ایا زه د پسو د اوسیدو په ځای کي لمونځ کوم ؟ رسول الله ﷺ وفرمایل :هو، بیا هغه پوښتنه وکړه ایا د اوښانو د تړلو په ځای کي لمونځ کوم ؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمایل :یا . مسلم .

**تشریح** : امام حنبل رحمة الله علیه د حدیث پر ظاهر باندي عمل کوي ځکه هغه د حدیث په لیدو سره حکم کوي چي د اوښ غوښه خوړلو څخه وروسته اودس کول پکار دي ځکه چي په دې حدیث کي رسول الله ﷺ د اوښ غوښه خوړلو څخه وروسته د اوداسه کولو حکم وفرمایه .

مګر د امام اعظم ابو حنیفه رحمة الله علیه ، امام شافعي او امام مالک رحمة الله علیهم ، په نزد د اوښ غوښه خوړلو سره اودس نه ماتیږي ځکه چي دا حضرات د دې حدیث محمل د اودس لغوي معنا (لاس او خوله) پریولل ګرځوي ، یعني دا حضرات فرمایي چي د رسول کریم ﷺ د ارشاد مقصد دادی چي د اوښ په غوښه کي بوی او غوړوالی زیات وي ځکه د دې د خوراک څخه وروسته لاسونه او خوله پریولل پکار دي ، د پسه په غوښه کي بوی او غوړوالی کم وي ځکه په دې اړه فرمایل سوي دي که طبیعت مو وي او د نظاقت غوښتنه وي نو لاس او خوله پریولئ او که طبیعت مو نه وي نو څه ضروري نه ده .

د اوښانو د تړلو په ځای کي د لمانځه کولو څخه منعه فرمایل د نهي تنزیهي په توګه دي او منعه یې ځکه وفرمایل چي هلته په لمانځه کولو کي سکون، اطمینان نه پاته کیږي، د اوښانو د تښتېدلو یا لغتي وهلو او تکلیف رسولو بیره وي ، پر خلاف د پسو چي هغه خو عاجز، ساده او بې ضرره وي ځکه د هغه د اوسیدو په ځایو کي د لمانځه کولو اجازه یې ورکړه .

په دې خبره هم پوهېدل پکار دي چي د لمانځه کولو په اړه دا جواز او عدم جواز په دې صورت کي دی هر کله چي د پسو او او اوښانو د تړلو ځای د نجاست او چټلی څخه پاک وي ، که هلته نجاست وي نو بیا د پسو په ځای کي لمونځ کول به مکروه وي .

﴿۲۸۴﴾ : وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قال قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا وَجَدَ أَحَدُكُمْ فِي بَطْنِهِ شَيْئًا فَأَشْكَلَ عَلَيْهِ أَخَرَجَ مِنْهُ شَيْءٌ أَمْ لاَ فَلاَ يَخْرُجَنَّ مِنَ الْمَسْجِدِ حَتَّى يَسْمَعَ صَوْتًا أَوْ يَجِدَ رِيحًا (رواه مسلم) .

د حضرت ابوهريرة ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : هر کله چي څوك په تاسو كي په خپل نس كي دننه څه (آواز) واوري او ورسره شك سي چي يو شی خارج سوی دی يا نه نو تر هغه وخته د اوداسه لپاره د مسجد څخه مه وځئ تر څو پوري چي د هغه آواز وا نه وریٔ يا بویٔ پيدا نه کړیٔ . مسلم .

**تشريح** : تر څو چي آواز يا بوی نه وي دا په غالب گمان سره دی کنه نو ددې حديث مطلب دا دی چي هر کله د هوا خارج کېدل په يقيني توگه سره معلوم سي که څه هم آواز واوري يا نه او بوی معلوم سي يا معلوم نسي نو پوه سئ چي اودس مات سوی دی .

﴿۲۸۵﴾ : وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبَّاسٍ قَالَ إِنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَرِبَ لَبَنًا فَمَضْمَضَ وَقَالَ إِنَّ لَهُ دَسَمًا .(متفق عليه)

د حضرت عبدالله بن عباس ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ شېدې وچښلې او خوله يې پرېوله او وه يې فرمايل په شيدو کي غوړوالی وي .بخاري او مسلم

**تشريح** : د دې حديث څخه معلومه سوه چي د غوړ شي خوړلو څخه وروسته خوله پرېولل مستحب دي، ځکه که خوله نه پرېولل سي نو کيدای سي چي کوم شی يې خوړلی وي د هغه غوړوالي يو څه برخه په خوله کي موښتې پاته سي کله چي لمونځ کيږي نو د لمانځه په حالت کي نس ته ورسيږي ، پر دې هر هغه شی قياس کيدای سي چي په خوله پوري موښتی وي او د لمانځه په حالت کي هغه نس ته ذ رسيدو بيره وي نو د هغه څخه خوله پرېولل مستحب دي .

د دې حديث څخه علماؤ دا مسئله اخيستې ده چي د خوراک خوړلو څخه مخکي د صفائي لپاره لاسونه پرېولل پکار دي ، مگر که چيري لاس د مخه پاک وي او نجاست وغيره نه وي پوري موښتی نو بيا د لاسونو پرېولل ضروري نه دي ، همدارنگه د خوراک کولو څخه وروسته هم لاسونه پرېولل پکار دي ، که خوراک د وچېدو په وجه يا په قاچوغه وغيره سره د خوړلو په وجه په لاس پوري نه موښلي نو بيا د لاسونو پرېوللو ضرورت نسته .

په پای کي په دې خبره پوهېدل پکار دي چي په ظاهره خو د دې باب سره ددې حديث مناسبت نه معلوميږئ ځکه نو دا اعتراض پيدا کيدای سي چي مصنف مشکوة دا حديث په دې باب کي ولي ذکر کړ، ددې مختصر جواب دادی چي په دې حديث کي د خولې پرېوللو ذکر سوی دی او هغه د اوداسه د تعلوقاتو څخه دی ځکه نو دا حديث يې په دې باب کي ذکر کړی دی .

﴿۲۸۶﴾ :وَعَنْ بُرَيْدَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَّى الصَّلَوَاتِ يَوْمَ الْفَتْحِ بِوُضُوءٍ وَاحِدٍ وَمسحه عَلَى خُفَّيْهِ فَقَالَ لَهُ عُمَرُ لَقَدْ صَنَعْتَ الْيَوْمَ شَيْئًا لَمْ تَكُنْ تَصْنَعُهُ قَالَ عَمْدًا صَنَعْتُهُ يَا عُمَرُ (رواه مسلم) .

د حضرت بريدة[1] ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ د فتح په ورځ په يوه اوداسه سره څو لمنځونه وکړل (پنځه لمنځونه) او پر موزو يې مسحه وکړه نو حضرت عمر ﷺ رسول الله ﷺ ته وويل نن تاسو هغه خبره وکړه چي تاسو هيڅکله نه وه کړې . رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : (اې) عمره! ما په قصد سره داسي کړي دي (چي خلکو ته د دې جواز څرگند سي) مسلم .

**تشريح** : د حضرت عمر ﷺ د وينا مقصد دا وو چي مخکي خو ستاسو معمول دا وو چي د هر لمانځه لپاره به مو تازه اودس کوی مگر نن تاسو د معمول خلاف يو وخت اودس وکړ او بيا په هغه اوداسه سره تاسو پنځه سره لمنځونه ادا کړل او بيا يو نوی شی دا چي پر موزو مو مسحه هم وکړل څرنگه چي تاسو داسي هيڅکله نه کول ؟ د دې په جواب کي رسول الله ﷺ وفرمايل : زما دا عمل په بل هيڅ وجه نه وو بلکه ما داسي په قصد سره وکړل چي خلکو ته دا معلومه سي چي دا دواړه صورتونه جائز دي او نور خلک هم داسي کولای سي .

﴿۲۸۷﴾ :وَعَنْ سُوَيْدِ ابْنِ النُّعْمَانِ أَنَّهُ خَرَجَ مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَامَ خَيْبَرَ حَتّٰى إِذَا كَانُوْا بِالصَّهْبَاءِ وَهِيَ أَدْنٰى خَيْبَرَ صَلَّى الْعَصْرَ ثُمَّ دَعَا بِالْأَزْوَادِ فَلَمْ يُؤْتَ إِلاَّ بِالسَّوِيْقِ فَأَمَرَ بِهِ فَثُرِّيَ فَأَكَلَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَكَلْنَا ثُمَّ قَامَ إِلَى الْمَغْرِبِ فَمَضْمَضَ وَمَضْمَضْنَا ثُمَّ صَلَّى وَلَمْ يَتَوَضَّأْ . رواه البخاري .

د حضرت سويد[2] بن النعمان ﷺ څخه روايت دی چي هغه د رسول الله ﷺ سره د خيبر د فتح په کال په سفر ولاړی ، کوم وخت چي صهبا نامي ځای ته ورسيدل چي د خيبر سره نژدې دی نو د مازديگر لمونځ يې وکړ بيا يې توښه را وغوښتل، ستوان راوړل سول او د رسول الله ﷺ په حکم سره ميده کړل سول بيا رسول الله ﷺ او موږ هغه وخوړل بيا د ماښام د لمانځه لپاره و درېدو ، رسول الله ﷺ خوله پريولل او موږ هم خوله پريولل او لمونځ مو ادا کړ او اودس مو ونه کړ .

**تشريح** : دغه حديث د دې مسئلې تشريح وکړه چي په اور سره پخ کړي شيانو خوړلو سره اودس

---

[1] د نوموړي نوم بريدة بن حصيب دی او کنيت يې ابوعبدالله دی ، د مدينې منورې اوسيدونکی وو . په مرو نامي ځای کي د يزيد بن معاويه په زمانه کي په کال (۶۳هـ) کي وفات سوی دی .

[2] د نوموړي نوم سويد بن نعمان دی او د اهل مدينې څخه شميرل کيږي .

نه ماتيږي ځکه رسول الله ﷺ ستو وخوړل چي په اور سره تيار سوي وه او د هغه څخه وروسته يوازي د خولې په پرېوللو سره يې د مانبام لمونځ وکړ او اودس يې ونه کړ.

## الفصل الثاني

﴿۲۸۸﴾ : وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قال قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لاَ وَضُوْءَ إِلاَّ مِنْ صَوْتٍ أَوْ رِيْحٍ . رواه أحمد والترمذي .

د حضرت ابوهريرة ؓ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : اودس يوازي په آواز يا بوی سره واجب کيږي . احمد او ترمذي.

**تشريح** : مطلب دادی چي اودس په شک سره نه ماتيږي ترڅو پوري چي يقين ونسي اوس باقي پاته وي نو په دې شبهې سره چي شايد هواء خارج سوې وي اودس نه ماتيږي مګر که چيري آواز يا بوی سره يقين وسي چي هواء خارج سوې ده نو اودس ماتيږي.

﴿۲۸۹﴾ : وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ سَأَلْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْمَذِيِّ فَقَالَ مِنَ الْمَذِيِّ الْوُضُوْءُ وَمِنَ الْمَنِيِّ الْغُسْلُ . رواه الترمذي .

د حضرت علي ؓ څخه روايت دی چي ما د مذي په اړه د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وکړه ، رسول الله ﷺ وفرمايل : د مذي په وتلو سره اودس لازميږي او په مني وتلو سره غسل واجب کيږي .ترمذي.

﴿۲۹۰﴾ : وَعَنْهُ قال قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِفْتَاحُ الصَّلاَةِ الطُّهُوْرُ وَتَحْرِيْمُهَا التَّكْبِيْرُ وَتَحْلِيْلُهَا التَّسْلِيْمُ . رواه أبو داود والترمذي والدارمي . ورواه ابن ماجه عنه وعن أبي سعيد .

د حضرت علي ؓ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل د لمانځه کيلي اودس دی او د لمانځه تحريم تکبير دی او د لمانځه تحليل سلام ګرځول دي . ابوداؤد، ترمذي، دارمي او ابن ماجه.

**تشريح** : په تکبير يعني الله اکبر ويلو سره لمونځ پيل کيږي ، ددې مطلب دادی چي خوراک، څښناک او کوم کارونه چي د لمانځه خلاف وي اوس هغه ټول حرام سوي دي او په سلام ګرځولو سره لمونځ ختميږي ، ددې مطلب دادی چي په لمانځه پيل کولو سره چي څومره شيان حرام سوي وه اوس هغه ټول حلال سول ، دې ته فرمايل سوي دي چي د لمانځه تحريم تکبير او ددې تحليل سلام دي.

﴿۲۹۱﴾: وعن عليِّ بْنِ طَلْق قال قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا فَسَا أَحَدُكُمْ فَلْيَتَوَضَّأْ وَلاَ تَأْتُو النِّسَاءَ فِيْ أَعْجَازِهِنَّ . رواه الترمذي وأبو داود .

د حضرت علي بن طلق ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : هر کله چي په تاسو کي د یو چا هوا پرته د آواز څخه ووزي نو هغه ته اودس کول پکار دي او تاسو د ښځو سره د ډکو بولو په ځای کي کوروالي مه کوئ . ترمذي او ابوداؤد.

﴿۲۹۲﴾: وَعَنْ مُعَاوِيَةَ بْنِ أَبِيْ سُفْيَانَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّمَا الْعَيْنَانِ وِكَاءُ السَّهِ فَإِذَا نَامَتِ الْعَيْنُ اسْتَطْلَقَ الْوِكَاءُ . رواه الدرامي .

د حضرت معاویه [۱] بن ابو سفیان ﷺ څخه روایت دی. چي رسول الله ﷺ وفرمایل : سترګي د لوی اودس ماتي د ځای الغي دي هر کله چي سترګي ببدې سي نو دالغې خلاصي سي . دارمي.

**تشریح** : هر کله چي انسان ويښ وي نو لکه د هغه پر شرمګاه چي بند لګيدلی وي چي د هغه په وجه هواء نه وځي بلکه بند وي او که خارخيږي نو د هغه احساس کيږي او هر کله چي بيده سي نو هغه بې اختياره سي بند ونه يې سست سي نو د هواء خارجېدو ګمان وي چي د هغه ورته يقينا احساس نسي کيدای ځکه نو خوب ته اودس ماتونکی وويل سول .

﴿۲۹۳﴾ : وَعَنْ عَلِيٍّ قال قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وِكَاءُ السَّهِ الْعَيْنَانِ فَمَنْ نَامَ فَلْيَتَوَضَّأْ . رواه أبو داود ، وَقَالَ الشَّيْخُ الْإِمَامُ مُحْيِ السُّنَّةِ هٰذَا فِيْ غَيْرِ الْقَاعِدِ لِمَا صَحَّ عَنْ أَنَسٍ قَالَ كَانَ أَصْحَابُ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَنْتَظِرُوْنَ الْعِشَاءَ حَتّٰى تَخْفِقَ رُؤُوْسَهُمْ ثُمَّ يُصَلُّوْنَ وَلاَ يَتَوَضَّؤُوْنَ . رواه أبو داود والترمذي إلا أنه ذكرفيه ينامون بدل ينتظرون العشاء حتى تخفق رؤوسهم

د حضرت علي ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : د لوی اودس ماتي د ځای الغي سترګي دي خوك چي ببده سي هغه ته پکار دي چي اودس وکړي (ابوداؤد) امام محي السنة وايي دا حکم د هغه چا لپاره دی چي ناست نه وي بلکه په پروتي ببده وي ، د حضرت انس ﷺ څخه نقل دي چي د رسول الله ﷺ صحابه کرامو ماخستن لمانځه ته په ناسته انتظار کاوه تر دې چي د خوب له کبله به د هغو سرونو کښته ټالی وهلي هغوئ په دغه حالت کي پورته کېدل لمونځ به يې کاوه او اودس به يې نه کاوه .ابوداؤد او ترمذي

[۱] د نوموړي نوم معاويه او کنيت يې ابوعبدالرحمن دی او د پلار نوم يې ابوسفيان دی ، نوموړي د وحي کاتب (ليکوال) دی ، په کال (۶۰هـ) کي وفات سوی دی .

**تشریح** : د امام محي السنة رحمة الله علیه د قول مطلب دادی چي ددې حدیث حکم د عام بیده کېدونکو په اړه نه دی بلکه د داسي سړي په اړه دی چي په پروته سره بیده سي ځکه چي په پروته سره په بېده کېدو سره ټول اندامونه سست سي او پر خپل ځان پوره اختیار پاته نسي ځکه نو کیدای سي چي په دې حالت کي هوا خارج سي او هغه ته د هغه احساس هم نه وي.

مګر کوم سړی چي پروت نه وي بلکه په ناسته داسي بیده سو چي د هغه شرمګاه پر مځکه وي او بیا چي هغه ویښ سي نو مقعد (شرمګاه) هم هغسي پر مځکه وي نو اودس نه ماتیږي که څه هم هغه هر څومره بیده سي، د انس ﷺ د پورتني حدیث څخه هم دا ثابتیږي چي په ناسته خوب سره اودس نه ماتیږي، د ناستي ډولونه په فقه کي مذکور دي چي د قیاس او نورو حدیثونو څخه ثابت کړل سوي دي.

﴿۲۹۴﴾ : وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قال قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ الْوُضُوْءَ عَلٰى مَنْ نَامَ مُضْطَجِعًا فَإِنَّهُ إِذَا اضْطَجَعَ اسْتَرْخَتْ مَفَاصِلُهُ. رواه الترمذي وأبو داود.

د حضرت ابن عباس ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: اودس پر هغه چا لازم دی چي په پروتي بېده سي ځکه چي څه وخت یو څوک بېده سي نو دهغه بندونه سست سي.

**تشریح** : حضرت میرک شاه رحمة الله علیه فرمایلي دي چي دا حدیث منکر دی ځکه چي ددې په راویانو کي یو راوي یزید دالاني هم دی چي کثیر الخطاء او فاحش الوهم او د ثقافت مخالف دی.

﴿۲۹۵﴾: وَعَنْ بُسْرَةَ قَالَتْ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا مَسَّ أَحَدُكُمْ ذَكَرَهُ فَلْيَتَوَضَّأْ. رواه مالك وأحمد وأبو داود والترمذي والنسائي وابن ماجه والدارمي.

د حضرت بسرة (رض) څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: په تاسو کي چي څوک خپل خاص اندام ته لاس ور وړي نو هغه ته پکار ده چي اودس وکړي.

**تشریح** : د بولو ځای ته په لاس ور وړلو سره د اوداسه په ماتېدو کي اختلاف دی بلکه په دې مسئله کي په خپله د صحابه کرامو په منځ کي هم اختلاف وو، د امام شافعي رحمة الله علیه مذهب دادی که یو سړی خپل ذکر (د بولو ځای) په لوڅ لاس سره مس کړي نو د هغه اودس ماتیږي د هغوئ دلیل همدغه مذکوره حدیث دی.

امام اعظم ابو حنیفة رحمة الله علیه فرمایي د ذکر په مس کولو سره اودس نه ماتیږي د هغوئ دلیل

راتلونکی حدیث دی چي د قیس بن علي روایت سره چيځ هغه د خپل پلار څخه روایت کړی دی په مسند ابي حنیفه کي مذکور دی ، ددې څخه پرته د امام اعظم رحمة الله علیه په دلیل کي نور ډیر حدیثونه راوړل سوي دي، په دې اړه د زیاتي تشریح لپاره شرح ملاعلي قاري او د مشکوة ترجمه د شیخ عبدالحق دهلوي رحمه الله کتلای سئ .

ابن همام رحمه الله فرمایي: حقیقت خو دادی چي دا دواړه حدیثونه یعني د حضرت بسری دا حدیث چي د شوافع دلیل دی او د طلق بن علي حدیث چي مخکي راغي او د حنفیه دلیل دی د درجه حسن څخه وتلي نه دي مګر د طلق ابن علي حدیث ته به د بسری پر حدیث ترجیح وي ځکه چي بي بي بسره ښځه ده او طلق بن علي نارینه دی او څرګنده ده چي د ښځي په مقابله کي د نارینه حدیث قوي وي ځکه چي هغوئ د ښځو په نسبت علم او حدیث ښه په یاد لري او د هغوئ قوت حافظه هم تر ښځو زیاته ټینګه وي ، همدا وجه ده چي د دوو ښځو شاهدي د یوه سړي د شاهدی سره برابر وي .

﴿۲۹۶﴾: وَعَنْ طَلَقِ بْنِ عَلِيٍّ قَالَ سُئِلَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ مَسِّ الرَّجُلِ ذَكَرَهُ بَعْدَمَا يَتَوَضَّأُ . قَالَ وَهَلْ هُوَ إِلاَّ بَضْعَةٌ مِّنْهُ . رواه أبو داود والترمذي والنسائي وروى ابن ماجه نحوه . وَ قَالَ الشَّيْخُ الْإِمَام مُحْيِي السُّنَّةِ رَحِمَهُ اللهُ هٰذَا مَنْسُوْخٌ لِأَنَّ أَبَا هُرَيْرَةَ أَسْلَمَ بَعْدَ قُدُوْمِ طَلْقٍ . وَقَدْ رَوىٰ أَبُوْ هُرَيْرَةَ عَنْ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِذَا أَفْضٰى أَحَدُكُمْ بِيَدِهِ إِلٰى ذَكَرِهِ لَيْسَ بَيْنَهُ وَبَيْنَهَا شَيْءٌ فَلْيَتَوَضَّأْ . رواه الشافعي والدراقطني . وَرَوَاهُ النَّسَائِيُّ عَنْ بُسْرَةَ إِلاَّ أَنَّهُ لَمْ يَذْكُرْ لَيْسَ بَيْنَهُ وَبَيْنَهَا شَيْءٌ .

د حضرت طلق[۱] بن علي رضی الله عنه څخه روایت دی چي د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وسول که یو څوک د اودس کولو څخه وروسته خپل خاص اندام ته لاس ور وړي (نو د دې څه حکم دی) رسول الله ﷺ وفرمایل : هغه خو هم د سړي د غوښو یوه ټوټه ده .(ابوداؤد ، ترمذي، نسائي) ابن ماجه هم دا ډول روایت کړی دی ، امام محي السنة وایي چي دا حکم منسوخ دی ځکه چي ابوهریرة د طلق د راتلو څخه وروسته اسلام راوړی دی او د ابوهریرة څخه روایت نقل دی (او هر کله چي په تاسو کي د یو چا لاس خپل خاص اندام ته ورسیږي او د لاس او دهغه په منځ کي یو شی نه وي نو اودس کول پکار دي )، شافعي، دارقطني او نسائي د بي بي بسرة څخه روایت کړی دی خو په هغه کي لیس بینه و بینها الفاظ نسته .

[۱] د نوموړي نوم طلق بن علي او کنیت یې ابوعلي دی د هغه حدیثونه د هغه د زوی قیس څخه روایت دي.

**تشریح** : د رسول کریم ﷺ د جواب مطلب دادی چي ځرنګه د بدن د غوښو نوري ټوټې مثلا لاس، پښې، غوږ، پزه او داسي نور دي همداسي ذکر (د بولو ځای) هم د غوښو یوه ټوټه ده او ځرنګه چي په هغه نورو ټوټو او اندامو مس کولو سره اودس نه ماتیږي نو بیا د ذکر په مس کولو سره اودس ولي ماتیږي، ددې ځخه معلومه سوه چي د ذکر په مس کولو (یعني د بولو ځای ته لاس وروړلو) سره اودس نه ماتیږي.

د امام محي السنة رحمة الله علیه قول په اصل کي د شوافع حضراتو ترجماني ده، د هغوئ مطلب دادی چي ابوهریره ﷺ د طلق بن علي ﷺ ځخه وروسته اسلام راوړی دی ځکه نو طلق د هجرت ځخه وروسته سمدستي هر کله چي مسجد نبوي جوړیدی د رسول کریم ﷺ په خدمت کي حاضر سوی دی او ابوهریره ﷺ د هجرت پر اووم کال د غزوه خیبر پر موقع اسلام راوړی دی ځکه د طلق بن علي ﷺ د رسول الله ﷺ ځخه دا اوریدل تر مخه سول او د ابوهریره ﷺ ځخه اوریدل به وروسته وي نو د طلق حدیث منسوخ او د ابوهریره حدیث ناسخ سو، حنفیه جواب ورکوي چي د طلق ﷺ د اسلام راوړلو ځخه وروسته د ابوهریره ﷺ اسلام راوړلو ځخه دا کوم ځای ثابت سوه چي ابوهریره ﷺ دا حدیث وروسته اوریدلی دی، د شوافع دا دعوا خو هلته صحیح کیدای سي چي دا هم ثابته سي چي ابوهریره ﷺ د اسلام راوړلو ځخه مخکي طلق ﷺ وفات سوی وو، یا دا چي خپل وطن ته تللی وي بیا د هغه ځخه وروسته د رسول الله ﷺ په خدمت کي هیڅکله حاضر سوی نه وي ځکه که چیري طلق ﷺ د ابوهریره ﷺ د اسلام راوړلو ځخه مخکي وفات سوی وي یا خپل وطن ته ستون سوی وي نو بیا د ابوهریره ﷺ د اسلام راوړلو ځخه وروسته یې هیڅ نه سو اوریدلای نو اوس خو دا ممکن ده چي طلق ﷺ دا حدیث د ابوهریره ﷺ د اسلام راوړلو ځخه وروسته اوریدلی وي نو د شوافع دا استدلال صحیح نه دی.

حضرت مظهر رحمة الله علیه یو ښه او فیصله کونکې خبره کړې ده هغه فرمایي : په دې دواړو حدیثو کي ټکر سوی دی، د ابوهریره ﷺ د روایت سوي حدیث ځخه دا ثابتیږي چي د ذکر مس کول اودس ماتوي او د طلق ﷺ د حدیث ځخه ذکر مس کول اودس نه ماتوي، د دې د ټکر په صورت کي موږ ته پکار ده چي موږ د نورو صحابه کرامو اقولو ته رجوع وکړو، ډیر صحابه کرام مثلا حضرت علي، حضرت ابن مسعود، حضرت ابودرداء، حذیفة، او د عمار (رضي الله عنهم) ځخه دا اقوال ثابت دي چي په ذکر مس کولو سره اودس نه ماتیږي ځکه نو دا خبره ثابتیږي چي د حنفیه مذهب صحیح دی چي د ذکر په مس کولو سره اودس نه ماتیږي.

﴿۲۹۷﴾ : وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُقَبِّلُ بَعْضَ أَزْوَاجِهِ ثُمَّ يُصَلِّيْ وَلَا يَتَوَضَّأُ . رواه أبو داود والترمذي والنسائي وابن ماجه . وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ لَا يَصِحُّ عِنْدَ أَصْحَابِنَا بِحَالِ إِسْنَادُ عُرْوَةَ عَنْ عَائِشَةَ وَأَيْضًا إِسْنَادُ إِبْرَاهِيْمَ التَّيْمِيْ عَنْهَا . وقال أبو داود هذا مرسل وإبراهيم التيمي لم يسمع من عائشة .

د حضرت عائشې (رض) څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ به د خپلو ځینو بیبیانو څخه مچه اخیستل او پرته د اودس کولو سره به یې لمونځ کاوه (ابوداؤد ، ترمذي، نسائي، ابن ماجه) تر مذي ویلي دي چې زموږ د اصحابو په نزد د عروه یا د ابراهیم تیمي د بي بي عائشې څخه روایت کول په هیڅ حال کې صحیح نه دي ، ابوداؤد ویلي دي چې دا مرسل دی او ابراهیم تیمي د بي بي عائشې څخه نه دي اوریدلي .

**تشریح** : په دې مسئله کې د علماؤ اختلاف دی ، د امام شافعي او امام احمد په نزد د پردۍ ښځې په مس کولو سره اودس ماتیږي، امام مالک رح فرمايي چې پردۍ ښځه که په شهوت سره مس کړي نو اودس ماتیږي کنه نو نه ماتیږي، زموږ د امام اعظم ابو حنیفه رحمة الله علیه په نزد اودس نه ماتیږي ، د هغوئ دلیل دا حدیث دی ، د بي بي عائشې رضي الله عنها یو دوهم حدیث هم چې په بخاري او مسلم کې مذکور دی د امام اعظم رحمة الله علیه دلیل دی، په هغه کې بي بي عائشه فرمايي چې رسول الله ﷺ به د شپې د تهجد لپاره راکښېنستی نو زه به بیده وم او زما دواړې پښې به د رسول الله ﷺ د سجدې پر ځای پرتې وې، رسول الله ﷺ به د سجدې په وخت کې زما پښې ښورولې او ما به خپل پښې راټولې کړې ، د دې حدیث څخه معلومه سوه چې ښځې په مس کولو سره اودس نه ماتیږي، د امام ترمذي دا ویل چې دا اوریدل د بي بي عائشې څخه ثابت نه دي ، ددې څخه معلومیږي چې د ترمذي په دې حدیث نقل کولو کې د مشکوٰة د مصنف څخه هیره سوې ده ځکه د ترمذي ددې قول دا مطلب نسي اخیستل کیدای کوم چې د مشکوٰة مصنف اخیستی دی.

د ابوداؤد دا ویل چې دا حدیث یعني د مرسل یو ډول منقطع دی په اصل کې د حنفیه هغه دلیل کمزوری کوي چې هر کله دا حدیث مرسل دی نو د حنفیه دا خپل دلیل کې وړاندې کول صحیح نه دي ، موږ ددې جواب ورکوو چې زموږ په نزد حدیث مرسل هم حجت وي او نه یوازې زموږ په نزد بلکه د جمهورو علماؤ په نزد هم مرسل حدیث حجت جوړیږي نو دې حدیث ته په مرسل ویلو سره دا ناقابل استدلال نسي ګرځیدای .

﴿۲۹۸﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ أَكَلَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَتِفًا ثُمَّ مسحه يَدَهُ بمسحه كَانَ تَحْتَهُ ثُمَّ قَامَ فَصَلَّى . رواه أبو داود وابن ماجه

د حضرت ابن عباس ﷛ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ د پسه د ولي غوښه وخوړل بیا یې خپل لاس مبارك په ټاټ سره وچ کړ او بیا د لمانځه لپاره ودریدی او لمونځ یې وکړ.

**تشریح**: دغه حدیث هم د حنفیه د هغه مذهب توثیق کړی دی چي په اور د پخ سوو شیانو په خوړلو سره اودس نه ماتیږي او ددې حدیث څخه دا هم معلومه سوه چي د خوراک کولو څخه وروسته که پرخوله او لاسو باندي غوړوالی وغیره نه وي نو دهغو پریولل ضروري نه دي.

﴿۲۹۹﴾ : وَعَنْ أُمِّ سَلْمَةَ أَنَّهَا قَالَتْ قَرَّبْتُ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَنْبًا مَّشْوِيًّا فَأَكَلَ مِنْهُ ثُمَّ قَامَ إِلَى الصَّلَاةِ وَلَمْ يَتَوَضَّأْ . رواه أحمد .

د حضرت ام سلمة (رض) څخه روایت دی چي زه د دې خبري شاهدي ورکوم چي ما به د رسول الله ﷺ لپاره یو پوښتی بریان سوې ورکړه نو وه یې خوړل او بیا به د لمانځه لپاره و دریدی او اودس به یې نه کاوه . احمد .

## الفصل الثالث

﴿۳۰۰﴾: عَنْ أَبِيْ رَافِعٍ قَالَ أَشْهَدُ لَكُنْتُ أَشْوِي لِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَطْنَ الشَّاةِ ثُمَّ صَلَّى وَلَمْ يَتَوَضَّأْ (رواه مسلم)

د حضرت ابو رافع ﷛ څخه روایت دی چي زه د دې خبري شاهدي ورکوم چي ما به د رسول الله ﷺ لپاره د پسه د نس شیان بریان کول (رسول الله ﷺ به هغه خوړل) او بیا به د لمانځه لپاره و دریدی او اودس به یې نه کاوه. مسلم

﴿۳۰۱﴾ : وَعَنْهُ قَالَ أُهْدِيْتُ لَهُ شَاةٌ فَجَعَلَهَا فِي الْقِدْرِ فَدَخَلَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ مَا هٰذَا يَا أَبَا رَافِعٍ فَقَالَ شَاةٌ أُهْدِيْتُ لَنَا يَا رَسُوْلَ اللهِ فَطَبَخْتُهَا فِي الْقِدْرِ قَالَ نَاوِلْنِي الذِّرَاعَ يَا أَبَا رَافِعٍ فَنَاوَلْتُهُ الذِّرَاعَ ثُمَّ قَالَ نَاوِلْنِي الذِّرَاعَ الْآخَرَ فَنَاوَلْتُهُ الذِّرَاعَ الْآخَرَ ثُمَّ قَالَ نَاوِلْنِي الذِّرَاعَ الْآخَرَ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللهِ إِنَّمَا لِلشَّاةِ

د حضرت ابورافع ﷛ څخه روایت دی چي ما ته د تحفې لپاره د پسه غوښه رالیږل سوې وه ، د پخولو لپاره ما هغه په دېګ کي واچول ، رسول الله ﷺ تشریف راوړ او وه یې فرمایل دا څه شي دي ؟ ابورافع وایي ما عرض وکړ اې د الله رسوله ! د پسه غوښه ده چي موږ ته د تحفې لپاره راوړل سوې ده ما په دېګ کي پخه کړل ، رسول الله ﷺ وفرمایل اې ابورافع! یو لاس (د پسه ورون) ما ته

ذِرَاعَانِ فَقَالَ لَهُ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمَا إِنَّكَ لَوْ سَكَتَّ لَنَاوَلْتَنِيْ ذِرَاعًا فَذِرَاعًا مَا سَكَتَّ ثُمَّ دَعَا بِمَاءٍ فَتَمَضْمَضَ فَاهُ وَغَسَلَ أَطْرَافَ أَصَابِعِهِ ثُمَّ قَامَ فَصَلَّى ثُمَّ عَادَ إِلَيْهِمْ فَوَجَدَ عِنْدَهُمْ لَحْمًا بَارِدًا فَأَكَلَ ثُمَّ دَخَلَ الْمَسْجِدَ فَصَلَّى وَلَمْ يَمَسَّ مَاءً . رواه أحمد . ورواه الدارمي عَنْ أَبِيْ عُبَيد إِلاَّ أَنَّهُ لَمْ يَذْكُرْ ثُمَّ دَعَا بِمَاءٍ إِلَى أخِرِهِ .

هم راكړه نو ما هغه رسول الله ﷺ ته وركړ بيا رسول الله ﷺ وفرمايل يو بل ورون هم راكړه نو ما دوهم ورون هم وركړ بيا رسول الله ﷺ وفرمايل يو بل ورون هم راكړه ما عرض وكړ اې دالله رسوله ! د پسه خو دوه ورنونه وي نو رسول الله ﷺ وفرمايل اې ابورافع ! كه ته پټه خوله پاته سوى واى نو ما ته به دي د ورون پسې ورون راكولاى تر څو چي پټه خوله واى ، بيا رسول الله ﷺ اوبه و غوښتلې او د گوتو سرونه يې پريولل بيا ودرېدى او لمونځ يې وكړ . بيا رسول الله ﷺ ابورافع ته راغلى او د هغه سره يې پخه غوښه وليدل نو رسول الله ﷺ د هغه ځخه هم څه وخوړل بيا مسجد ته ولاړى او لمونځ يې وكړ او اوبو ته يې لاس هم نه ور وړ .(احمد ، دارمي د ابوعبيد ځخه روايت كړى دى خو ثم دعاء بماء تر پايه پوري يې نه دى ذكر كړى).

**تشريح** : د رسول الله ﷺ د ورانه غوښه ډيره خوښه وه او هغه وجه دا وه چي د ورانه غوښه ډيره قوتناكه وي ځكه نو رسول الله ﷺ هغه خوښول چي په هغه سره بدني قوت او طاقت زيات حاصل وي چي د هغه په وجه د الله تعالى عبادت په ښه ډول وكړل سي .

دغه ارشاد مبارک چي كه ته پټه خوله پاته سوى واى او ما ته دي ورون په ورون راكولاى تر څو پوري چي ته پټه خوله واى ، ددې مطلب دادى كه چيري ته پټه خوله واى او ځرنګه چي ما غوښتلاى او تا هغسي په پورته كولو سره راكولاى نو تا به ليدلى واى چي الله تعالى به په خپل قدرت سره د معجزې په توګه بې شميره ورنونه مهيا كول، مګر ستا نظر يوازي پر ظاهر باندي وو او تا دا فكر وكړ چي د پسه خو دوه ورنونه وي اوس نو د كوم ځاى ځخه يې راوړم، خپل لاس دي را وايستى او هر كله چي تا خپل لاسونه را وايستل او جواب دي راكړ نو آخوا د غيبي مرسته ضرورت محسوس نه كړل سو د هغه نتيجه دا سول چي واقعي ټول ورنونه ختم سول ، دلته يو معمولي انديښنه واقع كيداى سي چي هر كله د الله تعالى د لوري د رسول الله ﷺ د خواهش د پوره كېدو په خاطر په غيبي توګه سره د پسه ورنونه برابرېدل نو صرف د ابو رافع په جواب وركولو سره هغه لړۍ ولي بنده سوه او بيا ورنونه ولي ظاهر نه كړل سول، جواب دادى چي د الله تعالى د لوري ټول كرامات او فضل او عنايت صرف د خالص نيت او توجه الى الله په

وجه وي نو كيداى سي چي د رسول الله ﷺ توجه الى او د الله تعالى د لوري د رسول الله ﷺ په زړه كي د ابورافع جواب سره فرق راغلى وي ځكه رسول الله ﷺ د هغه د جواب طرف ته متوجه سوى وي او د آخوا څخه هم لاس ونيول سو او ورنونه راتلل ختم سول.

﴿۳۰۲﴾ : وَعَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ كُنْتُ أَنَا وَأُبَيُّ وَأَبُوْ طَلْحَةَ جُلُوْسًا فَأَكَلْنَا لَحْمًا وَخُبْزًا ثُمَّ دَعَوْتُ بِوَضُوْءٍ فَقَالاَ لِمَ تَتَوَضَّأُ فَقُلْتُ لِهٰذَا الطَّعَامِ الَّذِيْ أَكَلْنَا فَقَالاَ أَتَتَوَضَّأُ مِنَ الطَّيِّبَاتِ لَمْ يَتَوَضَّأْ مِنْهُ مَنْ هُوَ خَيْرٌ مِّنْكَ . رواه أحمد .

د حضرت انس بن مالك ﷺ څخه روايت دى چي زه، ابى بن كعب او ابوطلحه ټول ناست وو موږ غوښه او ډوډۍ وخوړل بيا مو د اوداسه لپاره اوبه را وغوښتلې ، ابى او ابوطلحه وويل اودس د څه لپاره كوئ ؟ ما وويل د دې خوراك په وجه چي اوس موږ كړى دى ، هغوئ وويل ايا د پاكو شيانو خوړلو په وجه اودس كوئ ؟ د دې شيانو په خوړولو سره هغه چا اودس نه دى كړى چي ستاسو څخه غوره وو (يعني نبي كريم ﷺ) . احمد.

﴿۳۰۳﴾ : وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ كَانَ يَقُوْلُ قُبْلَةُ الرَّجُلِ امْرَأَتَهُ وَجَسُّهَا بِيَدِهِ مِنَ الْمُلاَمَسَةِ . وَمَنْ قَبَّلَ امْرَأَتَهُ أَوْ جَسَّهَا بِيَدِهِ فَعَلَيْهِ الْوُضُوْءُ . رواه مالك والشافعي .

حضرت ابن عمر ﷺ به ويل د سړي د خپلي ښځي څخه مچه اخيستل او دهغې سره لاس منبلول دا هم ملامسه ده (چي د هغې ذكر په دې آيت : أَوْ لَمَسْتُم ..... كي راغلى دى او كوم سړى چي د خپلي ښځي څخه مچه واخيستل او هغه يې په خپل لاس سره مس كړل نو پر هغه اودس لازم دى . مالك او شافعي.

**تشريح** : په قرآن كريم كي چي كوم ځاى ددغه شيانو ذكر فرمايل سوى دى كوم چي اودس ماتونكي دي په هغو كي يو دا هم اودس ماتونكى ښودل سوى دى (او لامستم النساء) يعني او يا تاسو د ښځو سره ملامسه وكړئ .

د ملامسې حقيقي مفهوم څه دى او ددې محمل څه دى ؟ په دې كي اختلاف دى ، امام شافعي رحمة الله عليه فرمايي چي د ملامسې معنا داده چي ښځه په لاس سره مس كول نو لكه چي داسي د امام شافعي په نزد ښځي ته په لاس ور وړلو څخه وروسته كه د يو سړي اودس وي نو هغه ماتيږي كه هغه لمونځ كول غواړي نو د هغه لپاره بيا اودس كول ضروري دي .

د ابن عمر ﷺ د پورتني ذكر سوي ارشاد مفهوم هم دادى كوم چي د امام شافعي د مذهب تصديق كوي ، ابن عمر ﷺ دا فرمايي چي ښځي ته يوازي لاس ور وړل يا د ښځي څخه مچه اخيستل په دغه ملامسې كي داخل دي چي هغه ته په قرآن كي ناقض وضوء (د اوداسه

ماتونکی) ویل سوي دي.
زموږ امام اعظم رحمة الله علیه د ملامسې معنا جماع او کوروالي ګرځوي، یعني په قرآن کریم کي چي د ښځي د ملامسې ذکر فرمایل سوی دی او هغه ته اودس ماتونکی ویل سوي دي نو د هغه مراد جماع او کوروالي ده، امام اعظم ابو حنیفه رحمة الله علیه د خپل دغه مذهب په تصدیق کي د دلائلو یوه ذخیره جمع کړې ده چي د فقهي په کتابونو کي په ډېر وضاحت سره مذکور دي.

| | |
|---|---|
| ﴿۳۰۴﴾ : وَعَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ كَانَ يَقُوْلُ مِنْ قُبْلَةِ الرَّجُلِ امْرَأَتَهُ الْوُضُوْءُ . رواه مالك . | حضرت ابن مسعود ﷺ څخه به ویل چي د سړي د خپلي ښځي څخه مچه اخیستلو سره اودس |

لازمیږي. مالك.

| | |
|---|---|
| ﴿۳۰۵﴾ : وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ إِنَّ الْقُبْلَةَ مِنَ اللَّمْسِ فَتَوَضَّؤُوْا مِنْهَا . | د حضرت ابن عمر ﷺ څخه روایت دی چي عمر بن الخطاب ﷺ فرمایلي دي چي: مچه اخیستل، خپلي ښځي ته لاس وروړلو کي داخله ده نو د مچي اخیستو وروسته اودس کوئ. |

**تشریح** : د ابن مسعود ﷺ او ابن عمر ﷺ د دې قول څخه معلومیږي چي د ښځي په مس کولو سره اودس ماتیږي څرنګه چي د امام شافعي رحمة الله علیه مذهب دی.
زموږ د امام اعظم رحمة الله علیه په نزد د ښځي په مس کولو سره اودس نه ماتیږي ځکه هغه ددغه روایتونو په اړه دا فرمایي چي اول خو دا ټول روایتونه پر صحابه کرامو باندي موقوف دي یعني دا دصحابه کرامو اقوال دي ځکه ددې حکم حدیث مرفوع د رسول الله ﷺ د ارشاد په ډول نسي کیدلای، دوهم د هغوئ په نزد دا روایتونه د صحت درجې ته هم نه دي رسیدلي.
او بیا د رسول الله ﷺ دا حدیث هم موجود دی چي مخکي ذکر سو او بي بي عائشې رضي الله عنها روایت کړی دی، ددې څخه په صراحت سره دا مفهوم اخیستل کیږي چي د ښځي په مس کولو سره اودس نه ماتیږي، ددې څخه پرته په مسند ابي حنیفه کي یو دوهم حدیث مذکور دی چي ابن عباس ﷺ روایت کړی دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: (لیس في القبلة وضوء) یعني په مچه اخیستلو سره اودس نه ماتیږي، که څه هم دغه حدیث هم ددې خبري تصدیق کوي چي د ښځي په مس کولو یا مچه اخیستلو سره اودس نه ماتیږي نو کیدای سي چي دا حدیث د هغه

تولو حديثونو لپاره ناسخ وي چي په هغه كي د ښځي د مس كولو يا د هغې څخه د مچه اخيستلو ته اودس ماتونكي ويل سوي دي . والله اعلم .

﴿۳۰۶﴾ : وَعَنْ عُمَرَ بْنِ عَبْدِ الْعَزِيْزِ عَنْ تَمِيْمٍ الدَّارِيِّ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلْوُضُوْءُ مِنْ كُلِّ دَمٍ سَائِلٍ . رَوَاهُمَا الدَّارَقُطْنِيُّ وَقَالَ عُمَرُ بْنُ عَبْدِ الْعَزِيْزِ لَمْ يَسْمَعْ مِنْ تَمِيْمٍ الدَّارِيِّ وَلاَ رَآهُ وَيَزِيْدُ بْنُ خَالِدٍ وَّيَزِيْدُ بْنُ مُحَمَّدٍ مَّجْهُوْلاَنِ .

حضرت عمر بن عبدالعزيز[1] د تميم داري[2] څخه روايت كوي چي رسول الله ﷺ وفرمايل : په هره بهېدونكې وينه سره اودس ماتيږي ، دا دار قطني روايت كړى دى او ويلي يې دي چي عمر بن عبدالعزيز د تميم داري څخه نه دى اوريدلى او نه يې هغه ليدلى دى او يزيد بن خالد ويلي دي چي زيد بن محمد مجهول راويان دي .

**تشريح** : د امام اعظم ابوحنيفة رحمة الله عليه دا مذهب دى چي په هره بهېدونكي ويني سره اودس ماتيږي يعني كه د يو بدن د يو برخي څخه وينه ووتل او په تلو سره د هغه برخي څخه وبهېدل د كوم چي پريولل په اوداسه او غسل كي ضروري دي نو په هغه سره اودس ماتيږي ، دا حديث د امام صاحب د مذهب دليل دى ، د امام صاحب څخه پرته د نورو امامانو مذهب دادى كه چيري وينه د لويو بولو يو وړو بولو د ځاى څخه ووځي نو اودس ماتيږي ددې څخه پرته كه د بل ځاى څخه ووځي نو اودس نه ماتيږي .

حضرت دارقطني په دغه حديث كي كلام فرمايلى دى د هغه وينا داده چي عمر ابن عبدالعزيز د تميم داري څخه نه دى اوريدلى او نه يې هغه ليدلى دى ځكه نو دا حديث مرسل دى ، ددغه حديث دوه راويان يزيد بن خالد او يزيد بن محمد مجهول دي ، لكه چي د هغه مقصد ددې كلام څخه دادى چي په كوم حديث كي دا كلام وي هغه د امام صاحب د خپل مذهب دليل جوړول يو وزني خبره نه ده .

موږ ددې جواب دا وركوو چي حديث مرسل نه يوازي دا چي زموږ په نزد بلكه د جمهورو علماؤ په نزد هم دليل او حجت جوړيداى سي ، همداسي د يزيد ابن خالد او يزيد بن محمد د

---

[1] امير المؤمنين عمر ابن عبدالعزيز اموي يو مشهور خليفه دى ، نوموړى د رجب په مياشت كي په (۱۰۱هـ) كال كي وفات سوى دى .

[2] د نوموړي نوم تميم داري بن اوس الداري دى ، د هجرت په نهم كال په اسلام مشرف سو . د حضرت عثمان ﷺ د شهادت څخه وروسته په شام كي وفات سو .

مجهول کېدو هم اختلاف دی ځينو حضراتو خو هغوئ مجهول ګرځولي دي لکه څرنګه چي دارقطني فرمايي مګر ځينو حضراتو هغوئ ته مجهول نه دي ويلي ، بيا ددې څخه قطع نظر د امام صاحب اصلي دليل خو دا حديث دی چي رسول الله ﷺ ارشاد فرمايلی دی دی :

(من قاء او رعف او امذی في صلوته فلينصرف وليتوضا وليبن علی صلوته مالم يتکلم) .

ژباړه : که يو سړی په خپل لمانځه کي قی وکړي يا پر پزه يې وينه را ايله سوه يا مذي ځيني ووتل نو هغه ته پکار ده چي د لمانځه څخه ووځي او بيا اودس وکړي او تر څو پوري چي خبري ونه کړي پر هغه لمانځه دي بنا وکړي .

او په ابوداؤد کي هم ددغه مضمون حديث منقول دی ، نو ددې څخه معلومه سوه چي د لويو بولو او وړو بولو د ځايو څخه پرته د بدن د يو بلي برخي څخه هم کله چي وينه را ووځي نو اودس ماتيږي .

# بَابُ اٰدَابِ الْخَلَاءِ

## (د بيت الخلاء آداب)

ادب هغه شي ته وايي چي د هغه ذکر کول ښه او غوره دي ، که څه هم هغه شيان د عمل سره تعلق لري او که د قول سره، په دې باب کي هغه شيان ذکر کيږي د کوم تعلق چي د استنجاء د ادبونو سره دی يعني د هغه شيانو ذکر سوی دی چي د استنجاء په اړه ممنوع او مکروه دي او د هغه شيانو ذکر هم سوی دی چي په استنجاء کي مطلوب او مستحب دي .

﴿۳۰۷﴾ : وَعَنْ اَبِيْ اَيُّوْبَ الْاَنْصَارِي قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا اَتَيْتُمْ الْغَائِطَ فَلَا تَسْتَقْبِلُوا الْقِبْلَةَ وَلَا تَسْتَدْبِرُوهَا وَلٰكِنْ شَرِّقُوا اَوْ غَرِّبُوا (متفق عليه) قَالَ الشَّيْخُ الْاِمَامُ مُحْيِ السُّنَّةِ هٰذَا الْحَدِيْثُ فِي الصَّحْرَاءِ وَاَمَّا فِي الْبُنْيَانِ فَلَا بَاْسَ لِمَا رُوِيَ عَنْ عَبْدِاللّٰهِ بْنِ عُمَرَ قَالَ ارْتَقَيْتُ فَوْقَ بَيْتِ حَفْصَةَ لِبَعْضِ

د حضرت ابوايوب[۱] الانصاري ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : هر کله چي تاسو ډکو بولو ته ځئ نو مه د قبلې په لور مخ کوئ او مه شا کوئ بلکه لوېديځ يا ختيځ لوري ته مخ يا شا کوئ . (بخاري او مسلم) امام محي السنة فرمايي دا حکم د ځنګله دی او په ابادي کي ددې څه پروا نسته ځکه چي حضرت عبدالله بن عمر ﷺ څخه روايت دی چي زه د يو ضرورت له کبله د بي بي حفصې د سرای بام

[۱] د نوموړي نوم خالد ابن زيد دی او کنيت يې ابو ايوب دی، په کال (۵۰هـ) يا (۵۱هـ) کي وفات سوی دی.

حَاجَتِيْ فَرَاَيْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْضِيْ حَاجَتَهُ مُسْتَدْبِرَ الْقِبْلَةِ مُسْتَقْبِلَ الشَّامِ. متفق عليه.

ته ختلى وم ما رسول الله ﷺ پر قضاء حاجت وليدى چي قبلې ته يې شا كړې وه او د شام په لوري يې مخ كړى وو. بخاري او مسلم.

**تشريح**: په حديث كي چي د طرف تاكنه سوې ده هغه د اهل مدينې په اعتبار دى يا د هغه خلكو لپاره دى چي په دغه طرف كي اوسيږي ځكه چي په مدينه كي قبله د جنوب خوا ته راځي نو هغوئ به د مشرق او مغرب طرف ته مخ او شا كوي، زموږ هيوادونو او يا هغه هيوادونه چي په دې طرف كي واقع دي هغوئ ته د مشرق او مغرب طرف ته كيږي.

په هر حال په دې مسئله كي د علماؤ اختلاف دى زموږ امام صاحب خو فرمايي چي د لويو او وړو بولو په وخت كي قبلې ته مخ كول نه دي پكار كه څه هم ځنګل وي يا كور وي، او كه داسي وكړي نو د حرامو مرتكب به وي.

د امام شافعي رحمة الله عليه په نزد قبلې ته مخ او شا كول په ځنګل كي حرام دي مګر په آبادۍ او كور كي حرام نه دي.

د امام اعظم رحمة الله عليه دليل دا لومړنى حديث دى چي د ابو ايوب ﷺ څخه منقول دى، په دې حديث كي قبلې ته د مخ او شا نه كولو حكم مطلقا دى په دې كي د ځنګل، آباد او كور هيڅ قيد نسته نو كوم حكم چي د ځنګل وي هغه به د آبادۍ هم وي، دا حديث نه يوازي دا چي د ابو ايوب ﷺ څخه منقول دي بلكه د صحابه كرامو يو لوى شمير د دې روايت كوي.

بيا د امام صاحب يو لوى دليل دا دى چي رسول الله ﷺ قبلې ته د مخ او شا نه كولو حكم د قبلې د تعظيم او احترام په خاطر كړى دى ځكه نو څرنګه چي په ځنګله كي د قبلې د تعظيم خيال ساتل پكار دي همداسي په كور كي هم د قبلې د احترام لحاظ كول به ضروري وي لكه څرنګه چي د قبلې په لور توكل او پښې غزول په هر ځاى كي ممنوع دي.

امام محي السنة رحمة الله عليه چي د عبدالله ابن عمر ﷺ كوم حديث روايت كړى دى هغه د امام شافعي رحمة الله عليه دليل دى د حديث څخه معلومه سوه چي قبلې ته شا كول په كور كي جائز ده، موږ د دې په جواب كي دا وايو چي اول خو دا كيداى سي چي عبدالله ابن عمر ﷺ د رسول الله ﷺ په كور كي په بيت الخلاء كي د ننه قبلې ته شا او شام ته مخ كړى د دغه حكم د نفاذ څخه مخكي ليدلى وي نو دا حكم د لومړي لپاره ناسخ دى، دوهم دا چي رسول الله ﷺ قبلې ته مخ كړى نه وي ناست بلكه رسول الله ﷺ په داسي انداز سره تاؤ سوى ناست وي چي په حقيقت

کي په قبلې ته يې شا نه وه او ظاهره ده چې د موقع د نزاکت په وجه عبدالله بن عمر ﷺ هلته په درېدو سره په غوره سره رسول الله ﷺ نه وي ليدلی بلکه کله چې هغه بام ته ختلی وي نو د هغه نظر ناڅاپه بيت الخلاء ته سوی وي ځکه نو په دې سرسري توګه سره عبدالله بن عمر ﷺ د رسول الله ﷺ د ناستي صحيح اندازه نه وي لګولې ، ددې حديث په اړه هر کله چې دا احتمال هم راوتلای سي نو بيا امام شافعي ته د خپل مذهب دليل لپاره د هغه مرسته اخيستل څه مناسب نه معلوميږي .

﴿۳۰۸﴾: وَعَنْ سَلْمَانَ قَالَ نَهَانَا يَعْنِيْ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ نَسْتَقْبِلَ الْقِبْلَةَ لِغَائِطٍ أَوْ بَوْلٍ أَوْ أَنْ نَسْتَنْجِيَ بِالْيَمِينِ أَوْ أَنْ نَسْتَنْجِيَ بِأَقَلَّ مِنْ ثَلاَثَةِ أَحْجَارٍ أَوْ أَنْ نَسْتَنْجِيَ بِرَجِيعٍ أَوْ بِعَظْمٍ (رواه مسلم)

د حضرت سلمان[۱] ﷺ څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ منعه فرمايلې ده چې موږ د تشو يا ډکو بولو کولو په وخت مخ قبلې ته کړو او ددې څخه يې منعه فرمايلې ده چې موږ په راسته لاس استنجاء وکړو او د دې څخه يې منعه فرمايلې ده چې په درو لوټو کم استنجاء وکړو او ددې څخه يې منعه فرمايلې ده چې موږ په خوشايو او هډوکو سره استنجاء وکړو. مسلم.

**تشريح** : زموږ علماء فرمايي چې د لويو بولو يا وړو بولو کولو په وخت کي قبلې ته مخامخ ناسته مکروه تحريمي ده او په راسته لاس سره استنجاء کول مکروه تنزيهي ده لکه چې لومړنی نهي تحريمي او دوهمه نهي تنزيهي ده .

په دې خبره هم بايد پوه سو چې د استنجاء کولو په وخت کي د بولو د ځای سره د راسته لاس مښلول پکار نه دي بلکه طريقه دا کېدل پکار دي چې لوټه په چپه لاس کي اخيستو سره په هغه د بولو ځای کښېږدي مګر په راسته نيولو سره دې يې نه ايږدي ځکه چې دا هم مکروه دي .

د امام شافعي رحمة الله عليه په نزد په درو لوټو سره استنجاء کول واجب دي مګر زموږ امام صاحب فرمايي چې د استنجاء لپاره درې لوټي اخيستل شرط نه دي که د دروَ څخه په کم لوټو باندي پاکي تر لاسه سي نو دا هم کافي دي د هغوئ دليل د صحيح بخاري دا حديث دی چې عبدالله بن مسعود ﷺ وفرمايل رسول الله ﷺ بيت الخلاء ته تشريف يووړ او ما ته يې وفرمايل درې لوټي راوړه ، ما دوې لوټي پيدا کړې ځکه نو د هغو سره د پچو يوه ټوټه هم راوړل

[۱] نوم يې سلمان فارسي او کنيت يې ابوعبدالله دی . په کال (۳۵هـ) کي د حضرت عثمان ﷺ د خلافت په آخري زمانه کي وفات سوی دی او ځينو ويلي دي چې د (۳۶هـ) کال په پيل کي وفات سوی دی .

نو رسول اللهﷺ هغه دواړي لوټي واخيستې او د پچو هغه ټوټه يې وغورځول.

د دې څخه معلومه سوه چي دوې لوټي هم د استنجاء لپاره کافي دي درې واجب نه دي مګر دومره خبره ضروري دي چي په دې اړه طاق عدد مستحب دی ځکه نو ددې خيال ساتل پکار دي.

﴿۳۰۹﴾: وَعَنْ اَنَسٍ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا دَخَلَ الْخَلَاءَ يَقُوْلُ اللّٰهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْخُبُثِ وَالْخَبَائِثِ. (متفق عليه)

د حضرت انس ﷺ څخه روايت دی چي رسول اللهﷺ به د ډکو (يا تشو) بولو ځای ته داخلېدی نو دا دعاء به يې کوله (اللهم اني اعوذبك من الخبث والخبائث) اې الله زه د ناپاک نر او ښځو پيريانو څخه ستا پناه غواړم. بخاري او مسلم.

**تشريح**: د بيت الخلاء په آدابو کي دا هم دي چي هر کله يو سړی د ضرورت لپاره بيت الخلاء ته ځي نو د داخلېدو څخه مخکي هغه ته دغه دعاء ويل پکار ده، که د ضرورت لپاره ځنګل يا صحراء ته ولاړ سي نو د عين ارادې وخت هر کله چي لمن وغيره را پورته کړي او کښيني نو هغه وخت دغه دعاوي ويل پکار دي.

﴿۳۱۰﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ مَرَّ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى قَبْرَيْنِ فَقَالَ إِنَّهُمَا لَيُعَذَّبَانِ وَمَا يُعَذَّبَانِ فِي كَبِيرٍ أَمَّا أَحَدُهُمَا فَكَانَ لَا يَسْتَتِرُ مِنَ الْبَوْلِ وَفِي رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ لَا يَسْتَنْزِهُ مِنَ الْبَوْلِ وَأَمَّا الْآخَرُ فَكَانَ يَمْشِي بِالنَّمِيمَةِ ثُمَّ أَخَذَ جَرِيدَةً رَطْبَةً فَشَقَّهَا بِنِصْفَيْنِ ثُمَّ غَرَزَ فِي كُلِّ قَبْرٍ وَاحِدَةً قَالُوا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ لِمَ صَنَعْتَ هٰذَا فَقَالَ لَعَلَّهُ أَنْ يُخَفَّفُ عَنْهُمَا مَا لَمْ يَيْبَسَا. (متفق عليه)

د حضرت ابن عباس ﷺ څخه روايت دی چي رسول اللهﷺ د دوو قبرونو په خوا کي تيرېدی نو رسول اللهﷺ وفرمايل دغه دواړو قبرو والا ته عذاب ورکول کيږي او په يو لويه خبره نه بلکه په دوئ کي به يوه د تشو بولو څخه احتياط نه کاوه او دوهم چغل خور وو، بيا رسول اللهﷺ د (خرما) يوه لنده لښته راواخيستل او په منځ کي يې پرې کړه او دوې برخي يې کړل او يوه يوه يې پر دواړو قبرونو ښخه کړل، صحابه کرامو پوښتنه وکړه اې دالله رسوله! دا مو د څه لپاره وکړل؟ رسول اللهﷺ وفرمايل: کېدای سي په دې عمل سره تر څو چي دا لښتي وچي نه سي د هغوئ په عذاب کي کمي راسي. بخاري او مسلم

**تشريح**: د مسلم د الفاظو په مناسبت ددې مطلب به دا وي چي لومړی سړی چي پر هغه د قبر عذاب نازليدی هغه کس وو چي د بولو څخه يې ځان نه ساتی، يعني د بولو کولو په وخت به يې

ددې خبري احتیاط نه کوی چي څاڅکي پر هغه ونه لګیږي ، او په دوهم روایت کي د (لا یستبری) الفاظ دي چي مطلب یې دادی چي هغه سړي به د بولو څخه پاکي نه تر لاسه کول، او په یوه روایت کي (لا یستنتر) الفاظ دي او د استنار معنا د خاص اندام (ذکر) په زور سره څنډل یا راکشول چي د بولو کوم څاڅکي د ننه پاته سوي وي هغه راووځي ، نو داسي معنا به وي چي هغه سړي د بولو د ځای په څنډلو سره د بولو څاڅکي نه ایستل ، په هر حال ددې ټولو الفاظو په مفهوم کي څه فرق نسته چي هغه د بولو څخه پاکي او صفائي نه تر لاسه کول او د بولو څخه پاکي نه حاصلول ګناه کبیره او د لمانځه د باطل کېدو سبب دی ځکه هغه د الله تعالی په عذاب کي ونیول سو .

په دې اړه یو خاص خبره ضروري ده چي د ځینو خلکو په ذهن کي دا غلط او ګمراه کونکی خیال پیدا سوی دی چي د رسول الله ﷺ په اړه دا ثابته نه ده چي په لوټه سره به یې وړې بولي وچولې ، ځکه نو هر سړي ته پکار ده چي د وړو بولو څخه وروسته د لوټي استعمال ونه کړي دا ډیره د ګمراهۍ او کم عقلۍ خبره ده که د یو سړي مزاج دومره قوي او مضبوط وي او هغه ته ددې خبري یقین وي چي د وړو بولو څخه د فارغه کېدو وروسته به څاڅکي نه راځي نو د هغه لپاره دا کافي ده چي هغه یوازي په اوبو سره استنجاء وکړي د لوټي استعمال به د هغه لپاره ضروري نه وي او د چا څاڅکي چي تر ډیره وخته پوري راځي څرنګه چي زیات وخت داسي کیږي نو بیا که چیري هغه د لوټي استعمال ونه کړي یوازي په اوبو سره پاکي کوي نو د هغه پرتوګ وغیره به ناپاک وي .

او کوم چي د رسول الله ﷺ د مبارک ذات سوال دی نو ددې په اړه دا عرض دې چي د رسول الله ﷺ مزاج مبارک مضبوط او قوي او انتهائي طاقتور وو ځکه نو رسول الله ﷺ به د لوټي استعمال نه کوی یوازي په اوبو سره به یې استنجاء کول .

دوهم دا چي هغه فعل چي د رسول الله ﷺ څخه په خپله ثابت نه وي مګر د هغه کول د یو وجهي څخه مطلوب او ضروري وي نو هغه په دې ویلو سره ناقابل اعتناء نسي ګرځیدلای چي دا فعل رسول الله ﷺ څخه ثابت نه دی ځکه نو موږ هم داسي نه کوو ، مثلا رسول الله ﷺ فصد (رګ وهل) نه دي کړي اوس که بل چا ته د فصد حاجت وي نو هغه دا ووایي چي رسول الله ﷺ فصد نه دی کړی ځکه نو زه هم فصد نه کوم نو ظاهره ده چي دا خبره به د هغه لپاره تاواني وي .

په هر حال مقصد دادی چي نظر د شارع (شریعت ښودلو والا) پر غرض کېدل پکار دی او

دا کتل پکار دی چي د شارع اصل مقصد څه دی او هغه ښکاره ده چي پاکي ده چي د هغه موړ ته تاکید سوی دی ځکه نو موړ ته پاکي حاصلول پکار دی که هغه په هر ډول حاصله سي یا په اوبو سره او یا په لوټه سره، ددا ډول بې هوده احتمالاتو را ایستلو سره او غلطه حیله او بهانه کولو سره خپل جامې چټلول او په نجاست کي ځان ملوث کول ډیره غلطه او د ګمراهۍ خبره ده ، د بولو څخه د ځان ساتني او د هغه څخه د احتیاط کولو څومره ارزښت دی ددې اندازه د رسول الله ﷺ ددې ارشاد څخه کیدای سي چي :

رسول الله ﷺ وفرمایل : د قبر عذاب اکثر د وړو بولو په وجه وي ځکه ددې څخه پاکي تر لاسه کوئ، یا داسي یې وفرمایل : د وړو بولو څخه پرهیز کوئ ځکه چي هغه د هغه شي اول دی چي د هغه پوجه بنده په قبر کي د حساب په سختۍ کي اخته وي . طبراني .

بیا ددې څخه پرته یو شی دا هم دی چي د حضرت عمر فاروق ﷺ په اړه ثابت دي چي هغه به د وړو بولو څخه وروسته لوټه استعمالول او ظاهره ده چي د صحابي فعل حجت دی ځکه رسول الله ﷺ ارشاد فرمایلی دی چي زما سنت لازم ونیسئ او د خلفاء راشدینو سنت هم لازم ونیسئ .

د حضرت عمر ﷺ په اړه په مصنف ابن ابي شیبه کي منقول دي چي :

(عن ابوبکر عن یسار بن غیر کان عمر اذا بال مسحه ذکره بحائط او حجر لم یمسه ماء )

ژباړه : حضرت عمر فاروق ﷺ چي به بولي وکړې نو خپل خاص اندام به یې پر دیوال یا ډبره باندي ګرځوی او پر هغه به یې اوبه هم نه اچولې .

حضرت شاه ولي الله محدث دهلوي رحمة الله علیه فرمایي په دې مسئله کي چي د بولو څخه وروسته لوټه استعمالول پکار دي د اهل سنت اتفاق او اجماع ده ، والله اعلم .

د نمیمة معنا ده چغل خوري، یعني یو سړی د داسي دوو خلکو خبره چي د هغوئ په خپل مینځ کي دښمني وي یو بل ته د فساد خپرولو لپاره ورسوي یا یو سړی په خلکو کي دښمني پیدا کړي داسي چي د یوه خبره دوهم ته په قسم، ښکنځلو یا داسي نور انداز سره نقل کړي چي په هغه سره اشتعال پیدا سي . امام نووي رحمة الله علیه فرمایي چي د نمیمة معنا داده چي د یو چا خبره دوهم سړي ته د تاوان لپاره نقل کړل سي ، په هر حال نن سبا په عرف کي چي هغه ته چغل خوري وایي دغه معنا د نمیمة ده، چغل خوري چي انساني او اخلاقي نظر سره ډیر بدترین او بد خصلت دی ځکه اسلام هم چغل خور ته ډیر د نفرت په سترګه ګوري، او چغل خوري یو بده خرابي ګڼي ،

په صحیحین کي منقول دي چي چغل خور به جنت ته نه داخلیږي .

د حضرت عمر فاروق ﷺ په اړه منقول دي چي هغه یو وار د کعب احبار څخه چي یو لوی یهودي عالم وو او وروسته یې اسلام راوړ پوښتنه وکړه چي تا په تورات کي تر ټولو لویه ګناه کومه ویلې ده ، هغه جواب ورکړ چي چغل خوري، حضرت عمر ﷺ ورته وفرمایل : ایا دا ګناه د قتل څخه هم زیاته هیبت ناکه ده ، هغه وویل قتل هم په چغل خوري سره کیږي او نوري خرابۍ هم ددې څخه پیدا کیږي.، د حدیث په پای کي دا فرمایل سوي دي چي رسول الله ﷺ د خرما دوه لانده ښاخونه اخیستلو سره هغه دوې ټوټې کړه او یوه یوه ټوټه یې پر هغه دواړو قبرونو ښخه کړل، بیا د صحابه کرامو پر پوښتنه رسول الله ﷺ د هغه وجه دا وفرمایل چي تر څو پوري دا ښانوخه لانده وي تر هغه وخته شاید د دوئ په عذاب کي څه تخفیف وسي ، د عذاب د تخفیف سبب علماء دا لیکي چي رسول الله ﷺ په خپل روحاني سترګو سره لېدل چي هغوئ د الله تعالی په عذاب کي اخته دي نو د رسول الله ﷺ شان رحمت هغه ونه زغمل ، د الله تعالی په دربار کي هغه د رحم او کرم درخواست وکړ ، او غفور الرحیم ذات هم د خپل حبیب خواست قبولیت سره وناوی او فیصله یې وکړه چي تر څو پوري پر هغوئ ښخ سوي ښاخونه وچ نسي تر هغه وخته پوري به د دواړو په عذاب کي کمي وي.

د دې وضاحت هم په یو روایت کي موجود دی چي مسلم نقل کړي دی او د هغه آخري الفاظ دادي چي الله تعالی زما شفاقت قبول فرمایلی دی چي تر څو پوري دا ښاخونه لانده وي هغوئ به په عذاب کي نه وي .

په هر حال په څرګنده خو ددې سبب دا معلومیږي چي د هغه تصدیق هم د مسلم ددې حدیث څخه کیږي ، علماء ددې څخه پرته هم ډیر اسباب لیکلي دي چي په نورو کتابونو او شرحو کي په وضاحت سره منقول دي ، د کرماني رحمة الله علیه قول دی چي د عذاب د تخفیف سبب هغه لانده ښاخونه وه چي په هغه کي ددفع عذاب خاصیت وو، مګر دا خاصیت د هغه بنفسه نه وو بلکه دا خاصیت د رسول الله ﷺ د لاس مبارک د برکت په وجه حاصل سوی وو، ددې حدیث څخه هم معلومه سوه چي علماء او صلحاء د الله تعالی نیک بندګانو ته پکار دي چي هغوئ قبرونو ته ځي چي د هغوئ په وجه د اهل قبر په عذاب کي تخفیف وي ځکه چي د صالحینو قبرو ته تلل د مړو په عذاب کي د تخفیف باعث کیږي .

﴿۳۱۱﴾ : وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قال قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اتَّقُوا اللَّعَّانَيْنِ قَالُوا وَمَا اللَّعَّانَانِ يَا رَسُولَ اللّٰهِ قَالَ الَّذِي يَتَخَلَّى فِي طَرِيقِ النَّاسِ أَوْ فِي ظِلِّهِمْ (رواه مسلم)

د حضرت ابوهريرة ﷛ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : تاسو د دوو شيانو څخه ځان ژغورئ چي د لعنت سبب دی ، صحابه کرامو پوښتنه وکړه اې دالله رسوله ! هغه څه شي دي ؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : [۱] يو خو دا چي هيڅوك دي د خلکو په لاره کي د حاجت لپاره نه کښيني [۲] او دوهم دا چي د خلکو د سايې په ځای کي . مسلم

**تشريح** : علماؤ ددې ارشاد دا وضاحت کړی دی چي د لاري څخه مراد عامه لار ده يعني داسي لار او داسي سړک وغيره چي پر هغه اکثر خلک ګرځي دلته هغه لار مراد نه ده چي ورانه وي يا کله کله پر هغه د خلکو تګ راتګ وي .

د سايې څخه مراد هغه سايه داره درخته ده يا سايوان دی چي د هغه لاندي خلک کښيني او ولاړيږي يا هغه د خلکو د بېده کېدو ځای وي ، په هر حال پر دغه دواړو ځايونو باندي په لوی بولو کولو سره د ګندګۍ او چټلۍ خپرېدو څخه منعه سوې ده ځکه چي په دې سره مخلوق خدا ته تکليف رسيږي او ظاهره ده چي د يو مؤمن او مسلمان د شان څخه دا ليري خبره ده چي هغه د يو چا د پريشانۍ او تکليف سبب جوړ سي .

﴿۳۱۲﴾ : وَعَنْ اَبِيْ قَتَادَةَ قال قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا شَرِبَ اَحَدُكُمْ فَلاَ يَتَنَفَّسْ فِيْ الْإِنَاءِ وَإِذَا اَتَى الْخَلاَءَ فَلاَ يَمَسَّ ذَكَرَهُ بِيَمِينِهِ وَلاَ يَتَمسح بِيَمِيْنِهِ (متفق عليه)

د حضرت ابوقتادة[۱] ﷛ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : هر کله چي په تاسو کي يو څوك اوبه څښي نو په هغه لوښي کي دي ساه نه کاږي ، او هر کله چي د حاجت ځای ته ورزي نو خپل په راسته لاس سره دي خپل خاص اندام ته لاس نه ور وړي او نه دي په راسته لاس سره استنجاء کوي . بخاري او مسلم .

**تشريح** : په دې حديث کي دوه ادبونه ښودل کيږي ، لومړی شی خو دا ښودل کيږي چي هر کله سړی اوبه څښي نو هغه ته پکار ده چي د اوبو څښلو په دوران کي په هغه لوښي کي ساه ونه کاږي چي د هغه څخه اوبه څښي ، کله چي ساه کاږي نو د لوښي څخه دي خوله راوباسي چي د خولې يا پزي څخه د يو شي په وتلو سره په اوبو کي ونه لويږي .

---

[۱] د نومړي نوم حارث بن ربعي دی ، نومړي انصاري او خزرجي دی او د ابوقتاده په کنيت سره مشهور دی .

دوهم شی دا ښودل سوی دی چي کوم سړی بیت الخلاء ته ځي نو هغه ته پکار ده چي په خپل راسته لاس سره نه خو خپل خاص اندام مس کړي او نه په راسته لاس سره استنجاء کوي ځکه چي په راسته لاس سره خوراک کول وغیره کیږي او دا شی د صفائي او پاکۍ خلاف دی چي په کوم لاس سره خوراک وغیره خوري په هغه لاس سره دي داسي عضو مس کړي چي پر هغه ګندګي او مرداري موښلي.

﴿۳۱۳﴾ : وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ تَوَضَّأَ فَلْيَسْتَنْثِرْ وَمَنِ اسْتَجْمَرَ فَلْيُوتِرْ . (متفق عليه)

د حضرت ابوهريرة ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : څوك چي اودس کوي نو پزه دي هم سوڼ کړي او څوك چي د حاجت څخه وروسته په لوټه سره استنجاء کوي نو هغه ته پکار ده چي په طاقو لوټو سره يې وکړي . بخاري او مسلم

﴿۳۱۴﴾ : وَعَنْ اَنَسٍ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدْخُلُ الْخَلَاءَ فَأَحْمِلُ أَنَا وَغُلَامٌ إِدَاوَةً مِنْ مَاءٍ وَعَنَزَةً فَيَسْتَنْجِي بِالْمَاءِ (متفق عليه)

د حضرت انس ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به کله بيت الخلاء ته تلی نو ما او يوهلك به د اوبو لوښي او يوه برچه ورسره وړل ، رسول الله ﷺ به په اوبو سره استنجاء کول (او برچه به د لوټو ماتولو لپاره وه) . بخاري او مسلم.

**تشريح** : د رسول الله ﷺ عادت مبارك دا وو چي کله به بيت الخلاء ته تلی نو يو خادم به د اوبو لوښی وړی او دوهم خادم به نيزه د ځان سره اخيستل ، نيزه ددې لپاره چي په هغه ځمکه د کښندلو سره نرمه سي چي تشي بولي په هغه کي وکړي چي د هغه په وجه څاڅکي ونه غورځيږي يا پر ځمکه باندي په ښهدلو سره ښنو وغيره ته د غورځېدلو بيره پاته نسي . دوهم مقصد دا وو چي د ضرورت په وخت په نيزه سره لوټي راوکاږي او ماتي کړل سي يا دا چي هغه وخت که يو بل ضرورت پيدا سي چي د هغه ضرورت سي نو پکار يې واچوي .

## الفصل الثاني

﴿۳۱۵﴾ :عَنْ أَنَسٍ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا دَخَلَ الْخَلَاءَ نَزَعَ خَاتَمَهُ . رواه أبو داود والنسائي والترمذي وقال هذا حديث حسن صحيح غريب . وقال أبو داود هذا حديث

د حضرت انس ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به کله بيت الخلاء ته د تلو اراده وکړه نو خپله ګوتمۍ به يې وکښل (ځکه چي پر هغې د محمد رسول الله ﷺ نقش وو) . (ابوداؤد ، نسائي.

منكر . وفي روايته وَضَعَ بَدَلَ نَزَعَ .

ترمذي) او ترمذي ويلي دي چي دا حديث حسن صحيح غريب دى ، ابوداؤد ويلي دي دا حديث منكر دى په دې روايت كې د (نزع) پر ځاى (وضع) دى .

**تشريح** : بيت الخلاء ته د داخلېدو پر وخت به رسول الله ﷺ گوتمې ځكه كښل چي په هغه كي محمدرسول الله ليكل سوي وه ، دا حديث ددې خبري دليل دى چي استنجاء كونكى باندي واجب دي چي كله د لويو يا تشو بولو ځاى ته ځي نو د ځان سره دي داسي شيان نه وړي چي پر هغه د الله او د هغه د رسول نوم نقش وي او قرآن كريم دي هم نه وړي . طيبي .

بهري رحمة الله عليه تر دې پوري ويلي دي كه يوازي د نورو رسولانو نومونه ليكلي وي نو هغه دي هم د ځان سره بيت الخلاء ته نه وړي ، ابن حجر رحمة الله عليه فرمايي چي ددې حديث څخه دا معلومه سوه چي هر كله يو سړى د استنجاء اراده وكړي نو هغه لپاره مستحب دي چي هغه د خپل بدن څخه داسي شيان ليري كړي يا بيل كړي چي پر هغه يو د تعظيم وړ شي ليكلى وي كه هغه د الله تعالى نوم ليكلى وي يا نبي يا د ملائكو نوم ليكلى وي .

كه څه هم په دې حديث كي ابوداؤد كلام كړى دى ، مگر علماء ليكي چي دا حديث د وكيل په توگه وړاندي كيږي په دې اړه ملا علي قاري يو مفصل بحث كړى دى او دا حديث په جامع صغير كي هم د حاكم وغيره څخه منقول دى .

﴿۳۱۶﴾ : وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَرَادَ الْبَرَازَ انْطَلَقَ حَتّٰى لاَ يَرَاهُ أَحَدٌ . رواه أبو داود .

د حضرت جابر ﷺ څخه روايت دى چي كله به رسول الله ﷺ بيت الخلاء ته د تللو اراده وكړه نو داسي ځاى ته به يې تشريف يووړ چي دى مبارك به چا نه ليدى . ابوداؤد .

﴿۳۱۷﴾ :وَعَنْ أَبِيْ مُوْسٰى قَالَ كُنْتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَاتَ يَوْمٍ فَأَرَادَ أَنْ يَّبُوْلَ فَأَتٰى دَمِثًا فِيْ أَصْلِ جِدَارٍ فَبَالَ ثُمَّ قَالَ إِذَا أَرَادَ أَحَدُكُمْ أَنْ يَّبُوْلَ فَلْيَرْتَدْ لِبَوْلِهِ . رواه أبو داود .

د حضرت ابوموسى ﷺ څخه روايت دى چي زه يوه ورځ د نبي كريم ﷺ سره ملگرى وم نو رسول الله ﷺ د تشو بولو كولو اراده وكړل ، رسول الله ﷺ نرمي مځكي ته ورغلى او دديوال سره كښېنستى تشي بولي يې وكړې بيا يې وفرمايل هر كله چي په تاسو كي يو څوك د تشو بولو كولو اراده وكړي نو نرمه مځكه و لټوئ چي څاڅكي راپورته نه سي . ابوداؤد .

**تشريح** : خطابي رحمة الله عليه فرمائي چي رسول الله ﷺ د كوم ديوال په بيخ كي په ناسته سره

تشي بولي وکړې هغه به د چا په ملکيت کي نه وو ځکه چي د ديوال په بيخ کي تشي بولي کول د ديوال د تاوان سبب کيږي په هغه سره د ديوال خاورو ته لندبل لګيږي، ځکه نو دا مسئله ده چي د کوم ديوال د چا ملکيت وي د هغه لاندي په ناسته سره د مالک د اجازې څخه پرته تشي کول نه دي پکار، اوس په دې کي وسعت دی چي اجازه که څه حقيقتا وي او که حکما.

﴿۳۱۸﴾ :وَعَنْ اَنَسٍ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَرَادَ الْحَاجَةَ لَمْ يَرْفَعْ ثَوْبَهُ حَتَّى يَدْنُوَ مِنَ الْأَرْضِ . (رواه الترمذي و ابوداؤد)

د حضرت انس ﷺ څخه روايت دی چي کله به رسول الله ﷺ د تشو يا ډکو بولو کولو اراده وکړه نو تر څو پوري چي به مځکي ته نژدي نه وو رسيدلی نو جامې به يې نه پورته کولې. ترمذي او ابوداؤد.

**تشريح** : دا هم د استنجاء د ادب او د شرم او حياء غوښتنه ده چي پرته د ضرورت څخه ستر ښکاره نه کړي او ظاهره ده چي ضرورت هلته وي چي د استنجاء لپاره د ناستي په وخت مځکي ته بالکل قريب سي ، د رسول الله ﷺ دا معمول وو چي تر څو پوري به د ناستي په وخت کي مځکي ته بالکل متصل نه سو جامه به يې نه پورته کول.

دا مسئله ده چي د ناستي څخه مخکي يعني په ولاړه ولاړه سره ستر خلاصول جائز نه دي که څه هم د کور په بيت الخلاء کي د ننه ضرورت کول وي يا په ځنګل وغيره کي.

﴿۳۱۹﴾ : وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّمَا أَنَا لَكُمْ مِثْلُ الْوَالِدِ لِوَلَدِهِ أُعَلِّمُكُمْ إِذَا أَتَيْتُمُ الْغَائِطَ فَلاَ تَسْتَقْبِلُوا الْقِبْلَةَ وَلاَ تَسْتَدْبِرُوْهَا وَأَمَرَ بِثَلاَثَةِ أَحْجَارٍ وَنَهٰى عَنِ الرَّوْثِ وَالرِّمَةِ وَنَهٰى أَنْ يَّسْتَطِيْبَ الرَّجُلُ بِيَمِيْنِهِ . رواه ابن ماجه والدارمي .

د حضرت ابوهريرة ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : زه ستاسو لپاره داسي يم لکه پلار چي د زوی لپاره وي نو زه تاسو ته ښيم هر کله چي تاسو ډکو بولو ته ولاړ سئ نو د قبلې په لور مخ مه کوئ او مه شا کوئ او رسول الله ﷺ حکم وکړ چي د ډکو بولو وروسته په درو لوټو سره پاکوئ او په خوشايو او هډوکو سره استنجاء کولو څخه يې منعه فرمايلې ده او په راسته لاس استنجاء کولو څخه يې هم منعه فرمايلې ده . ابن ماجه او دارمي .

**تشريح** : د دې حديث څخه په ډاګه دا معلوميږي چي د دين په امورو او د تذکرې او نصيحت په اړه د خپل امت سره د رسول الله ﷺ څومره تعلق وو، چي خپل ځان يې د پلار او امت يې د اولاد په ډول وګرځوی ، همداسي د حديث څخه معلوميږي چي پر اولاد د پلار اطاعت کول لازم دي او پر پلار باندي دا واجب دي چي هغه خپل اولاد ته د هغه شيانو ادبونه وښيي کوم چي د دين د

ضروریاتو څخه دي.

﴿۳۲۰﴾ : وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَتْ يَدُ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْيُمْنٰى لِطُهُوْرِهِ وَطَعَامِهِ وَكَانَتْ يَدُهُ الْيُسْرٰى لِخَلَائِهِ وَمَا كَانَ مِنْ أَذًى . رواه أبو داود .

د حضرت عائشې (رض) څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ به په راسته لاس اودس کاوه او د ډوډۍ په خوړلو کي به یې استعمالوی او په چپه لاس به یې استنجاء کول او د مکروه شیانو د کار لپاره یې استعمالوی. ابوداؤد،

**تشریح** : رسول الله ﷺ په راسته لاس سره اودس کوی او په هغه سره یې خوراک هم کوی ،ددغه پرته نور ټول هغه کارونه چي دي ښول یې په راسته لاس سره کول ، مثلا هدیه ، صدقه او خیرات کول یا نور شیان اخیستل او ورکول او داسي نور . او په چپه لاس به یې استنجاء کول یا داسي شیان به یې کول چي د هغو استعمال به مکروه وو یعني داشي شیان چي طبعا مکروه دي لکه پزه سوڼ کول یا داسي نور شیان چي هغه نفس مکروه ګڼي .

د دې حدیث څخه په ښکاره دا مفهوم اخیستل کیږي چي د اواسه وغیره په وخت کي به رسول الله ﷺ پزه ته په راسته لاس سره اوبه اچولې او پزه به یې په چپه لاس سره صفا کول ، مګر افسوس څرنګه چي په نن زمانه کي د عقل او دین څخه بېګانه خلکو نور اسلامي شیان پرېښودل او دیني آدب یې د فیشن پرستۍ نذر کړي دي ، همداسي په دې اړه کي هم اکثر خلک بالکل برعکس عمل اختیاروي مثلا نن سبا دا یو لوی مرض په عامه توګه په خلکو کي زیات سرایت کړی دی چي کتاب خو خلک په چپه لاس کي ایږدي او خپل چمچل په راسته سره پورته کوي . او ددې څخه پرته نور څه ویل کیدای سي چي یا خو دا خلک د شریعت د آدابو څخه ناخبر دي یا د نفس په ګمراهۍ کي په لوېدو سره غفلت یې اختیار کړی دی .

﴿۳۲۱﴾ :وَعَنْهَا قَالَتْ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا ذَهَبَ أَحَدُكُمْ إِلَى الْغَائِطِ فَلْيَذْهَبْ مَعَهُ بِثَلَاثَةِ أَحْجَارٍ يَسْتَطِيْبُ بِهِنَّ فَإِنَّهَا تُجْزِئُ عَنْهُ . رواه أحمد وأبو داود والنسائي والدارمي .

د حضرت عائشې (رض) څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ فرمایلي دي : هر کله چي په تاسو کي یو څوک بیت الخلاء ته ځي نو د ځان سره دې درې ډبري یوسي چي په دې سره استنجاء وکړي دا بس دي (یعني د اوبو ضرورت نه پاته کیږي) احمد.ابوداؤد،نسائي او دارمي

اصل مقصد خو د نجاست څخه پاکي تر لاسه کول دي او هر کله چي په درو لوټو سره استنجاء وکړي او نجاست صاف کړي نو په اوبو سره د استنجاء ضرورت نه پاته کیږي ځکه چي اصل

طهارت په دې سره تر لاسه کیږي چي په هغه سره لمونځ کول هم جائز کیږي مگر په لوټو سره د استنجاء کولو څخه وروسته په اوبو سره دي هم استنجاء وکړي نو دا به ښه خبره وي ځکه چي په اوبو سره استنجاء کول مستحب ده .

﴿۳۲۲﴾ : وَعَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَسْتَنْجُوا بِالرَّوْثِ وَلَا بِالْعِظَامِ فَإِنَّهُ زَادُ إِخْوَانِكُمْ مِنَ الْجِنِّ. رواه الترمذي والنسائي الا انه لم يذكر زاد اخوانكم من الجن.

د حضرت ابن مسعود ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : په خوشایو او هډوکو سره استنجاء مه کوئ ځکه چي دا شیان ستاسو د پیریانو وروڼو خوراك دی . ترمذي.

**تشریح** : څرنګه چي د شریعت محمدي مخاطب انسان دی همداسي جنات (پیریان) هم دي، ځکه نو رسول الله ﷺ چي څرنګه د انسانانو دنیوي او دیني رهبري فرمایي همداسي د جناتو دیني او دنیوي امورو هم رعایت کوي ، ددې حدیث په ذریعه انسان خبروي چي په خوشائي او هډوکو سره دي استنجاء نه کیږي ځکه چي هډوکي د جناتو غذا ده او خوشائي د هغوئ د حیوانانو خوراک دي.

﴿۳۲۳﴾: وَعَنْ رُوَيْفِعِ بْنِ ثَابِتٍ قَالَ قَالَ لِيْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا رُوَيْفِعُ لَعَلَّ الْحَيَاةَ سَتَطُوْلُ بِكَ بَعْدِيْ فَأَخْبِرِ النَّاسَ أَنَّ مَنْ عَقَدَ لِحْيَتَهُ أَوْ تَقَلَّدَ وَتَرًا أَوِ اسْتَنْجٰى بِرَجِيْعِ دَابَّةٍ أَوْ عَظْمٍ فَإِنَّ مُحَمَّدًا بَرِيْءٌ مِّنْهُ . رواه أبو داود.

د حضرت رویفع[1] بن ثابت ﷺ څخه روایت دی چي ما ته رسول الله ﷺ وفرمایل : اې رویفع ! کیدای سي ستا ژوند زما وروسته اوږد وي نوخلکو ته ووایه کوم څوك چي ږیري ته غوټه ورکړي یا یې په غاړه کي پړی واچوی یا یې د حیوان په نجاست یا هډوکو سره استنجاء وکړل نو محمد ﷺ د هغه څخه بیزاره دی . ابوداؤد.

**تشریح** : د نبي کریم ﷺ حضرت رویفع په دغه انداز سره مخاطب کولو معنا داده چي کیدای سي زما د وفات څخه وروسته ستا ژوند اوږد وي او ته نور خلک په معصیت او او د جاهلیت په رسمونو کي اخته ویني نو ددغه خبرو څخه هغوئ خبرداره کړه .

ږیري ته د غوټې ورکولو څه معنا ده؟ اکثر علماء دا لیکي چي ږیري ته غوټه ورکول دادي چي یو سړی په تدابیر او تکلیف اختیارولو سره مثلا غوټه وغیره لګولو سره د ږیري وریښتان ولول جوړ کړي نو د داسي کولو څخه منعه سوې ده ځکه چي په دې سره د سنت مخالفت

[1] رویفع بن ثابت بن سکن بن عدي بن حارثه بن مالك بن نجار څخه دی. او د اهل مصر څخه شمیرل کیږي .

لازمیږي، د ږیري وربېتان سیده ساتل سنت دي.

ځینو علماؤ ددې معنا دا هم لیکلې ده چي د جاهلیت په زمانه کي د خلکو دا عادت وو چي د جنګ په وخت کي به یې د خپل ږیري وربېتان غوټه کول ځکه نو ددې څخه منعه وفرمایل سول، ځکه چي په دې سره د ښځو سره مشابهت پیدا کیږي، ځینو علماؤ دا معنا هم لیکلې ده چي دا عجمیانو عادت وو چي ږیره به یې غوټه کول ځکه نو ددې څخه منعه وکړل سول چي په داسي کولو سره په خلقت الهي کي تغیر لازمیږي. والله اعلم.

د تړلو د لفظ څو معناوي دي یا خو ددې معنا د څرخولو ده چي د جاهلیت په زمانه کي خلکو به د نظر د دفع او آفات څخه د ساتني لپاره تعویذ او کوډو او نورو شیانو په تړلو سره به یې د ماشومانو او آسونو په غاړه کي اچول، ددې څخه منعه فرمایل سوې ده، ځیني علماؤ لیکلي دي چي ددې څخه ډوری مراد ده چي په هغه کي به کفارو ګینټۍ او پازیب تړلو سره زړول، یا ددې څخه د لیندۍ هغه ژی مراد دی چي د آسونو په غاړه کي اچول کیږي چي نظر نه سي، په هر حال د دې ټولو رواجونو څخه رسول الله ﷺ منعه وفرمایل ځکه چي په دې سره د کفارو مشابهت پیدا کیږي او رسول الله ﷺ د کفارو د مشابهت څخه بیزاره دی، ددې حدیث څخه معلومه سوه چي هر کله د کفارو داسي کوچني کوچني رواجونه اختیارول په ګناه کبیره کي شامل نه دي بلکه د رسول الله ﷺ د بیزارۍ او نارضۍ سبب دی، نو د کفر هغه لوی لوی رسمونه چي هغه په بدبختانه ډول سره نن سبا په مسلمانانو کي رواج دي او د هغو شمیر په ګناه کبیره کي کیږي د هغه سره به د رسول الله ﷺ څومره زیات نفرت وي او د هغه رسم کونکو به د الله تعالی په نزد څه پای وي.

﴿۳۲۴﴾ : وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قال قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنِ اكْتَحَلَ فَلْيُوْتِرْ مَنْ فَعَلَ فَقَدْ أَحْسَنَ وَمَنْ لاَّ فَلاَ حَرَجَ وَمَنِ اسْتَجْمَرَ فَلْيُوْتِرْ مَنْ فَعَلَ فَقَدْ أَحْسَنَ وَمَنْ لاَّ فَلاَ حَرَجَ وَمَنْ أَكَلَ فَمَا تَخَلَّلَ فَلْيَلْفِظْ وَمَا لاَكَ بِلِسَانِهِ فَلْيَبْتَلِعْ مَنْ فَعَلَ فَقَدْ أَحْسَنَ وَمَنْ لاَّ فَلاَ حَرَجَ وَمَنْ أَتَى الْغَائِطَ فَلْيَسْتَتِرْ وَمَنْ لَّمْ

د حضرت ابوهریرة ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: څوک چي سترګي توروي نو: په طاقو سلایانو دي یې توروي چا چي دا عمل وکړ نو ښه یې وکړه او که یې نه وکړل نو څه ګناه نسته او څوک چي د استنجاء لپاره لوټي استعمالوي نو طاقي لوټي دي واخلي چا چي دا عمل وکړ نو ښه یې وکړه او که یې نه وکړه نو څه ګناه نسته او څوک چي یو شی وخوري نو خلال دي وکړي او کوم شی چي په خلال کي

يَجِدْ إِلاَّ أَنْ يَّجْمَعَ كَثِيْبًا مِنْ رَمْلٍ فَلْيَسْتَدْبِرْهُ فَإِنَّ الشَّيْطَانَ يَلْعَبُ بِمَقَاعِدِ بَنِيْ آدَمَ مَنْ فَعَلَ فَقَدْ أَحْسَنَ وَمَنْ لاَ فَلاَ حَرَجَ . رواه أبو داود وابن ماجه والدارمي .

راووزي هغه دي وغورزوي او کوم شی چي په ژبه سره راوکاږي نو هغه دي تير کړي چا چي دا عمل وکړ نو ښه يې وکړه او چا چي ونه کړل نو څه گناه نسته ، او هر څوک چي راسي ځای د ضرورت د اودس ماتي ته نو ځان دي پټ کړي که شی يې پيدا نکړی نو راټولي دي کړي کوټه د شگو نو شا دي کړي هغه ته ځکه چي شيطان لوبي کوي د شرمگاه د بني آدم سره هر چا چي وکړ دا کار نو ښه يې وکړه او هر چا چي ونه کړ نو گناه نسته . ابوداؤد ، ابن ماجه او دارمي .

**تشريح** : په طاق سلايانو باندي د رانجه لگولو مطلب دادی چي درې سلايان په يوه سترگه کي ولگوي نو ډيره غوره ده ، ځکه چي د رسول الله ﷺ په اړه هم داسي منقول دي چي د رسول الله ﷺ سره يوه رنجه دانۍ وه او په هغه سره به ده مبارک داسي رانجه لگول چي درې سلايان په يوه سترگه کي او درې سلايان به يې په بله سترگه کي لگول .

ځينو دا طريقه هم بيان کړې ده چي درې سلايان په راسته سترگه کي ولگوي او دوه سلايان په چپه سترگه کي ، ځينو حضرات دا هم ويلي دي چي اول دي دوه سلايان په راسته سترگه کي ولگوي او دوه سلايان دي په چپه سترگه کي ولگوي او ددې وروسته بيا يو سلائي په راسته سترگه کي ولگوي ددې لپاره چي پيل هم په راسته سترگه وسي او ختم هم پر راسته سترگه وسي ، کوم څوک چي درې سلايان لگوي نو د هغه لپاره دا غوره ده او کوم څوک چي طاق سلايان نه لگوي نو د هغه لپاره هيڅ پرواه او گناه نسته ځکه د طاقو سلايانو کېدل مستحب دي .

رسول الله ﷺ چي په درو لوټو سره د استنجاء کولو په اړه فرمايلي دي چي چا داسي وکړه نو ښه يې وکړه او چا چي ونه کړه نو څه گناه نسته ، د دې څخه د حنفيه د مذهب تائيد کيږي چي درې يا طاق لوټي اخيستل واجب نه دي د دې څخه کم او زيات هم اخيستلای سي مگر طاق لوټي اخيستل مستحب دي ، د خوراک څخه وروسته په خوله کي د پاته سوي شي را ايستل او د هغه غورځول يې غوره گڼلي دي او په ژبه سره د را يستلو شيانو دپاره ويل سوي دي د دې لپاره چي د خلال په وخت کي اکثر ويني هم راوځي د دې لپاره احتياطا د هغه غورځول غوره دي د ژبي څخه ځرنگه چي د ويني وتلو احتمال نه وي ددې لپاره د هغه را کښلو کي هيڅ پرواه نسته .

دا خبره بايد په ياد وي چي په دې اړه رسول الله ﷺ فرمايلي دي چي چا داسي ونه کړل نو څه ګناه نسته ، نو دا به حکم په داسي صورت کي وي کله چي د ويني وتلو يقين نه وي بلکه احتمال وي که چيري د ويني وتلو يقين وي نو بيا په خلال کي د هر ډول وتلي شي تېرول حرام وي او د هغه غورځول به واجب وي .

د حديث په پای کي فرمايل سوي دي چي کله يو څوک بيت الخلاء ته ولاړ سي نو د ضرورت حاجت په وخت کي هغه ته په پرده سره کښېنستل پکار دي يعني داسي ځای بايد کښيني چيري چي خلک يې نه ويني که چيري د پردې لپاره يو شی پيدا نه کړي په داسي توګه چي نه يو داسي ځای وي چي پټ وي او د خلکو د ليدو څخه خوندي وي او نه ورسره داسي جامه وغيره وي چي په کوم سره پرده وکړل سي نو په دغه وخت کي داسي کول پکار دي چي د ريګو يا خاورو غونډۍ جوړه کړي او د هغه خوا شا کړي او کښيني نو په داسي توګه به په لږ اندازه پرده وسي .

د دې حديث څخه دا معلومه سوه چي کوم څوک د قضاء حاجت په وخت کي د پردې لحاظ نه کوي نو شيطان د هغه په شرمګاه سره لوبي کوي ، د لوبو کولو مطلب دادی چي هغه د خلکو په زړه کي وسوسې اچوي او هغوئ په دې اماده کوي چي د هغه سړي ستر ته وګوري کوم چي بې پردې ناست دی او قضاء حاجت کوي ، همدارنګه که چيري پرده ونه کړل سي نو ددې بيره هم وي چي کله هواء چليږي نو د هغه په وجه سره ناپاک څاڅکي د هغه پر بدن او جامو باندي لويږي د دې لپاره د قضاء حاجت په وخت کي د پردې کول ډير ضروري دي .

په دې اړه دا هم فرمايل سوي دي که يو څوک د پردې لحاظ وکړي نو دا غوره ده او که داسي ونه کړي نو څه ګناه نسته د احتياط غوښتنه داده چي ددې خيال وساتل سي بلکه که چيري د دې خبري يقين وي چي د پردې نه کولو په صورت کي خلکو ورته ګوري نو په داسي صورت کي پرده کول لازم او ضروري ده او که پرده ونه کړي نو ګناه کار به وي .

که يو څوک د مجبورۍ په صورت کي د پردې څخه پرته پر قضاء حاجت کښېنستی نو بيا د هغه ستر ته په قصد سره کتونکو ته ګناه وي ، د مجبورۍ څخه مراد دادی چي داسي موقع راسي چي د پردې انتظام کول ممکن نه وي او هغه ته سخت ضرورت سي نو په دغه صورت کي هغه مجبور ويل کيږي ، د ريګو يا خاورو غونډۍ ته شا کول ځکه فرمايل سوي دي چي د مخ ستر خو په لمن وغيره سره هم پټېدلای سي په خلاف د شا چي د هغه پټېدل مشکل دي .

﴿۳۲۵﴾ : وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مُغَفَّلٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لاَ يَبُوْلَنَّ أَحَدُكُمْ فِيْ مُسْتَحَمِّهِ ثُمَّ يَغْتَسِلُ فِيْهِ أَوْ يَتَوَضَّأُ فِيْهِ فَإِنَّ عَامَّةَ الْوَسْوَاسِ مِنْهُ . رواه أبو داود والترمذي والنسائي إلاَّ أَنَّهُمَا لَمْ يَذْكُرَا ثُمَّ يَغْتَسِلُ فِيْهِ أَوْيَتَوَضَّأُ فِيْهِ .

د حضرت عبدالله[1] بن مغفل ﷛ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : هیڅوك دي په خپل غسل خانه کي تشي بولي نه کوي (ځکه د بولو کولو وروسته په هغه کي) لمبېدل او اودس کول اکثر وسوسې پیداکوي . ابوداؤد، ترمذي او نسائي

**تشريح** : په غسل خانه کي بولي کول ځکه وسوسې پیدا کوي چي کله هلته بولي کیږي نو هغه ځای ناپاک کیږي او بیا د اوداسه او غسل په وخت کي چي کله پر هغه اوبه لویږي نو په زړه کي وسوسې پیدا کیږي چي ایا څاڅکي خو نه لګیږي او بیا دا شبه او شک په زړه کي کرار کرار ځای نیسي د کوم څخه چي یو ځانګړی فکر په منځ کي راځي .

که چیري د غسل خانې مځکه داسي وي چي پر هغه باندي په اوبو توئیدلو سره څاڅکي نه کوي مثلا د هغه ځای مځکه ریګنه وي یا پر هغه باندي فرش وي اویا د هغه نالۍ داسي وي چي د بولو یو څاڅکي هم نه پاتیږي بلکه وځي نو بیا هلته بولي کول مکروه نه دي .

په دا خبره هم پوهېدل پکار دي چي دلته په غسل کي د بولو کولو منعه تنزیهي ده تحریمي نه ده .

﴿۳۲۶﴾ : وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ سَرْجَسَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لاَ يَبُوْلَنَّ أَحَدُكُمْ فِيْ جُحْرٍ . رواه أبو داود والنسائي .

د حضرت عبدالله بن سرجس ﷛ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : په تاسو کي دي هیڅوك په غار کي بولي نه کوي . ابوداؤد او نسائي

**تشريح** : په غار کي د بولو کولو څخه ځکه منعه فرمایل سوې ده چي اکثر وخت دغه غارونه د حشراتو او نورو حیوانانو لکه مار ، لړم وغیره کورونه وي ، نو کیدای سي چي د بولو کولو په وخت کي د هغه څخه مار ، لړم یا بل ضرري حیوان راووځي او تکلیف ورکړي، او یا دا که چیري په دغه غار کي یو ضعیف او بې ضرره حیوان وي نو بیا د بولو کولو په وجه هغه ته تکلف رسیږي .

ځینو علماؤ لیکلي دي چي د دې وجه داده چي په غارونو کي پیریان اوسیږي ، لکه څرنګه چي د

[1] د حضرت عبدالله بن معفل کنیت ابوسعید دی لومړی یې په مدینه کي هستوګنه اختیار کړه او بیا بصرې ته ولاړی، نوموړی حضرت عمر ﷛ بصرې ته د دیني مسائلو د تعلیم ورکولو لپاره استولی وو . د نوموړي وفات په بصره کي په کال (۵۹هـ) کي سوی دی .

یو صحابي سعد بن عباده خرزجي ﷛ په اړه منقول دي چي هغه د حوران نامي ځای په یو غار کي بولي کړي وې نو هغه پیریانو مړ کړ او دا شعر یې وایه :

نحن قتلنا الخزرج سعد بن عبادة ورميناه بسهمين فلم نخط فؤاده

ژباړه : موږ د خزرج قبیلې مشر سعد بن عباده قتل کړ موږ د هغه په لور دوې غشي وویشتلې او د هغه د زړه په نښه کولو کي مو خطا نه ده کړې .

او ځیني علماء وايي که یو غار په خاصه توګه د بولو کولو لپاره وي نو په هغه کي بولي کول مکروه نه دي .

﴿۳۲۷﴾ : وَعَنْ مُعَاذٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اتَّقُوْا الْمَلاَعِنَ الثَّلاَثَةَ الْبَرَازَ فِيْ الْمَوَارِدِ وَقَارِعَةِ الطَّرِيْقِ وَالظِّلِ . رواه أبو داود وابن ماجه

د حضرت معاذ ﷛ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : تاسو د دغه درو شیانو څخه ځان وژغورئ چي د لعنت سبب دي ۱: تشي یا ډکي بولي کول د خلکو د ناستي په ځای کي ۲: د لاري په منځ کي ۳: په سایه کي . ابوداؤد او ابن ماجه .

**تشریح** : دغه درې کارونه داسي دي چي د لعنت سبب دي ، یعني که چیري یو سړی پر یو لاري باندي یا د خلکو د ناستي پر ځای یا د یو سایې پر ځای باندي ډکي بولي کوي نو کوم خلک چي پر هغه لاره باندي تیریږي یا سایه استعمالوي نو هغه پر دغه کس باندي لعنت وايي، یا ددې مطلب دادی چي دغه کس ددغه بد کار په وجه د خلکو د منفعت او آرام ځایونه خرابوي نو له دې کبله دی ظالم سو او ظالم کس لعنتي وي .

موارد : هغه ځایونو ته وايي چیري چي خلک یو ځای کیږي او هلته په کښینستلو سره د یو بل سره خبري کوي، ځینو علماؤ ویلي دي چي موارد جمع د مورد ده او مورد تړي (د خلکو دناستي او بانډار ځای) ته ویل کیږي لکه څرنګه چي د ترجمې څخه ظاهر ده، سایه عامه ده که د درختي سایه وي یا د یو بل شي سایه وي چیري چي خلک خوب او ناسته کوي او یا خپل حیوانان هلته تړي .

﴿۳۲۸﴾ : وَعَنْ أَبِيْ سَعِيْدٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لاَ يَخْرُجُ الرَّجُلاَنِ يَضْرِبَانِ الْغَائِطَ كَاشِفَيْنِ عَنْ عَوْرَتِهِمَا يَتَحَدَّثَانِ فَإِنَّ اللهَ يَمْقُتُ عَلَى ذٰلِكَ . رواه أحمد وأبو داود وابن ماجه .

د حضرت ابوسعید ﷛ څخه روایت دی چي درسول الله ﷺ وفرمایل : دوه کسان دي د ډکو بولو لپاره یو ځای نه ځي چي خپل شرمګاوي لوڅي کړي او خبري کوي ځکه په دې سره الله

پاك په غضب كيږي . احمد ، ابوداؤد او ابن ماجه .

**تشريح** : د نارينه او ښځينه دواړو لپاره دا حرام دي چي هغوئ د قضاء حاجت لپاره داسي كښيني چي د يو بل ستر ويني ، همدارنګه په دا سي صورت كي د يو بل سره خبري كول هم مكروه دي ، دغه دواړه كارونه د الله تعالى د غضب باعث دي .

په دې ځاى كي د هغه تكليفي صورت وضاحت كول ضروري دى چي نن سبا په ښځو كي په خاصه توګه داسي بې احتياطي ليدل كيږي ، په عامه توګه داسي پيښيږي چي ښځي په خپل منځ كي د يو بل مخته د خپل ستر لوڅول هيڅ عيب نه بولي په خاصه توګه د غسل او قضاء حاجت په وخت كي داسي شرمناک كارونه كوي ، داسي ښځو ته پكار ده چي هغه دغه حديث په فكر سره ووايي او بيا پوه سي چي هغوئ د داسي بد او د شرم او حيا خلاف شيانو په كولو سره د الله تعالى غضب را پاروي او د هغه د عذاب باعث ځان ګرځوي .

په شرح السنه كي ليكلي دي چي د قضاء حاجت په وخت كي او د كوروالي په وخت كي بايد د الله تعالى ذكر ونه كړل سي .

﴿۳۲۹﴾ : وَعَنْ زَيْدِ بْنِ أَرْقَمَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ هٰذِهِ الْحُشُوْشَ مُحْتَضَرَةٌ فَإِذَا أَتَى أَحَدُكُمُ الْخَلَاءَ فَلْيَقُلْ أَعُوْذُ بِاللهِ مِنَ الْخُبْثِ وَالْخَبَائِثِ . رواه أبو داود وابن ماجه .

د حضرت زيد بن ارقم[1] ؓ څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل : بيت الخلاوي د شيطانانو او پيريانانو د حاضرېدو ځايونه دي نو څوك چي په تاسو كي بيت الخلاء ته ځي هغه دي دا دعاء وايي (أَعُوْذُ بِاللهِ مِنَ الْخُبْثِ وَالْخَبَائِثِ) ژباړه : د ناپاكو پيريانو نر او ښځو څخه د الله پناه غواړم . ابوداؤد او ابن ماجه .

**تشريح** : پيريان او شيطانان بيت الخلا ته راځي او ددې انتظار كوي چي كوم سړى بيت الخلاء ته راسي نو هغه ته ضرر او تكليف ورسوي ځكه بيت الخلاء ته راتلونكى كس هلته د ستر په خلاصولو سره كښيني او د الله تعالى ذكر هم نسي كولاى ، نو د دې لپاره دا ښودل كيږي چي كوم څوک بيت الخلاء ته د تللو په وخت كي دغه دعاء وايي نو هغه به د پيريانو او شيطانانو د ضرر او تكليف څخه خوندي وي . په دغه باب كي چي كوم حديث تير سوى دى په هغه كي د دعاء الفاظ ډول دي : (اللهم اني اعوذبک من الخبث والخبائث ) څرنګه چي په دواړو كي څه

[1] نوموړي انصاري دي او كنيت يې ابوعمرو دى . نوموړي د رسول الله ﷺ سره په اووه لس غزاوو كي ګډون كړى دى ، نوموړى په كوفه كي اوسيدى او هم هلته په كال (۶۸هـ) كي وفات سوى دى .

فرق نسته ددې لپاره اختيار ذی چي كومه دعاء يې خوښه وي هغه دي وايي مګر غوره خبره داده چي كله دغه دعاء ووايي او كله هغه دعاء ووايي او يا دواړي يو ځای ووايي .

﴿۳۳۰﴾ : وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سِتْرُ مَا بَيْنَ أَعْيُنِ الْجِنِّ وَعَوْرَاتِ بَنِي آدَمَ إِذَا دَخَلَ أَحَدُكُمُ الْخَلَاءَ أَنْ يَقُوْلَ بِسْمِ اللهِ . رواه الترمذي وقال هذا حديث غريب وإسناده ليس بقوي .

د حضرت علي ﷛ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : كله چي په تاسو كي يو څوك بيت الخلاء ته داخل سي پرده په منځ د سترګو د پيريانو او د عورتونو د بني آدمو كي داده چي ووايي بسم الله . ترمذي ويلي دي چي دا حديث غريب دی او اسناد يې قوي نه دي .

**تشريح** : د ارشاد مطلب دادی چي كله انسان بيت الخلا ته ځي نو هلته د ستر په لوڅولو سره كښيني نو په دې وجه شيطانان د هغه شرمګاه ته ګوري ، نو ددې لپاره كله چي يو څوك بيت الخلاء تلل وغواړي نو په بسم الله ويلو سره دي بيت الخلاء ته ځي ځكه د دې په ويلو سره شيطانان ستر نسي ليدلای ، علامه ابن حجز رحمة الله عليه ليكلي دي چي په دې اړه سنت دادي چي كله يو څوک بيت الخلاء ته ځي نو اول بسم الله او بيا هغه دعاء ووايي كوم چي د دې څخه په مخكي حديث كي ذكر سول ، مګر كه چيري په دغه دواړو يعني بسم الله او دعاء كي يو هم وويل سي نو سنت به پر ځای سي مګر غوره خبره داده چي دواړه وويل سي ، دا حديث كه څه هم ضعيف دی مګر د اعمالو په فضائلو كي پر ضعيف حديث باندي هم عمل كول جائز دي .

﴿۳۳۱﴾ : وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا خَرَجَ مِنَ الْخَلَاءِ قَالَ غُفْرَانَكَ (رواه الترمذي وابن ماجة والدارمي)

د حضرت عائشي (رض) څخه روايت دی چي كله به رسول الله ﷺ د بيت الخلاء څخه راوتی نو فرمايل به يې : غُفْرَانَكَ، اې الله ستا د بخښني غوښتونكی يم . ترمذي، ابن ماجه او دارمي.

**تشريح** : علماء كرامو په دغه وخت كي د بخښني غوښتلو دوې وجهي ليكلي دي ، لومړی خو داده چي څرنګه رسول الله ﷺ په خپل مباركه ژبه سره په هيڅ حالت كي د الله ﷻ ذكر نه دی پرېښی پرته ددې څخه چي د يو سخت حاجت او مجبوري په وخت كي مثلا تشي يا ډكي بولو وغيره وخت كي يې پرېښودی نو له دې كبله دی مبارک د الله ﷻ څخه د بخښني غوښتونكی وو .

دوهمه وجه داده چي كله انسان يو غذا خوري نو هغه غذا معدې ته په رسيدو سره په دوو برخو ويشل كيږي يوه برخه د ويني په جوړېدو سره قوت او طاقت پيدا كوي او دوهم برخه د

قضاء حاجت په شکل کي راوځي ، که د قدرت دغه نظام ته وکتل سي نو معلومه به سي چي پر بندګانو باندي دالله تعالی ډیر لوی انعام دی او د هغه لوی نعمت دی د کوم شکر چي بنده لکه څرنګه چي حق دی هغسي نسي ادا کولای نو له دې کبله رسول الله ﷺ بخښنه غوښتل چي اې الله ! زه ستا د دغه عظیم نعمت شکر نسم ادا کولای ددې لپاره ته ما پر دغه کوتاهي باندي و بخښې .

ځینو مشائخو لیکلي دي چي په داسي وخت کي دغه ذکر کول مناسب دي چي د خپل احتیاج او ددې خبري خیال وساتل سي چي د انسان د ذات حیثیت څه دی کوم چي د نجاست څخه ډک دی او ددې په مقابله د الله تعالی پاک ذات او د هغه تقدس تصور کړي ، غوره داده چي د غفرانک لفظ څخه وروسته دغه دعاء وویل سي :

(الحمدلله الذي اذهب عني الاذی وعافاني) .

﴿۳۳۲﴾ : وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَتَى الْخَلَاءَ أَتَيْتُهُ بِمَاءٍ فِيْ تَوْرٍ أَوْ رَكْوَةٍ فَاسْتَنْجٰى ثُمَّ مسحه يَدَهُ عَلَى الْأَرْضِ ثُمَّ أَتَيْتُهُ بِإِنَاءٍ آخَرَ فَتَوَضَّأَ . رواه أبو داود وروى الدارمي والنسائي معناه .

د حضرت ابوهريرة ﷺ څخه روایت دی چي کله به رسول الله ﷺ بیت الخلاء ته تلی نو ما به د رسول الله ﷺ لپاره په پیاله (د څرمني) یا پتک کي اوبه راوړې ، رسول الله ﷺ به په هغه سره استنجاء کول بیا به یې لاسونه په مځکه پوري و موښل ، ما بیا نوري اوبه راوړې او رسول الله ﷺ به په هغو سره اودس کاوه . ابوداؤد ، دارمي او نسائي .

**تشریح** : (تور) په عربي ژبه کي د مسو یا ډبري یو کوچنی لوښی د پیالې په ډول وي په هغه کي خوراک کوي او د ضرورت په وخت کي په هغه سره اودس هم کوي . (رکوة) د پوست څخه جوړ سوي ژي ته وایي چي د اوبو ساتلو کار کوي .

د تور او رکوة په مینځ کي لفظ د او یا خو راوي ته شک دی یعني د ابوهریره ﷺ څخه چي کوم راوي دغه حدیث نقل کړی دی هغه ته دا شک دی چي ابوهریره ﷺ لفظ د تور وفرمایه او که د رکوة، او یا خو دا د تنویع لپاره دی په دې ډول د حضرت ابوهریره ﷺ د ارشاد معنا به دا سي چي کله به په تور کي اوبه راوړلې او کله به په رکوة (ژي) کي راوړلې .

د استنجاء څخه وروسته رسول الله ﷺ لاس پر مځکه باندي ځکه موږی چي د لاس څخه بدبویي ولاړه سي او لاس ښه پاک او صاف سي ، همدارنګه د بیت الخلاء څخه د راوتلو وروسته د لاس پریولل سنت دي .

حضرت ابو هریره ﷺ د اوداسه لپاره په بل لوښي کي اوبه ددې لپاره نه راوړلې چي د استنجاء په پاته اوبو سره یا د هغه په لوښي سره اودس کول صحیح نه دی بلکه په دغه لوښي کي څرنګه چي اوبه یوازي د استنجاء د ضرورت مطابق پاته کېدلې نو ځکه د اوداسه لپاره په بل لوښي کي اوبه راوړلو ضرورت کیدی ، د دغه حدیث څخه ځینو علماء دغه اخذ کړی دی چي که چیري د استنجاء او اوداسه لپاره بیل بیل لوښي وي نو دا مستحب کار دی .

﴿۳۳۳﴾ : وَعَنِ الْحَكَمِ بْنِ سُفْيَانَ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا بَالَ تَوَضَّأَ وَنَضَحَ فَرْجَهُ . رواه أبو داود والنسائي

د حضرت حکم [۱] بن سفیان ﷺ څخه روایت دی چي کله به رسول الله ﷺ تشي بولي وکړې نو بیا به یې اودس کاوه او پر خپل شرمګاه به یې اوبه و پاشلې (یعني لنګ به یې اغوستی وو) . ابوداؤد او نسائي .

**تشریح** : رسول کریم ﷺ چي به کله د تشو بولو څخه وروسته اودس کوی نو د وسوسې د دفع کولو لپاره به یې لږ اوبه د ستر پر ځای پر لونګ سربیره وپاشلې ددې لپاره چي د بولو د څاڅکو وهم پاته نه سي .

څرګنده ده چي د رسول کریم ﷺ ذات مبارک د وسوسې او خطراتو څخه پاک وو نو دا به وویل سي چي دده مبارک دغه عمل د امت د ښووني لپاره وو چي د بولو کولو څخه وروسته کله چي اودس تازه کوي نو لږ اوبه د شرمګاه پر ځای پر جامې سربیره وپاشل سي ددې لپاره که چیري اوبه ونه پاشل سي او د شرمګاه ځای د جامې سربیره د لندوالي احساس وي نو د هغه څخه به د بولو د څاڅکو وهم پیداسي او که چیري اوبه وپاشل سي نو دهغه وروسته که د لندوالي احساس وسي نو دا فکر به وي چي هغه د پاشل سوو اوبو لندوالی دی په دې وجه به وسوسه بنده سي او مقصد همدغه دی چي د وسوسو لار ونیول سي تر څو په اطمینان سره په عبادت کي بوخت سي .

ابن مالک رحمة الله علیه فرمایي چي د اوداسه وروسته پر شرمګاه سربیره د اوبو پاشلو یوه وجه داده چي د وسوسې دفع کیږي مګر یو بله وجه دا هم ده چي په دې سره د بولو وغیره څاڅکي ودریږي او دباندي را ونه ځي .

---

[۱] د نوموړي نوم حکم بن سفیان او کنیت یې ابوالحکم ثقفي دی .

﴿۳۳۴﴾ : وَعَنْ أُمَيْمَةَ بِنْتِ رُقَيْقَةَ قَالَتْ كَانَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدَحٌ مِّنْ عِيْدَانٍ تَحْتَ سَرِيْرِهٖ يَبُوْلُ فِيْهِ بِاللَّيْلِ . رواه أبو داود والنسائي .

د حضرت اميمة[1] بنت رقيقه (رض) څخه روايت دى چي د رسول الله ﷺ سره د لرگي يوه پياله وه چي د رسول الله ﷺ تر کټ لاندي به پرته وه ، د شپې به رسول الله ﷺ په هغه کي تشي بولي کولې . ابوداؤد او نسائي .

**تشريح** : څرنگه چي د شپې د يخ وغيره په وجه پورته کېدل د تکليف او پريشانۍ سبب وي ددې کبله رسول الله ﷺ يوه پياله ددغه کار لپاره خاص کړې وه ، کله چي به رسول الله ﷺ ته د شپې د بولو کولو ضرورت سو نو په دغه پياله کي به يې بولي کولې ، که چيري پر حقيقت باندي نظر واچول سي نو دلته هم د امت لارښوونه مقصد ده ، ددې لپاره چي د امت لپاره په دغه کي آساني پيدا سي چي کله د شپې د بولو حاجت وي او د يخ وغيره د تکليف په وجه دباندي وتل مشکل وي نو په يو لوښي وغيره کي بولي کول او په سهار کي هغه وغورځول سي ددې لپاره چي د يوې خوا د تکليف او پريشانۍ څخه خوندي سي او بلي خوا ته د شپې بيت الخلاء ته د تللو څخه وساتل سي کوم چي د شيطانانو هستوګن ځايونه دي ، او شيطانان د ورځي په نسبت د شپې د زيات تاوان او تکليف رسولو سبب وي .

ښکاره ده چي دغه لارښوونه د رسول کريم ﷺ د شفقت او رحمت په جذبه ده کوم چي د اعمالو او افعالو په هره مرحله کي د آسانۍ په صورت کي تر سترګو کيږي .

ويل کيږي چي يو صحابي په ناخبرتيا سره د رسول الله ﷺ په دغه پياله کي څښل وکړل د کوم چي دا اثر سو تر څو چي هغه ژوندى وو د هغه د بدن څخه خوشبوئي راتلل او نه يوازي د هغه د بدن څخه بلکه تر څو نسلونو پوري د هغه په اولاد کي هم د بدن څخه هغه خوشبوئي وه .

﴿۳۳۵﴾: وَعَنْ عُمَرَ قَالَ رَآنِي النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَنَا أَبُوْلُ قَائِمًا فَقَالَ يَا عُمَرَ لاَ تَبُلْ قَائِمًا فَمَا بُلْتُ قَائِمًا بَعْدُ . رواه الترمذي وابن ماجه . قَالَ الشَّيْخُ الإِمَامُ مُحْيِي السُّنَّةِ رَحِمَهُ اللّٰهُ قَدْ صَحَّ عَنْ حُذَيْفَةَ قَالَ أَتَى النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سُبَاطَةَ قَوْمٍ فَبَالَ قَائِمًا. (متفق عليه) ، قِيْلَ كَانَ ذٰلِكَ لِعُذْرٍ .

د حضرت عمر ﷺ څخه روايت دى چي زه ودرېدم او تشي بولي مي کولې چي رسول الله ﷺ زه وليدم نو راته وه يې فرمايل : اې عمر ! په ولاړي بولي مه کوه او ددې وروسته بيا ما هيڅکله په ولاړه بولي نه دي کړي، ترمذي او ابن ماجه، امام محي السنة وايي چي د حذيفه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ د يو قوم کنډوالې ته

[1] اميمه بنت رقيقه د حضرت خديجې رضي الله عنها د خور لور ده .

ورغلی او هلته يې په ولاړه بولي وکړې، (ویل سوي دي چي دا د يو عذر له کبله وو) .بخاري او مسلم

**تشريح** : د ټولو علماؤ په اتفاق سره په ولاړه بولي کول مکروه دي ، البته په دې کي اختلاف دی چي مکروه تنزيهي دي او که مکروه تحريمي ، ځيني علماء وايي چي مکروه تحريمي دي او د ځينو په نزد مکروه تنزيهي دي.

او کوم چي د حضرت عمر ﷺ خبره ده نو په دې اړه علماء وايي چي د جاهليت په زمانه کي چي کومه د بولو طريقه په ولاړه رواج وه او د هغه عادت وو نو په دې وجه هغه په ولاړي بولي وکړې ، يا دا کيدای سي چي د يو په عذر په وجه يې په ولاړه بولي کړي وي.

همدارنګه د رسول الله ﷺ په اړه هم د حضرت حذيفه ﷺ روايت دی چي رسول الله ﷺ په ولاړه بولي وکړې ، په دې اړه هم دا ويل کيږئ چي دا د يو عذر په وجه داسي سوي دي ، او علماء هغه عذر هم ليکلی دی ، ځينو حضرات د هغه ځای د چټلۍ وجه ښيي چي هلته د کښينستلو ځای نه وو نو په دې خاطر يې په ولاړه بولي وکړې.

ځيني علماء وايي چي د رسول الله ﷺ په پښو مبارکو کي درد وو ، او د ځينو حضراتو د تحقيق سره سم په نس کي درد وو او په دې وجه رسول الله ﷺ نه سو کښېنستلای او په ولاړه يې حاجت پوره کړ.

## الفصل الثالث

﴿۳۳۶﴾ : عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ مَنْ حَدَّثَكُمْ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَبُولُ قَائِمًا فَلَا تُصَدِّقُوهُ مَا كَانَ يَبُولُ إِلَّا قَاعِدًا. رواه احمد والترمذي والنسائي .

د حضرت عائشي (رض) څخه روايت دی چي څوك دا حديث بيان کړي چي رسول الله ﷺ به په ولاړه بولي کولې نو هغه رښتونی مه ګڼئ ځکه رسول الله ﷺ به هميشه په ناسته تشي بولي کولې . احمد ،ترمذي او نسائي.

**تشريح** : امام محي السنة چي د حضرت حذيفه ﷺ کوم روايت نقل کړی دی د هغه څخه په ښکاره دا معلوميږي چي رسول الله ﷺ په و لاړه بولي کړي دي مګر د حضرت عائشې رضي الله عنها دغه حديث ددې خبري بالکل نفي کوي نو اوس به په دغه دواړو حديثونو کي تطبيق په دا ډول کيږي چي حضرت عائشې د خپل علم سره خبر ورکوي يعني هغې رسول الله ﷺ په ولاړه بولو کولو سره په کور کي نه دی ليدلی له دې کبله هغې ددې څخه نفي وکړل او حضرت حذيفه ﷺ چي کوم صورت بيانوي هغه د کور څخه د باندي متعلق ده او هغه هم د عذر په وجه نادر ده

او ظاهره ده چې نادر شی د معدوم په ډول وي او د عذر په وجه دا مستثنی کیدای هم سي ځکه نو په دواړو حدیثونو کي هیڅ تعارض پاته نه سو .

﴿۳۳۷﴾ : وَعَنْ زَيْدِ بْنِ حَارِثَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّ جِبْرَئِيْلَ أَتَاهُ فِيْ أَوَّلِ مَا أُوْحِيَ إِلَيْهِ فَعَلَّمَهُ الْوُضُوْءَ وَالصَّلَاةَ فَلَمَّا فَرَغَ مِنَ الْوُضُوْءِ أَخَذَ غُرْفَةً مِّنَ الْمَاءِ فَنَضَحَ بِهَا فَرْجَهُ . رواه أحمد والدارقطني .

حضرت زید[1] بن حارثه د نبي کریم ﷺ څخه روایت کوي چې جبرائیل ؑ تر ټولو وړاندي په وحي کي رسول الله ﷺ ته راغلی رسول الله ﷺ ته لمونځ او اودس کول و ښودل کوم وخت چي رسول الله ﷺ د اوداسه څخه فارغ سو نو یوه لپه اوبه یې راواخیستې او هغه یې پر خپل شرمګاه باندي وپاشلې . احمد او دار قطني .

**تشريح** : حضرت جبرائیل ؑ د رسول الله ﷺ و حضور ته د یو سړي په شکل کي راغلی او هغه د رسول الله ﷺ په مخکي اودس وکړ او لمونځ یې ادا کړ ددې لپاره چي رسول الله ﷺ هغه زده کړي همدا رنګه هغه رسول الله ﷺ ته د الله تعالی د لوري ددغه دوو شیانو تعلیم هم ورکړ او بیا ددې سربیره حضرت جبرائیل ؑ د اوداسه وروسته پر شرمګاه یا د ستر پر ځای د اوداسه وروسته اوبه پاشل هم وښودل تر څو د وسوسې د دفع لپاره دغه طریقه غوره کړل سي .

﴿۳۳۸﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَاءَنِي جِبْرِيلُ فَقَالَ يَا مُحَمَّدُ إِذَا تَوَضَّأْتَ فَانْتَضِحْ. رواه الترمذي وقال هذا حديث غريب و سمعت محمدا يعني البخاري يقول الحسن ابن علي الهاشمي الراوي منكر الحديث .

د حضرت ابوهریرة ؓ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : ما ته جبرائیل ؑ راغلی او ویل یې ای محمد ! هر کله چي ته اودس وکړې نو لږ اوبه پر خپل شرمګاه وپاشه .(ترمذي ویلي دي د احدیث غریب دی او ما د بخاري څخه اوریدلي دي چي حسن بن علي هاشمي راوي منکر د حدیث دی )

﴿۳۳۹﴾ : وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ بَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَامَ عُمَرُ خَلْفَهُ بِكُوْزٍ مِّنْ مَّاءٍ فَقَالَ

د حضرت عائشې (رض) څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ تشي بولي وکړې نو حضرت عمر ؓ

[1] د نوموړي نوم زید بن حارثه او کنیت یې ابواسامه دی، نو موړی یو عظیم صحابي دی کوم ته چي د رسول کریم ﷺ د متنبي جوړېدو شرف حاصل دی . په غزوه موته کي د شام پر مخکه باندي د هجرت پر اتم کال د شهادت درجه یې تر لاسه کړه او د شهادت په وخت کي د نوموړي عمر ۵۵ کاله وو.

مَا هٰذَا يَا عُمَرُ ؟ قَالَ مَاءٌ تَتَوَضَّأُ بِهِ . قَالَ مَا أُمِرْتُ كُلَّمَا بُلْتُ أَنْ أَتَوَضَّأَ وَلَوْ فَعَلْتُ لَكَانَ سُنَّةً . رواه أبو داود وابن ماجه .

كوزه په لاس كي د رسول الله ﷺ شاته و دريدى نو رسول الله ﷺ پوښتنه وكړه اې عمره ! دا څه دي ؟ عمر وويل ستاسو داوداسه لپاره اوبه دي ، رسول الله ﷺ وفرمايل ما ته دا حكم نه دى راكړل سوى چي كله زه تشي بولي وكړم نو اودس دي هم وكړم كه ما داسي كړي واى نو زما دا كار به سنت سوى واى . ابوداؤد او ابن ماجه .

**تشريح** : د رسول الله ﷺ د ارشاد مطلب دادى چي ما ته د فرض او واجب په ډول دا حكم نه دى راكړل سوى چي كله بولي وكړم نو د هغه وروسته اودس هم وكړم او كه چيري زه په خپله دا كار وكړم نو بيا به هر وار د بولو كولو څخه وروسته اودس كول سنت مؤكده سي ، په هر حال دلته د سنت څخه مراد سنت مؤكده دى هسي خو په اوبو سره استنجاء كول او هر وخت په اوداسه اوسيدل د ټولو علماؤ په نزد په اتفاق سره مستحب دي .

ددغه حديث څخه دا هم معلومه سوه چي رسول الله ﷺ به كله كله غوره شيان هم د امت د اسانتيا لپاره پرېښودل ددې لپاره چي هغه شيان د امت لپاره ضروري نه بلل سي .

﴿۳۴۰﴾ : وَعَنْ أَبِيْ أَيُّوْبَ وَجَابِرَ وَأَنَسٍ أَنَّ هٰذِهِ الْآيَةَ لَمَّا نَزَلَتْ ( فِيْهِ رِجَالٌ يُحِبُّوْنَ أَنْ يَّتَطَهَّرُوْا وَاللّٰهُ يُحِبُّ الْمُطَّهِّرِيْنَ ) قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا مَعْشَرَ الْأَنْصَارِ إِنَّ اللّٰهَ قَدْ أَثْنٰى عَلَيْكُمْ فِي الطُّهُوْرِ فَمَا طُهُوْرُكُمْ قَالُوْا نَتَوَضَّأُ لِلصَّلَاةِ وَنَغْتَسِلُ مِنَ الْجَنَابَةِ وَنَسْتَنْجِيْ بِالْمَاءِ قَالَ فَهُوَ ذَاكَ فَعَلَيْكُمُوْهُ . رواه ابن ماجه .

د حضرت ابوايوب، جابر او انس څخه روايت دى چي كوم وخت دا آياتونه نازل سوه (فيه رجال ....) (يعني په مسجد قباء كي ) داسي (انصاري) خلك دي چي پاكي خوښوي او الله پاك ښه پاكي كونكي خلك خوښوي ، نو رسول الله ﷺ وفرمايل اې د انصارو ډلې ببشكه الله تعالى د پاكۍ په اړه ستاسو تعريف كړى دى تاسو څنګه پاكي كوئ ؟ هغوئ عرض وكړ موږ د لمانځه لپاره اودس كوو او د جنابت لپاره غسل كوو او په اوبو سره استنجاء كوو، رسول الله ﷺ وفرمايل او دا خبره ده همدا جاري و ساتئ . ابن ماجه .

**تشريح** : د انصارو دا عادت وو چي هغو به د تشو او ډكو بولو څخه وروسته په لوټو سره د صفائي كولو څخه وروسته په اوبو سره هم استنجاء كول ددې كبله د هغوئ فضيلت په دغه آيت كريمه كي بيان سو ، كله چي دغه آيت نازل سو او د انصارو ددغه فضيلت څرګندونه وسول نو رسول كريم ﷺ دهغوئ څخه پوښتنه وكړه چي هغه كومه پاكي ده د كوم حاصلولو په وجه تاسو

ددغه سعادت حقداره سواست ، کله چي هغوئ د صفائي تفصيل بيان کړ نو رسول الله ﷺ د هغوئ تصديق وکړ چي همدا هغه شيان دکوم په وجه چي الله تعالی ستاسو صفت په قرآن کريم کي بيان کړی دی ، او وروسته يې دې ته اشاره وفرمايل غوره والی او بهتري په دې کي ده چي دغه سعادت هميشه تر لاسه کړئ يعني څرنګه چي تاسو پاکي تر لاسه کوئ همداسي هميشه کوئ.

﴿۳۴۱﴾ : وَعَنْ سَلْمَانَ قَالَ قَالَ بَعْضُ الْمُشْرِكِيْنَ وَهُوْ يَسْتَهْزِئُ إِنِّيْ لَأَرٰى صَاحِبَكُمْ يُعَلِّمُكُمْ حَتّٰى الْخَرَاءَةَ قُلْتُ أَجَلْ أَمَرَنَا أَنْ لاَ نَسْتَقْبِلَ الْقِبْلَةَ وَلاَ نَسْتَنْجِيْ بِأَيْمَانِنَا وَلاَ نَكْتَفِيَ بِدُوْنَ ثَلاَثَةِ أَحْجَارٍ لَيْسَ فِيْهَا رَجِيْعٌ وَلاَ عَظْمٌ . رواه مسلم وأحمد واللفظ له .

د حضرت سلمان ؓ څخه روايت دی چي په مشرکانو کي يوه سړي د مسخرو په ډول وويل زه ستاسو نبي وينم چي تاسو ته هر شی ښيي تر دې چي په بيت الخلاء کي د کښېنستلو چم هم درته ښيي ما ورته وويل هو، رسول الله ﷺ حکم کړی دی چي په بيت الخلاء کي مخ پر قبله مه کښينئ او په راسته لاس استنجاء مه کوئ او په درو ډبرو (ياڅوټو) څخه کم استنجاء مه کوئ او په لوټو کي خوشائي او هډوکي نه وي . مسلم او احمد .

**تشريح** : که چيري د مذهب حقيقت ته وکتل سي نو دا خبره به معلومه سي چي مذهب او دين په اصل کي د يو پوره ضابطه حيات او کامل دستور نوم دی د ژوند د نظام په کوم کي چي انسان په دين او دنيا دواړو ځايو کي د پوره رهبری لاربښود او هدايت کوي.

که څه هم پر خاصو اعتقاداتو باندي څو مخصوص عبادات او د يو څو اعمالو نوم مذهب او دين کښېښودل سي نو هغه نه يوازي دا چي پوره او مکمل مذهب دی بلکه د انساني دماغ اختراعات او نظرياتو ټولګه ده.

اسلام چي پر نورو مذهبونو باندي خپل امتيازي شان لري او پر نورو دينونو باندي لوړتيا او غوره والی لري او پر نورو شريعتونو د پوره والي درجه لري نو هغه د اسلام د همه ګيري (هر اړخيز) او د هغه د شان جامعيت (پوره والی) دی ، مسلمانان خو پرېږده هغوئ خو د هغه اسلام پيروان دي بلکه د دنيا هغه پوهان او عاقلان هم کوم چي د اسلام د اعتقاداتو او احکامو پابند خو نه دي مګر نن سبا پر دې خبره متفق دي چي د دنيا پر ټولو مذهبونو او ددينا په ټولو شريعتونو کي يوازي اسلام يو داسي مذهب او دين دی چي د انسانانو لپاره د ژوند پوره قوانين او نظام او د کائناتو پر شعبه باندي د هداياتو مجموعه ده چي د انساني ژوند د هر

کوچنۍ او غټې مسئلې رهبري کوي.

څرنګه چې اسلام د يوې خوا د اعتقاداتو او نظرياتو په ډيره لوړه کچه د انسانانو او پيريانو رهنمايي کوي او د عباداتو او احکاماتو د لوړ نظام تفوق بخښونکی دی نو د بلې خوا د ژوند د هغه کوچنيو لارو معرفت هم ور بخښي کوم چې د نړيوالو په نزد ادنی دي د کوم په لور چې نور مذهبونه سترګې هم نه پورته کوي.

وګورئ يو بې بصيرته او د عقل او پوهې دښمن مشرک پر مسلمانانو مخصرې کوي چې د شارع اسلام د شان او عظمت هم يوه غوښتنه ده چې هغه هر شي ښيي تر دې چې هغه د تشو او ډکو بولو کولو مسائل او د هغه طريقې ښيي، حضرت سلمان فارسي ﷺ ددې جواب ورکوي چې اې بې خبرو او اې بې عقلانو دا د خندا خبره نه ده د مخصرو ځای نه دی تاسو ته څه معلومه ده چې زموږ سردار پر موږ څومره شفيق دی، پر موږ څومره مهربان دی دا د امت د ډير شفقت او محبت وجه ده چې هغه د ژوند په هره مرحله کې زموږ راهنمائي فرمايي.

د يوې خوا رسول الله ﷺ د توحيد او رسالت عقائد او د لمانځه، روژې، زکوة او حج په ډول د ديني اصولو احکام او مسائل موږ ته ښيي نو بلې خوا ته د تشو او ډکو بولو په ډول د کوچني کوچني شيانو ادبونه هم راښيي او د هدايت او راهنمائي خو دا هغه ځای دی چې د رسول الله ﷺ د ذات د هميه ګيري (هر اړخيزی) ته اشاره کوي.

همدا رنګه رسول الله ﷺ حکم کړی دی چې د تشو او ډکو بولو په وخت کې موږ د قبلې په لور مخ يا شا نه کړو په دې سره د قبلې د احترام بې احترامي راځي.

رسول الله ﷺ فرمايلي دي چې په راسته لاس سره استنجاء و نه کړل سي ځکه چې دغه کار د پاکۍ او نظافت خلاف دی چې په کوم لاس سره خوراک کيږي په هغه لاس سره د مردارۍ صفائي هم وسي، رسول الله ﷺ دغه ته غوره ويلي دي چې په درو لوټو يا ډبرو سره په کم دي استنجاء و نه کړل سي ځکه د صفائي او پاکۍ غوښته داده او رسول الله ﷺ دا هم فرمايلي دي چې د استنجاء په لوټو کې خوشائي وغيره نجاست نه وي چې د پاکۍ حاصلولو پر ځای نوره چټلي رامنځته کيږي او په هډوکي سره استنجاء و نه کړل ځکه چې هډوکي د پيريانو خوراک دي.

| | |
|---|---|
| ﴿۳۴۲﴾ : وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ حَسَنَةَ قَالَ خَرَجَ عَلَيْنَا رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَفِيْ يَدِهٖ الدَّرَقَةُ فَوَضَعَهَا ثُمَّ جَلَسَ فَبَالَ إِلَيْهَا فَقَالَ بَعْضُهُمْ | د حضرت عبدالرحمن بن حسنة ﷺ څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ زموږ په لور تشريف راوړ او (په دغه وخت کې) دده مبارک په لاس کې سپر وو |

انْظُرُوْا إِلَيْهِ يَبُوْلُ كَمَا تَبُوْلُ الْمَرْأَةُ فَسَمِعَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ وَيْحَكَ اَمَا عَلِمْتَ مَا أَصَابَ صَاحِبَ بَنِيْ إِسْرَائِيْلَ كَانُوْا إِذَا أَصَابَهُمُ الْبَوْلُ قَرَضُوْهُ بِالْمَقَارِيْضِ فَنَهَاهُمْ فَعُذِّبَ فِيْ قَبْرِهِ . رواه أبو داود وابن ماجه . ورواه النسائي عنه عن أبي موسى

رسول الله ﷺ هغه سپر پر مخکه کښېښود او بیا یې د هغه مخته تشي بولي وکړې نو د مشرکینو څخه یو کس وویل ده ته وګورئ داسي تشي بولي کوي لکه څرنګه چي ښځي یې کوي ، دا خبره رسول الله ﷺ واورېدل او وه یې فرمایل : پر تاسو دي افسوس وي ایا تا ته دا نه ده معلومه چي د بني اسرائیلو یو سړي ته (عذاب) ورسیدی نو بني اسرائیلو چي به بولي وکړې او د هغوئ پر بدن یا جامو به بولي و لګېدلې نو هغه به یې په غچي سره پرې کوی، په بني اسرائیلو کي یوه سړي ددې حکم منلو څخه ډډه وکړه نو هغه د قبر په عذاب اخته سو (ابوداؤد ، ابن ماجه، نسائي د هغه څخه هغه د ابو موسی څخه روایت کړی دی .

**تشریح** : د بني اسرائیلو په شریعت کي دا وه که چیري د یو چا پر بدن به نجاست ولګیدی نو د هغه برخي غوښه به یې پرې کول او که پر جامه به نجاست ولګیدی نو د جامې هغه برخه به یې پرې کول ، مګر په هغوئ کي یو سړي د خپل شریعت ددغه حکم منلو څخه انکار وکړ او نور خلک یې هم د داسي کولو څخه منعه کړل په دې وجه هغه د قبر په عذاب کي اخته کړل سو .

دې ته رسول الله ﷺ اشاره وفرمایل چي د بني اسرائیلو د شریعت هغه قاعده که څه هم په شرعي اعتبار سره غوره وه مګر په هغه کي د مال او ځان ضرر وو ځکه نو خلاف عقل او دانائي وه مګر د دې سربیره د شریعت هغه حکم نه منلو او نور خلک د هغه څخه پر منعه کولو باندي چي پر هغه سړي باندي د قبر عذاب نازل کړل سو نو شرم او حیاء نه کول په طریقه اولی د عذاب سبب دی ځکه چي د بولو کولو پر وخت پرده کول او شرم کول نه یوازي دا چي د شریعت غوره شي دی بلکه د عقل او پوهي په اعتبار هم اولی او غوره دی .

﴿۳۴۳﴾: وَعَنْ مَرْوَانَ الْأَصْفَرِ قَالَ رَأَيْتُ ابْنَ عُمَرَ أَنَاخَ رَاحِلَتَهُ مُسْتَقْبِلَ الْقِبْلَةِ ثُمَّ جَلَسَ يَبُوْلُ إِلَيْهَا فَقُلْتُ يَا أَبَا عَبْدِ الرَّحْمٰنِ أَلَيْسَ قَدْ نُهِيَ عَنْ هٰذَا قَالَ بَلْ إِنَّمَا نُهِيَ عَنْ ذٰلِكَ فِي الْفَضَاءِ فَإِذَا كَانَ بَيْنَكَ وَبَيْنَ الْقِبْلَةِ شَيْءٌ يَسْتُرُكَ فَلاَ بَأْسَ . رواه أبو داود .

د حضرت مروان اصفر ﷺ څخه روایت دی چي ما حضرت ابن عمر ﷺ ولیدی چي هغه خپل اوښ د قبلې په لور کښېنوی بیا کښېناست او د اوښ په لور یې تشي بولي وکړې ما ورته وویل اې ابوعبدالرحمن ! ایا رسول الله ﷺ ته ددې څخه نه یې منعه کړی هغه وویل په دې (حکم کي ) ځنګل منعه راغلی دی مګر هر کله چي ستا او د قبلې په منځ کي یو شی وي نو بیا پروا نسته .

**تشريح** : په دغه مسئله کي د عبدالله بن عمر ﷺ دا قول دليل نسي جوړيدای ځکه چي دوئ د رسول الله ﷺ د هغه فعل دليل ونيوی چي ددې باب په لومړي حديث کي ذکر سوی دی چي هغه رسول الله ﷺ قبلې ته شا کړی پر قضا حاجت کولو باندي ليدلی وو او دا په هغه وخت کي ښودل سوی دی چي په دې فعل کي څو احتمالات (شکونه) پيدا کيږي نو شکوک فعل د دليل په توګه وړاندي کول صحيح نه دي، بيا ددې هم وضاحت سوی دی چي د رسول الله ﷺ د ډيرو حديثونو څخه دا ثابته سوې ده چي د تشو او لويو بولو په وخت کي د قبلې طرف ته د مخ يا شا نه کولو حکم عام دی ، په دې کي د ځنګل تخصيص نسته ځکه دامام اعظم رحمة الله عليه مذهب هم دادی چي په دې حکم کي ځنګل او آبادي ټول برابر دي ، د قبلې طرف ته مخ او شا کول هر ځای منعه دي که هغه ځنګل وي صحراء او ميدان وي او که آبادي او کورونه وي .

﴿۳۴۴﴾ :وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا خَرَجَ مِنَ الْخَلَاءِ قَالَ الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ أَذْهَبَ عَنِّيَ الْأَذٰى وَعَافَانِيْ . رواه ابن ماجه

د حضرت انس ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به کله د بيت الخلاء څخه راوتی نو فرمايل به يې : اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ أَذْهَبَ عَنِّيَ الْأَذٰى وَعَافَانِيْ، (ټول تعريفونه الله لره دي چي زما څخه يې د تکليف شی ليري کړ او ما ته يې عافيت راکړ ) ابن ماجه .

**تشريح** : هسي خو که چيري انسان دا غواړي چي هغه د الله تعالى نعمتونه د شمير په دائره کي راولي کوم چي پر هغه د الله تعالى د لوري دي نو دا مشکل نه بلکه ناممکن ده، د زيږېدني څخه تر مرګ پوري د انسان ټول ژوند او د هغه د ژوند يوه يوه لحظه د الله تعالى رحيم او کريم ذات د بې شميره نعمتونو شکر ګزاره ده او دا وجه ده چي هيڅ انسان د الله تعالى د دغه بې شميره او لا محدود نعمتونو شکر کما حقه نسي ادا کولای .

اوس تاسو تشي او ډکي بولي واخلئ دا په ظاهره څومره معمولي شی دی او څومره غير ضروري معلوميږي مګر د يو حکيم او ډاکټر څخه ددې په حقيقت معلومولو سره وګورئ ، يو طبي ماهر به تاسو ته وښيي چي پر دغه معمولي شيانو باندي د انسان د ژوند څومره دار او مدار دی او د انسان د مرګ او ژوند سره ددې څومره اړه ده ، که د يو سړي د يو لږ وخت لپاره بولي بندي سي نو هغه ژوند په خطره کي لويږي او خدای مه کړه که په دغه وخت کي لږ اوږدوالی پيداسي نو بيا د هغه ژوند د مرګ په غيږ کي به وليدل سي، نو ايا دا د الله تعالى عظيم انعام او د هغه لوی فضل او کرم نه دی چي هغه دا تکليف ورکونکی شی د انسان د بدن څخه د لږ لږ وخت وروسته په څومره آساني سره باسي نو دا څنګه ممکن وه چي د الله د رسول

هغه ژبه چي د هغه پر کوچني کوچني نعمتونو باندي هر وخت شکر ادا کولو کي بوخت وه د هغه عظیم الشان نعمت باندي د شکر څخه قاصره وي

دا حدیث ښیي چي رسول الله ﷺ به کله د بیت الخلاء څخه وتی د الله تعالی شکر به یې ادا کوی چي اې رب العالمین ! د دنیا ټول تعریفونه تا لره ښایي د ټول حمد او ثناء وړ ته یې او ولي به نه یې هر کله چي ستا ذات د خپل بندګانو لپاره سراسر لطف او کرم او رحمت او شفقت دی چي د هغه یو ادنا اظهار دا هم دی چي تا دا وخت صرف په خپل فضل او کرم سره یو تکلیف ورکونکی شی زما د بدن څخه خارج کړ او همدارنګه ما ته دي سکون ، اطمینان او عافیت وبخښی .

په ځینو حدیثونو کي د رسول الله ﷺ څخه دا دعاء هم منقول ده چي کله به رسول الله ﷺ د بیت الخلاء څخه وتی نو (الحمد لله الذي اذهب عني ما یؤذیني وابقی علی ما ینفعني) ژباړه : ټول تعریفونه الله تعالی لره ښایي چي زما څخه تکلیف ورکونکی شی لیري کړ او هغه شی پاته وساتی چي زما لپاره ګټور دی .

غذا په هضم کېدو سره پر دوو برخو ویشل کیږي ، یوه لویه برخه هغه وي چي فضله مواد جوړیږي ، دوهمه برخه چي د غذا اصل جوهر دی هغه وینه وغیره کي تبدیل کیږئ پر دې د ژوند بقا منحصره وي، په دغه دعاء کي د غذا دغه دواړو اړخو ته اشاره فرمایل سوې ده که د دغه دواړو نعمتونو یو سړی خیال وکړي نو هغه ته به احساس وسي چي دا د څومره اهمیت وړ ده مګر افسوس چي نن به څومره بې حسه او بې پروا انسانان پیدا کیږي چي د هغوئ په دماغ او شعور کي به د دې تصور هم نه وي .

﴿۳۴۵﴾ : وَعَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ لَمَّا قَدِمَ وَفْدُ الْجِنِّ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ إِنْهَ أُمَّتَكَ أَنْ يَسْتَنْجُوْا بِعَظْمٍ أَوْ رَوْثَةٍ أَوْ حُمَمَةٍ فَإِنَّ اللّٰهَ جَعَلَ لَنَا فِيْهَا رِزْقًا فَنَهَانَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ ذٰلِكَ . رواه أبو داود .

د حضرت ابن مسعود ؓ څخه روایت دی چي کله د پیریانو (یو ډله) د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سول نو رسول الله ﷺ ته یې عرض وکړ اې د الله رسوله ! خپل امت منعه کړه چي هغوئ په خوشایو ، هډوکو او سکارو سره استنجاء نه کوي ځکه په دې شیانو کي الله تعالی زموږ رزق ایښی دی نو رسول الله ﷺ د دغه شیانو د استعمال څخه منعه وفرمایل . ابوداؤد .

**تشریح** : هډوکي د پیریانو خوراک دی چي د هغه څخه هغوئ غذا تر لاسه کوي همدارنګه

خوشائي د هغوئ د حيوانانو خوراک دی ، د سکرو څخه هم پيريان ګټه اخلي مثلا په سکارو سره خوراک وغيره پخوي يا په هغه سره رڼا کوي ځکه نو هغه هم په رزق کي شميرل سوي دي .

# بَابُ السِّوَاكِ

## (د مسواک وهلو بيان)

مسواک وهل د ټولو علماؤ په اتفاق سره سنت دی مګر د حنفيه په نزد په خاصه توګه د اوداسه لپاره او د امام شافعي رحمة الله عليه په نزد د اوداسه او لمانځه په وخت کي مسواک وهل سنت دی او د سهار او ماپښين دلمانځه څخه مخکي هم د مسواک وهلو ډير تاکيد سوی دی .

په مسواک وهلو کي ډير خير، برکت او فضيلت دی ، علماء ليکي چي د مسواک وهلو په فضيلت کي څلوېښت حديثونه راغلي دي ، بيا نه يوازي دا چي مسواک وهل د ثواب باعث دی بلکه د دې څخه په بدني توګه هم ډيري ګټي تر لاسه کيږي ، په مسواک وهلو سره خوله پاکه وي ، په خوله کي بدبوئي نه پيدا کيږي ، غاښونه سپين او ځلانده وي په وريو کي قوت پيدا کوي او غاښونه ټينګوي .

مسواک وهل په هر وخت کي مستحب او غوره دی مګر په ځينو حالتونو کي ددې ارزښت ډير زياتيږي مثلا د اوداسه په وخت کي ، د قرآن کريم د ويلو په وخت کي ، پر غاښونو ژړولی او خيري ختلو په وخت کي ، د خوب په وخت او يا د بدبويه شي د خوړلو څخه وروسته مسواک وهل مستحب او غوره دی .

د مسواک وهلو څو ادبونه او طريقې دي ، علماء ليکي چي په يو مجلس او مجمع کي داسي مسواک وهل چي د خولې څخه ناړي بهيږي مکروه دی په خاصه توګه د علماؤ ، بزرګانو سره نژدې داسي مسواک وهل مناسب نه دی .

مسواک د ترخې درختي مثلا نيم وغيره څخه بايد وي، د پيلو درختي مسواک زيات غوره دی ، په حديثونو کي هم د پيلو د مسواک ذکر راغلی دی . امام نووي رحمة الله عليه فرمايي چي مستحب دادی چي د پيلو مسواک ووهل سي، د مسواک سر د خچني ګوتي په ډول پکار دی او د مسواک اوږدوالی يوه لويشت پکار دی ، مسواک د غاښونو په پلن والي باندي کول پکار دی په اوږدوالي يې کول نه دی پکار ځکه چي په داسي کولو سره ورى خرابيږي ، د

مسواک وهلو په اړه د اکثرو علماؤ رایه داده چي کله اودس پیل کړل سي نو د خولې پریوللو په وخت کي مسواک وهل پکار دی مګر د ځیني علماؤ رایه داده چي د اوداسه کولو څخه مخکي مسواک وهل پکار دی ، په مسواک وهلو کي مستحب دادی چي مسواک د راسته خوا څخه پیل کړل سي.

که د یو سړي سره مسواک نه وي یا غاښونه یې مات وي نو په داسي حالت کي د لاس په ګوتي سره غاښ یا وریه پاکول پکار دي او یا داسي که د مسواک نرم کولو لپاره یو ډبره وغیره پیدا نه سي او په داسي صورت کي مسواک وهل ممکن نه وي نو غاښونه باید په داسي شي پاک کړل سي چي د خولې بدبویي لیري کړل سي یا یوازي په ګوته سره دي صفا کړي.

## الفصل الاول

﴿۳۴۶﴾ : وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قال قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَوْلاَ أَنْ أَشُقَّ عَلَى اُمَّتِيْ لأَمَرْتُهُمْ بِتَأْخِيْرِالْعِشَاءِ وَ بِالسِّوَاكِ عِنْدَ كُلِّ صَلاَةٍ (متفق عليه)

د حضرت ابوهریرة ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : که ما پر خپل امت دا خبره ګرانه نه ګڼلای نو حکم به مي کړی وای چي د ماخستن لمونځ ناوخته کوي او د هر لمانځه لپاره دي مسواك وهي . بخاري او مسلم .

**تشریح** : د ماخستن لمونځ ناوخته کول او د هر لمانځه دپاره مسواک وهل مستحب او د ډیر فضیلت خبره ده ، دې خبري ته دا حدیث اشاره کوي چي رسول الله ﷺ وفرمایل که زما سره ددې بیره نه وای چي زما امت به په تکلیف کي اخته سي نو ما به دا فرض کړې وای چي ټول مسلمانان دي د ماخستن لمونځ ناوخته کوي ، اوس د ناوخته کولو حد څه دی ؟ په دې اړه د امام شافعي رحمة الله علیه څخه پرته د جمهورو رایه داده چي دریمه برخه د شپې یا تر نیمي شپې پوري د ماخستن کول مستحب دی .

دوهمه خبره رسول الله ﷺ د مسواک په اړه فرمایلې ده که په دې اړه د تنګی او مشکل بیره نه وای نو ما به ددې خبري اعلان کړی وای چي د هر لمانځه پر وخت یعني د هر لمانځه د اوداسه پر وخت مسواک کول فرض دي .

مګر رسول الله ﷺ د امت په اړه سر تر پایه رحمت او شفقت دی ځکه نو دغه شیانو ته یې د فرض درجه ور نه کړل چي د فرض کېدو په مشکل کي به د تنګی او سستی په وجه پر دغه

فرضو باندي عمل ونه کړلای سي ، په نتیجه کي په ګناه ګار سي ځکه نو هغه يې مستحب وګرځول ، که يو سړی په دې عمل ونه کړي نو پر هغه به څه سزا نه وي، او که د الله تعالى يو بنده په دې عمل وکړي نو دا به د هغه په حق کي د سعادت او نیک بختۍ خبره وي.

﴿۳۴۷﴾: وَعَنْ شُرَيْحِ بْنِ هَانِئٍ قَالَ سَأَلْتُ عَائِشَةَ قُلْتُ بِأَيِّ شَيْءٍ كَانَ يَبْدَأُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا دَخَلَ بَيْتَهُ قَالَتْ بِالسِّوَاكِ (رواه مسلم)

د حضرت شریح بن هاني ﷺ څخه روایت دی چي ما د بي بي عائشې (رض) څخه پوښتنه وکړه چي رسول الله ﷺ کور ته د راتللو په وخت تر ټولو لومړی څه کار کاوه؟ هغې وویل د ټولو مخکي به يې مسواك واهه. مسلم

**تشریح** : د رسول کریم ﷺ عادت مبارک وو چي کله به يې کور ته تشریف راوړ نو تر ټولو مخکي به يې مسواک وهی او دا د رسول الله ﷺ د مزاج اقدس د ډیر نظافت او پاکۍ دلیل وو که چیري په مجلس کي په پټه خوله ناسته یا د خلکو سره د خبرو اترو کولو په وجه په خوله کي څه تغیر راغلی وي نو هغه لیري سي.

که د رسول الله ﷺ پر دغه مبارک کار باندي نظر واچول سي نو دلته هم د امت تعلیم مخته راځي چي خلکو ته پکار ده چي د خپل کورنۍ سره په ډیره پاکي او صفائي سره و اوسیږي تر دې چي په خپل منځ کي د خبرو اترو کولو او يو ځای کېدو لپاره مسواک ووهي چي ثوک د خولې بدبويي د تغیر په وجه تکلیف محسوس نه کړي.

د مسواک د فضیلت ددې څخه اندازه لګیږي چي منقول دي د مسواک کولو اویا ګټي دي چي په هغو کي تر ټولو ادنی او د کمې درجې ګټه داده چي مسواک وهونکی سړی د مرګ په وخت کي کلمه شهادت یاد ساتي چي د هغه په وجه د هغه خاتمه په خیر وي ، بالکل همداسي د افیم (تریاکو، چرسو وغیره) خوړلو اویا تاوانونه دي چي په هغو کي تر ټولو ادنا او کم تاوان دادی چي افیم خوړونکی سړي څخه د مرګ په وخت کي کلمه شهادت هیر سي . العیاذ بالله.

علامه ابن حجر رحمة الله علیه فرمايي چي د هر سړي لپاره دا تاکید دی چي کله په کور کي داخل سي نو هغه ته پکار ده چي تر ټولو مخکي مسواک ووهي ځکه چي په دې سره په خوله کي خوشبوئي پیدا کیږي چي په هغه سره د کورنۍ سره په ښه چلن کي زیاتوب کیږي.

﴿۳۴۸﴾ :وَعَنْ حُذَيْفَةَ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا قَامَ لِلتَّهَجُّدِ مِنَ اللَّيْلِ يَشُوصُ فَاهُ

د حضرت حذیفة ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله به د شپې د تهجد دلمانځه لپاره راکښېنستی نو

بِالسِّوَاكِ (متفق علیه) | خوله مبارکه به یې په مسواك وهل او پریولل به

یې .بخاري اومسلم .

﴿۳۴۹﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَشْرٌ مِنَ الْفِطْرَةِ قَصُّ الشَّارِبِ وَإِعْفَاءُ اللِّحْيَةِ وَالسِّوَاكُ وَاسْتِنْشَاقُ الْمَاءِ وَقَصُّ الْأَظْفَارِ وَغَسْلُ الْبَرَاجِمِ وَنَتْفُ الْإِبْطِ وَحَلْقُ الْعَانَةِ وَانْتِقَاصُ الْمَاءِ يَعْنِي الْاِسْتِنْجَاءَ قَالَ الرَّاوِيْ وَنَسِيتُ الْعَاشِرَةَ إِلاَّ أَنْ تَكُونَ الْمَضْمَضَةَ . (رواه مسلم) وفي رواية الختان بدل اعفاء اللحية لم اجد هذه الرواية في الصحيحين ولا في كتاب الحميدي ولكن ذكرها صاحب الجامع وكذا الخطابي في معالم السنن عن ابي داؤد برواية عمار بن ياسر.

د حضرت عائشې (رض) څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل : لس شیان د فطرت دی (یعني د دین لس خبري دي) ۱: د بریتو کوچني کول ۲: ږیره لویول ۳: مسواك وهل ۴: په پزه کي اوبه اچول ۵: نوکان پرې کول ۶: د ګوتو بندونه پریولل ۷: د بغلو وربښتان کنبل ۸: تر نامه لاندي وربښتان خریل ۹: په استنجاء کي لږ اوبه تویول. ۱۰: راوي وایي لسمه خبره زما څخه هیره سوه کیدای سي هغه خوله پریولل وي. (مسلم) او په یوه روایت کي د ږیري لویولو پر ځای ختنه (سنتول) الفاظ دي ما دا روایت نه خو په صحیحین کي او نه د حمیدي په کتاب کي لیدلی دی مګر دې لره صاحب د جامع او دا ډول خطابي په معالم السنن کي د ابوداؤد څخه په روایت د عمار بن یاسر ذکر کړی دی .

**تشریح** : په دغه حدیث کي چي د کومو لسو شیانو ذکر سوی دی دا ټول شیان د مخکنیو ټولو انبیاؤ علیهم السلام په شریعتونو کي سنت وه او د رسول الله ﷺ په راوړي شریعت یعني دین اسلام کي هم سنت دي د اکثرو علماؤ په نزد د فطرت همدغه معنا ده، په نورو شرحو کي ددې څخه پرته د علماؤ نور اقوال هم منقول دي مګر د اوږدوالي په وجه دلته ټول ذکر نه کړل سول .

۱. لومړنی شی د شونډو وربښتان یعني د بریتو کوچني کول ، په دې اړه مختار مذهب دادی چي بریتونه دي په غچي سره کوچني کړل سي په داسي توګه چي د شونډو غاړه معلومه سي، د امام اعظم رحمة الله علیه یو روایت دادی چي بریتونه د ورځو په اندازه ساتل پکار دي ، البته غازیانو او مجاهدینو ته اوږده بریتونه ساتل جائز دي ځکه چي اوږده بریتونه ددښمن په نظر کي د بیري باعث وي او په دې سره په هغوئ کي رعب پیدا کیږي ، د بریتونو دومره زیات کوچني کول چي د هغو نښه هم پاته نسي یعني بالکل خریل دا مکروه دي بلکه د ځینو علماؤ په نزد دا حرام دي مګر ځینو علماؤ دې ته هم سنت ویلي دي .

۲. دوهم شی د ږیري اوږدول دي: په دې اړه د علماؤ فیصله داده چي د ږیري اوږدوالی د یوه موټ په اندازه کېدل ضروري دي ، ددې ځخه کمېدل نه دي پکار که د موټ ځخه زیاته هم وي نو جائز ده په دې شرط چي د اعتدال د حد ځخه زیاته نسي . ږیره خریل یا کوچنی کول حرام دي ځکه چي دا د اکثر مشرکینو مثلا انګریزانو او هندوانو طریقه ده ، داسي خریلې یا کوچنی کړې ږیره د هغه خلکو طریقه ده چي د هغوئ ددین هیڅ برخه په نصیب نه ده چي د هغوئ شمیر په بې دینه ډله کي کیږي، د ږیري وریښتان د یوه موټ په اندازه پرېښودل واجب دي ، دې ته سنت ځکه ویل سوي دي چي ددې ثبوت د سنت ځخه دی ځرنګه چي د اختر لمانځه ته سنت وایي حال دا چي د اختر لمونځ واجب دی . که په اوږدالي یا پلن والي کي یو څه وریښتان په وړاندي کېدو سره بې ترتیبه سي نو د هغه په غېچي سره برابرول جائز دي مګر غوره داده چي هغه هم غېچي نه کړل سي ، که د یو بنځي ږیره راسي نو هغې ته د ږیري صفا کول مستحب دي .

۳. دریم شی مسواک دی، ددې په اړه مخکي ښودل سوي دي چي مسواک وهل په اتفاق سره د علماء سنت دی بلکه داؤد ځو-دې ته واجب ویلي دي ، شاه اسحاق صاحب تر دې هم زیاته خبره کړې ده چي که چیري یو سړی په قصد سره مسواک پریږدي نو د هغه لمونځ باطل دي .

۴. ځلورم شی په پزه کي اوبه اچول دي، ددې مسئله داده چي د اوداسه لپاره اوبه اچول پکښي مستحب دي او د غسل لپاره په پزه کي اوبه اچول فرض دي ، همدا حکم د خولې پریوللو هم دی چي په اوداسه کي خوله پریولل سنت او په غسل کي فرض ده .

۵. پنځم شی نوکان پریکول دي، نوکان چي په هر ډول سره پریکړل سي نو سنت ادا کیږي ، مګر اولی او غوره داده چي د نوکانو پریکولو په وخت کي دا طریقه اختیار کړل سي چي تر ټولو مخکي د راسته لاس د شهادت د ګوتي نوک پریکړل سي د هغه ځخه وروسته د منځنۍ ګوتي او د هغه ځخه وروسته د پسې ګوتي او بیا د خچۍ ګوتي او بیا وروسته د بټې ګوتي نوک پریکړل سي، ددې ځخه وروسته د چپه لاس د ګوتو نوکان همداسي پریکړل سي چي تر ټولو مخکي د خچۍ ګوتي د هغه ځخه وروسته د پسې ګوتي او د هغه وروسته د منځنۍ ګوتي د هغه وروسته د شهادت د ګوتي او بیا د بټې ګوتي نوکان پریکړل سي ، ځینو علماؤ دا طریقه هم لیکلې ده چي تر ټولو مخکي دي د راسته لاس د

شهادت د ګوتي څخه نوکان پرېکول پیل کړي او پر خچې ګوته په رسیدو سره دي بس کړي ، بیا د چپه لاس د خچې ګوتي څخه دي پیل کړل سي او د هغه بټې ګوتي په رسیدو سره دي د راسته لاس پر بټه ګوته دي ختم کړل سي . همدارنګه د پښو نوکان هم دا ډول پرېکول پکار دي چي لومړی دی د راسته پښې د خچې ګوتي څخه پرېکول پیل کړل او په آخر کي دي د چپه پښې پر خچې ګوته باندي ختم کړل سي . ځیني علماؤ دا هم لیکلي دي چي د جمعې په ورځ نوکان پرېکول مستحب دي ، ځینو حضراتو د نوکانو په پرېکولو سره هغه په مځکه کي ښخولو ته مستحب ویلي دي که نوکان وغورځول سي نو هم هیڅ پرواه نسته مګر هغه په بیت الخلاء یا د غسل په ځای کي غورځول مکروه دي .

۶. شپږم شی براجم یعني د بندونو ځایونه پرېولل ، براجم د ګوتو بندونو ته وایي او پر دې سربیره پوست چي ګونجې وي په هغه کي اکثر خیري جمع وي په خاصه توګه کوم خلک چي په لاس سره کار زیات کوي د هغوئ ګوتي سختي وي او په هغه کي خیري جمع کیږي نو د هغه د پرېوللو تاکید کیږي همداسي د بدن هغه اندامونه چي په هغه کي د خیري جمع کېدو ګمان وي لکه غوږ، بغل، نو او داسي نور د هغو هم د پرېوللو حکم دی .

۷. اووم شی د بغل وریښتان صفا کول ، په دې اړه لفظ د نتف استعمال سوی دی ، نتف د وریښتانو کښلو ته وایي ، ددې څخه معلومه سوه چي د بغل وریښتان خریل سنت نه دي بلکه په لاس سره کښل یې سنت دي مګر ځینو علماؤ لیکلي دي چي د بغل وریښتان کښل هغه سړي ته غوره دي چي د هغه تکلیف زغملای سي کنه د بغل وریښتان خریل یا په بل شي سره پاکول هم جائز دي .

۸. اتم شی د نامه لاندي وریښتان خریل ، دا هم سنت دي ، د نامه لاندي وریښتان که د خریلو پر ځای وکښل سي یا په پاوډر وغیره سره صاف کړل سي نو هغه هم په دې حکم کي شامل دي ، مګر په غځي کولو سره سنت نه ادا کیږي ، د مقعد (د شا شرمګاه) شاوخوا چي کوم وریښتان وي د هغه صاف کول هم مستحب دي . د ځینو روایتونو څخه معلومیږئ چي رسول الله ﷺ به د نامه لاندي وریښتان په نوره[۱] سره صفا کول، د ښځو لپاره د نامه لاندي وریښتان کښل غوره دي ځکه چي په دې سره خاوند ته شوق زیاتیږي او په ښځه کي

---

[۱] - نوره یو ډول مرکب شي ته وایي چي د چونې وغیره په یو ځای کولو سره جوړیږي چي په هغه سره به وریښتان لیري کېدل

نفساني خواهش او شهوت ۹۹ برخې وي او په سړي کې یوه برخه وي او دا فیصله ده چې د نامه لاندي وریښتانو په کښلو سره شهوت کمیږي او په خریلو سره قوي کیږي نو د ښځې لپاره مناسب دادي چې هغه وریښتان وکاږي او د سړي لپاره مناسب دادي چې هغه وریښتان وخریي ، د نامه لاندي وریښتانو خریلو ، د بغل د وریښتانو کښلو ، د بریتو د غچي کولو او د نوکانو د پرېکولو زیات وخت څلوېښت ورځې کیدل پکار دي تر دې زیات وخت پوري پرېښودل یې مکروه دي .

۹. نهم شی اوبه کمول یعني په اوبو سره استنجاء کول، د (انتقاص الماء) دوه مطلبه دي یو خو دا چې کوم راوي بیان کړی دی یعني په اوبو سره استنجاء کول ، په استنجاء کي اوبه مصرفیږي او کمیږي ځکه نو انتقاص الماء ورته ویل سوي دي ، دوهمه معنا یې داده چې د اوبو استعمال یعني د استنجاء کولو په وجه بولي کمول، مطلب دادی چې په اوبو سره د استنجاء په وجه د بولو څاڅکي بند سي نو په دا ډول په بولو کي کمي کیږي، په یو بل روایت کي د انتقاص پر ځای د انتقاض لفظ راغلی دی ، د هغه معنا ده د ستر سربیره اوبه پاشل ، لکه څرنګه چې په مخکي حدیثونو کي تیر سوي دي ، په هر حال دا دواړه شیان هم سنت دي ، ختنه (سنتول) د امام شافعي رحمة الله علیه په نزد واجب دي ، د اکثرو علماؤ په نزد سړي او ښځي دواړو ته ختنه کول سنت دی ، او دامام اعظم رحمة الله تعالی علیه په نزد سړي ته ختنه کول سنت دي او ښځي ته مکرمة یعني غوره دي .

ختنه (سنت کول) د اسلام د نښو څخه ده ، ځکه نو که چیري د یو ښار ټول خلک ختنه کول پریږدي نو د وخت امام ته د هغوئ سره جنګ کول پکار دي تر دې چې هغه خلک د اسلام دغه شعار اختیار کړي لکه څرنګه چې دآذان وغیره په باره کي دي، د ختنه کونکي په عمر او د وخت په ټاکنه کي د علماؤ اختلاف دی، د ځینو په نزد د زیږیدني په اوومه ورځ ختنه کول پکار دي لکه څرنګه چې عقیقه اوومه ورځ وي، د ځینو حضراتو په نزد تر اوو کالو پوري او د ځینو په نزد تر نهو کالو پوري وخت دی، ځیني علماء وایي چې په دې کي څه قید نسته کله چې هم وخت او موقع وي نو ختنه کیدای سي ، د امام اعظم رحمة الله علیه په نزد په دې صورت کي د بلوغ څخه مخکي ختنه کول شرط خاص دی ځکه چې ختنه کول سنت دي او د بالغ کېدو څخه وروسته د ستر پټول واجب دي ځکه که یو سړی د بالغ کېدو څخه وروسته ختنه وکړي نو هغه د یو سنت ادا کولو لپاره واجب پرېښودل ، حال دا چې د سنت د ادا کولو لپاره د واجب پرېښودل جائز نه دي .

## الفصل الثاني

﴿۳۵۰﴾: عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلسِّوَاكُ مَطْهَرَةٌ لِّلْفَمِّ مَرْضَاةٌ لِلرَّبِّ . رواه الشافعي وأحمد والدارمي والنسائي ورواه البخاري في صحيحه بلا إسناد .

د حضرت عائشې (رض) څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: مسواك د خولې د پاكولو سبب او د پرودرگار د رضا باعث دی (شافعي، احمد، دارمي، نسائي) بخاري پرته د سند څخه په خپل صحيح كي روايت كړی دی.

﴿۳۵۱﴾: وَعَنْ اَيُّوْبَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَرْبَعٌ مِنْ سُنَنِ الْمُرْسَلِيْنَ الْحَيَاءُ وَ يُرْوَي الْخِتَانُ وَالتَّعَطُّرُ وَالسِّوَاكُ وَالنِّكَاحُ. رواه الترمذي

د حضرت ايوب ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: څلور شيان د پيغمبرانو په طريقه كي دي :۱: حياء كول ( د حياء پر ځای په يو بل روايت كي د ختنې (سنتېدو) الفاظ دي ). ۲:خوشبويي لگول ۳: مسواك وهل ۴: نكاح كول . ترمذي .

**تشريح** : د رسول كريم ﷺ دا ارشاد فرمايل چي څلور شيان د رسولانو د طريقو څخه دي ، دا د اكثر په اعتبار دی ځكه چي ځيني انبياء عليهم السلام داسي هم وه چي د هغوئ په نزد په دې كي هيڅ شی نه وو مثلا حضرت يحيى ﷺ نكاح نه وه كړې .

دلته د حياء څخه مراد دادی چي بنده خپل نفس د بدی څخه بيل وساتي او د خرابو خبرو څخه ځان وساتي ، د ځينو روايتونو څخه معلوميږي چي حضرت آدم ﷺ، حضرت شيث ﷺ، حضرت نوح ﷺ، حضرت هود ﷺ، حضرت صالح ﷺ ، حضرت لوط ﷺ، حضرت شعيب ﷺ، حضرت يوسف ﷺ، حضرت موسى ﷺ، حضرت سليمان ﷺ، حضرت زكريا ﷺ ، حضرت عيسى ﷺ، حنظله بن صفوان چي د اصحاب الرس نبي وو ، او رسول الله ﷺ مختون (سنت كړل سوي) دې دنيا ته تشريف راوړی وو يعني دا ټول انبياء او رسولان سنت سوي پيدا سوی وه .

د رسول الله ﷺ په اړه د ځينو علماؤ قول چي د پيدا كېدو څخه وروسته سنت سوی دی ، د رسول الله ﷺ د نظاقت او لطافت پر لوړ او اعلى مقام باندي دلالت كوي، د رسول الله ﷺ خوشبوئي ډيره خوښه وه ، منقول دي چي رسول الله ﷺ به د خوشبوئي لپاره مشك استعمالول .

په شريعت محمدي كي د نكاح ډير زيات ازربنت دی تر دې چي د نكاح د خپل سنت گرځولو

سره ددې خبري اعلان يې هم کړی دی چي کوم سړی زما د سنت څخه مخ واړوي يعني نکاح ونه کړي نو هغه زما د امت څخه نه دی.

علامه ابن حجر رحمة الله عليه فرمايي چي ما د نکاح ذ فضائلو او مناقبو په اړه چي کوم منقول حديثونه راجمع کړي دي د هغو شمير تر سل زيات دی.

﴿۳۵۲﴾ : وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لاَ يَرْقُدُ مِنْ لَيْلٍ وَلاَ نَهَارٍ فَيَسْتَيْقِظُ إِلاَّ يَتَسَوَّكُ قَبْلَ أَنْ يَتَوَضَّأَ . رواه أحمد وأبو داود .

د حضرت عائشي (رض) څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به نه بيديدئ په شپه او ورځ کي مگر چي د خوب څخه به کښېنستی نو د اودس کولو څخه مخکي به يې مسواك واهه . احمد . ابوداؤد

**تشريح** : د دغه حديث څخه معلومه سوه چي نبي کريم ﷺ د ورځي هم د قيلولې (غرمې) پر وخت آرام کوي، په ورځ کي لږ بېده کېدل او د قيلولې (غرمې) بېده کېدل او د غرمې په وخت کي آرام کول سنت دي ځکه چي ددې په وجه د شپې د الله تعالی د عبادت لپاره را پورته کېدل آسان وي څرنگه چي د پيشلمي په خوړلو سره روژه آسانه کيږي ، ددې حديث څخه دا هم معلومه سوه چي د خوب څخه د پورته کېدو وروسته مسواک وهل سنت مؤکده دی ځکه چي د خوب په وجه په خوله کي تغير پيدا کيږي او په بوی کي فرق راځي ځکه نو په مسواک وهلو سره خوله صفا کيږي .

اوس په دې کي احتمال دی چي رسول الله ﷺ به د بيا اودس کولو لپاره دوهم وار مسواک وی که يا، کېدای سي چي پر هغه مسواک باندي اکتفاء کول او د اوداسه په وخت کي يې دوهم وار مسواک نه وهي او دا هم ممکن ده چي د اوداسه دارادې په وخت کي يا په اوداسه کي دخولې پريوللو په وخت کي يې دوهم وار هم مسواک وهی . والله اعلم .

﴿۳۵۳﴾: وَعَنْهَا قَالَتْ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسْتَاكُ فَيُعْطِيْنِي اَلسِّوَاكَ لِأَغْسِلَهُ فَأَبْدَأُ بِهِ فَأَسْتَاكُ ثُمَّ أَغْسِلُهُ وَأَدْفَعُهُ إِلَيْهِ . رواه أبو داود .

د حضرت عائشي (رض) څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به مسواك ووهه نو بيا به يې ماته راکړ چي زه هغه پرېولم نو اول به ما په هغه خپله مسواك وواهه او بيا به مي پرېولی رسول الله ﷺ ته به مي ورکړ. ابوداؤد .

**تشريح** : دا حديث ددې خبري دليل دی چي د مسواک وهلو څخه وروسته د مسواک پريولل مستحب دي، ابن همام فرمايي چي مستحب دادي چي درې واره مسواک ووهل سي او هر وار په اوبو سره پريولل سي چي خيره ځيني ليري سي او دا چي مسوک نرم کېدل هم پکار دي .

بي بي عائشې رضي الله عنها به د رسول الله ﷺ څخه د مسواک اخیستلو وروسته د هغه د پریوللو څخه مخکې په خپله خوله کې ځکه وهی چې د رسول الله ﷺ د ناړو مبارک برکت ورته تر لاسه سي ، او بیا د هغه په پریوللو سره به یې رسول الله ﷺ ته ورکوی که چیرې مسواک به یې پوره نه وو وهلی نو پوره به یې کړی .

دا حدیث پر دې خبره هم دلالت کوي چې د یو چا مسواک د هغه په رضا سره استعمالول مکروه نه دي او ددې څخه دا هم معلومه سوه چې د صالحینو او بزرګانو د ناړو وغیره څخه برکت تر لاسه کول ښه خبره ده .

## الفصل الثاني

﴿۳۵۴﴾ : عَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ أَرَانِي فِي الْمَنَامِ أَتَسَوَّكُ بِسِوَاكٍ فَجَاءَنِيْ رَجُلَانِ أَحَدُهُمَا أَكْبَرُ مِنَ الْآخَرِ فَنَاوَلْتُ السِّوَاكَ الْأَصْغَرَ مِنْهُمَا فَقِيلَ لِي كَبِّرْ فَدَفَعْتُهُ إِلَى الْأَكْبَرِ مِنْهُمَا . متفق عليه

د حضرت ابن عمر ﷛ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل : ما په خوب کې ولیدل چې زه مسواك وهم ما لره دوه خلك راغلل په هغو کې یو د بل څخه لوی وو ما په هغوئ کې کوچني ته د مسواك ورکولو اراده وکړه چې ما ته وویل سول چې لوی ته یې ورکړه نو ما په هغوئ کې لوی ته مسواك ورکړ . بخاري او مسلم .

**تشریح** : د دې حدیث څخه د مسواک د فضیلت او غوره والي اظهار کیږي ځکه چې مشر ته د ورکولو حکم پر دې خبره دلالت کوي چې دا یو افضل او غوره شی دی ځکه نو مشر چې د کشر څخه افضل او اعلی وو هغه ته د ورکولو حکم وسو ، دا حدیث دې هم ته اشاره وکړ چې په خوراک وغیره ورکولو ، خوشبوئي لګولو یا داسي نورو شیانو کې پیل د مشر څخه کول پکار دی .

﴿۳۵۵﴾: وَعَنْ أَبِيْ أُمَامَةَ أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَا جَاءَنِيْ جِبْرِيْلُ عَلَيْهِ السَّلَامِ قَطُّ إِلَّا أَمَرَنِيْ بِالسِّوَاكِ لَقَدْ خَشِيْتُ أَنْ أُحْفِيَ مُقَدَّمَ فِيَّ . رواه أحمد .

د حضرت ابوامامة ﷛ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل : هر کله چې ما ته جبرائیل ﷺ راتلی نو ما ته یې د مسواك حکم راکاوه او زه بیرېدم چې (د ډیر مسواك کولو له کبله ) د خپلې خولې د مخ برخه وا نه روم . احمد

**تشریح** : د مسواک د ارزښت او د هغه د فضیلت اندازه ددې څخه معلومیږي چې جبرائیل ﷺ

به كله رسول الله ﷺ ته تشريف راوړی نو رسول الله ﷺ ته به يې د مسواک وهلو حکم ورکوی، ددې حکم په وجه رسول الله ﷺ به زيات مسواک وهی، رسول الله ﷺ دا فرمايي چې د جبرائيل عليه السلام د څو څو واره حکم اود هغه د شدت د تاکيد په وجه زه مسواک دومره زيات وهم چې زما سره دا بيره ده چې د مسواک د زياتوالي په وجه زما خوله ونه وځي.

﴿۳۵۶﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّم لَقَدْ أَكْثَرْتُ عَلَيْكُمْ فِي السِّوَاكِ رواه البخاري.

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل: ما تاسو ته د مسواک په اړه ډير څه بيان کړل. بخاري

**تشريح**: د دې ارشاد مقصد د مسواک ارزښت او فضيلت ښودل دي او ددې يې تاکيد فرمايلی دی چې مسواک زيات وهل پکار دي ځکه يو شی په څو څو واره بيانول ددې خبرې دليل دی چې هغه شی ډير ارزښت او فضيلت لري.

﴿۳۵۷﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسْتَنُّ وَعِنْدَهُ رَجُلَانِ أَحَدُهُمَا أَكْبَرُ مِنَ الْآخَرِ فَأُوْحِيَ إِلَيْهِ فِيْ فَضْلِ السِّوَاكِ أَنْ كَبِّرْ أَعْطِ السِّوَاكَ أَكْبَرَهُمَا. رواه أبو داود.

د حضرت عائشې (رض) څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ مسواک واهه او دوه کسان ورسره وه په هغوئ کي يو د بل څخه لوی وو نو رسول الله ﷺ ته د مسواک په فضيلت کي وحي وسوې چې مسواک مشر ته ورکړه. ابوداؤد.

﴿۳۵۸﴾: وَعَنْهَا قَالَتْ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَفْضُلُ الصَّلَاةُ الَّتِيْ يُسْتَاكُ لَهَا عَلَى الصَّلَاةِ الَّتِيْ لاَ يُسْتَاكُ لَهَا سَبْعِيْنَ ضِعْفًا. رواه البيهقي في شعب الإيمان.

د حضرت عائشې (رض) څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل: هغه لمونځ چې د هغه لپاره مسواک وهل سوی وي پر هغه لمانځه چې د هغه لپاره مسواک نه وي وهل سوی اويا (۷۰) درجې فضيلت لري. بيهقي شعب الايمان کي.

**تشريح**: د دغه حديث څخه د مسواک د فضيلت اظهار کيږي چې د مسواک په وجه د لمانځه په مرتبو او درجو کي کمي او زياتوب کيږي، فرمايل سوي دي که يو سړی يو لمونځ داسي وکړي چې د هغه لمانځه لپاره د اوداسه په وخت کي مسواک ووهي او يو لمونځ يې داسي وکړ چې د هغه لپاره د اوداسه په وخت کي يې مسواک ونه وهی نو لومړنی لمونځ چې د هغه لپاره مسواک وهل سوی دی د هغه لمانځه په مقابله کي چې د هغه لپاره مسواک وهل سوی نه دی د فضيلت

او ثواب په زیاتوب کي به د اویا درجې زیاتي وي ، یعني د دوهم لمانځه په مقابله کي د لومړني ثواب به هغه ته اویا برابر زیات تر لاسه کیږي .

﴿۳۵۹﴾: وَعَنْ اَبِيْ سَلْمَةَ عَنْ زَيْدُ بْنُ خَالِدٍ الْجُهَنِيْ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ لَوْلَا أَنْ أَشُقَّ عَلَى أُمَّتِي لَأَمَرْتُهُمْ بِالسِّوَاكِ عِنْدَ كُلِّ صَلَاةٍ وَلَأَخَّرْتُ صَلَاةَ الْعِشَاءِ إِلَى ثُلُثِ اللَّيْلِ قَالَ فَكَانَ زَيْدُ ابْنُ خَالِدٍ يَشْهَدُ الصَّلَوَاتِ فِي الْمَسْجِدِ وَسِوَاكُهُ عَلَى أُذُنِهِ مَوْضِعَ الْقَلَمِ مِنْ أُذُنِ الْكَاتِبِ لَا يَقُومُ إِلَى الصَّلَاةِ إِلَّا أُسْتَنَّ ثُمَّ رَدَّهُ إِلَى مَوْضِعِهِ. رواه الترمذي وابوداؤد الا انه لم يذكر ولاخرت صلوة العشاء الى ثلث الليل وقال الترمذي هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ .

حضرت ابو سلمة[1] د حضرت زید بن خالد[2] ﷺ څخه روایت دی چي ما د رسول الله ﷺ څخه واورېدل چي فرمایل یې : که ما پر خپل امت ستونزه نه ګڼلای نو هغوئ ته به مي حکم ورکړی وای چي د هر لمانځه لپاره مسواک ووهي او د. ماخستن لمونځ د شپې د دریمي برخي پوري و ځنډوي . راوي وایي د دې وروسته کله چي به زید بن خالد لمانځه ته راتلی نو مسواك به د هغه په غوږ کي وو لکه څرنګه چي قلم اېښودل کیږي ، هغه چي به د لمانځه لپاره درېدی نو سمدستي به یې مسواك واهه او بیا به یې په غوږ کي کېښېښود ، دا ترمذي او ابوداؤد روایت کړی دی خو دا چي ابوداؤد : ولاخرت صلوة العشاء الی ثلث اللیل ، نه دی ذکر کړی او ترمذي ویلي دي چي دا حدیث حسن صحیح دی .

❁❁❁❁

[1] ابوسلمه تابعي دي ، د (۷۲) کالو په عمر کي په کال (۹۴هـ) کي وفات سوی دی .

[2] نوموړی مشهور صحابي دی او کنیت یې ابوعبدالرحمن دی د (۸۵) کالو په عمر د عبدالمالك په زمانه کي په کال (۷۸هـ) کي او د ځینو په نزد د معاویه ﷺ د زمانې په پای کي وفات سوی دی .

# بَابُ سُنَنِ الْوُضُوْءَ

## (د اوداسه د سنتو بيان)

دلته د اوداسه د سنتو څخه مراد د رسول الله ﷺ هغه افعال او اقوال دي چي د اوداسه په اړه د رسول الله ﷺ څخه منقول دي که څه هم د هغه تعلق د اوداسه د فرضونو سره وي يا د سنت سره وي او يا د اوداسه د آدابو سره وي.

## الفصل الاول

﴿۳۶۰﴾: عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قال قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا اسْتَيْقَظَ أَحَدُكُمْ مِنْ نَوْمِهِ فَلاَ يَغْمِسْ يَدَهُ فِي الإِنَاءِ حَتَّى يَغْسِلَهَا ثَلاَثًا فَإِنَّهُ لاَ يَدْرِي أَيْنَ بَاتَتْ يَدُهُ . متفق عليه

د حضرت ابوهريرة ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: هر کله چي په تاسو کي يو څوك د خوب څخه کښيني نو خپل لاس دي د اوبو په لوښي کي نه دننه کوي تر څو پوري چي درې ځله يې پريولی نه وي ځکه چي هغه ته نه ده څرګنده چي د شپې د هغه لاس پر کوم ځای پروت وو. بخاري او مسلم.

**تشريح**: د دې حديث څخه ثابته سوه چي د اوداسه څخه مخکي لاسونه پريولل سنت دي، او کوم چي د خوب څخه د پورته کېدو وروسته قيد دی نو ددې وجه داده چي په عربو کي د اوبو لږوالی وي په خاصه توګه د نبي کريم ﷺ په زمانه کي خو اوبه ډيري لږ وې، ځکه نو اکثرو خلکو به په اوبو سره استنجاء نه کول بلکه په لوټو يا ډبرو سره به يې صفائي کول او دا څرګنده ده چي د ګرمي هواء په وجه په بېده کېدو کي د استنجاء پر ځای خوله راځي په دې صورت کي دا احتمال وي چي د شپې بېده کېدو په وخت کي لاس د استنجاء ځای ته ورسيږي چي په هغه سره لاس مردار سي، څرنګه چي رسول الله ﷺ وفرمايل چي بيده کېدونکي ته دا معلومه نه وي چي د هغه لاس د شپې کوم ځای وو ځکه نو رسول الله ﷺ حکم وکړ چي هر کله يو څوک د خوب څخه راکښيني نو هغه ته پکا رده چي اول خپل لاسونه په اوبو کي نه واچوي بلکه خپل لاسونه دي درې واره پريولي چي په هغه سره لاسونه پاک سي، ددې څخه وروسته دي د لوښي څخه د اوبو په را اخستلو اودس وکړي. په هر حال دلته د خوب قيد خو ددې لپاره دی چي په هغه کي لاسونو ته د نجاست لګېدو احتمال دی کنه هر يو اودس کونکي ته مخکي تر اوداسه کولو درې

واره لاس پريولل پكار دي ځكه چي علماء فرمايي چي دا ډول لاس پريولل د هغه سړي لپاره هم سنت دي چي په بېده كېدو سره نه وي راكښېنستې ځكه چي دلاس پريوللو سبب يعني لاس ته د نجاست او خير و لګېدو احتمال د ويښې په حالت كي هم موجود دی .

د لاس پريوللو دا حكم فرض يا واجب نه دی بلكه د سنت او مستحب په درجه كي دی چي رسول الله ﷺ ددې حكم د احتياط په توګه وركړی دی ، كه يو سړی لاس نه پريولي نو هغه هم پاک دی چي پرته د پريوللو څخه لاس په اوبو كي واچوي نو په هغه سره اوبه ناپاک او چټلې كيږي نه ځكه چي په خوب كي د لاس ناپاک كېدل يقيني نه دي بلكه د احتمال د درجې شی دی ،
مګر امام احمد رحمة الله عليه فرمايي چي په بېده كېدو سره د پورته كېدو څخه وروسته د لاس پريولل واجب دي كه يو سړی د خوب څخه وروسته د لاس پريوللو څخه پرته په اوبو كي لاس ووهي نو اوبه به ناپاكه سي .

﴿۳۶۱﴾: وَعَنْهُ قال قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا اسْتَيْقَظَ أَحَدُكُمْ مِنْ مَنَامِهِ فَتَوَضَّأَ فَلْيَسْتَنْثِرْ ثَلَاثًا فَإِنَّ الشَّيْطَانَ يَبِيتُ عَلَى خَيْشُوْمِهِ (متفق عليه).

د حضرت ابوهريرة ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: هر كله چي په تاسو كي يو څوك د خوب څخه كښېني او د اوداسه كولو اراده وكړي نو درې ځله دي په پزه كي اوبه واچوي او سوڼ دي ېي كړي ځكه چي دده د پزي په هډوكي كي شيطان شپه تيروي . بخاري اومسلم.

**تشريح** : د انسان د پزي پر نرمو ځايو د شيطان اوسيدل او په هغه كي د شپې تيرولو حقيقت څه دی ؟ د دې د حقيقت او كيفيت علم خو الله تعالى او د هغه رسول ته دی، ددې د رموزو او اسرارو د معرفت څخه زموږ عقلونه قاصر دي نو دداسي امورو په اړه چي د هغه خبر شارع ﷺ وركړی دی غوره او اولى طريقه داده چي يوازي د هغوئ د صداقت په تسليمولو سره پر هغه ايمان راوړل سي او د هغه د حقيقت او كيفيت په بيانولو كي سكوت اختيار كړل سي .

ځينو حضراتو ددې ډير په زړه پوري تاويل هم كړی دی ، مثلا دا قاعده ده كله چي انسان بيده سي نو بخارات، ګرد او غبار وغيره په پزه كي جمع كيږي چي د دماغ نژدې برخه ده په دې وجه دماغ چي د حواس او شعور ځای دی مكرد (چټل) كيږي او دا شی د تلاوت قرآن آداب لكه څرنګه چي پكار ده نسي ادا كولای او د هغه د معنى او مطلب په پوهېدو كي مانع كيږي او دا د عبادت په ادا كولو كي د سستۍ باعث هم دی او ظاهره ده چي دا ټول شيان د شيطان د خوښې عين مطابق او د هغه د خوشحاله كولو باعث دي ځكه نو په دې مشابهت سره ويل سوي دي چي

د بيده کېدونکي د پزي سربيره تبوله شپه شيطان ناست وي په هر حال دا احتمالات دي پر دې يو يقيني حکم نسي کيدلای ځکه غوره او اولى طريقه هغه ده چي مخکي ذکر سوې ده.

﴿۳٦۲﴾: وقِيلَ لِعَبْدِاللهِ بْنِ زَيْدِ بْنِ عَاصِمٍ كَيْفَ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَوَضَّأُ فَدَعَا بِوُضُوْءٍ فَأَفْرَغَ عَلَى يَدَيْهِ فَغَسَلَ يَدَيْهِ مَرَّتَيْنِ مَرَّتَيْنِ ثُمَّ مَضْمَضَ وَاسْتَنْشَقَ ثَلَثًا ثُمَّ غَسَلَ وَجْهَهُ ثَلَاثًا ثُمَّ غَسَلَ يَدَيْهِ مَرَّتَيْنِ مَرَّتَيْنِ اِلَى الْمِرْفَقَيْنِ ثُمَّ مسحه رَأْسَهُ بِيَدَيْهِ فَأَقْبَلَ بِهِمَا وَأَدْبَرَ بَدَاءَ بِمُقَدَّمِ رَأْسِهِ ثُمَّ ذَهَبَ بِهِمَا اِلٰى قَفَاهُ ثُمَّ رَدَّهُمَا حَتّٰى رَجَعَ إِلَى الْمَكَانِ الَّذِيْ بَدَءَ مِنْهُ ثُمَّ غَسَلَ رِجْلَيْهِ (رواه مالك والنسائي) وَلِاَبِيْ دَاوُدَ نَحْوَهُ ذَكَرَهُ صَاحِبُ الْجَامِعِ وَفِيْ الْمُتَّفَقْ عَلَيْهِ قِيلَ لِعَبْدِاللهِ بْنِ زَيْدِ بْنِ عَاصِمٍ تَوَضَّأْ لَنَا وُضُوءَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَدَعَا بِإِنَاءٍ فَأَكْفَأَ مِنْهَا عَلَى يَدَيْهِ فَغَسَلَهُمَا ثَلَاثًا ثُمَّ أَدْخَلَ يَدَهُ فَاسْتَخْرَجَهَا فَمَضْمَضَ وَاسْتَنْشَقَ مِنْ كَفٍّ وَاحِدَةٍ فَفَعَلَ ذَلِكَ ثَلَاثًا ثُمَّ أَدْخَلَ يَدَهُ فَاسْتَخْرَجَهَا فَغَسَلَ وَجْهَهُ ثَلَاثًا ثُمَّ أَدْخَلَ يَدَهُ فَاسْتَخْرَجَهَا فَغَسَلَ يَدَيْهِ إِلَى الْمِرْفَقَيْنِ مَرَّتَيْنِ مَرَّتَيْنِ ثُمَّ أَدْخَلَ يَدَهُ فَاسْتَخْرَجَهَا فَمسحه بِرَأْسِهِ فَأَقْبَلَ بِيَدَيْهِ وَأَدْبَرَ ثُمَّ غَسَلَ رِجْلَيْهِ إِلَى الْكَعْبَيْنِ ثُمَّ قَالَ هٰكَذَا كَانَ وُضُوءُ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَفِيْ رِوَايَةٍ فَأَقْبَلَ بِهِمَا وَأَدْبَرَ بَدَأَ بِمُقَدَّمِ

د حضرت عبدالله بن زيد بن عاصم[1] ﷺ څخه پوښتنه وسول چي رسول الله ﷺ به څنګه اودس کاوه، (د ذې په اورېدو سره) عبدالله د اوداسه لپاره اوبه را وغوښتلې او دواړه لاسونه يې پريولل او هغه يې دوه دوه ځله پريولل، بيا يې په خوله اوبه و لغړولې او په پزه کې يې اوبه درې درې ځله واچولې، پزه يې سوڼ کړه بيا يې درې ځله مخ پريولی او دواړه لاسونه تر څنګلو پوري دوه دوه ځله پريولل، بيا يې دواړه لاسونو سره د سر مسحه وکړل، دا ډول چي دواړه لاسونه يې د تندي څخه د څټ طرف ته يووړل او بيا د څټ څخه د تندي طرف ته راوړل، بيا يې دواړي پښې پريوللې. مالك، نسائي او ابوداؤد هم داسي روايت کړی دی او د جامع الاصول د مصنف ذکر يې وکړ، او بخاري او مسلم کي دا روايت داسي دی چي عبدالله بن زيد بن عاصم ته وويل سول چي ته زموږ په وړاندي د رسول الله ﷺ په ډول اودس وکړه، نو هغه د اوبو لوښی را وغوښتی او د هغه لوښي څخه يې اوبه پر خپلو دواړو لاسونو واچولې او هغه يې درې ځله پريولل بيا يې د لوښي څخه د خولې پريوللو لپاره اوبه را واخيستې او په هغه اوبو سره يې خوله پريولل او په پزه کي يې اوبه واچولې او

[1] د نوموړي نوم عبدالله بن زيد بن عاصم دی او په ابن عماره نامه سره مشهور دی کنيت يې ابو محمد دی. د يزيد په زمانه کي په کال (٦۴هـ) کي شهيد سو.

رَأْسِهٖ ثُمَّ ذَهَبَ بِهِمَا إِلٰى قَفَاهُ ثُمَّ رَدَّهُمَا حَتّٰى رَجَعَ إِلَى الْمَكَانِ الَّذِيْ بَدَأَ مِنْهُ ثُمَّ غَسَلَ رِجْلَيْهِ، وَ فِيْ رِوَايَةٍ فَمَضْمَضَ وَاسْتَنْشَقَ وَاسْتَنْثَرَ ثَلَاثًا بِثَلَاثِ غُرُفَاتٍ مِّنْ مَّاءٍ، وَفِيْ رِوَايَةٍ أُخْرٰى فَمَضْمَضَ وَاسْتَنْشَقَ مِنْ كَفَّةٍ وَّاحِدَةٍ فَفَعَلَ ذٰلِكَ ثَلَاثًا، وَفِيْ رِوَايَةٍ لِلْبُخَارِيْ فَمسحه رَأْسَهُ فَأَقْبَلَ بِهِمَا وَأَدْبَرَ مَرَّةً وَّاحِدَةً ثُمَّ غَسَلَ رِجْلَيْهِ إِلَى الْكَعْبَيْنِ، وَفِيْ أُخْرٰى لَهُ فَمَضْمَضَ وَاسْتَنْثَرَ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ مِنْ غُرْفَةٍ وَّاحِدَةٍ

سونړ يې کړه او درې ځله يې داسي وکړل بيا يې د لوښي څخه اوبه واخيستې درې ځله يې مخ پريولی او بيا يې اوبه واخيستې دواړه لاسونه يې دوه دوه ځله تر څنگلو پوري پريولل بيا يې اوبه را واخيستلې د سر مسحه يې داسي وکړه چي دواړه لاسونه يې د تندي څخه د شا طرف ته بوتلل او بيا يې د شا د طرف څخه د مخ طرف ته راوستل بيا يې دواړي پښې تر بجلکو پوري پريولې او ددې وروسته يې وويل د رسول الله ﷺ اودس همدا ډول وو، په يو بل روايت کي د اسي دي چي د مسحه لپاره يې دواړه لاسونه د تندي څخه شاته بوتلل او بيا يې د شا څخه مخ ته راوستل يعني د سر د مخکي حصې څخه يې مسحه پيل کړه او د څټ طرف ته يې لاسونه بوتلل، بيا يې د څټ طرف څخه هلته راوستل د کوم ځای څخه چي يې مسحه پيل کړې وه بيا يې دواړې پښې پريوللې او په يوه روايت کي دا الفاظ دي چي خوله يې پريولل او په پزه کي يې اوبه واچولې او سونړ يې کړه يعني درې ځله په درې ځله اوبه پاشلو سره ، او په يوه بل روايت کي دا الفاظ دی چي خوله يې پريولل او په پزه کي يې اوبه واچولې او په يوه وار اوبه پاشلو سره يې درې ځله داسي وکړل، او د بخاري په يوه روايت کي دا الفاظ دی چي هغه د سر مسحه وکړه او دواړه لاسونه يې د مخ څخه شا طرف ته بوتلل او د شا طرف څخه يې مخ ته راوستل يوازي يو ځل بيا يې دواړې پښې تر څنگلو پوري پريولې ، او په يوه بل روايت کي دا الفاظ دی چي هغه خوله پريولل او په پزه کي يې اوبه واچولې يوازي په يو وار اوبه پاشلو سره درې ځله .

**تشريح** : د دغه حديث شريف د لومړني جز څخه دا معلومه سوه چي عبد الله بن زيد بن عاصم ﷺ لاسونه دوه واره پريولل حال دا چي د رسول الله ﷺ په اړه په نورو روايتونو کي ثابته ده چي لاسونه به يې درې واره پريولل. په دې اړه علماؤ دا تاويل کړی دی چي سنت خو درې واره پريولل دي مگر دوه واره پريولل هم جائز دي ځکه نو عبد الله ﷺ د بيان جواز لپاره خپل لاسونه تر څنگلو پوري دوه واره پريولل چي دا معلومه سي چي دوه واره پريولل هم جائز دي، په دې اړه د مرتين لفظ دوه واره راغلی دی حال دا چي يو وار راوړل کافي وه ، ددې وجه داده که لفظ د مرتين يې يوازي يو وار ذکر کړی وای نو ددې څخه دا وهم پيدا کيدی چي دواړه لاسونه به يې

په متفرق ډول سره دوه واره پريولي وي يعني يو واريې يې يو لاس پريولی او بل واريې بل لاس پريولی نو د وهم څخه د ساتني لپاره يې د مرتين لفظ دوه واره ذکر کړ ددې لپاره چي دا خبره واضحه سي چي د دواړو لاسونو په يو ځای کولو سره يې دوه واره پريولل، د سر د مسحه مستحب طريقه داده چي د دواړو لاسونو د درو درو ګوتو سرونه مخته کښېښودل سي او د دواړو لاسونو بټې ګوتې او د شهادت ګوتې د تلي د سر څخه بيلي کړل سي ، همدارنګه دغه شپږ سره ګوتې شا ته د څټ په لور يوسي بيا دواړه ورغوي د سر وروستنی برخه باندي اېښودلو سره وړاندي راوستل سي ، بيا پر دواړو غوږو پر سربيرنه برخه باندي په دواړو بټو ګوتو سره او د غوږونو په دواړو سوريانو کي د شهادت په ګوتو سره مسحه وکړل سي .

او د متفق عليه څخه وروسته چي کوم روايتونه نقل سوي دي هغه د صاحب مصابيح نقل سوي نه دي بلکه صاحب مشکوة د هغه زياتوب کړی دی ، ددې مطلب دادی چي د ماقبل روايت سربيره ددې چي په بخاري او مسلم کي منقول نه دي مګر صاحب مصابيح هغه په صحاح يعني اول فصل کي نقل کړي دي ځکه مصنف د مشکوة د هغه روايتونو چي په بخاري او مسلم کي منقول دي وړاندي زياتوب کړی دی چي ترتيب صحيح پاته سي .

د بخاري آخري روايت چي د هغه الفاظ ذادي : نو خوله يې پريولل او په يوه لپه سره درې واره اوبه اچولو سره يې پزه سوڼ کړه ، ددې مطلب دا نه دی چي په يو لپه سره يې په پزه کي درې واره اوبه واچولې او هغه يې صفا کړه بلکه درې واره لپاره يې درې لپې هم استعمال کړې .

په دې مسئله کي په دا خبره پوهېدل پکار دي چي د خولې پريوللو او په پزه کي اوبه اچولو په باره کي مختلف حديثونه منقول دي ، په ځينو حديثونو کي خوله پريولل او بيا په درو لپو سره په پزه کي اوبه اچول او په ځينو روايتونو کي په يوه لپه سره فصل او وصل سره منقول دي يعني په درو لپو سره خوله پريولل بيا په درو لپو سره په پزه کي اوبه اچول هم د حديث څخه ثابت دي، او دا دواړه په يوه لپه سره هم ثابت دي ، همدارنګه ددې څو صورتونه دي د امام شافعي رحمة الله عليه مذهب د صحيح قول سره سم دادی چي دا دواړه په درو لپو سره وکړي په ډاسي توګه چي مخکي يوه لپه اوبه واخيستل سي او د هغه څخه په لږ اوبو سره خوله پريولل سي او پاته اوبه په پزه کي واچول سي بيا په دوهمه لپه او دريمه لپه اخيستو سره همداسي وکړي .

د امام اعظم ابو حنيفه رحمة الله عليه مذهب دادی چي هر يو په درو درو لپو سره وکړل سي يعني د خولې پريوللو لپاره درې لپې استعمال کړل سي او بيا په پزه کي د اوبو اچولو لپاره هم

درې لپې بيلې بيلې استعمال کړل سي .

امام اعظم رحمة الله عليه د غه طريقې ته ځکه ترجيح ورکړې ده چې دا د قياس سره سم ده ځکه چې خوله او پزه دواړه بيل بيل اندامونه دي نو ځرنګه چې نور اندامونه په او داسه کې جمع کيدلای نسي همدا رنګه دا دواړه اندامونه به هم نسي جمع کېدلای ، او د اصول فقه دا قاعده ده چې کوم حديث د قياس سره سم وي هغه ته ترجيح ورکول کيږي .

او کوم د شوافع او حنفيه په مذهب کې د تطبيق تعلق دی نو په دې اړه نو شمنې د فتاوی ظهريه څخه دا قول نقل کړی ديچې د امام اعظم رحمة الله عليه په نزد دلته وصل هم جائز دی يعنې د امام شافعې رحمة الله عليه چې کوم مذهب دی هغه د امام اعظم رحمة الله عليه په نزد هم صحيح دی، همداسې د امام شافعي رحمة الله عليه په نزد دلته فصل هم جائز دي يعني کوم مذهب چې د امام اعظم رحمة الله عليه دی هغه د امام شافعي رحمة الله عليه په نزد هم صحيح او جائز دي . او ترمذي د امام شافعي رحمة الله عليه دا قول نقل کړی دی چې د خولې پريوللو او په پزه کې د اوبو اچولو لپاره يوه لپه جمع کول جائز دي مګر زه دا زيات خوښوم چې په دغه دواړو لپاره د بيلو بيلو لپو استعمال وکړل سي ، د دې قول څخه په صراحت سره دا خبره ثابته سوه چې د حنفيه او شوافع مذهب کې څه خاص اختلاف نسته .

| | |
|---|---|
| ﴿۳۶۳﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَبَّاسٍ قَالَ تَوَضَّأَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَرَّةً مَرَّةً لَمْ يَزِدْ عَلَى هٰذَا . رواه البخاري . | د حضرت عبدالله بن عباس ﷺ څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ يو ځل يعني ټول اندامونه يې يو يو ځل پريولل او د دې څخه يې زيات ونه کړل. بخاري |
| ﴿۳۶۴﴾ :وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ زَيْدٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَوَضَّأَ مَرَّتَيْنِ مَرَّتَيْنِ . رواه البخاري . | د حضرت عبدالله بن زيد[1] ﷺ څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ دوه دوه ځله اودس وکړ (يعني ټول اندامونه يې دوه دوه ځله پريولل). بخاري |
| ﴿۳۶۵﴾ : وَعَنْ عُثْمَانَ أَنَّهُ تَوَضَّأَ بِالْمَقَاعِدِ فَقَالَ أَلاَ أُرِيكُمْ وُضُوءَ رَسُولِ اللّهِ صَلَّى اللّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ تَوَضَّأَ ثَلاَثًا ثَلاَثًا . رواه مسلم . | د حضرت عثمان ﷺ څخه روايت دی چې هغوئ د مقاعد په ځای کې اودس وکړ او خلکو ته يې وويل ايا زه تاسو ته د رسول الله ﷺ اودس ونه ښيم |

[1] د نوموړي نوم عبدالله بن زيد بن عبدربه دی او کنيت يې ابومحمد دی . نوموړي انصاري او صحابي دی. د (۶۴) کالو په عمر په کال (۳۲هـ) کې وفات سوی دی .

نو هغه دري دري ځله اودس وکړي (یعني هر اندام یې دري دري ځله پریولل.) مسلم.

**تشریح**: د دغه حدیث څخه معلومه سوه چي رسول الله ﷺ به د اوداسه اندامونه کله یو یو وار، کله دوه دوه واره او کله دري دري واره پریولل او دا خبره هم ثابته ده چي اکثره وخت به یې دري دري واره پریولل.

په دې کي به تطبیق داسي وي چي د رسول الله ﷺ د اندامونو کله یو یو وار پریولل د جواز لپاره وه، یعني ددې څخه دا ښودل مقصد وه چي یو یو وار پریولل هم جائز دي او داسي هم اودس کیږي ځکه چي دا ادنا درجه ده او فرض هم یو یو وار دي، همداسي دوه دوه پریولل هم د بیان جواز لپاره وه چي په داسي توګه هم اودس کیږي او اکثر به یې دري دري واره پریولل چي دا د طهارت انتهائي درجه ده، نو د اوداسه اندامونه دري دري واره پریولل او ځیني وخت یو یو وار پریولل هم ثابت دي نو دا ټولي طریقې د بیان جواز لپاره دي.

د ځینو علماؤ په نزد د اوداسه اندامونه یو یو وار پریولل ګناه ده ځکه چي په داسي کولو سره سنت مشهوره پرېښودل کیږي مګر دا صحیح نه دي ځکه چي هر کله د حدیث څخه یو یو وار پریولل ثابت دي نو دې ته ګناه ویل مناسب نه دي.

د حدیث د آخر دا الفاظ چي دري دري واره یې اودس وکړ یعني د اوداسه اندامونه یې دري دري واره پریولل ددې څخه په ظاهره خو دا مفهوم کیږي چي د سر مسحه به یې هم دري واره کړې وي مګر په کومو روایتونو کي چي د اوداسه د اندامونود پریوللو تفصیل او وضاحت سوی دی لکه څرنګه چي په د صحیحین د روایتونو څخه تیر سوي دي هغه پر دې خبره دلالت کوي چي د سر مسحه یې یوازي یو وار کړې ده.

﴿۳۶۶﴾: وَعَنْ عَبْدِاللهِ ابْنِ عَمْرٍو قَالَ رَجَعْنَا مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ مَكَّةَ إِلَى الْمَدِيْنَةِ حَتَّى إِذَا كُنَّا بِمَاءٍ بِالطَّرِيْقِ تَعَجَّلَ قَوْمٌ عِنْدَ الْعَصْرِ فَتَوَضَّئُوا وَهُمْ عِجَالٌ فَانْتَهَيْنَا إِلَيْهِمْ وَأَعْقَابُهُمْ تَلُوحُ لَمْ يَمَسَّهَا الْمَاءُ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَيْلٌ لِلْأَعْقَابِ مِنَ النَّارِ أَسْبِغُوا الْوُضُوْءَ. رواه مسلم.

د حضرت عبدالله بن عمرو ﷺ څخه روایت دی چي موږ د رسول الله ﷺ سره د مکې څخه مدینې ته ستانه سو تر دې چي موږ اوبو ته ورسیدلو چي په لاره کي وې خلکو د مازدیګر د لمانځه لپاره په اوداسه کي تلوار وکړ کوم وخت چي موږ خلکو ته را ورسیدو نو ګورو چي د هغوئ پوندي وچي وې چي اوبه ورته نه وې رسېدلې نو رسول الله ﷺ وفرمایل: د پوندو لپاره د اور

(ویل) دی اودس پوره کوئ (ویل د دوږخ یوه کنده ده). مسلم.

**تشریح** : رسول کریم ﷺ د صحابه کرامو د ډلي سره د مکې معظمې څخه مدینې منورې ته روان وو ، د سفر په مینځ کي د مازدیګر دلمانځه وخت راغلی، په لاره کي یو ځای اوبو ته نژدې دغه قافله تودرېدل ، ځینو خلکو دا فکر کولو سره چي د مازدیګر وخت کیږئ د اودس کولو لپاره اوبو ته ور مخکي سول ، هغه خلک په تیز تیز تللو سره د هغه ډلي څخه چي په هغه کي خپله رسول الله ﷺ او عبدالله بن عمر ﷺ وغیره هم وه مخته ولاړل ، اوبو ته په رسیدو سره د وخت د تنګۍ په وجه په تلواره یې اودس وکړ ، کله چي رسول الله ﷺ هغوئ ته نژدې سو نو وه یې لیدل چي د تلوار په وجه د هغوئ پښې په پوره توګه نه دي پریولل سوي چي د هغه په وجه باندي وچوالی پاته سوی دی ، په دې وجه رسول الله ﷺ وفرمایل ، چي د پوندو لپاره د اور ویل دی .
ځینو علماؤ د ویل معنی د سخت عذاب لیکلې ده .
د ځینو علماؤ تحقیق دی چي ویل په دوږخ کي د نو او د وینې د یو غره نوم دی ، ځیني محققینو ویلي دي چي ویل یوه داسې کلمه ده چي غمجن سړی یې وایي او په اصل کي ددې معنا دهلاکت او عذاب ده .

په هر حال دا ټولي معناوي په نظر کي ساتلو سره مناسب او صحیح دادي چي ددې لفظ محمل اصل قرار وګرځول سي یعني د پوندو لپاره لوی هلاکت او دردناک عذاب دی، په خاصه توګه سره د پوندو لپاره دا سزا ځکه ده چي په اوداسه کي هغه نه دي پریولل سوي چي د هغه په وجه هغه وچي پاته سوي دي .

ځینو علماؤ دا هم لیکلي دي چي دلته د پوندو څخه مراد پوندو والا دي یعني دا عذاب د هغه خلکو لپاره دی چي د هغوئ پوندي په اوداسه کي وچي پاته سوي دي .

په آخر کي رسول الله ﷺ حکم وکړ چي اودس پوره کړئ یعني د اوداسه چي کوم فرضونه، سنتونه ، مستحبات او ادبونه دي هغه ټول پوره کړئ او د ټولو دا کولو خیال وساتئ ، په یو بل حدیث کي راغلي دي چي د اوداسه د اندامونو یو برخه که د نوک په اندازه هم وچه پاته سي نو اودس به صحیح نه وي، دا حدیث پر دې خبره دلیل دی چي په اوداسه کي د پښو پریولل فرض دي که د پښو پریولل فرض نه وي نو د پوندو د وچو پاته کېدو په سبب به دومره لویه سزا نه فرمایل کیدل، د هرې زمانې د ټولو علماؤ او فقهاؤ دا عقیده او مذهب راغلی دی چي په اوداسه کي د پښو پریولل فرض دي ، یوازې مسحه کول کافي نه دي په دې مسئله کي د هیڅ یو

داسي عالم اختلاف چي د اعتبار وړ او قابل استناد وي ثابت نه دی ، صحابه كرام چي د رسول الله ﷺ د اوداسه كيفيت او تفصيل بيانوي لكه حضرت علي ﷺ، حضرت عثمان ﷺ او عبدالله بن زيد ﷺ چي هغوئ ته حاكي يعني د رسول الله ﷺ د اوداسه بيانونكي ويل كيږئ يا دا ډول جابر، ابو هريره، عبدالله بن عمر (رضي الله عنهم) او د دوئ څخه پرته نور صحابه كرام رضي الله عنهم ټول پر دې خبره متفق دي چي د رسول الله ﷺ په اوداسه كي كه چيري موزې به يې نه وې په پښو نو پښې مباركي به يې پريولللې.

او بيا دومره بې شميره حديثونه چي د تواتر مرتبې ته رسيدلي دي منقول دي چي د هغو څخه په اوداسه كي د پښو پريولل ثابت دي او د هغه پر پرېښودو باندي د سزا بې شميره حديثونه مذكور دي، حضرت عبدالله بن عمر ﷺ فرمايي چي صحابه كرامو پر پښو مسحه كول تر دې چي رسول الله ﷺ (په پښو پريوللو سره) د اوداسه د پوره كولو حكم وفرمايه او د هغه پر پرېښودو يې سزا وفرمايه نو صحابه كرامو مسحه پرېښودل او هغه منسوخ سوه .

امام طحاوي رحمة الله عليه د عبدالملك بن سليمان رحمة الله عليه قول نقل كوي چي ما د عطاء خراساني رحمة الله عليه چي يو جليل القدر تابعي دي څخه پوښتنه وكړه ايا تاسو ته يو داسي روايت هم حاصل سوی دی چي د هغه څخه دا معلوميږي چي د رسول الله ﷺ يو صحابي په اوداسه كي پر خپلو پښو باندي مسحه كول ، هغه وفرمايل : قسم په خدای يا .

په هر حال په دې اړه د خبري خلاصه داده چي په اوداسه كي د پښو په اړه چي كوم حكم په قرآن كريم كي مذكور دي هغه محمل او مشتبه دی، د رسول الله ﷺ د سنت څخه كه هغه قولي وي يا فعلي چي حد شهرت او تواتر ته رسيږي د هغه شرح او وضاحت كړی دی چي په قرآن كريم كي د دې څخه د الله تعالی مراد دادی چي په اوداسه كي پښې پريولل پكار دي، نو د پښو پريولل فرض دي .

او كوم چي د شيعه ډلي د مذهب او معمول تعلق دی چي هغه خلك په اوداسه كي پر پښو مسحه كوي په دې باره كي د دې څخه پرته نور څه نه ويل كيږي چي هغوئ په ډيره گمراهي كي اخته دي او د رسول الله ﷺ د دومره زيات تفصيل او تشريح او د دومره واضح حكم سربيره د هغوئ د پښو نه پريولل ډير غلط او غير شرعي كار دی . والله اعلم .

﴿۳۶۷﴾: وَعَنِ الْمُغِيْرَةِ بْنِ شُعْبَةَ قَالَ اِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَوَضَّأَ فَمَسَحَهُ بِنَاصِيَتِهِ وَعَلَى الْعِمَامَةِ وَعَلَى الْخُفَّيْنِ. رواه مسلم

د حضرت مغيرة [۱] بن شعبة ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ اودس وکړ د خپل مخ مسحه يې وکړل او لنگوټه او موزو باندي يې مسحه وکړه.

**تشريح**: د سر د مسحي په اندازه کي د علماؤ اختلاف دی، د امام مالک رحمة الله عليه په نزد د ټول سر مسحه کول فرض ده، د امام شافعي رحمة الله عليه په نزد د سر د يو څه برخي مسحه کول کافي ده که څه هم دوه درې وريښتان وي، د امام ابو حنيفة رحمة الله عليه په نزد د څلورمي برخي سر مسحه فرض ده، د امام اعظم رحمة الله عليه دليل دا حديث ناصيه دی (ناصيه د سر د مخکني خوا څلورمي برخي ته وايي) په دې وجه حنفيه وايي چي د دې څخه پرته دوه صورتونه کيدای سي اول خو دا چي د امام مالک د مذهب سره سم د پوره سرمسحه فرض وي مگر دا ظاهره ده که د پوره سر مسحه فرض وای نو رسول الله ﷺ به يوازي پر ناصيه باندي د مسحه اکتفاء نه کولای بلکه د فرض د ادا کولو لپاره به يې پر ټول سر مسحه کولای نو معلومه سوه چي د پوره سر مسحه خو فرض نه ده، دوهم صورت دادی که د څلورمي برخي سر څخه هم کمه برخه باندي مسحه فرض وای لکه څرنگه چي د شافعي رحمة الله عليه مذهب دی، په دې اړه هم هغه خبره ده. که د څلورمي برخي د سر څخه پر کم باندي هم مسحه فرض وای نو رسول الله ﷺ به د بيان جواز لپاره دا هم اختيار کړې وای مگر دا ثابته ده چي رسول الله ﷺ د سر د څلورمي برخي څخه پر کم باندي هم مسحه نه ده کړې نو ددې څخه هم دا خبره ثابته سوه چي مسحه د څلورمي برخي د سر فرض ده.

پر لنگوټه باندي د مسحه کولو معنی شرحه ليکونکو دا ليکلي که رسول الله ﷺ د څلورمي برخي د سر مسحه چي فرض ده وکړل نو د اوداسه پوره کولو او د اداء سنت لپاره چي د ټول سر مسحه کول سنت ده پر ځای ددې چي د سر پر پاته برخه يې مسحه کړې وي پر سر سربيره تړلې لنگوټه باندي مسحه وکړل، ځينو حضراتو دا ليکلي دي چي دا احتمال دی چي رسول الله ﷺ پر لنگوټه باندي مسحه نه دی کړې بلکه پر څلورمي برخي د سر باندي يې مسحه کولو څخه وروسته رسول الله ﷺ خپل لنگوټه سمه کړې وي، او راوي ددې څخه گمان وکړ چي رسول الله ﷺ

---

[۱] حضرت مغيرد د شعبه زوی دی او کنيت يې ابو عبدالله او ابو عيسی دی. د (۷۰) کالو په عمر په کال (۵۰هـ) کي وفات سوی دی.

پر لنګوټه هم مسحه کړې ده . والله اعلم
په دې اړه تحقیق دادی چي پرته د سر د مسحه کولو یوازي پر لنګوټه باندي مسحه کول د امام اعظم، امام شافعي او امام مالک درې سره په نزد مطلقا صحیح نه ده مګر د امام احمد په نزد په دې شرط صحیح ده چي لنګوټه یې د طهارت څخه وروسته پر سر کړې وي او لنګوټې ټول سر پټ کړی وي لکه څرنګه چي پر موزو باندي د مسحه کولو مسئله ده .

﴿۳۶۸﴾ : وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُحِبُّ التَّيَمُّنَ مَا اسْتَطَاعَ فِي شَأْنِهِ كُلِّهِ فِيْ طُهُوْرِهِ وَتَرَجُّلِهِ وَتَنَعُّلِه . متفق عليه.

د حضرت عائشې (رض) څخه روایت دی چي تر څو به ممکنه وه رسول الله ﷺ به خپل ټول کارونه د راسته لوري څخه پیل کول په پاکۍ کي په ږمنځ کولو کي او څپلۍ په پښو کولو کي .بخاري او مسلم .

**تشریح** : په دې حدیث کي ښه کارونه په راسته لاس سره د پیل کولو اهمیت معلومیږي چي رسول الله ﷺ به په خپل اړه داسي خوښول چي تر څو پوري وس رسیږي ټول کارونه په راسته لاس سره سرته ورسوي ، د لفظ ( ما استطاع ) څخه د پابندۍ او تاکید طرف ته اشاره ده .
په هر حال په دې حدیث کي درې شیان ذکر سوي دي چي د مثال په توګه دي، کنه نو هر هغه شی چي د بزرګي وړ به وو رسول الله ﷺ به هغه د راسته خوا څخه پیل کوی لکه جامې اغوستل، پرتوګ اغوستل، موزه په پښو کول، په مسجد کي داخلېدل، مسواک وهل، د بیت الخلاء څخه وتل، رانجه لګول، نوکان پرې کول، د بغل وریښتان صفا کول، بریتونه غڅي کول، سر خریل، د نامه لاندي وریښتان صاف کول، مصافحه کول، خوړل او څښل او د یو شي اخیستل او ورکول او داسي نور .....
همدارنګه کوم چي شیان چي د بزرګۍ څخه نه دي هغه د چپه خوا څخه پیل کول مستحب دي، مثلا بیت الخلاء ته ورتلل، په بیت الخلاء کي اول چپه پښه اېښودل، بازار ته تلل، نا مناسب ځای ته تلل، د مسجد څخه وتل، پزه سوڼ کول، توکل، استنجاء کول، جامې او پرتوګ کښل، او داسي نور کارونه، دا کارونه د چپه خوا څخه په پیل کولو کي یو حقیقي نکته هم ده هغه دا چي د داسي شیانو په چپه خوا پیل کولو په وجه د راسته خوا د تکریم او احترام مظاهره کیږي ، مثلا هر کله چي یو سړی د مسجد څخه د وتلو په وخت کي اول چپه قدم دباندي کښیږدي نو د راسته قدم تکریم وسو ، په دې توګه چي راسته قدم په یو محترم ځای کي پاته سو او پر دې باندي نور شیان هم قیاس کیدای سي ، دا وجه چي د انسان سره دوې ملائکي ملګري

وي په هغو کي د راسته لاس ملائکه د راسته خوا د فضيلت او احترام په وجه پر چپه خوا ملائکي باندي فضيلت لري او ددې په وجه ويل کيداى سي چي د راسته خوا همسايه پر چپه همسايه مقدم دی.

## الفصل الثاني

﴿۳۶۹﴾ : عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قال قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّىٰ اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا لَبِسْتُمْ وَإِذَا تَوَضَّأْ تُمَّ فَابْدَؤُوْا بِأَيَامِنِكُمْ . رواه أحمد وأبو داود .

د حضرت ابوهريرة ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : هر کله چي تاسو جامې اغوندئ يا اودس کوئ نو د راسته لوري څخه پيل کوئ .

﴿۳۷۰﴾ : وَعَنْ سَعِيْدِ بْنِ زَيْدٍ قال قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لاَ وَضُوْءَ لِمَنْ لَمْ يَذْكُرِ اسْمَ اللّٰهِ عَلَيْهِ . رواه الترمذي وابن ماجه، ورواه أحمد وأبو داود عن أبي هريرة، والدارمي عن أبي سعيد الخدري عن أبيه وزادوا في أوله لا صلوة لمن لا وضوء له.

د حضرت سعيد[1] بن زيد ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : چا چي د الله نوم ونه ياد نکړ نو د هغه اودس نه کيږي (ترمذي، ابن ماجه، احمد او ابوداؤد چي د ابوهريرة څخه او دارمي د ابوسعيد خدري څخه کوم روايت کړی دی د هغه په پيل کي دا الفاظ دی چي د هغه چا لمونځ نه کيږي چي اودس يې ونه کړ.

**تشريح** : د دې حديث څخه د اوداسه په پيل کي د بسم الله ويلو فضيلت او ارزښت معلوميږي ، د حديث د الفاظو مطلب دادی چي کوم سړی د اوداسه په پيل کي د الله تعالى نوم نه واخلي يعني بسم الله يې ونه ويل نو د هغه اودس د تکميل درجې ته ونه رسيدی چي د هغه په وجه هغه ته ثواب حاصل نه سو ، د دې مسئلې تحقيق دادی چي د امام احمد په نزد د اوداسه په پيل کي بسم الله ويل واجب ده او د جمهورو علماؤ په نزد سنت يا مستحب ده .

د اوداسه په پيل کي د پخوانيو علماؤ څخه دا الفاظ ويل نقل دي : (سبحان الله العظيم وبحمده) ، ځينو علماؤ ويلي دي چي د اعوذبالله ويلو څخه وروسته بسم الله الرحمن الرحيم

[1] د نوموړي نوم سعيد بن زيد او کنيت يې ابوالاعور دی ، نوموړي قريشي او عدوي دی ، د عشره مبشره څخه دی ، نوموړی د اويا (۷۰) کالو په عمر په عتيق نامي ځای کي په کال (۵۰هـ) يا (۵۱هـ) کي وفات سوی دی .

ويل افضل دي او مشهور دا الفاظ دي : بسم الله والحمد لله على دين الاسلام.

د روايت په پاى كي يوه لفظي غلطي ده، كيداى سي چي د كاتب وغيره څخه هيره سوې وي يعني په آخر كي د االفاظ ذكر كړي دي والدارمي عن ابي سعيد الخدري عن ابيه ، دا غلط دي بلكه صحيح دادي عن ابي سعيد الخدري عن النبي صلى الله عليه وسلم . يعني دارمي دا حديث د ابوسعيد خدري څخه روايت كړى دى او ابو سعيد خدري د رسول الله ﷺ څخه اوريدلى دى.

﴿۳۷۱﴾ : وَعَنْ لَقِيْطِ بْنِ صَبْرَةَ قَالَ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللهِ أَخْبِرْنِيْ عَنِ الْوُضُوْءِ . قَالَ أَسْبِغِ الْوُضُوْءَ وَخَلِّلْ بَيْنَ الْأَصَابِعِ وَبَالِغْ فِي الْاِسْتِنْشَاقِ إِلاَّ أَنْ تَكُوْنَ صَائِمًا . رواه أبو داود والترمذي والنسائي وروى ابن ماجه والدارمي إلى قوله بين الأصابع .

د حضرت لقيط بن صبرة ﷺ څخه روايت دى چي ما رسول الله ﷺ ته عرض وكړ اې دالله رسوله ! ما ته د اوداسه په اړه څه وښيه، رسول الله ﷺ وفرمايل : ته پوره اودس كوه او په ګوتو كي خلال كوه او په ښه ډول په پزه كي اوبه اچوه مګر نه كه ته روژه دار يې.

**تشريح** : د سوال مقصد دا وو چي تاسو ما ته د كمال اودس طريقه وښياست چي د هغه په اختيارولو سره د ثواب ورسم، ددې جواب رسول الله ﷺ دا وركړ چي اودس پوره كوه يعني د اوداسه چي كوم فرضونه، سنتونه او مستحبات دي هغه پوره ادا كوه.

په اوداسه كي د ګوتو خلالول د امام اعظم او امام شافعي رحمة الله عليهما په نزد سنت دي مګر دا حكم په داسي صورت كي دى كله چي ګوتي په خلقي اعتبار سره د يو بل څخه بيلي او خلاصي وي مګر كه چيري هغه په خپل منځ كي داسي يو ځاى وي چي په آسانۍ سره اوبه مينځ ته نه رسيږي نو بيا د ګوتو خلالول واجب كيږي ، د حنفيه په نزد د ګوتو خلالولو طريقه داده چي د راسته لاس ورغوى د چپه لاس پر شا ايښودلو ﷺ د راسته لاس ګوتي د چپه لاس په ګوتو كي اچولو سره خلال وكړل سي او دا طريقه غوره ده.

د پښو د ګوتو خلال د چپه لاس په خچۍ ګوته سره كول پكار دى داسي چي هغه د راسته لاس د خچۍ ګوتي څخه لاندي داخلولو سره خلال كول پيل كړي تر دې چي د چپه پښې پر بټې ګوتي يې ختم كړي،

په پزه كي د اوبو اچولو حد دادى چي اوبه د پزي نرمۍ ته ورسول سي او په هغه كي مبالغه چي د حديث منشاء ده داده چي اوبه د هغه څخه وړاندي تيري سي مګر دلته په خپله حديث

وضاحت کړی دی چي دا مبالغه یعني د پزي د نرمۍ ځخه هم اوبه وړاندي رسول هغه وخت دي هر کله چي اودس کونکی روژه دار نه وي ، او که چیري اودس کونکی روژاتي وي نو بیا د هغه لپاره دا مبالغه مکروه ده . پر دې ځای په دې باندي هم پوه سئ چي خوله پریولل او په پزه کي اوبه اچول د امام اعظم رحمة الله علیه په نزد په اوداسه کي سنت دي او په غسل کي فرض دي مګر د امام شافعي رحمة الله علیه په نزد په غسل او اوداسه دواړو کي سنت دي .

﴿۳۷۲﴾ : وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا تَوَضَّأْتَ فَخَلِّلْ بَيْنَ أَصَابِعَ يَدَيْكَ وَرِجْلَيْكَ . رواه الترمذي . وروى ابن ماجه نحوه وقال الترمذي هذا حديث غريب

د حضرت ابن عباس ﷛ ځخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : هر کله چي ته اودس وکړې نو د خپل لاس او پښو ګوتي خلال کړه (ترمذي) ابن ماجه هم دا ډول روایت کړی دی او ترمذي ویلي دي دا حدیث غریب دی.

**تشریح** : د لاس د ګوتو خلالول د لاسونو پریوللو ځخه وروسته کول پکار دي او د پښو د ګوتو خلالول د پښو پریوللو ځخه وروسته کول پکار دي دغه طریقه غوره ده .

﴿۳۷۳﴾: وَعَنِ الْمُسْتَوْرِدِ بْنِ شَدَّادَ قَالَ رَأَيْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا تَوَضَّأَ يَدْلُكُ أَصَابِعَ رِجْلَيْهِ بِخِنْصَرِهِ . رواه الترمذي وأبو داود وابن ماجه .

د حضرت مستورد بن شداد[1] ﷛ ځخه روایت دی چي ما رسول الله ﷺ ولیدی چي کوم وخت به یې اودس کاوه نو د خپلو پښو ګوتي به یې د خپل لاس په خچې ګوته سره موښلې (یعني په هغې سره به یې خلالولې) .ترمذي، ابوداؤد او ابن ماجه .

**تشریح** : د (یدلک) لفظ مطلب دادی چي رسول الله ﷺ به د چپه لاس په خچې ګوتي سره د پښو د ګوتو خلال کوی ، ددې تصدیق ددې روایت ځخه کیږي کوم چي امام احمد رحمة الله علیه روایت کړی دی چي په هغه کي لفظ د یدلک په صراحت سره راغلی دی ، په دې صورت کي دا ددې خبري دلیل دی چي د چپه لاس په خچې ګوته سره د پښو د ګوتو خلالول مستحب دي یا د یدلک معنی به دا وي چي رسول الله ﷺ به د خپل چپه لاس خچې ګوته د پښو په ګوتو کي ګرځول . په دې صورت کي به دا ددې خبري دلیل وي چي د ټول اندام موږل مستحب دي .

﴿۳۷۴﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا تَوَضَّأَ أَخَذَ كَفًّا مِّنْ

د حضرت انس ﷛ ځخه روایت دی چي رسول الله ﷺ اودس کاوه نو یوه لپه اوبه به یې راواخیستلې او د زني

[1] مستورد د شداد زوی او فهري قریشي دی نوموړی صحابي دی .

مَاء فَأَدْخَلَهُ تَحْتَ حَنَكِهِ فَخَلَّلَ بِهِ لِحْيَتَهُ وَقَالَ هٰكَذَا أَمَرَنِي رَبِّيْ . رواه أبو داود .

لاندي به يې ورسولې او په هغه سره به يې خپله ږيره مبارکه خلال کړل بيا به يې فرمايل : ما ته داسي د خپل رب حکم سوی دی . ابوداؤد ،

**تشريح** : په اوداسه کي د ږيري خلالول مستحب دي، او دا خلال د مخ پريوللو څخه وروسته کول پکار دی ، ددې طريقه داده چي ګوتې د ږيري د لاندي څخه په داخلولو سره پورته خوا ته د باندي راوباسل سي .

﴿۳۷۵﴾ :وَعَنْ عُثْمَانَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُخَلِّلُ لِحْيَتَهُ . رواه الترمذي والدارمي .

د حضرت عثمان ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به خپل ږيره مبارکه خلالول . ترمذي او دارمي.

﴿۳۷۶﴾ :وَعَنْ أَبِيْ حَيَّةَ قَالَ رَأَيْتُ عَلِيًّا تَوَضَّأَ فَغَسَلَ كَفَّيْهِ حَتّٰى أَنْقَاهُمَا ثُمَّ مَضْمَضَ ثَلَاثًا وَاسْتَنْشَقَ ثَلَاثًا وَغَسَلَ وَجْهَهُ ثَلَاثًا وَذِرَاعَيْهِ ثَلَاثًا وَمسحه بِرَأْسِهِ مَرَّةً ثُمَّ غَسَلَ قَدَمَيْهِ إِلَى الْكَعْبَيْنِ ثُمَّ قَامَ فَأَخَذَ فَضْلَ طُهُوْرِهِ فَشَرِبَهُ وَهُوَ قَائِمٌ ثُمَّ قَالَ أَحْبَبْتُ أَنْ أُرِيَكُمْ كَيْفَ كَانَ طُهُوْرُ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ . رواه الترمذي والنسائي .

د حضرت ابو حية[1] ﷺ څخه روايت دی چي ما حضرت علي ﷺ په اودس کولو وليدی هغه خپل لاسونه پريولل تر دې چي هغه يې پاك کړل بيا يې درې ځله خوله پريولل او درې ځله يې په پزه کي اوبه واچولې او درې ځله يې مخ پريولی او درې ځله يې تر څنګلو پوري (لاسونه) پرېولل او يو ځل يې د سر مسحه وکړل او بيا يې دواړې پښې تر بجلکو پوري پريولې او بيا و درېدی د اوداسه څخه پاته اوبه يې په ولاړه وڅښلې ، بيا يې وفرمايل : ما غوښتل چي تا ته وښيم چي د رسول الله ﷺ اودس څنګه وو . ترمذي او نسائي .

**تشريح** : د اوداسه څخه په پاته سوو اوبو کي برکت وي ځکه نو حضرت علي ﷺ د اوداسه پاته اوبه وڅښلې ، د برکت تر لاسه کولو لپاره د اوداسه پاته اوبه څښل پکار دي او دا اوبه په ولاړه څښل هم جائز دي .

﴿۳۷۷﴾: وَعَنْ عَبْدِ خَيْرٍ قَالَ نَحْنُ جُلُوْسٌ نَنْظُرُ إِلٰى عَلِيٍّ حِيْنَ تَوَضَّأَ فَأَدْخَلَ يَدَهُ الْيُمْنٰى فَمَلَأَ فَمَهُ

د حضرت عبد خير[2] څخه روايت دی چي موږ ناست وو حضرت علي ﷺ ته مو کتل ، کوم

---

[1] د نوموړي نوم عمروبن نصر انحاري المهداني او کنيت يې په ابوعيسی سره مشهور دی ، نوموړي تابعی دی
[2] د نوموړي نوم عبد خير يزيد او کنيت يې ابوعمار ه همداني دی ، نوموړي تابعي دی او په کوفه کي اوسيدی .

فَمَضْمَضَ وَاسْتَنْشَقَ وَنَثَرَ بِيَدِهِ الْيُسْرٰى فَعَلَ هٰذَا ثَلاثَ مَرَّاتٍ ثُمَّ قَالَ مَنْ سَرَّهُ أَنْ يَّنْظُرَ إِلٰى طُهُوْرِ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَهٰذَا طُهُوْرُهُ . رواه الدارمي

وخت چي هغه اودس كاوه، هغه په راسته لاس سره د لوښي څخه اوبه واخيستې خوله يې پرېولل په پزه كي يې اوبه واچولې او په چپه لاس يې پزه سوڼ كړه درې ځله يې داسي وكړل بيا يې وويل څوك چي د رسول الله ﷺ په اودس لېدلو خوشحاله كېدل غواړي نو د رسول الله ﷺ اودس داسي وو . دارمي.

**تشريح** : دلته د راوي مقصد دا وو چي هغه د خولې پريوللو او په پزه كي د اوبو اچولو كيفيت بيان كړي ، په دې كي هغه يوازي دومره بيان وكړ او پاته اودس خو معلوم وو ځكه هغه يې بيان نه كړ.

﴿۳۷۸﴾ :وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ زَيْدٍ قَالَ رَأَيْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَضْمَضَ وَاسْتَنْشَقَ مِنْ كَفٍّ وَّاحِدَةٍ فَعَلَ ذٰلِكَ ثَلاثًا . رواه أبو داود والترمذي .

د حضرت عبدالله بن زيد ﷺ څخه روايت دى چي ما رسول الله ﷺ وليدى چي خوله يې پرېولل او په پزه كي يې اوبه واچولې په يوه لپه سره او درې ځله يې داسي وكړل. ابوداؤد او ترمذي.

**تشريح** : د حديث په آخري جمله كي دوه احتماله دي ، يعني ددې معنا يا خو داده چي رسول الله ﷺ په يوه لپه سره خوله پريولل او په پزه كي يې اوبه واچولې او همداسي يې درې واره وكړل ، يا دا چي په درو لپو سره يې درې واره خوله پريولل او بيا په درو لپو سره يې درې واره په پزه كي اوبه واچولې ، ، دا دوهمه معنى زيات مناسب او د اكثرو روايتونو سره سمه ده .

د دې څخه پرته يو دريم احتمال بل هم كيداى سي هغه دا چي رسول الله ﷺ په يوه لپه سره درې واره خوله پريولل او په پزه كي يې هم اوبه واچولې ، دوهمه لپه يې وا نه خيستل، دا ټول احتمالات په مخكي تير سوي حديث كي هم پيدا كيداى سي .

﴿۳۷۹﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مسحه بِرَأْسِهِ وَأُذُنَيْهِ بَاطِنِهِمَا بِالسَّبَّابَتَيْنِ وَظَاهِرُهُمَا بِإِبْهَامَيْهِ . رواه النسائي

د حضرت ابن عباس ﷺ څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ د خپل سر مبارك او غوږو مسحه وكړل د ننه د شهادت په گوتو او سربيره په بټو گوتو سره يې مسحه وكړه. نسائي

﴿۳۸۰﴾: وَعَنِ الرَّبِيْعِ بِنْتِ مُعَوِّذٍ أَنَّهَا رَأَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَوَضَّأُ قَالَتْ فَمسحه رَأْسَهُ مَا أَقْبَلَ مِنْهُ وَمَا أَدْبَرَ وَصُدْغَيْهِ وَأُذُنَيْهِ مَرَّةً وَّاحِدَةً . وَفِيْ رِوَايَةٍ أَنَّهُ تَوَضَّأَ فَأَدْخَلَ إِصْبَعَيْهِ فِيْ جُحْرَيْ أُذُنَيْهِ . رواه أبو داود . وروى الترمذي الرواية الأولى وأحمد وابن ماجه الثانية .

د بي بي ربيع [1] (رض) بنت معوذ څخه روايت دی چي هغې نبي کريم ﷺ پر اودس کولو وليدی چي ده مبارك د خپل سر مبارك پر مخکي برخي او وروستی برخي او په مينځ د سنړو او غوږونو او پر دواړو غوږونو يې يو ځل مسحه وکړل او په يوه روايت کي دي چي رسول الله ﷺ اودس وکړ او خپلي گوتي يې د غوږو په سريو کي دننه کړې (ابوداؤد) ترمذي اول روايت او احمد ابن ماجه دوهم روايت بيان کړی دی .

**تشريح** : د صدغيه او اذنيه الفاظ پر راسه لفظ باندي عطف دي، دې ته عطف خاص على العام وايي ، يعني د سر په اوبو سره يې مسحه وکړه، ددې مطلب دادی چي کله رسول الله ﷺ په لاس کي اوبو اخيستلو سره د سر مسحه وکړه نو په هغه اوبو سره يې پر سونړو او غوږو باندي مسحه وکړه ، د دې دواړو د مسحه لپاره يې نوري اوبه وانخستلې ، او دامام اعظم صاحب مذهب دادی .

صدغ : د غوږو او سترګو درميانه برخي ته وايي او کوم وريښتان چي پر دغه ځای رازړيدلې وي هغه ته صدغ وايي (قاموس). او ابن مالک رحمة الله عليه ويلي دي چي صدغ هغه وريښتانو ته وايي چي د سر دواړو خواوو ته د غوږ او تندي په منيځ کي وي او دا معنا د حنفي مذهب سره سم او مناسب ده .

په شرح السنة کي منقول دي چي د علماؤ په دې مسئله کي اختلاف دی چي ددې درې واره مسحه کول سنت دي يا نه، اکثر علماء دا وايي چي مسحه يو وار کول پکار دي، او دا مذهب دامام اعظم رحمة الله عليه او امام احمد او امام مالک رحمة الله عليهم هم دی، د امام شافعي رحمة الله عليه په مذهب کي دا مشهور دي چي درې واره مسحه داسي کول چي هر وار نوي اوبه واخيستل سي سنت دي، د اکثرو علماؤ دا خيال دی مګر په خپله امام شافعي رحمة الله عليه درې واره مسحه کولو ته مستحب وايي، امام ابوداؤد رحمة الله عليه وايي چي په دې اړه د حضرت عثمان ﷺ څخه چي کوم حديثونه روايت دي او ټول صحيح دي هغه پر دې خبره دلالت کوي چي مسحه يو وار کول پکار ده.

[1] نوم يې ربيع دی د معوذ لور ده ، يو جليل القدر صحابيه او انصاريه ده ، په بيعت رضوان کي يې هم ګډون کړی دی.

شمني رحمة الله عليه وايي چي هر وار په نوو اوبو سره درې واره مسحه كول بدعت دی مګر په هدايه كي ليكلي دي چي يو وار په اوبو سره درې واره مسحه كول مشروع دي او دا د امام اعظم رحمة الله عليه څخه منقول دي . والله اعلم .

﴿۳۸۱﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ زَيْدٍ أَنَّهُ رَأى النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَوَضَّأَ وَأَنَّهُ مسحه رَأْسَهُ بِمَاءٍ غَيْرِ فَضْلِ يَدَيْهِ . رواه الترمذي ورواه مسلم مع زوائد .

د حضرت عبدالله بن زيد ﷛ څخه روايت دی چي ما رسول الله ﷺ پر اودس كولو وليدی چي رسول الله ﷺ د سر مسحه په تازه اوبو وكړل (ترمذي) مسلم په يو څه زياتو الفاظ سره دا روايت كړی دی .

**تشريح** : د فقه حنفي په كتابو كي ليكلي دي چي د مثال په توګه يو سړی د اوداسه په وخت كي د لاس پريوللو څخه وروسته چي كوم لوندوالی د هغه په لاسونو كي پاته سوی وي په هغه سره يې د سر مسحه وكړه نو مسحه به وسي او كه پر يو اندام باندي يې مسحه وكړه او د مسحه كولو څخه وروسته د هغه په لاسونو كي لندوالی پاته سوی وي نو په هغه سره يې د سر مسحه وكړه نو دا به صحيح نه وي ، په دې اړه د ابن مسعود ﷛ يو حديث هم نقل كيږي او دا مذكوره حديث هم ابن لهيعه د روايت څخه نقل سوی دی چي هغه بماء غير فضل يديه پر ځای دا الفاظ دي بماء غبر من فضل يديه ، يعني لفظ د غبر په با سره دی چي د هغه معنا دا كيږي چي په هغه اوبو سره يې مسحه وكړه كوم چي دلاسو پريوللو څخه وروسته په لاس كي پاته سوې وې يعني د مسحي لپاره يې نوي اوبه وانخستلې بلكه د پوره لاس پريوللو څخه وروسته چي كوم لوندوالی په لاسونو كي پاته سوی وو په هغه سره يې مسحه وكړه ، همداسي د حديث معنا بالكل برعكس سوې ځكه چي د هغه حديث د الفاظو څخه چي دلته نقل سوی دی دا معلوميږي چي رسول الله ﷺ د سر مسحه د لاسونو څخه په پاته سوو اوبو سره وَنه كړل بلكه په نوو اوبو را خيستلو سره يې وكړه ، مګر په پورتني صورت كي يوازي د يوې ټكي په تغير سره معنا بالكل برعكس سول مګر كوم چي د سوال تحقيق دی نو خبره داده چي دا حديث كوم چي دلته نقل سوی دی صحيح دی ، نو غوره دا سوه چي د مسحه لپاره نوي اوبه را واخيستل سي او دا هم جائز سول چي په لاس كي په پاته سوو اوبو سره مسحه كيدای سي .

﴿۳۸۲﴾ : وَعَنْ أَبِيْ أُمَامَةَ ذَكَرَ وُضُوْءَ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ وَكَانَ يَمسحه

حضرت ابو امامة ﷛ د رسول الله ﷺ د اوداسه يادونه وكړه چي هغه مبارك به د سترګو كونجان هم

الْمَاقَيْنِ وَقَالَ الْأُذُنَانِ مِنَ الرَّأْسِ . رَوَاهُ ابْنُ مَاجَةَ وَأَبُوْ دَاوُدَ وَالتِّرْمِذِيُّ وَذَكَرَا قَالَ حَمَّادٌ لاَ أَدْرِيْ الْأُذُنَانِ مِنَ الرَّأْسِ مِنْ قَوْلِ أَبِيْ أُمَامَةَ أَمْ مِنْ قَوْلِ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ .

موږل او ويل يې چي دواړه غوږونه په سر کي داخل دي (ابن ماجه ، ابوداؤد ، ترمذي) درو سرو بيان کړي دي خو دا آخرني دواړه وايي چي حماد ويلي دي ما ته ددې علم نسته چي دواړه غوږونه په سر کي داخل دي دا وينا د ابوامامه ده که د رسول الله ﷺ ده .

**تشريح** : ماق: د پزي څخه د سترګو کونجانو ته وايي ، او جوهري ليکلي دي چي ماق د سترګو دواړو کونجانو ته وايي ، نو غوره داده چي د سترګو دواړه کونجان د مخ پرېوللو په وخت کي موږل مستحب دي چي په سترګو کي دننه خيري وغيره د سترګو په کونجانو کي يو ځای کيږئ او په موږلو سره ژاوځي او سترګي پاکي سي .

د روايت ددغه برخي (الاذنان من الراس) يعني دواړه غوږونه په سر کي داخل دي، ددې څخه دوه حکم ثابتيږي يو خو دا چي د غوږونو مسحه هم د سر د مسحي سره کول پکار دي ، دوهم دا چي د سر د مسحه لپاره چي کومي اوبه واخيستل سي په هغه دي د غوږو او سر مسحه وکړل سي ، د غوږونو د مسحه لپاره د نورو اوبو اخيستلو ضرورت نسته .

پر مخکني حکم باندي ځلور سره امامان متفق دي ، په دوهم حکم کي يو څه اختلاف دی، د امام اعظم، امام مالک او امام احمد رحمة الله عليهم مذهب دادی چي د غوږونو مسحه د سر د مسحه څخه په پاته سوو اوبو سره کول پکار دي ددې لپاره د نورو اوبو اخيستلو ضرورت نسته ، ددې مذهب تائيد هم د اکثرو حديثو څخه کيږي .

د امام شافعي رحمة الله عليه مذهب دادی چي د غوږو مسحه په نوو اوبو سره کول پکار ده يعني د سر د مسحه څخه په پاته سوو اوبو سره د غوږونو مسحه کول کافي نه ده ، يو حديث په دې اړه منقول دی چي د امام شافعي د مذهب تائيد کوي .

په هر حال دا کيدای سي چي رسول الله ﷺ اکثر د سر او غوږونو مسحه په يو وار اوبو را اخيستلو سره کړې وي مګر په داسي صورت کي هر کله چي په لاس کي لوند والی پاته نه وي نو کله يې د غوږونو د مسحه لپاره نوري اوبه اخيستي وي . والله اعلم .

﴿۳۸۳﴾: وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيْهِ عَنْ جَدِّهِ قَالَ جَاءَ أَعْرَابِيٌّ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسْأَلُهُ عَنِ الْوُضُوْءِ فَأَرَاهُ ثَلاَثًا

حضرت عمروبن شعيب د خپل پلار څخه او هغه د خپل پلار څخه روايت کړی دی چي يو صحرائي د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سو او د اوداسه پوښتنه يې

ثَلاَثًا ثُمَّ قَالَ هٰكَذَا الْوُضُوْءُ فَمَنْ زَادَ عَلٰى هٰذَا فَقَدْ أَسَاءَ وَتَعَدّٰى وَظَلَمَ . رواه النسائي وابن ماجه وروى أبو داود معناه .

وکړه ، رسول الله ﷺ هغه ته هر اندام درې درې ځله پرېولل وښودل او ورته وه یې فرمایل : اودس داسي دی چا چي په دې کي زیاتوب وکړ نو بد یې وکړل ، د حد څخه تېرېدل او ظلم یې وکړ . نسائي او ابن ماجه.

**تشریح** : رسول الله ﷺ د پوښتنه کونکي په جواب کي د اوداسه اندامونه درې درې واره پرېوللو سره وښودل او هغه ته یې وفرمایل : که ته کامل اودس غواړې او پر هغه د ثواب امید لرې نو بیا اودس داسي کوه تر دې زیاتوب کول یعني د اوداسه اندامونه تر درې واره زیات پرېولل ګټوره خبره نه ده بلکه تاواني ده ، رسول الله ﷺ د داسي سړي په اړه درې الفاظ استعمال کړل : (۱): بد یې وکړل ځکه چي هغه سنت پرېښودل (۲) په زیاتوب کولو سره د سنت د حدودو څخه یې تجاوز وکړ (۳) ظلم یې وکړ یعني د رسول الله ﷺ د طریقې او سنت خلاف عمل کولو سره پر ځان یې ظلم وکړ .

﴿۳۸۴﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ الْمُغَفَّلِ أَنَّهُ سَمِعَ ابْنَهُ يَقُوْلُ اَللّٰهُمَّ إِنِّيْ أَسْأَلُكَ الْقَصْرَ الْأَبْيَضَ عَنْ يَمِيْنِ الْجَنَّةِ قَالَ أَيْ بُنَيَّ سَلِ اللهَ الْجَنَّةَ وَتَعَوَّذْ بِهِ مِنَ النَّارِ فَإِنِّيْ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ إِنَّهُ سَيَكُوْنُ فِيْ هٰذِهِ الْأُمَّةِ قَوْمٌ يَعْتَدُوْنَ فِي الطُّهُوْرِ وَالدُّعَاءِ . رواه أحمد وأبو داود وابن ماجه .

حضرت عبدالله بن مغفل ﷺ وايي چي هغه د خپل زوی څخه دا دعاء واورېدل : اي الله زه ستا څخه د جنت راسته لوري ته سپین محل غواړم، حضرت عبدالله ورته وویل :اې زویه ! د الله ﷻ څخه جنت غواړه او دوږخ څخه پناه هم غواړه ما د رسول الله ﷺ څخه اورېدلي چي ډېر ژر به په دې امت کي داسي خلك وي چي په پاکۍ کي به مبالغه کوي او په دعاء کي به هم د مبالغې څخه کار اخلي .احمد، ابوداؤد او ابن ماجه.

**تشریح** : د عبدالله ابن مغفل ﷺ زوی ته د تنبیه مقصد دا وو چي ته څرنګه او په کوم قید سره دعا غواړې دا د بنده د شان سره خلاف ده ځکه چي په دې کي یوې خوا ته که د تحکم اړخ دی نو بلي خوا ته په جنت کي د یو خاص صفت طلب یا د یو مخصوص ځای تعین یو لایعني او نامناسب شی دی، مګر د دعاء طریقه داده چي ته د الله تعالی څخه جنت وغواړې او د دوږخ د اور څخه پناه غواړه ، اوس نو د الله تعالی کار دی چي هغه په جنت کي په خپل فضل او کرم سره ستا د مرتبو او درجو کومه بلندي غواړي هغه ته دي ورسوي .

د حد څخه تجاوز او په غير مطلوب هر شي کي ناخوښه او غير مناسب دی که څه هم هغه شی د شريعت مطلوب وي په دې حديث کي دې ته اشاره کيږي او د نبي کريم ﷺ په ژبه سره وړاند وينه کيږي چي په دې امت کي به داسي خلک پيدا سي چي د الله تعالى او د هغه د رسول د ښودل سوي لار څخه په بيل کېدو سره او د شريعت د حدودو څخه په تجاوز کولو سره به په طهارت او دعاء کي زياتوب کوي.

په طهارت کي زياتوب دادی چي د اوداسه اندامونه د مسنون طريقې څخه پرته تر درې واري زيات پريوللو کي دومره مبالغه وي چي هغه د وهم او وسوسې حد ته ورسيږي.

په دعاء کي زياتوب داد چي دعاء په داسي انداز او طريقې سره و غوښتل سي چي په هغه کي د بې ادبۍ اظهار کيږي او د شان عبوديت خلاف وي يا په دعاء کي ضروري او نامناسب قيدونه ولګول سي يا د داسي شيانو په اړه پوښتنه وکړي چي په انساني اعتبار سره د احاطې څخه وتلي او دعادتا محال (ناممکن) وي.

﴿۳۸۵﴾ :وَعَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّ لِلْوُضُوْءِ شَيْطَانًا يُقَالُ لَهُ الْوَلَهَانُ فَاتَّقُوْا وَسْوَاسَ الْمَاءِ . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَه وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ هٰذَا حَدِيْثٌ غَرِيْبٌ وَلَيْسَ إِسْنَادُهُ بِالْقَوِيِّ عِنْدَ أَهْلِ الْحَدِيْثِ لِأَنَّا لَا نَعْلَمُ أَحَدًا أَسْنَدَهُ غَيْرَ خَارِجَةَ وَهُوَ لَيْسَ بِالْقَوِيِّ عِنْدَ أَصْحَابِنَا .

حضرت ابي بن کعب ﷺ د نبي کريم ﷺ څخه روايت کوی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د اوداسه يو شيطان دی هغه ته (ولهان) ويل کيږي نو د اوبو د وسوسې څخه ځان وژغورئ (ترمذي، ابن ماجه) ترمذي ويلي دي چي دا حديث غريب دی ، د دې اسناد د محدثينو په نزد قوي نه دي ځکه چي موږ ته نه دی معلوم چي د خارجه څخه پرته چا ددې سند بيان کړی وي او هغه د اصحاب حديث په نزد قوي نه دی.

**تشريح** : د الهان معنی ده د عقل له منځه تلل او متحير کېدل ، دا نوم ددې شيطان ځکه دی چي هغه د خلکو په زړونو کي په وسوسو پيدا کولو سره هغوئ متحير او بې عقله کوي ، د هغه نتيجه دا وي چي اودس کونکی د هغه په وجه په وهم کي اخته کيږي ، کله چي هغه اودس کوي نو دی په زړه کي وسوسې پيدا کوي چي نه ده معلومه فلانی اندام ته په صحيح توګه اوبه رسيدلي دي که يا، فلانی اندام يو ځل پريولل سوی دی او که دوه واره، نو رسول الله ﷺ فرمايل چي د اوبو د وسوسې څخه ځان وساتئ يعني د اوداسه په وخت کي د اوبو په استعمال کي هر کله چي دا ډول وسوسې او هم پيدا سي نو هغه مه پرېږدئ بلکه هغه د خپل زړه په ايستلو

سره وغورځوئ چي د سنت د حدودو څخه تجاوز ونه کړل سي ځکه چي ددې شیطان مقصد خو دا وي چي اودس کونکی په دغه وسوسو او وهمو کي په اخته کېدو سره د اوداسه اندامونه تر درې واره زیات پریولي یا د ضرورت څخه زیاتي اوبه استعمال کړي چي د هغه په وجه د مسنون طریقې څخه لیري سي.

﴿۳۸۶﴾ :وَعَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ قَالَ رَأَيْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا تَوَضَّأَ مسحه وَجْهَهُ بِطَرَفِ ثَوْبِهِ . رواه الترمذي .

حضرت معاذ بن جبل ﷺ وايي ما وليدل چي رسول الله ﷺ به کله اودس وکړ نو د خپل جامې په پلو به یې خپل مخ وچ وکړ . ترمذي .

**تشریح** : رسول الله ﷺ چي به کله د اوداسه څخه فارغ سو نو د اوبو وچولو لپاره به یې خپله جامه یعني په څادر وغیره سره خپل مخ وچوی ، زیلعي رحمة الله علیه د کنز په شرح کي لیکلي دي چي د اوداسه څخه وروسته په دستمال سره اوبه وچول جائز دي څرنګه چي د حضرت عثمان، حضرت انس، او حسن ابن علي رضي الله عنهم په اړه منقول دي او راتلونکی حدیث هم ددې پر جواز دلالت کوي ، صاحب د منیه د اوداسه څخه وروسته د اوداسه اندامونه وچول مستحب لیکلي دي، د حنفي مذهب په ځینو کتابونو کي لیکلي دي چي د اوداسه څخه وروسته اوبه وچولو لپاره د اوداسه اندامونه وچول که دتکبر او غرور په وجه وي نو مکروه دي او که د غرور او تکبر په وجه نه وي نو بیا مکروه نه دي.

د امام شافعي رحمة الله علیه په مذهب کي نه خو د اودس کونکي لپاره او نه د غسل کونکي لپاره په جامې سره اوبه وچول سنت دي ، ددې دلیل هغه حدیث دی چي په هغه کي روایت دي چي رسول الله ﷺ اودس وکړ نو ام المؤمنین بي بي میمونې رضي الله عنه یو دستمال د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر کړ چي رسول الله ﷺ په هغه سره لانده اندامونه وچ کړي مګر رسول الله ﷺ هغه رد کړ او د اوداسه پر اندامونو باندي یې د لاس په ذریعه اوبه وڅڅولې.

د دې جواب د حنیفه علماؤ له خوا دا ورکول کیږي چي رسول الله ﷺ د اوداسه اندامونه په دستمال سره د وچولو څخه په دې وجه انکار نه دی کړی چي دا شی مناسب نه وو بلکه کیدای سي چي د یو خاص عذر په وجه رسول الله ﷺ دستمال رد کړی وي.

﴿۳۸۷﴾ : وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَتْ لِرَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خِرْقَةٌ يُنَشِّفُ بِهَا

د حضرت عائشي (رض) څخه روایت دی چي د رسول الله ﷺ سره یوه جامه وه چي د اوداسه وروسته به یې

أَعْضَاءَهُ بَعْدَ الْوُضُوْءِ . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ هٰذَا حَدِيْثٌ لَيْسَ بِالْقَائِمِ وَأَبُوْ مُعَاذٍ الرَّاوِيْ ضَعِيْفٌ عِنْدَ أَهْلِ الْحَدِيْثِ .

په هغې سره خپل اندامونه وچول (ترمذي) امام ترمذي ويلي دي دا حديث ضعيف دی او ابو معاذ راوي د محدثينو په نزد ضعيف دی .

**تشريح** : دا چې امام ترمذي رحمة الله عليه دا حديث ضعيف گرځولی دی او دا يې هم ويلي دي چې د اوداسه څخه وروسته د اندامونو په جامې وغيره سره د وچولو په اړه د رسول الله ﷺ يو صحيح حديث منقول نه دی بلکه د رسول الله ﷺ څخه وروسته د صحابه کرامو يو ډلې او تابعينو د اوداسه څخه وروسته د اندامونو وچولو اجازه ورکړې ده او د هغوئ دا اجازه د رسول الله ﷺ د يو قول او فعل څخه مستنبط نه ده بلکه دا خپله د دغه خلکو رايه ده نو سيد جمال الدين شافعي رحمة الله عليه دا مضمون نقل کړی دی .

د دې جواب علماء حنفيه دا ورکوي چې ستاسو دا وينا چې دا جواز صحابه کرامو وغيره په خپله رايه غلط دی بلکه د دې برعکس ستاسو دا قول خپله ستاسو د ذهن پيداوار دی چې د هغه د حقيقت سره هيڅ تعلق نسته . ځکه چې يو صحابي د مثال په توګه حضرت عثمان، حضرت انس او حسن بن علي رضي الله عنهم د جلالت شان او اتباع نبوي د جذبې صادقان د دې وهم هم نسي کيدای چې د نبي کريم ﷺ په معامله کي يو شی هم د هغوئ د ذهن پيداوار کيدای سي نو د هغوئ فعل پر دې خبره دلالت کوي چې د دې حديث خامخا سته .

د دې څخه پرته دا کليه هم په ذهن کي ساتل پکار ده چې پر حديث باندې عمل کول که څه هم هغه حديث ضعيف وي زيات غوره او اولی ده په نسبت د دې چې د چا پر رايه باندې عمل وکړل سي که څه هم هغه هر څومره مضبوط او قوي وي .

## الفصل الثالث

﴿۳۸۸﴾ :عَنْ ثَابِتِ ابْنِ اَبِيْ صَفِيَّةَ قَالَتْ قُلْتُ لِاَبِيْ جَعْفَرٍ هُوَ مُحَمَّدُ الْبَاقِرُ حَدَّثَكَ جَابِرٌ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَوَضَّأَ مَرَّةً مَرَّةً وَمَرَّتَيْنِ مَرَّتَيْنِ

د حضرت ثابت[1] بن ابوصفية ﷺ څخه روايت دی چې ما ابو جعفر ته چې نوم يې محمد باقر[2] دی وويل : ايا تا ته جابر دا حديث بيان کړی دی چې

[1] حضرت ثابت بن ابي صفيه تابعي دی او کنيت يې ابوحمزه دی په (۱۴۸هـ) کال کي وفات سوی دی .

[2] حضرت امام محمد باقر د حضرت امام زين العابدين زوی دی. په کال (۵۶هـ) کي پيدا سوی دی او په مدينه منوره کي په کال (۱۱۷) يا (۱۱۸هـ) کي وفات سوی دی او په جنت البقيع کي دفن سوی دی .

وَثَلَاثًا ثَلَاثًا قَالَ نَعَمْ. رواه الترمذي وابن ماجة.

چي رسول الله ﷺ يو يو ځل دوه دوه ځله او درې درې ځله اودس کړی دی ؟ هغه ووېل هو. ترمذي او ابن ماجه.

**تشريح**: د محدثينو عادت دی چي کله شاګرد د خپل شيخ څخه حديث اوري نو هغه پوښتنه کوي چي (حدثک فلان عن فلان) همداسي شاګرد د سند لړۍ رسول الله ﷺ ته رسوي او استاذ په پټه خوله سره هغه د سند لړۍ اوري، يعني آيا ستاسو څخه دا حديث فلاني او فلاني څخه فلاني (تر دې چي رسول الله ﷺ څخه فلاني) اوريدلی دی، ددې په جواب کي شيخ وايي چي نعم يعني هو، لکه چي د حديث د روايت دا يوه طريقه ده او هغه داسي څرنګه چي يو استاذ د خپل شاګرد په مخکي هر کله چي وايي چي حدثني فلان الخ يعني ما ته دا حديث بيان کړ فلاني او فلاني ته فلاني تر دې چي رسول الله ﷺ څخه فلاني اوريدلی دی نو شاګرد پټه خوله ناست اوري يې.

په هر حال همدارنګه ثابت بن ابي صفيه رحمة الله عليه د خپل استاذ امام محمد باقر رحمة الله عليه څخه ددې حديث په اړه پوښتنه وکړه چي حدثک جابر الخ، يعني ايا دا حديث تا ته حضرت جابر ﷺ بيان کړی دی، ددې په جواب کي محمد باقر رحمة الله عليه اقرار وکړ چي هو ما ته جابر ﷺ دا حديث بيان کړی دی.

《۳۸۹》: وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ زَيْدٍ قَالَ إِنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَوَضَّأَ مَرَّتَيْنِ مَرَّتَيْنِ وَقَالَ هُوَ نُوْرٌ عَلَى نُوْرٍ.

د حضرت عبدالله بن زيد څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ دوه ځله اودس وکړ او وه يې فرمايل د نور سربيره نور دی

**تشريح**: د دې مطلب دادی چي هر کله يو وار د اوداسه اندامونه يې پريولل نو په هغه سره فرض ادا سول او هغه يو نور سو بيا د هغه څخه وروسته چي په دوهم وار يې پريولل نو سنت ادا سو او دا هم نور دی ځکه نو د نور سربيره نور سو.

《۳۹۰》: وَعَنْ عُثْمَانَ قَالَ إِنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَوَضَّأَ ثَلَاثًا ثَلَاثًا وَقَالَ هٰذَا وَضُوْئِيْ وَوُضُوْءُ الْأَنْبِيَاءِ قَبْلِيْ وَوَضُوْءُ إِبْرَاهِيْمَ. رواهما رزين والنووي ضعف الثاني في شرح مسلم.

د حضرت عثمان ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ درې درې ځله اودس وکړ او وه يې فرمايل: دا زما او زما څخه مخکي د انبياؤ اودس دی، او د حضرت ابراهيم ﷺ اودس دی.

دواړه حديثونه رزين نقل کړي دي. او امام نووي په شرح مسلم کي دوهم حديث ته ضعيف ويلي دي.

**تشریح** : رسول الله ﷺ د ټولو انبياؤ ذكر كولو ځخه وروسته چي د حضرت ابراهيم ؑ ذكر كړی دی دې ته تخصيص بعد تعميم وايي يعني د انبياؤ په عامه توګه سره ذكر كولو ځخه وروسته يې بيا په خاصه توګه د حضرت ابراهيم ؑ نوم مبارك ذكر كړ، ددې وجه داده چي حضرت ابراهيم ؑ به د طهارت او نظافت ډير خيال ساتی .

﴿۳۹۱﴾ : وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَوَضَّأُ لِكُلِّ صَلَاةٍ وَكَانَ أَحَدُنَا يَكْفِيْهِ الْوُضُوْءَ مَا لَمْ يُحْدِثْ . رواه الدرامي .

د حضرت انس ؓ ځخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به د هر لمانځه لپاره اودس کاوه او زموږ لپاره يو اودس تر هغه وخته بس وو تر څو چي به ماتٌ سوی نه وو . دارمي .

**تشریح** : پر رسول الله ﷺ د هر لمانځه لپاره د تازه اودس كول مځكي واجب وه او وروسته د وجوب دا حكم منسوخ سو ، هر كله چي د دې ځخه وروسته راتلونكي حديث ځخه معلوميږي ځيني علماء وايي چي رسول الله ﷺ بهتر او عزيمت ګڼلو سره د هر لمانځه لپاره تازه اودس كوی.

﴿۳۹۲﴾ : وَعَنْ مُحَمَّدِ بْنِ يَحْيَى بْنِ حَبَّانَ قَالَ قُلْتُ لَهُ أَرَأَيْتَ وُضُوْءَ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ لِكُلِّ صَلَاةٍ طَاهِرًا كَانَ أَوْ غَيْرَ طَاهِرٍ عَمَّنْ أَخَذَهُ ؟ فَقَالَ حَدَّثَتْهُ أَسْمَاءُ بِنْتُ زَيْدِ بْنِ الْخَطَّابِ أَنَّ عَبْدَ اللهِ بْنَ حَنْظَلَةَ بْنِ أَبِيْ عَامِرِ الْغَسِيْلِ حَدَّثَهَا أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ أُمِرَ بِالْوُضُوْءِ لِكُلِّ صَلَاةٍ طَاهِرًا كَانَ أَوْ غَيْرَ طَاهِرٍ فَلَمَّا شَقَّ ذٰلِكَ عَلَى رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أُمِرَ بِالسِّوَاكِ عِنْدَ كُلِّ صَلَاةٍ وَوُضِعَ عَنْهُ الْوُضُوْءُ إِلَّا مِنْ حَدَثٍ قَالَ فَكَانَ عَبْدُ اللهِ يَرٰى أَنَّ بِهِ قُوَّةً عَلَى ذٰلِكَ فَفَعَلَهُ حَتَّى مَاتَ . رواه أحمد .

د حضرت محمد بن يحيى بن حيان ؓ ځخه روايت دی چي ما حضرت عبيدالله بن عبدالله بن عمر ؓ ته وويل : ما ته وښيه چي عبدالله بن عمر به د هر لمانځه لپاره اودس كاوه كه به يې (اودس) وو كه به نه وو، او دا عمل يې د چا ځخه تر لاسه كړی وو . عبيدالله وويل چي عبدالله بن عمر ته بي بي اسماء بنت زيد بن خطاب حديث بيان كړی وو عبدالله بن حنظله بن عامر الغسيل بي بي اسماء ته دا حديث بيان كړی وو چي رسول الله ﷺ ته د هر لمانځه لپاره د اوداسه حكم وركړل سوی وو كه ځه هم دده مبارك اودس وو يا نه وو، دا عمل چي رسول الله ﷺ ته ستونزمن سو نو د هر لمانځه پر وخت ورته د مسواك وهلو حكم وركړل سو او (د هر لمانځه لپاره) اودس موقوف كړل سو پر نه د هغه ځخه چي اودس مات سي ، عبيدالله وويل د عبدالله بن عمر دا خيال وو چي په ما كي د هر لمانځه لپاره د تازه اودس كولو توان سته له دې كبله هغه تر مرګه پوري په دې عمل وكړ . احمد .

**تشريح** : د لفظ غسيل معنی ده لمبول سوی ، دا د حضرت حنظله صفت دی، حنظله ته غسيل ځکه ويل سوي دي چي دوفات څخه وروسته هغه ته ملائکو غسل ورکړی وو ، عروه ﷺ روايت کوي چي رسول الله ﷺ د حنظله د کوروالا څخه پوښتنه وکړه چي د هغه څه حال وو (يعني هغه چي د کور څخه ووتی نو څه يې کول) هغې جواب ورکړ هغه د ناپاکۍ په حالت کي وو او د خپل بدن يوه برخه يې پريولې وه چي په دې وخت کي هغه آواز واوريدی چي (چي د جهاد لپاره بلنه کيږي) نو هغه په دغه حالت کي د کور څخه ووتی او په غزوه احد کي د شهادت جام يې نوش کړ، رسول الله ﷺ وفرمايل : ما وليدل چي ملائکو هغه ته غسل ورکوی . (طيبي) .

په هر حال طيبي رحمة الله عليه فرمايي په دې حديث کي دې ته اشاره ده چي مسواک ډير فضيلت او بزرګي لري ځکه هغه د واجب اوډس قائم مقام ګرځول سوی دی ، حضرت عبدالله بن عمر ﷺ به د هر لمانځه لپاره تازه اودس ځکه کوی هغه دا اجتهاد وکړ چي که څه هم د هغه وجوب منسوخ سوی دی مګر د هغه سړي لپاره چي پر دې د عمل توان او قوت لري ددې فضيلت پاته دی ځکه هغه چي دا وليدل چي په ما کي دومره قوت او همت سته چي زه دا عمل په ښه ډول کولای سم نو هيڅ وجه نسته چي ددې فضيلت او سعادت څخه دي محروم پاته سم .نو هغه دا خپل معمول وګرځوی چي هر لمانځه لپاره به يې تازه اودس کوی او تر وفات پوري پر دې عمل قائم او دائم وو .

﴿۳۹۳﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّم مَرَّ بِسَعْدٍ وَهُوَ يَتَوَضَّأُ فَقَالَ مَا هٰذَا السَّرَفُ يَا سَعْدُ . قَالَ أَفِي الْوُضُوْءِ سَرَفٌ ؟ قَالَ نَعَمْ وَإِنْ كُنْتَ عَلَى نَهْرٍ جَارٍ . رواه أحمد وابن ماجه .

د حضرت عبدالله بن عمرو بن العاص ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ د سعد سره تيرېدی کوم وخت چي هغه اودس کاوه ، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : اې سعده! دا څه اسراف دی ! سعد عرض وکړ ايا په اوداسه کي هم اسرف وي ، رسول الله ﷺ وفرمايل هو .که څه هم ته په روانه وياله اودس کوې . احمد او ابن ماجه .

**تشريح** : دا حديث د دې خبرتيا ده چي په اوداسه او غسل کي د ضرورت څخه زياتي او به مصرف نه کړل سي ځکه چي دا اسراف دی او اسراف د شريعت په نظر کي يو خوښ شی نه دی .

رسول الله ﷺ ته چي حضرت سعد ﷺ په تعجب کي سو چي اوبه خو يو نه پيداکېدونکي شی نه دی نو بيا په دې کي د اسراف څه معنی ده ، په دې وجه هغه پوښتنه هم وکړه چي ايا په اوداسه کي هم اسراف کېدای سي ، ددې په جواب کي رسول الله ﷺ وفرمايل : اسراف خو به دې

ته هم وایو چي ته پر روانه ویاله ناست یې اودس کوې او هلته زیاتي اوبه مصرفوې ،خال دا چي د ویالې ، درياب وغیره څخه هر څو مره زیاتي اوبه چي مصرف کړې نو په هغه کي څه کمي نسي واقع کیدای .

د دې جملې تشریح علماء داسي کوي چي پر روانه ویاله باندي اسراف ځکه کیږي چي هر کله یو سړی د شریعت د حدودو څخه تجاوز کولو سره د شرعي ضرورت څخه زیاتي اوبه مصرف کوي نو په دې کي عمر او وخت هسي ضائع کیږي او ظاهره ده چي دا اسراف دی .

علامه طیبي رحمة الله علیه ددې معنا دا بیان کړې ده چي ددې څخه په دغه خبره کي مبالغه کول مقصد ده چي کوم شی اسراف متصور نه دی هر کله چي په هغه کي هم اسراف کیدای سي نو بیا د هغه شیانو به څه حال وي چي په هغه کي اسراف واقعتا کیږي نو معلومه سوه چي په اوداسه، غسل وغیره کي د شرعي ضرورت څخه زیاتي اوبه مصرف کول په اسراف کي شامل دي او دا کار مناسب نه دی . .

﴿۳۹۴﴾ : وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ وَابْنِ مَسْعُوْدٍ وَابْنِ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ تَوَضَّأَ وَذَكَرَ اسْمَ اللّٰهِ فَإِنَّهُ يُطَهِّرُ جَسَدَهُ كُلَّهُ وَمَنْ تَوَضَّأَ وَلَمْ يَذْكُرِ اسْمَ اللّٰهِ لَمْ يُطَهِّرْ إِلاَّ مَوْضِعَ الْوُضُوْءِ .

د حضرت ابوهريرة ، ابن مسعود او ابن عمر رضي الله عنهم څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : چا چي د اوداسه کولو په وخت کي د الله نوم واخیست نو هغه خپل ټول بدن پاك كړ او چا چي په اوداسه کي د الله نوم ونه خیست نو هغه یوازي د اوداسه اندامونه پاك كړل .

**تشریح** : د دې حدیث څخه په اوداسه کي د بسم الله ویلو فضیلت معلومیږي چي کوم سړی په بسم الله ویلو سره اودس پیل کړي د هغه ټول بدن د کوچني ګناهونو د ناپاکیو څخه پاکیږي او چا چي پرته د بسم الله ویلو اودس وکړ نو د هغه اندامونو څخه ګناه صغیره لیري کیږي کوم چي په اوداسه کي پریولل سوي دي، او ددې حدیث څخه دا هم معلومه سوه چي په اوداسه کي بسم الله ویل سنت یا مستحب ده او واجب نه ده .

﴿۳۹۵﴾: وَعَنْ أَبِيْ رَافِعٍ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا تَوَضَّأَ وُضُوْءَ الصَّلاَةِ حَرَّكَ خَاتَمَهُ فِيْ إِصْبَعِهِ . رواهما الدارقطني . وروى ابن ماجه الأخير .

د حضرت ابو رافع ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ به د لمانځه لپاره اودس کاوه نو خپله ګوتمۍ به یې په ګوتو کي و ښورول . دغه دواړه حدیثونه دار قطني روایت کړي دي .

**تشريح** : د دې مسئله داده كه چيرې ګوتمی سسته وي او ددې خبرې يقين وي چې د اواسه په وخت كې اوبه د ګوتمی لاندې ته رسيږي نو په دې صورت كې ګوتمی ښورول سنت دي مګر كه چيرې ګوتمی تنګه وي او دا يقين وي چې د ګوتې ښورولو څخه پرته د هغه لاندې اوبه نه رسيږي نو بيا ګوتمی ښورول واجب دي چې اوبه د هغه لاندې ګوتې ته ورسيږي.

# بَـــابُ الْغُسْـــلِ

## (د غسل كولو بيان)

## الفصل الاول

﴿۳۹۶﴾: عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قال قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا جَلَسَ اَحَدُكُمْ بَيْنَ شُعَبِهَا الْأَرْبَعِ ثُمَّ جَهَدَهَا فَقَدْ وَجَبَ الْغُسْلُ وَاِنْ لَمْ يُنْزِلْ. متفق عليه

د حضرت ابوهريرة ﷺ څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل: هر كله چې په تاسو كې يو څوك (د ښځې) د څلورو ښاخونو په منځ كې (يعني دواړو لاسو او پښو په منځ كې) كښيني بيا هڅه وكړي (يعني كوروالي وكړي) نو پر هغه غسل واجب سو كه څه هم مني ووزي يا نه ووزي. بخاري او مسلم.

**تشريح** : د ښځې د څلورو ښاخونو څخه مراد د هغې دواړه لاسونه او دواړې پښې دي، يا ددې څخه مراد د ښځې دواړې پښې او د فرج (شرمګاه) خواوې، دا جمله ښځې ته د جماع لپاره د وتړلو او صحبت كولو كې بليغ تعبير دی، رسول الله ﷺ د شرم او حياء په انتهائي لوړ مقام باندې وو، ځكه نو رسول الله ﷺ د مسئلې د صورت د وضاحت لپاره د كنايې الفاظ ذكر كړل او په څرګنده توګه يې ددې تشريح نه ده فرمايلې.

په هر حال د حديث مطلب دادی كه يو سړی ښځې ته د جماع لپاره ورغلی او هغه جماع وكړه نو صرف حشفه (د سړي د مخكني اندام سر) داخلولو سره پر هغه غسل واجب كيږي كه څه هم انزال وي يا نه وي، د خلفاء راشدينو او اكثرو صحابه كرامو او د څلورو امامانو دا مذهب دی.

## غسل واجب کيږي که يا؟

﴿۳۹۷﴾ : وَعَنْ أَبِيْ سَعِيْدٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّمَا الْمَاءُ مِنَ الْمَاءِ . رواه مسلم . قال الشيخ الإمام محيي السنة رحمه الله هذا منسوخ .وقال ابن عباس إنما الماء من الماء في الاحتلام . رواه الترمذي و لم أجده في الصحيحين

د حضرت ابوسعيد ﷛ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : اوبه د اوبو څخه دي (يعني په مني وتلو سره غسل واجبيږي) .(مسلم) امام محي السنة وايي چي دا حکم منسوخ دی او ابن عباس ويلي دي چي اوبه د اوبو څخه دي ددې حکم د احتلام لپاره دی . (ترمذي) په بخاري او مسلم کي دا حديث نسته .

**تشريح** : که ددې ارشاد پر طريقې فکر وکړل سي نو معلومه به سي چي د رسول الله ﷺ په وړاندي يوې خوا ته د شريعت د احکامو د تعليم ذمه واري ده او بلې خوا ته د شرم او حياء انتهائي لوړ مقام باندي فائز دی، ځکه نو رسول الله ﷺ داسي طريقه اختياروي چي د مسئلې وضاحت هم وسي او د شرم او حياء لمن هم دلاس څخه ونه وځي ، رسول الله ﷺ داسي الفاظ فرمايلي دي چي کنايةً د مسئلې وضاحت کوي .

په هر حال د دې حديث څخه دا معلوميږي چي تر څو پوري انزال نه وي يعني مني ونه وځي نو غسل نه واجب کيږي ، مګر ددې څخه مخکي چي کوم حديث تير سوی دی د هغه څخه دا خبره معلومه سوه چي غسل په يوازي دخول حشفه سره واجب کيږي که انزال وي او که نه وي، په دې ډول د دواړو حديثونو ټکر پيدا سو .

د دې ټکر د دفع کولو لپاره امام محي السنة رحمة الله عليه دا قول د مصنف مشکوة نقل کوي چي دا حکم منسوخ دی يعني دا حکم د حضرت ابی بن کعب ﷛ په هغه روايت سره منسوخ ګرځول سوی دی چي په هغه کي منقول دي چي دا آساني د اسلام په پيل کي وه چي تر څو پوري انزال نه وي غسل نه واجب کيدی بيا وروسته دا حکم منسوخ کړل سو .

امام ترمذي رحمة الله عليه هم فرمايلي دي چي دا ډول د ډيرو صحابه کرامو اقول منقول دي چي دا حکم د اسلام په پيل کي وو او بيا وروسته هغه منسوخ ګرځولو سره دا حکم نافذ کړل سو چي هر کله د سرې ذکر د ښځي په شرمګاه کي داخل سي او ختنين يو ځای سي نو غسل واجب کيږي که انزال وسي او که ونه سي .

مګر ابن عباس ﷛ ددې حديث بله توجيه بيانوي هغه فرمايي چي دا حکم د احتلام په باره کي دی يعني د رسول الله ﷺ ددې ارشاد مقصد دادی چي صرف په خوب ليدو سره غسل نه

واجب کیږي بلکه د خوب څخه د راکښېنستو وروسته که پر جامه وغیره باندي د مني لوند والی ولیدل سي نو غسل واجب کیږي ، لکه چي د ابن عباس ﷺ ددغه توجیه په اړه ددې حدیث د منسوخ منلو ضرورت نه پاته کیږي مګر تحقیقي خبره داده چي دا حدیث مطلق دی یعني ددې حکم تعلق د احتلام سره هم وو او د غیر احتلام سره هم مګر دا حکم د اسلام په پیل کي وو بیا منسوخ سو .

﴿۳۹۸﴾ : وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ قَالَتْ قَالَتْ أُمُّ سُلَيْمٍ يَا رَسُولَ اللّٰهِ إِنَّ اللّٰهَ لاَ يَسْتَحْيِي مِنَ الْحَقِّ فَهَلْ عَلَى الْمَرْأَةِ مِنْ غُسْلٍ إِذَا احْتَلَمَتْ فَقَالَ نَعَمْ إِذَا رَأَتْ الْمَاءَ فَغَطَّتْ أُمُّ سَلَمَةَ وَجْهَهَا وَقَالَتْ يَا رَسُولَ اللّٰهِ أَوَتَحْتَلِمُ الْمَرْأَةُ قَالَ تَرِبَتْ عَيْنُك فَبِمَ يُشْبِهُهَا وَلَدُهَا . متفق علیه و زاد مسلم بروایة ام سلیم ان ماء الرجل غلیظ ابیض و ماء المراة رقیق اصفر فمن ایهما علا او سبق یکون منه الشبة .

د حضرت بي بي آم سلمه[۱] (رض) څخه روایت دی چي بي بي ام سلیم رسول الله ﷺ ته عرض وکړ اې دالله رسوله ! الله تعالی په حقه خبره بیانولو شرم نه کوي (نو زه هم د یوې خبرې پوښتنه کوم) ایا پر ښځه غسل واجب دی هر کله چي غسل پر واوړي ؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمایل او هر کله چي هغه (مني) وویني ، د دې په اورېدو سره بي بي ام سلیم د شرم څخه مخ پټ کړ او عرض یې وکړ اې دالله رسوله ! ایا پر ښځه هم غسل اوړي ؟ رسول الله ﷺ وفرمایل : هو ، ستا راسته لاس دي په خاورو ولړل سي د هغې ماشومان څنګه دهغې سره همشکل وي (بخاري او مسلم) په دې حدیث کي چي د بي بي ام سلیم څخه روایت دی مسلم دا الفاظ زیات لیکلي دي چي رسول الله ﷺ دا هم وفرمایل : د سړي مني ټینګ او سپین وي او د ښځي مني ژړ او نرم وي نو په دې کي چي د هر یوه مني غالب سي یا مخکي ووزي نو کوچنی هغه ته ورته وي .

**تشریح** : دا مسئله لږ نازکه ده او عرفا د شرم او حیاء خلاف ده ، ځکه بي بي ام سلیم مخکي د تمهید په توګه وویل چي الله تعالی د حق په اړه حیاء نه کوي یعني الله تعالی ددې څخه منعه فرمایلې ده چي د حق خبرې په پوښتنه کولو کي شرم او حیاء وکړل سي او بیا ددې څخه وروسته هغې اصل مسئله وپوښتل .

د رسول الله ﷺ د جواب مطلب دادی چي صرف د جماع په خوب لیدو سره غسل نه واجب کیږي تر څو پوري چي انزال نه وي یا سهار د پورته کېدو وروسته د هغه یو نښه ونه لیدل سي

---

[۱] د نوموړي په نامه کي ډیر اختلاف دی ځینو علماؤ اسلمه ، ځینو رمله او ځینو ملیکه لیکلی دی . په هر حال د حضرت انس ﷺ والده محترمه ده .

يعني يو څوک د خوب څخه د راکښېنستو وروسته پر بدن يا جامه باندي مني لګيدلي ويني نو غسل واجب کيږي، زموږ په نزد دا حکم دمذي هم دی يعني که د خوب څخه د پورته کېدو وروسته پر جامه يا بدن باندي مذي ويني نو غسل واجب کيږي.

ستا راسته لاس دي په خاورو سي : دا د شدت فقر کنايه ده لکه دا چي يو ډول ښيرا ده مګر دلته ددې استعمال په حقيقي معنی کي نه دی بلکه دا يوه داسي جمله ده چي د اهل عربو په نزد د تعجب پر وخت ويل کيږي ، همدارنګه ددې جملې معنا به دا وي چي اې ام سلمه ! د لوی تعجب خبره ده چي ته داسي خبره کوې ايا ته دومره هم نه پوهيږي که د ښځي مني نه وي نو بيا اکثر ماشومان د خپل مور مشابه وي هغوئ به څرنګه وه، د سړي د مني په ډول د ښځۍ هم مني وي او يا د دواړو د منيو څخه د ماشوم تخليق کيږي.

رسول الله ﷺ چي د مني کوم رنګ بيان کړی دی هغه د اکثر په اعتبار دي يعني د اکثرو او روغو خلکو او ښځو د مني رنګ داسي وي ځکه چي د ځينو خلکو مني د يو مرض په وجه نري يا د کثرت مباشرت په وجه سره وي، داسي د ځينو ښځو مني د قوت او طاقت د زياتوب په وجه سپين هم وي ، د حديث د آخري جملې مطلب دادی چي د مباشرت په وخت که د سړي او ښځي دواړو مني په غورځېدو سره د مور رحم ته ورسيږي نو په دواړو کي چي د کوم مني غالب وي يا په هغه دواړو کي چي د کوم مني سبقت (مخته والی) وکړي يعني د يو بل څخه مخکي غورځېدو سره رحم ته ورسيږي نو ماشوم د هغه مشابه وي.

﴿۳۹۹﴾ : وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا اغْتَسَلَ مِنَ الْجَنَابَةِ بَدَأَ فَغَسَلَ يَدَيْهِ ثُمَّ يَتَوَضَّأُ كَمَا يَتَوَضَّأُ لِلصَّلَاةِ ثُمَّ يُدْخِلُ أَصَابِعَهُ فِي الْمَاءِ فَيُخَلِّلُ بِهَا أُصُوْلَ شَعْرِهِ ثُمَّ يَصُبُّ عَلَى رَأْسِهِ ثَلَاثَ غُرُفَاتٍ بِيَدِهِ ثُمَّ يُفِيْضُ الْمَاءَ عَلَى جِلْدِهِ كُلِّهِ. متفق عليه، و في رواية لمسلم يبدا فيغسل يديه قبل ان يدخلهما الاناء ثم يفرغ بيمينه على شماله فيغسل فرجه ثم يتوضا.

د بي بي عائشي (رض) څخه روايت دی چي کله به رسول الله ﷺ د ناپاکۍ (جنابت) څخه د غسل اراده کول نو داسي به يې پيل کاوه چي لومړی به يې دواړه لاسونه پريولل بيا به يې اودس کاوه لکه څرنګه چي د لمانځه لپاره اودس کول کيږي بيا به يې خپلي ګوتي په اوبو کي لندې کړې او په وربښتانو کي به يې خلال وکړ يعني د وربښتانو بيخو ته به يې اوبه ورسولې بيا به يې په دواړو لاسو په لپه کي اوبه راواخستې پر سر به يې واچولې او داسي به يې درې ځله کول بيا به يې پر ټول بد ﴿به توی کړې (بخاري) د مسلم په روايت کي دا الفاظ هم دي کوم وخت چي به

رسول الله ﷺ غسل پیل کاوه نو په لوښي کي د لاس د ننه کولو څخه وړاندي به يې خپل دواړه لاسونه پريولل بيا به يې د راسته څخه پر چپه لاس اوبه اچولې بيا به يې خپل شرمگاه پريوله او ددې وروسته به يې اودس کاوه .

**تشريح** : بي بي عائشه رضي الله عنها د رسول الله ﷺ د غسل طريقه ښيي چي کله به رسول الله ﷺ غسل کوی نو تر ټولو مخکي به يې لاسونه تر مړوندو پوري پريولل ، د هغه څخه وروسته به يې داسي کوی لکه څرنگه چي د لمانځه لپاره اودس کول کيږي يعني که چيري په داسي ځای کي به يې غسل کوی چيري چي د پښو اېښودو ځای کي به اوبه نه يو ځای کېدې مثلا پر يو تخته ، ډبره وغيره درېدو سره به يې غسل کوی نو پوره اودس به يې کوی، او که چيري په داسي ځای کي به يې غسل کوی چي هلته به اوبه وغيره وې چي د هغه په وجه به د پښو لاندي اوبه جمع کېدی نو په دې صورت کي به رسول الله ﷺ د اودا سه په وخت کي پښې نه پريوللې بلکه د غسل څخه د فراغت وروسته به د هغه ځای څخه ليري سو او پښې به يې پريولې، لکه څرنگه چي ددې څخه په وروسته حديث کي وضاحت کيږي ، په هدايه کي هم ليکلي دي چي داسي کول پکار دي که د غسل په وخت کي د پښو د اېښودو پر ځای اوبه جمع کيږي نو بيا هغه وخت دي پښې نه پريولي بلکه د غسل څخه د فارغه کېدو وروسته د هغه ځای څخه په آخوا کېدو سره دي په دوهم ځای کي پښې پريولل سي . دلته دا هم واورئ چي د طبراني روايت دی چي رسول الله ﷺ ته هيڅکله احتلام نه دی سوی او نه نورو انبياء عليهم السلام ته احتلام سوی وو .

﴿۴۰۰﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَتْ مَيْمُوْنَةُ وَضَعْتُ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غُسْلاً فَسَتَرْتُهُ بِثَوْبٍ وَصَبَّ عَلٰى يَدَيْهِ فَغَسَلَهُمَا ثُمَّ صَبَّ عَلٰى يَدَيْهِ فَغَسَلَهُمَا ثُمَّ صَبَّ بِيَمِيْنِهِ عَلٰى شِمَالِهِ فَغَسَلَ فَرْجَهُ فَضَرَبَ بِيَدِهِ الْأَرْضَ فَمَسَحَهَا ثُمَّ غَسَلَهَا فَمَضْمَضَ وَاسْتَنْشَقَ وَغَسَلَ وَجْهَهُ وَذِرَاعَيْهِ ثُمَّ صَبَّ عَلٰى رَأْسِهِ وَأَفَاضَ عَلٰى جَسَدِهِ ثُمَّ تَنَحّٰى

د حضرت ابن عباس ؓ څخه روايت دی چي بي بي ميمونة[1] (رض) وفرمايل ما د رسول الله ﷺ د غسل لپاره اوبه کښېښودلې او په جامې سره مي پرده وکړل ، رسول الله ﷺ په خپلو دواړو لاسونو اوبه واچولې او هغه يې دوهم ځل داسي په خپلو لاسونو سره پريولل بيا يې د راسته لاس څخه پر چپه لاس اوبه واچولې بيا يې شرمگاه پريولل بيا يې چپه لاس چي په هغه سره يې شرمگاه پريولي

[1] ام المؤمنين حضرت بي بي ميمونه د حارث هماليه عامريه لور او د نبي کريم ﷺ محترمه مېرمن ده ، په صرف نامي ځای کي په (۶۱هـ) کال او يا د دوهم قول سره سم په کال (۵۱هـ) کي وفات سوې ده .

فَغَسَلَ قَدَمَيْهِ فَنَاوَلْتُهُ ثَوْبًا فَلَمْ يَأْخُذْهُ فَانْطَلَقَ وَهُوَ يَنْفُضُ يَدَيْهِ .متفق عليه ولفظه للبخاري.

وه پر مخکه ومورړی، بیا یې هغه پریولی بیا یې خوله پریولل او په پزه کې یې اوبه واچولې مخ یې پریولی او تر څنګلو پوري یې لاسونه پریولل بیا یې پر سر او ټول بدن باندي اوبه واچولې او پښې یې پریولې ، د درې وروسته یې د بدن پاکولو لپاره ما جامه ورکړه مګر جامه یې وانه خیستل بیا یې لاسونه و څنډل او د هغه ځای څخه ولاړی . بخاري او مسلم .

**تشريح** : د دې حدیث څخه ددې خبري وضاحت وسو که چیري غسل په داسي ځای کي وکړل سي چي د پښو اېښودو په ځای کي اوبه جمع کیږي نو د اواسه کولو په وخت کي دي پښې نه پریولي بلکه د غسل څخه وروسته د هغه ځای څخه په آخوا کېدو سره دي په بل ځای کي پښې پریولي، رسول الله ﷺ د غسل څخه وروسته د هغه ځای څخه په آخوا کېدو سره په دوهم ځای کي پښې ځکه پریولې چي د غسل په وخت کي د اوداسه کولو په وخت کي یې پښې نه وې پریولې ځکه چي رسول الله ﷺ غسل پر یو ډبره، تختې یا یو لوړ ځای باندي نه وو کړی چي د هغه په وجه په پښو کي اوبه جمع سوې وای .

د غسل څخه وروسته بې بي میمونې رضي الله عنها د بدن وچولو لپاره رسول الله ﷺ ته جامه وړاندي کړه مګر رسول الله ﷺ د هغه څخه انکار وکړ ، ددې ځو احتمالات علماؤ لیکلي دي ، کیدای سي چي رسول الله ﷺ د جامې اخیستو څخه په دې وجه انکار کړی وي چي د غسل وغیره څخه وروسته بدن نه وچول افضل وه، یا رسول الله ﷺ په تلوار کي وو ځکه په دې سوچ سره چي په جامې سره په بدن وچولو کي زنډ وسي نو جامه یې وانه خیستل ، یا دا کیدای سي چي هغه وخت د ګرمۍ موسم وو ځکه چي د لمبېدو څخه وروسته د اوبو لوندوالی به ورته ښه معلومیدی، ځکه نو رسول الله ﷺ به د بدن څخه اوبه وچول نه وي خوښ کړي، او یا دا هم کیدای سي چي په هغه جامه کي د چټلۍ وغیره شبه سوې وي ځکه هغه جامه یې رد کړل نو ددې حدیث څخه دا مسئله نسي مستنبط کیدای چي د غسل وغیره څخه وروسته پر بدن باندي لګیدلي اوبه نه وچول سنت دي یا دا چي وچول یې مکروه دي .

د لاسونو ښورولو مطلب دادی چي په عامه توګه سره طاقتو او روغ او توانا خلک د تللو په وخت کي لاسونه ښورولو سره ځي همداسي رسول الله ﷺ هم د لاسونو په ښورولو سره تشریف یووړ .

﴿۴۰۱﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ اِنَّ امْرَأَةً مِّنَ الْاَنْصَارِ سَأَلَتْ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ غُسْلِهَا مِنَ الْمَحِيْضِ فَاَمَرَهَا كَيْفَ تَغْتَسِلُ ثُمَّ قَالَ خُذِيْ فِرْصَةً مِنْ مِسْكٍ فَتَطَهَّرِيْ بِهَا قَالَتْ كَيْفَ أَتَطَهَّرُ بِهَا فَقَالَ تَطَهَّرِي بِهَا قَالَتْ كَيْفَ أَتَطَهَّرُ بِهَا قَالَ سُبْحَانَ اللّٰهِ تَطَهَّرِي بِهَا فَاجْتَذَبْتُهَا إِلَيَّ فَقُلْتُ تَتَبَّعِي بِهَا أَثَرَ الدَّمِ . متفق عليه

د حضرت بي بي عائشة (رض) څخه روايت دی چي يوې انصاري ښځي د نبي کريم ﷺ څخه د خپل حيض د غسل په اړه پوښتنه وکړه، رسول الله ﷺ ورته د غسل کيفيت بيان کړ او د غسل حکم يې ورکړ او وه يې فرمايل : د مشکو يوه ټوټه واخله په هغه سره پاکي وکړه . انصاري ښځي وويل په دې سره څنگه پاکي وکړم؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل په دغه جامې سره پاکي وکړه، انصاري ښځي بيا پوښتنه وکړه څنگه پاکي وکړم ؟ رسول الله ﷺ وفرمايل : سبحان الله ته په هغه سره پاکي تر لاسه کړه . بي بي عائشة وايي د رسول الله ﷺ د وار وار ويلو سره ما هغه انصاري ښځه ځان ته راوستل بيا مي ورته وويل دا جامه د ويني پر ځای کښيږده (او په دې سره وينه پاکه کړه) بخاري او مسلم

**تشريح** : دا ډول مسئلې چي کله راسي نو هلته تاسو د حديث طريقه ويني چي رسول الله ﷺ داسي مسئلې په کوم انداز سره بيانوي، خبره هغه ده چي يوې خوا ته خو شرعي مسائل په پوره وضاحت سره د بيانولو ذمه داري د رسول الله ﷺ پر اوږو مبارکو ده چي په هغه کي د شرم او حياء په وجه د څه اخفاء ځای نسته ،بلي خوا ته د رسول الله ﷺ د شرم او حياء هغه فطري تقاضا ده چي د خلاف ادب او تهذيب جمله ادا کولو کي حائل کيږي ، ځکه نو رسول الله ﷺ د داسي مسائلو په بيان کي داسي لار اختياروي چي د شرم او حياء د دائرې څخه نه متجاوز کيږي او د مسائلو وضاحت هم حتی الامکان کيږي .

اوس تاسو وگورئ چي يوه پوښتنه کونکې د ښځو د مسئلو وضاحت غواړي، رسول الله ﷺ هغې ته جواب ورکوي او بيا په دې اړه د نطاقت او لطافت يو خاص طريقې ته د هغې رهنمائي کول غواړي نو رسول الله ﷺ په اشارو کي د هغې پوهېدل غواړي، بيا رسول الله ﷺ په ډېر تعجب سره فرمايي ، سبحان الله ته په دې سره پاکي تر لاسه کړه مسئله د زياتي پوهي ثبوت نه ورکوي رسول الله ﷺ بيا خپل هغه جملې دوهم وار وايي چي هغه پوهه سي مگر هغه نور وضاحت غواړي، رسول الله ﷺ بيا په ډير تعجب سره فرمايي سبحان الله ته په دې سره پاکي تر لاسه کړه يعني د تعجب خبره ده چي ته په دومره ساده او ظاهره مسئله هم نه پوهيږې دا خو يو باريکه

مسئله نه ده او یو خاص نکته نه ده چي د هغه په پوهېدو کي د زیات غور او فکر ضرورت وي ، بې بي عائشه رضي الله عنها هغه وخت د ذکاوت او ذهانت غوره ثبوت ورکوي هغه پوه سوه چي یوې خوا ته ښځه د رسول الله ﷺ مقصد ته نه رسیږي او بلي خوا ته د رسول الله ﷺ شرم او حیاء د زیات وضاحت اجازه نه ورکوي نو هغه ښځه ځان ته رابولي او بیا د رسول الله ﷺ په مقصد یې په وضاحت سره پوهوي .

د حدیث په الفاظو کي (فرصة من مسک فتطهري) کي لفظ د مسک د میم په زیر سره دی چي د هغه معنی د مشک ده ، ددې مطلب به دا وي چي د مشک یوه ټوټه یا په مشک کي لنده کړې یا د رنګ سوي جامې یوه ټوټه واخله په هغه سره پاکي تر لاسه کړه ، په یوه روایت کي مسک د میم په زور سره هم راغلی دی چي د هغه معنی د پوست ده مګر د روایت سره سم او د موقع په مناسبت سره د میم زیر یعني د مشک معنی زیاته غوره ده .

په دغه مسئله کي فقهاء لیکي چي د ښځي لپاره (د حیض په ورځو کي) دا مستحب ده چي هغه د مشک یوه ټوټه یا په مشک کي رنګ سوې معطر جامې یوه ټوټه اخیستو سره پر شرمګاه کښېږدي چي د ویني بدبویي ولاړه سي .

﴿۴۰۲﴾: وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ قَالَتْ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ إِنِّي امْرَأَةٌ أَشُدُّ ضَفْرَ رَأْسِي فَأَنْقُضُهُ لِغُسْلِ الْجَنَابَةِ قَالَ لاَ إِنَّمَا يَكْفِيكِ أَنْ تَحْثِيَ عَلَى رَأْسِكِ ثَلاَثَ حَثَيَاتٍ ثُمَّ تُفِيضِينَ عَلَيْكِ الْمَاءَ فَتَطْهُرِينَ. رواه مسلم .

د حضرت ام سلمة (رض) څخه روایت دی چي ما رسول الله ﷺ ته عرض وکړ اې دالله رسوله ! زه یوه داسي ښځه یم چي د خپل سر وربښتان ټینګ ترم ایا د ناپاکی په حالت کي دا خلاص کړم ؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمایل : نه، ستا لپاره دا بس ده چي ته پر خپل سر درې لپي اوبه واچوې او پر خپل بدن یې و بیوې نو پاکه به سې .مسلم.

**تشریح** : د دغه حدیث په اړه صحیح قول دادی چي د پورتني حدیث حکم یوازي د غسل په وخت کي که وربښتان تړل سوي وي او پر سر اوبه داسي واچول سي چي د وربښتانو بیخونه لانده سي نو دا کافي دي ، د وربښتانو د خلاصولو ضرورت نسته او که په دې پوه سي چي د وربښتانو خلاصولو څخه پرته بیخونه نه لندیږي نو بیا په دې صورت کي د وربښتانو خلاصول ضروري دي، نارینوو ته په هر صورت کي وربښتان خلاصول پکار دي .

﴿۴۰۳﴾: وَعَنْ اَنَسٍ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَوَضَّأُ بِالْمُدِّ وَيَغْتَسِلُ بِالصَّاعِ إِلَى خَمْسَةِ أَمْدَادٍ . متفق عليه.

د حضرت انس ﷛ څخه روايت دى چې رسول الله ﷺ به په يوه مد (تقريبا يو سير) اوبو سره اودس كاوه او په يوه صاع (څلور سيره) اوبو سره او غسل به يې كوى په يوه صاع تر پنځو مدو پورې. بخاري او مسلم.

**تشريح** : (مُد) د يو پيمانې نوم دى چې په هغه كې تقريبا يو سير غله راځي او صاع هم يو پيمانه ده چې په هغه كي تقريبا څلور مده يعني څلور سيره غله راځي، دلته د صاع او مد څخه پيمانه مراد نه ده بلكه وزن مراد دى يعني رسول الله ﷺ به تقريبا په يو سير اوبو سره اودس كوى او په څلور سيره يا پنځه سيره اوبو سره به يې غسل كوى ، نو مناسب دا ده چې تقريبا په يو سير اوبو سره اودس وكړل سي او په څلور يا پنځه سيره اوبو سره غسل وكړل سي ، مګر په دې خبره پوهېدل پكار دي چې د اوداسه او غسل لپاره د اوبو دغه اندازه د واجب په درجه كي نه ده بلكه دا سنت ده چې د اوداسه او غسل لپاره اوبه اوبه تر دې اندازې كمې نه وي.

د رسول الله ﷺ د اوداسه د اوبو اندازه په ځينو روايتونو كي دريمه برخه د مد او په ځينو روايتونو كي نيم مد هم منقول دي ، نو د دې حديث متفق عليه محل به دا وګرځول سي چې رسول الله ﷺ به اكثر په يوه مد سره اودس كوى مګر كله كله به يې تر دې په كمو اوبو هم اودس كوى لكه څرنګه چې په ځينو روايتونو كي منقول دي.

﴿۴۰۴﴾ :وَ عَنْ مُعَاذَةَ قَالَتْ قَالَتْ عَائِشَةُ كُنْتُ أَغْتَسِلُ أَنَا وَرَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ إِنَاءٍ وَاحِدٍ بَيْنِي وَبَيْنَهُ فَيُبَادِرُنِي حَتَّى أَقُولَ دَعْ لِي دَعْ لِي قَالَتْ وَهُمَا جُنُبَانِ . متفق عليه.

د بي بي معاذة (رض) څخه روايت دى چې بي بي عائشې (رض) وفرمايل : ما او رسول الله ﷺ به د يوه لوښي څخه غسل كاوه چې زموږ د واړو په منځ كي به پروت وو ، رسول الله ﷺ به په اوبو اخيستو كي د تادي (تلوار) څخه كار اخيست تر دې چې ما به ويل زما لپاره هم اوبه پرېږده زما لپاره هم اوبه پرېږده ، بي بي معاذه وايي دا غسل به د دواړو د جنابت غسل وو. بخاري او مسلم

**تشريح** : په كوم لوښي كي چې به رسول الله ﷺ او بي بي عائشې رضي الله عنها په ګډه غسل كوى هغه د يو د ښانك په ډول وو چې په هغه كي به درې صاع تقريبا دوولس سيره اوبه راتلې د غسل لپاره به دواړو په هغه لوښي كي اوبه را اخيستلې او په هغه سره به يې غسل كوى .

د حديث دا الفاظ چې رسول الله ﷺ به (د اوبو په را اخيستلو كي) تلوار كوى ، ددې مطلب دا نه دى چې رسول الله ﷺ به د بي بي عائشې رضي الله عنها د لمبېدو څخه مخكي په لږ اوبو

سره لمبیدی او پاته اوبه به یې پرېښودلې چي په هغه سره به بي بي عائشې رضي الله عنها لمبېدل ، بلکه ددې مطلب دادی چي د اوبو لوښی به د دواړو په مینځ کي پروت وو او دواړو به په یو ځای د هغه غسل کوی ، د حدیث آخري جمله چي دواړه به د ناپاکی په حالت کي وه په دې اړه ابن مالک رحمة الله علیه ویلي دي چي دا حدیث پر دې خبره دلالت کوي چي په کومو اوبو کي جنب سړی لاس غوټه کړي نو هغه اوبه طاهر او مطهر دي ، جنب که سړی وي او که ښځه وي .

امام ابن همام رحمة الله علیه فرمایي چي زمونږ د ټولو علماؤ دا قول دی که چیري د محدث (بې اودسه) ، جنب (چي پر هغه غسل واجب وي) او حائضې لاس پاک وي او هغه د اوبو په لوښي کي د اوبو را اخیستلو لپاره په اوبو کي لاس غوټه کړي نو اوبه به مستعمل (یعني د استعمال نا قابل) به نه وي ، ځکه چي د اوبو را اخیستلو لپاره هغوئ ددې طریقې محتاج دي، نو موږي امام ددې قول په دلیل کي دا حدیث وړاندي کوي ، ددې څخه وروسته هغه فرمایي چي ددې پر خلاف که چیري جنب د اوبو په لوښي کي خپله پښه یا سر واچوي نو بیا اوبه ناپاکه کیږي ځکه چي په دې صورت کي هغه مجبور نه دی او نه ددې طریقې ضرورت وي .

## الفصل الثاني

﴿۴۰۵﴾: عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ سُئِلَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ الرَّجُلِ يَجِدُ الْبَلَلَ وَلَا يَذْكُرُ احْتِلَامًا قَالَ يَغْتَسِلُ وَعَنْ الرَّجُلِ يَرَى أَنَّهُ قَدْ احْتَلَمَ وَلَا يَجِدُ بَلَلًا قَالَ لَا غُسْلَ عَلَيْهِ قَالَتْ أُمُّ سَلِيم يَا رَسُولَ اللَّهِ هَلْ عَلَى الْمَرْأَةِ تَرَى ذَلِكَ غُسْلٌ قَالَ نَعَمْ إِنَّ النِّسَاءَ شَقَائِقُ الرِّجَالِ. رواه الترمذي وابوداؤد و روي الدارمي وابن ماجه الى قوله لا غسل عليه

د حضرت عائشې (رض) څخه روایت دی چي د رسول الله ﷺ څخه د هغه سړي په اړه پوښتنه وسول چي پر جامو لوندوالی ویني او احتلام یې یاد نه وي ، رسول الله ﷺ ورته وفرمایل : هغه نه غسل کول پکار دي ، بیا پوښتنه وسول که احتلام یې یاد وي مګر لوندوالی نه ویني، رسول الله ﷺ وفرمایل : پر هغه غسل واجب نه دی، بي بي ام سلیم چي دا واوریدل نو پوښتنه یې وکړل که ښځه هم لوندوالی ویني نو ایا پر هغې هم غسل واجب دی؟ رسول الله ﷺ وفرمایل : هو، ښځي هم د سړو په شان دي . ترمذي ، ابوداؤد ، دارمي او ابن ماجه .

**تشریح** : پوښتنه دا وه چي د مثال په توګه یو سړی د خوب څخه راکښېنستی او وه یې لیدل چي

پر جامو يا بدن باندي يې مني يا مذي لګيدلي دي مګر د هغه يو داسي خوب په ياد نه دي چي په هغه خوب كي يې د چا سره كوروالي كړې وي چي د هغه په وجه دا احتلام واقع سوى دى، نو ايا پر داسي سړي باندي به غسل واجب كه يا؟ رسول الله ﷺ جواب وركړ چي هغه ته غسل كول پكار دي، لكه د جواب مطلب چي دا سو چي د غسل د وجوب دار او مدار د مني يا مذي پر لوندوالي باندي دى د خوب پر يادېدو يا نه يادېدو باندي نه دى.

د حديث د آخري برخي مطلب دادى چي د پيدائش او طبائع په اعتبار ښځي هم د خلكو په ډول دي ځكه نو د سړي په ډول كه ښځه هم د خوب څخه په راوېښېدو باندي پر خپل جامه يا بدن باندي لونادوالى محسوس كړي نو پر هغې هم غسل واجب كيږي.

د دې حديث څخه دا معلوميږي چي صرف پر لوندوالي ليدو باندي غسل واجب كيږي كه څه هم ددې خبري يقين نه وي چي مني په ټوپ وهلو سره وتلي دي، د تابعينو د يو ډلي او امام اعظم ابوحنيفة رحمة الله عليه څخه هم داسي منقول دي.

مګر اكثر علماء دا فرمايي چي غسل تر هغه وخته پوري نه واجب كيږي تر څو پوري چي په دې پوه نسي چي مني په ټوپ وهلو سره وتلي دي كه په دې پوه سي چي مني په ټوپ وهلو سره وتلي دي نو غسل واجب كيږي كنه نو غسل نه واجب كيږي او احتياطي غسل كول به مستحب وي. پر دې ځاى يو سوال پيدا كيږي چي سړى او ښځه په يوه بستره كي بيده سوه، د خوب څخه چي راكښينستل نو دهغوئ پر بستره باندي د مني لوندوالى محسوس كړ مګر په دواړو كي يوه ته معلومه نه ده چي دا د چا مني دي نو په دې صورت كي به پر غسل واجب وي؟ ددې جواب دادى چي په دغه صورت كي به دا وكتل سي چي د مني رنګ څه ډول دى كه هغه سپين وي نو دا به ددې دليل وي چي دا دسړي مني دي نو پر سړي به غسل واجب كيږي او كه د هغه رنګ ژړ وي نو بيا غسل پرښځي باندي واجب كيږي، مګر احتياط به دا وي چي ښځه او سړى دواړه غسل وكړي.

﴿۴۰۶﴾: وَعَنْهَا قَالَتْ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا جَاوَزَ الْخِتَانُ الْخِتَانَ وَجَبَ الْغُسْلُ فَعَلْتُهُ أَنَا وَرَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاغْتَسَلْنَا.

رواه الترمذي وابن ماجة

د حضرت عائشې (رض) څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل: هر كله چي د نارينه د سنت ځاى د ښځي په سنت ځاى كي غائب سي نو غسل واجب سي. بي بي عائشة فرمايي ما او رسول الله ﷺ دا عمل وكړ نو موږ دواړو غسل وكړ. ترمذي او ابن ماجه.

**تشريح** : (ختان) هغه ځای ته وايي چي هغه د ختنې (سنت كېدو) په وخت كي پرې كيږي چي د سړي د خاص اندام په سر كي يو پوست وي او د ښځي د شرمګا د چرګ د د كلغي په ډول پورته سوې يوه برخه وي ، نو فرمايل كيږي چي هر كله ختنين يو ځای سي او حشفه د ښځي په شرمګاه كي داخل سي نو غسل واجب كيږي كه انزال وسي او كه ونه سي .

﴿۴۰۷﴾ : وَ عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قال قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَحْتَ كُلِّ شَعْرَةٍ جَنَابَةٌ فَاغْسِلُوا الشَّعْرَ وَأَنْقُوا الْبَشَرَةَ. رواه ابوداؤد والترمذي وابن ماجة وقال الترمذي وابن ماجة هذا حديث غريب والحارث ابن وجيه الراوي وهو شيخ ليس بذالك .

د حضرت ابوهريرة ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د هر وريښته لاندي ناپاكي ده له دې كبله وريښتان پريولئ او بدن پاكوئ ، ابوداؤد ، ترمذي، ابن ماجه، ترمذي ليكلي دي دا حديث غريب دی او يو راوي حارث بن وجية معتبر نه سي ګڼل كيدلای په سبب د زوړوالي .

**تشريح** : د دې حديث مقصد دادی چي د جنابت په غسل كي د سر وريښتان په ښه ډول پريول پكار دي چي اوبه د وريښتانو بيخونو ته ورسيږي ځكه كه چيري اوبه بيخونو ته ونه رسيږي نو پاكي نه حاصليږي ، كتابونو ليكلي دي كه چيري د يوه وريښته لاندي ځای هم وچ پاته سي نو غسل نه ادا كيږي ، د وريښتانو سره بدن هم په ښه ډول پريوللو حكم وركړل سوی دی ، د دې مطلب هم دادی چي د غسل په وخت كي د بدن په ښه ډول موږلو سره غسل خيره وغيره پاكول پكار دي او پر ټول بدن باندي اوبه داسي بيول پكار دي چي د بدن هيڅ برخه هم وچه پاته نسي ځكه كه چيري پر بدن باندي وچه خاوره، اوړه، موم او داسي بل شی لګيدلی وي او د هغه لاندي اوبه ونه رسيږي نو ناپاكي نه ليري كيږي .

﴿۴۰۸﴾: وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ تَرَكَ مَوْضِعَ شَعْرَةٍ مِّنْ جَنَابَةٍ لَّمْ يَغْسِلْهَا فُعِلَ بِهَا كَذَا وَكَذَا مِنَ النَّارِ . قَالَ عَلِيٌّ فَمِنْ ثَمَّ عَادَيْتُ رَأْسِيْ فَمِنْ ثَمَّ عَادَيْتُ رَأْسِيْ فَمِنْ ثَمَّ عَادَيْتُ رَأْسِيْ ثَلَاثًا . ( رواه أبو داود وأحمد والدارمي إلا أنهما لم يكررا فمن ثم عاديت رأسي )

د حضرت علي ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل :چا چي د جنابت په غسل كي د يو وېښته په اندازه ځای هم پرېښودی او هغه يې نه پريولی نو د هغه له كبله به د هغه سره په اور كي داسي او داسي وكړل سي،. علي ﷺ وايي چي د رسول الله ﷺ (د دې حكم په اورېدو سره) ما د خپل سر سره دښمني وكړه درې ځله يې دا جمله وويل يعني د دې وروسته ما د خپل سر وريښتان وخريل . ابوداؤد، احمد او دارمي .

**تشريح** : دا حديث په زيات وضاحت سره د پورتني حديث تائيد كوي او د جنابت په غسل كي د ورېښتانو په اړه غفلت كونكي خبروي ، داسي داسي د تعدد ځخه كنايه ده يعني داسي سړي ته چي هغه غسل په احتياط سره ونه كړ او د ورېښتانو بيخونو ته يې په ښه ډول اوبه ونه رسولې نو هغه ته څو ډوله او ډېر زيات عذاب وركول كيږي .

د حضرت علي ﷺ دا ارشاد مطلب دادی چي ما د رسول الله ﷺ د ژبي مباركي ځخه دا تهديد او سزا واوريدل نو ددې بيري ځخه كه چيري ورېښتان واى نو د جنابت د غسل په وخت كي كيداى سي د هغه بيخونه وچ پاته سي نو د ورېښتانو سره مي بالكل د دښمنانو په ډول چلن وكړ ځرنګه چي يو سړى خپل دښمن د ځان لپاره د خطري سبب او باعث ګڼلو سره هغه وژني همداسي د رسول الله ﷺ د تهديد او سزا په وجه ما هغه ورېښتان د خپل عاقبت خرابۍ ګڼلو په وجه د هغه صفائي مي وكړه (يعني وه مي خريل) .

د دغه حديث او د حضرت علي ﷺ د عمل ځخه دا معلومه سوه چي د سر ورېښتان هميشه خريل جائز دي ، مګر غوره او سنت د ورېښتان پرېښودل دي ځكه چي رسول الله ﷺ او خلفاء راشدينو پر خپلو سرونو ورېښتان ساتل او يوازي د حج په وخت كي يې خريل .

او كوم چي د حضرت علي ﷺ ددې ارشاد تعلق دی نو دهغه په اړه ويل كيداى سي چي ددې ځخه د حضرت علي ﷺ مراد دادی چي ما د سر ورېښتان وخريل نو د هغه ځخه بل مقصد نه دی او هغه مي د ښكلا او زينت يا د يو راحت او آرام په وجه نه دي خريلي بلكه اصلي مقصد هغه دی چي بيان سوى دی، لكه حضرت علي ﷺ چي د يو داسي كار په ترک كول وباندي خپل عذر بيان كړ كوم چي د رسول الله ﷺ ځخه په همېشتوب سره ثابت دی .

| | |
|---|---|
| ﴿۴۰۹﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لاَ يَتَوَضَّأُ بَعْدَ الْغُسْلِ . رواه أبو داود والترمذي والنسائي وابن ماجه . | د حضرت عائشي (رض) ځخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به د غسل ځخه وروسته اودس نه كاوه . ابوداؤد ، ترمذي، نسائي او ابن ماجه . |

**تشريح** : مطلب دادی چي رسول الله ﷺ به د غسل ځخه مخكي اودس د غسل لپاره كوی، د غسل ځخه وروسته يې بيا اودس نه كوی او مسئله هم داده چي د غسل لپاره كوم اودس وكړل سي هغه كافي دی ، د غسل ځخه وروسته د لمانځه وغيره لپاره د دوهم اودس كولو ضرورت نسته د غسل په اوداسه سره لمونځ هم كيداى سي .

﴿۴۱۰﴾: وَعَنْهَا قَالَتْ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَغْسِلُ رَأْسَهُ بِالْخِطْمِيِّ وَهُوَ جُنُبٌ يَجْتَزِئُ بِذٰلِكَ وَلاَ يَصُبُّ عَلَيْهِ الْمَاءَ . رواه أبو داود .

د حضرت عائشې (رض) څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ به د ناپاکۍ په حالت کي یوازي په خطمي سره سره پریولی او پر دې به یې بس والی کاوه او دوهم وار به یې پر سر اوبه نه اچولې . ابوداؤد .

**تشریح** : څرنګه چي دلته په شامپو وغیره سره د سر پریوللو رواج دی همداسي په عربو کي په خطمي سره سر پریولل کیدی ، بي بي عائشة رضي الله عنها په دې اړه فرمایي چي رسول الله ﷺ به کله د جنابت غسل کوی نو د خپل سر وریښتان به یې په خطمي سره پریولل او هغه به دا طریقه وه چي رسول الله ﷺ به پر سر باندي په خطمي موړلو سره د هغه د پریوللو لپاره پر سر باندي د خطمي یو ځای سوي اوبه اچولې نو بیا دوهم وار د اوبو بیولو په وخت کي به یې پر سر باندي اوبه نه اچولې بلکه هغه لومړنی پریولل به یې کافي ګڼل لکه څرنګه چي په عامه توګه سره پریوللو والا همداسي کوي چي اول سر پریولي د هغه وروسته غسل کوي بیا دوهم وار پر سر اوبه اچوي ، رسول الله ﷺ به داسي نه کول .

داسي معلومیږي چي رسول الله ﷺ به په کومو اوبو سره سر پریولی په هغه کي به د خطمي اجزا کم وه چي په هغه سره به د اوبو په حقیقت کي یو ډول تغیر نه وو یعني سیلان (بهیدل) به یې پاته وو .

﴿۴۱۱﴾: وَعَنْ يَعْلٰى قَالَ إِنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَاٰى رَجُلاً يَغْتَسِلُ بِالْبَرَازِ فَصَعِدَ الْمِنْبَرَ فَحَمِدَ اللهَ وَأَثْنٰى عَلَيْهِ ثُمَّ قَالَ إِنَّ اللهَ عَزَّ وَجَلَّ حَيِيٌّ سِتِّيْرٌ يُحِبُّ الْحَيَاءَ وَالتَّسَتُّرَ فَإِذَا اغْتَسَلَ أَحَدُكُمْ فَلْيَسْتَتِرْ . رواه أبو داود والنسائي وفي روايته قال إن الله ستير فإذا أراد أحدكم أن يغتسل فليتوار بشيء .

د حضرت یعلي[۱] ؓ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ یو سړی ولیدی چي په میدان کي یې لوڅ غسل کاوه، رسول الله ﷺ منبر ته وختی د الله حمد او ثناء یې بیان کړه بیا یې وفرمایل : په تحقیق سره الله حیاداره دی پرده پوش دی او حیا او پرده کول خوښوي په تاسو کي چي څوك (په میدان کي) غسل کوي نو هغه ته پکار ده چي پرده وکړي . ابوداؤد ، نسائي، په یوه روایت کي دي چي وه یې فرمایل : بېشکه الله پرده پوش دی کله چي په تاسو کي یو څوك د غسل اراده وکړي نو هغه ته پکار دي چي په یو شي سره پرده وکړي .

[۱] دلته د تحقیق څخه دا خبره ثابته سوې نه ده چي دا یعلي بن امیه ثقفي دی یا یعلي بن مره ثقفي دی ، په هر حال دا دواړه جلیل القدر صحابیان دي .

**تشريح** : د رسول الله ﷺ عادت مبارک دا وو چي کله به يې يو مهمه او عظيم الشانه مسئله بيانول غوښتل يا د يو خاص شي په اړه به يې خبر ورکول غوښتل نو منبر ته به يې تشريف وړې ، اول به يې د الله تعالى حمد او ثناء بيانول د هغه وروسته به يې مسئله بيانول، رسول الله ﷺ يو وار يو سړی وليدی چي هغه په پردې نه کولو سره په يو خلاص ميدان کي لوڅ غسل کوي او د رسول الله ﷺ د شرم او حياء پر تندي گونجي راغلې ، سمدستي يې په مسجد نبوي کي منبر ته تشريف يو وړ د خلکو په مخکي يې د شرم او حياء د اهميت او عظمت په اړه يې په بليغ او فصيح انداز کي بيان وکړ، د رسول الله ﷺ د ارشاد خلاصه داده چي د الله تعالى مبارک ذات د ټولو محاسنو او اوصافو جامع دی ، شرم او حياء او پرده کول چي ډير لوی صفتونه دي دا هم د الله تعالى د صفتو څخه دي، الله تعالى دا غواړي چي د هغه بندګان د دغه صفتونو د نوراني شعلو څخه خپل زړه او دماغ روښانه کړي د هغه چي کوم صفات دي هغه حتي الامکان په ځان کي پيدا کړي ځکه هغه دا خوښوي چي بندګان د شرم او حياء پر اصولو کاربند وي ، د دغه عظيم الشان صفتونو څخه خپل لمني ډکي کړي او پرده کول په هيڅ حال کي پرې نږدي نو ټولو مسلمانانو ته پکار ده چي د شرم او پردې په اړه غفلت او بې پرواهي ونه کړي .

## الفصل الثالث

﴿۴۱۲﴾: عَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ قَالَ إِنَّمَا كَانَ الْمَاءُ مِنَ الْمَاءِ رُخْصَةً فِيْ أَوَّلِ الْإِسْلَامِ ثُمَّ نُهِيَ عَنْهَا .رواه الترمذي وابوداؤد والدارمي .

د حضرت ابي بن كعب ﷺ څخه روايت دی چي د اسلام په پيل کي د مني په وتلو سره د غسل واجب کېدو اجازت وو بيا ددې څخه منعه وکړل سوه (يعني د اسلام په پيل کي يوازي په مني وتلو سره غسل واجب کېدی که يې جماع کړې وای او مني نه وای وتلي نو بيا غسل واجب نه وو، بيا دا منسوخ سو). ترمذي، ابوداؤد او دارمي.

**تشريح** : د دې باب په دوهم حديث کي د ابی بن کعب ﷺ د دې روايت ذکر راغلی دی او هلته دا ښودل سوي دي چي د اسلام په پيل کي دا حکم وو چي غسل په هغه صورت کي واجب وي هر کله چي د جماع په وخت کي انزال هم وي يعني هغه وخت پرته د انزال څخه په يوازي ادخال غسل نه واجب کيدی، نو ابی بن کعب ﷺ فرمايي چي دا حکم مخکي وو اوس منسوخ سوی دی اوس دا حکم سوی دی چي صرف په جماع يعني ادخال سره غسل واجب کيږي که انزال وي يا نه وي.

﴿۴۱۳﴾: وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ جَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ إِنِّي اغْتَسَلْتُ مِنَ الْجَنَابَةِ وَصَلَّيْتُ الْفَجْرَ فَرَأَيْتُ قَدْرَ مَوْضِعِ الظُّفْرِ لَمْ يُصِبْهُ الْمَاءَ فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَوْ كُنْتَ مَسَحْتَ عَلَيْهِ بِيَدِكَ أَجْزَأَكَ . رواه ابن ماجه .

د حضرت علي ﷺ څخه روايت دى چي يو سړى د نبي كريم ﷺ په خدمت كي حاضر سو او عرض يې وكړ چي ما د جنابت څخه غسل وكړ بيا مي د سهار لمونځ وكړ او وروسته راته ښكاره سوه چي د نوك په اندازه ځاى په غسل كي وچ پاته سوى دى ، نو رسول الله ﷺ وفرمايل : كه تا پر هغه باندي په لاس سره مسحه كړې واى نو بس وه . ابن ماجه .

**تشريح** : د رسول الله ﷺ د جواب مطلب دادى كه تا د غسل په وخت كي كله چي يو ځاى وچ پاته سوى وو لوند لاس هم تير كړى واى نو دا به كافي واى او ستا غسل به پوره سوى واى .
او كه تا ته دغه وچ ځاى د وچ والي احساس وروسته سوى وو نو تا ته پكار وه چي دا ځاى دي پريولى واى كه څه هم معمولي واى او كوم لمونځ چي دي كړى دى د هغه قضاء وكړه .

﴿۴۱۴﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ قَالَ كَانَتِ الصَّلَاةُ خَمْسِيْنَ وَالْغُسْلُ مِنَ الْجَنَابَةِ سَبْعَ مَرَّاتٍ وَغَسْلُ الْبَوْلِ مِنَ الثَّوْبِ سَبْعَ مَرَّاتٍ فَلَمْ يَزَلْ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسْأَلُ حَتَّى جُعِلَتِ الصَّلَاةُ خَمْسًا وَالْغُسْلُ مِنَ الْجَنَابَةِ مَرَّةً وَغَسْلُ الثَّوْبِ مِنَ الْبَوْلِ مَرَّةً . رواه أبو داود .

د حضرت عبد الله بن عمر ﷺ څخه روايت دى چي (په پيل كي) پنځوس لمنځونه (فرض) وه او د جنابت وروسته اووه واره غسل وو، او كه بولې پر جامه لګېدلي واى نو هغه به اووه ځله پريولل كېده ، رسول الله ﷺ به تل د الله څخه د كمۍ خواست كاوه تر دې چي پنځه لمنځونه فرض سوه او د ناپاكۍ څخه يو ځل غسل او د بولو څخه جامه يو ځل پريولل پاته سول . ابوداؤد.

**تشريح** : رسول الله ﷺ چي د روحاني او جسماني لوړتياوو ټول منازل وهلو سره د معراج په شپه كي د ذات حق جل مجده د قربت حقيقي شرف تر لاسه كړ نو ددې مقدس او انساني ژوند تر ټولو د لوى سعادت او رفعت د يادګار په توګه دربار حق جل مجده څخه د رسول الله ﷺ په توسط سره د بندګانو لپاره د لمانځه تحفه عنايت وفرمايل سول، چي هغه ته د معراج رسول خدا ددې عظيم سعادت په مناسبت سره معراج مؤمنين ويل كيږئ، لمونځ په ټولو عباداتو كي د خپل اجر او ثواب او د خپل عظمت او اهميت په اعتبار د بندګانو لپاره د سعادت او نيک بختۍ او د الله تعالى د رضا د حصول تر ټولو لويه ذريعه ده ځكه چي ددې په وجه ددې عظيم او مقدس فريضې په ذريعه د الله تعالى نيک او فرمانبردار بندګان زيات د سعادت او نيک بختۍ په

دولت سره خپل لمنې ته کولای سي، نو په ورځ او شپه کي پنځوس لمنځونه فرض سول.

څرګنده ده چي د پنځوسو لمنځونو د فریضې دا تحفه د بندګانو د سعادت او نیک بختۍ په اعتبار که هر څومره د اهمیت او عظمت حامل وي مګر سوال دا وو چي ایا د انسان قوت او ذهن او فکر ددې عظیمي فریضې دادا کولو بار به وزغمي.

قربان سم د رسول الله ﷺ د ذات اقدس او شان رحمت څخه چي د انساني فطرت او مزاج د ټولو څخه لوی راز پوهېدونکی او د انسانیت دا عظیم محسن او عظیم شفیق رهبر ﷺ پوهیدی چي د انسان فکر او عمل دا عظیم بار هیڅکله نسي زغملای او د الله تعالی بندګان د لمانځه د دومره لوی شمیر پر ادا کولو باندي قادر کیدای نسي نو رسول الله ﷺ فکر وکړ که نن پنځوس لمنځونه سول نو سبا به ټول مخلوق په سخت اخروي تاوان او روحاني اذیت کي اخته سي ځکه چي پنځوس لمنځونه به نسي ادا کولای، د هغه نتیجه به د حکم خداوندي د نافرمانۍ په وجه د عذاب څخه پرته نور څه کیدای سي، نو رسول الله ﷺ پر خپل امت باندي د ډیر شفقت او محبت معامله فرمایي او د الله تعالی په دربار کي د لمنځو په دغه شمیر کي تخفیف غواړي، او بیا د هغه خوا څخه هم د خپل حبیب ﷺ پر خواست د قبولیت شرف حاصلیږي او په هغه کي کمي کیږي، مګر رسول الله ﷺ په هغه سره هم نه مطمئن کیږي نو د زیات تخفیف لپاره درخواست وړاندي کوي، هر کله چي نور تخفیف کیږي نو رسول الله ﷺ هغه هم زیات او د امت په حق کي تکلیف ګڼلو سره نوره کمي غواړي تر دې چي د خواست او قبولیت دا لړۍ پر پنځو لمنځو ختمیږي او پنځه لمنځونه فرض ګرځول کیږي.

په دې حدیث کي دې ته اشاره ده چي په شب معراج کي خو لمنځونه پنځوس فرض سوي دي مګر رسول الله ﷺ د امت په حق کي د زیات شفقت او رحمت په نظر په دې ګڼلو سره چي امت به دومره لمنځونه ادا نه کړلای سي په دې شمیر کي تخفیف وکړ بیا هم رسول الله ﷺ د نور تخفیف درخواست وړاندي کولو سره پنځه لمنځونه به یې کمول تر دې چي په آخر کي پنځه لمنځونه پاته سول، همدارنګه د ناپاکۍ لیري کولو لپاره اووه واره د غسل کولو حکم وو مګر وروسته دا هم منسوخ کړل سو او یوازې یو وار غسل واجب کړل سو، یعني پر ټول بدن باندي یو وار اوبه بیولو سره فرض خو ادا کیږي مګر سنت طریقه دا ده چي درې واره پر بدن باندي اوبه وبیول سي، په بخاري او مسلم کي په دې اړه چي کوم حدیث منقول دی په هغه کي یوازې د لمانځه ذکر دی، د غسل او جامو څخه د بولو پریوللو ذکر نسته مګر دلته د ابوداؤد روایت چي

نقل سوی دی چي په هغه کي ددغه دواړو شيانو ذکر هم دی، مګر ددې روايت په اړه ويل کيږئ چي دا ضعيف دی.

په هر حال د حديث څخه په ښرګنده خو دا معلوميږي چي که چيري جامو ته بولي، مرداري وغيره ورسيږي نو د هغه يوازي يو وار پريولل کافي دي، د امام شافعي رحمة الله عليه مذهب دادی چي جامه په يو وار پريوللو سره پاکيږي مګر حنفيه علماء وايي که پر جامې باندي بولي، مرداري وغيره ولګيږي نو هغه دومره پريولل پکار دي چي د هغه د پاکۍ غالب ګمان حاصل سي او د هغه حد يې دا ټاکلی دی چي درې واره دي پريولل سي او هر وار دي جامه ونستيږل سي ځکه چي په درې واره پريوللو سره د پاکۍ غالب ګمان حاصليږي.

دلته په تفصيل سره ښودل پکار دي چي غسل په کوم وخت کي فرض، واجب او مستحب کيږي:

۱. غسل په دې صورت کي فرض کيږئ چي مني په ټوپ وهلو سره ووځي او د ملا د تير څخه په د بيلېدو په وخت کي شهوت هم وي که څه په دباندي وتلو سره شهوت پاته نسي.

۲. که يو سړی د خوب څخه راکښيني او پر خپله بستره باندي د مني لوندوالي ووينې که څه هم هغه مذي وي نو غسل واجبيږي که څه هم خوب يې ياد نه وي چي د هغه په وجه منلي وتلي دي.

۳. که د ژوندۍ ښځي په مخکي يا په شا ستر کي ذکر داخل کړل سي يا لواطت وکړل سي نو پر دواړو فاعل او مفعول باندي غسل فرض دی که څه هم انزال ونسي.

۴. د حيض او نفاس د ختمېدو څخه وروسته غسل فرض کيږي.

۵. که د حيوان يا د مړي په مخ يا شا کي ذکر داخل کړل سي او انزال وسو نو غسل واجب دی او که انزال ونه سي نو بيا واجب نه دی.

۶. په مذي او ودي وتلو سره غسل نه واجب کيږي همداسي که صرف خوب ياد وي او پر بستره وغيره باندي د مني لوندوالی يا د هغه يو نښه موجود نه وي نو غسل نه واجبيږي.

۷. که يو غير مسلم په داسي حال کي مسلمان سي چي هغه د ناپاکۍ په حالت کي وو نو پر هغه غسل واجب کيږي او که د ناپاکۍ په حالت کي نه وو نو واجب کيږي خو نه مګر مستحب دی.

۸. پر ژوند کسانو باندي مړي ته غسل ورکول واجب کفایه دی یعني که ځیني خلک یې ولمبوي نو ټول بري الذمة کیږي او کنه نو ټول ګناه کار کیږي.

۹. د جمعې، اخترونو، احرام او عرفات لپاره غسل کول سنت دی.

۱۰. بې اودسه ته قرآن کریم مس کول جائز نه دي مګر که چیري قرآن کریم په یو بسته، پوښ یا په یو جامه کي نغښتی وي نو بیا جائز دی او که پر قرآن کریم جلد وي نو مس کول یې صحیح نه دي.

۱۱. که یو سړی بې اودسه وي نو هغه ته د قمیص په لستوڼي یا په یو داسي جامې سره چي د هغه پر بدن وي د مثال په توګه څادر وغیره نو په هغه سره قرآن کریم نیول مکروه دي، او که چیري جامه یا ټوکر د بدن څخه بیل وي نو بیا په هغه سره قرآن کریم نیول او مس کول جائز دي.

۱۲. بې اودسه ته د تفسیر، حدیث او فقه کتابونه مس کول مکروه دي مګر په لستوڼي سره مس کول په اتفاق سره جائز دي.

۱۳. پر کوم درهم (سکه) باندي چي د قرآن کریم یو سورت لیکلی وي نو د بې اوداسه لپاره د هغه مسحه کول جائز نه دي مګر که چیري هغه په کڅوړه وغیره کي وي نو بیا جائز دي،

۱۴. جنب ته په مسجد کي داخلېدل جائز نه دي او که یو خاص ضرورت یې وي نو بیا داخلیدلای سي همدا رنګه د هغه لپاره قرآن کریم ویل که څه هم یو آیت وي او یا د یو آیت څخه کم وي جائز نه دي البته د دعاء او ثناء په توګه یې ویلای سي، همداسي د جنب لپاره ذکر کول، تسبیح ویل او دعاء کول جائز دي، په دغه مسائلو کي د حیض او نفاس والا ښځو هم هغه حکم دی کوم چي د جنب دی.

# بَابُ مُخَالَطَةِ الْجُنُبِ وَمَا يُبَاحُ لَهُ

## د جنب سړي سره د يو ځای کېدو او د جنب لپاره د جائز کارو بيان

په دې باب کې د دوو شيانو په اړه حديثونه ذکر کيږي: لومړنی شی خو دادی چې د جنب سړي (يعني پر چا چې غسل واجب وي) سره ناسته ولاړه، خبري کول، مصافحه کول او همداسي د هغه سره نور معاملات کول جائز دي، دوهم شی دادی چې د جنب سړي لپاره کوم شيان جائز دي چې هغه يې د ناپاکی په حالت کې هم کولای سي.

## الفصل الاول

﴿۴۱۵﴾: عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ لَقِيَنِيْ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَنَا جُنُبٌ فَاَخَذَ بِيَدِيْ فَمَشَيْتُ مَعَهُ حَتّٰى قَعَدَ فَانْسَلَلْتُ فَاَتَيْتُ الرَّحْلَ فَاغْتَسَلْتُ ثُمَّ جِئْتُ وَهُوَ قَاعِدٌ فَقَالَ أَيْنَ كُنْتَ يَا اَبَا هُرَيْرَةَ فَقُلْتُ لَهُ فَقَالَ سُبْحَانَ اللّٰهِ اِنَّ الْمُؤْمِنَ لاَ يَنْجُسُ . هذا لفظ البخاري و لمسلم معناه و زاد بعد قوله فقلت له لقد لقيتني و انا جنب فكرهت ان اجالسك حتى اغتسل وكذا البخاري في رواية اخرى

د حضرت ابوهريرة ﷺ څخه روايت دی چې زما سره د رسول الله ﷺ ملاقات سو او زه ناپاکه وم رسول الله ﷺ زما لاس و نيوی او زه د رسول الله ﷺ سره روان سوم تر دې چې رسول الله ﷺ کښېنستی نو زه په کراره څيني ولاړ سوم د باندي راووتم او خپل ځای ته راغلم او غسل مي وکړ بيا ورغلم نو وينم چې رسول الله ﷺ هملته تشريف فرما دی رسول الله ﷺ چې زه وليدم نو راته يې وفرمايل: اي ابوهريرة! ته چيري وې ما ورته ټول خال عرض کړ نو رسول الله ﷺ راته وفرمايل: سبحان الله مسلمان ناپاکه نه دی، دا الفاظ د بخاري دي او په مسلم کي دا الفاظ داسي دي چې رسول الله ﷺ زما سره ملاقات وکړ او زه ناپاك وم ما ته بده ښکاره سوه چې تر څو پوري غسل ونه کړم او ستاسو سره کښېنم همداسي د بخاري په يو روايت کي هم دي.

**تشريح**: د حديث مطلب دادی چې جنابت نجاست حکمي دی، شريعت دې حکم کړی دی او پر ده يې غسل واجب ګرځولی دی نو د جنابت په حالت کي سړی حقيقتا نجس نه وي همدا وجه ده چې جنب نه خو ناپاکه وي او نه د هغه خوله ناپاکه ده، ځکه نو د جنب سره ناسته ولاړه، يو ځای کېدل، مصافحه کول، خبري کول همداسي د هغه سره نور معاملات کول جائز دي په دې کي څه بدوالی نسته.

﴿۴۱۶﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ ذَكَرَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ لِرَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ تُصِيْبُهُ جَنَابَةٌ مِنَ اللَّيْلِ فَقَالَ لَهُ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَوَضَّأْ وَاغْسِلْ ذَكَرَكَ ثُمَّ نَمْ. متفق عليه.

د حضرت ابن عمر ﷺ څخه روایت دی چي حضرت عمر بن الخطاب ﷺ یو ځل رسول الله ﷺ ته ذکر وکړ چي که هغه د شپې ناپاکه سي نو رسول الله ﷺ ورته وفرمایل: اودس کوه او خپل خاص اندام پریوله بیا بیده کیږه. بخاري او مسلم

**تشریح**: اودس کول د جنب د بېده کېدو لپاره طهارت دی یعني جنب چي په اودس کولو سره بیده سي نو لکه هغه چي پاک بیده سو، ددې حدیث څخه معلومه سوه چي کله د شپې احتلام وسي یا د کوروالي څخه فراغت وسي او د هغه وروسته د بېده کېدو اراده وي او یا په یو وجه د یو ضرورت یا بې ضرورته په جنابت کي د زړه خیال وي نو په داسي صورت کي جنب ته اودس کول سنت دي.

په دې خبره هم باید پوه سو چي د حدیث څخه خو دا معلومیږي چي په پورتني صورت کي دي مخکي اودس وکړل سي د هغه څخه وروسته دي خاص اندام (ذکر) پریولل پکار دي، په دې صورت کي د حدیث په پورتني ترتیب کي به وویل سي چي دلته اودس کول ځکه په اول کولو سره ذکر سوی دی چي د اوداسه احترام او د هغه تعظیم په مخکي وو.

﴿۴۱۷﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا كَانَ جُنُبًا فَأَرَادَ أَنْ يَأْكُلَ أَوْ يَنَامَ تَوَضَّأَ وُضُوْءَهُ لِلصَّلَاةِ. متفق عليه

د حضرت عائشې (رض) څخه روایت دی چي کله به رسول الله ﷺ جنب وو او د یو شي د خوړلو یا خوب اراده به یې کول نو اودس به یې کاوه لکه څرنګه چي د لمانځه لپاره اودس کول کیږي. بخاري او مسلم.

﴿۴۱۸﴾: وَعَنْ أَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَتَى أَحَدُكُمْ أَهْلَهُ ثُمَّ أَرَادَ أَنْ يَعُوْدَ فَلْيَتَوَضَّأْ بَيْنَهُمَا وُضُوْءً. رواه مسلم.

د حضرت ابوسعید الخدري ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: هر کله چي په تاسو کي یو څوک خپل کوروالا ته ورسي او فارغ سي او بیا دوهم ځل د ورتلو اراده وکړي نو د دواړو په منځ کي دي اودس وکړي. مسلم

**تشریح**: ابن مالک رحمة الله علیه فرمایي که یو سړی د خپل بي بي سره دوه واره کوروالی وکړي او د دواړو په مینځ کي اودس وکړي نو دوې ګټې دي: (۱) اول خو دا چي په دې سره

پاکي او طهارت تر لاسه کيږي .(۲) دوهم دا چي نشاط او لذت زياتيږي .

په هر حال د دې حديث څخه او ددې څخه مخکې حديث څخه هم معلومه سوه چي د جنب لپاره دا مستحب دي چي په ناپاکي کي که د بېده کېدو ، خوراک او څښناک او د بيا کوروالي کولو اراده وکړي نو هغه دي خپل خاص اندام پريوللو سره اودس وکړي .

ځيني علماء دا فرمايي چي د جنب لپاره د خوراک او څښناک په اړه په دې حديث کي چي اودس مذکور دی ددې څخه مراد حقيقتا او دس نه دی بلکه ددې مقصد دادی چي په داسي وخت کي دي لاسونه پريولي او دا رايه د جمهورو علماؤ ده ځکه چي د نسائي په روايت کي ددې مراد صراحت هم موجود دی . مګر د پورتني دوو روايتونو څخه په صراحت دا معلوميږئ چي په حقيقت کي د لمانځه د اوداسه په ډول اودس وکړي ، نو اوس په دغه روايتونو کي تطبيق پيدا کولو لپاره به دا وويل سي چي رسول الله ﷺ به پر داسي موقع کله کله د اختصار په توګه صرف لاس پريولل کافي ګڼل خو اکثر به رسول الله ﷺ اودس کوی .

﴿۴۱۹﴾: وَ عَنْ أَنَسٍ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَطُوفُ عَلَى نِسَائِهِ بِغُسْلٍ وَاحِدٍ. رواه مسلم .

د حضرت انس ﷛ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به په يوه شپه کي خو ازواجو ته ورتلی (يعني د هغوئ سره به يې کوروالي کول) او يوازي يو ځل به يې غسل کاوه . مسلم

**تشريح** : د حديث مطلب دادی چي نبي کريم ﷺ په يوه شپه کي د خپلو ټولو بيبيانو سره صحبت کوی او غسل به يې يو وار په پای کي کوی داسي نه وه چي د يوې بي بي سره د صحبت کولو وروسته به يې غسل کوی او بيا وروسته به دوهمي بي بي ته ورتلی ، مګر دا احتمال کيدای سي چي رسول الله ﷺ به په مينځ کي اودس کوی او دا هم کيدای سي چي د بيان جواز لپاره رسول الله ﷺ اودس هم ترک کړی وي ، دلته يو معمولي اعتراض هم کيدای سي چي د شريعت د قاعدې سره سم د خپلو بيبيانو په مينځ کي د ويش کم تر کمه درجه يوه شپه ده يعني که د يو سړي څو بيبياني وي نو د هغوئ په مينځ کي د وار تاکلو قاعده داده چي د هري يوې سره به کم تر کم پوره يوه شپه قيام کوي نو رسول الله ﷺ په يوه شپه کي ټولو بيبيانو مبارکو ته څنګه ورتلای سو ، ددې جواب دادی چي د رسول الله ﷺ د ذات لپاره د وار تاکلو دا وجوب مختلف فيه د ، ابو سعيد خدري ﷛ فرمايي چي پر رسول الله ﷺ باندي وار تاکل واجب نه وه بلکه رسول الله ﷺ د احسان په وجه وار تاکلی وو ، مګر د اکثرو علماؤ قول دادی چي پر رسول الله ﷺ باندي هم وار تاکل واجب وه مګر رسول الله ﷺ به خپلو ټولو بيبيانو مبارکو ته په يوه شپه کي خپله د هغوئ په رضا او

خوښيي سره ورتلی نو په دې کي څه شک نسي پيدا کيدای .

﴿۴۲۰﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَذْكُرُ اللَّهَ عَلَى كُلِّ أَحْيَانِهِ. رواه مسلم . و حديث ابن عباس سنذكره في كتاب الاطعمة ان شاء الله تعالى .

د حضرت عائشې (رض) څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به هر وخت د الله ذکر کاوه (يعني د ناپاکۍ په حالت کي هم)، مسلم، او د ابن عباس حديث به موږ انشاء الله په کتاب الاطعمة کي بيان کړو .

**تشريح** : د بي بي عائشې رضي الله عنها د ارشاد مطلب دادی چي رسول الله ﷺ به په هيڅ حالت کي د الله تعالی ذکر او ياد څخه غافل نه وو، رسول الله ﷺ که به د ناپاکۍ په حالت کي وو يا په اوداسه کي به وو يا ددې څخه پرته په يو بل حالت کي به وو د الله تعالی په ياد کي به هميشه بوخت وو، مګر د ناپاکۍ په حالت کي به يې د قرآن کريم تلاوت نه کوی او همدارنګه په بيت الخلاء او غسل خانه کي به يې د الله تعالی ذکر نه کوی.

## الفصل الثاني

﴿۴۲۱﴾: عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ اغْتَسَلَ بَعْضُ أَزْوَاجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي جَفْنَةٍ فَأَرَادَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَتَوَضَّأَ مِنْهُ فَقَالَتْ يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنِّي كُنْتُ جُنُبًا فَقَالَ إِنَّ الْمَاءَ لَا يُجْنِبُ . (رواه الترمذي) و ابوداؤد وابن ماجة و روي الدارمي نحوه وفي شرح السنة عنه عن ميمونة بلفظ المصابيح .

د حضرت ابن عباس ﷺ څخه روايت دی چي د رسول الله ﷺ ځيني بيبيانو به په تالۍ (لګن) کي غسل وکړ (يعني د تالۍ څخه يې اوبه را اخيستلې او غسل يې کاوه) رسول الله ﷺ په تالۍ په پاته سوو اوبو سره د اودس کولو اراده وکړه نو يوې بي بي ورته وويل اې دالله رسوله ! زه ناپاکه وم (او په دې اوبو سره ما غسل کړی دی) رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : اوبه نه ناپاکه کيږي (ترمذي، ابوداؤد ، ابن ماجه) دارمي هم داسي روايت کړی دی په شرح السنة کي د ابن عباس څخه هغه د بي بي ميمونې څخه د مصابيح په الفاظو سره ذکر کړی دی .

**تشريح** : د د غه حديث څخه په ظاهره خو دا څرګنده سوه چي د ښځي د غسل په پاته اوبو سره سړي ته اودس کول جائز دي مګر د دې باب په دريم فصل کي يو حديث راځي چي په هغه کي منقول دي چي رسول الله ﷺ د ښځي د غسل څخه په پاته اوبو سره د سړي اودس کول منعه کړي دي .

نو په دغه دواړو روايتونو کي د مطابقت لپاره به دا وويل سي چي دا حديث خو پر جواز باندي دلالت کوي او هغه دوهم حديث د ترک پر غوره والي باندي دلالت کوي يعني که يو ځوک د ښځي دغسل په پاته اوبو سره اودس کول غواړي نو ددې حديث سره سم د هغه اودس خو جائز دي مګر د دوهم حديث په اعتبار په هغه اوبو سره اودس نه کول غوره دي.

﴿۴۲۲﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَغْتَسِلُ مِنَ الْجَنَابَةِ ثُمَّ يَسْتَدْفِئُ بِيْ قَبْلَ أَنْ أَغْتَسِلَ . رواه ابن ماجه وروى الترمذي نحوه ..و في شرح السنة بلفظ المصابيح.

د حضرت عائشي (رض) ځخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به د ناپاکۍ ځخه غسل کاوه بيا د هغه ځخه وړاندي چي زه غسل وکړم ما ته به راغلی يعني ځان به يې راسره جوخت کړ چي ګرمي تر لاسه کړئ. ابن ماجه .او ترمذي.

**تشريح** : د بي بي عائشي رضي الله عنها د ارشاد مطلب دادی چي کله به رسول الله ﷺ د کوروالۍ ځخه فارغ سو نو زما ځخه مخکي به يې غسل کوی او بيا د يخ په موسم کي د غسل په وجه به يې يخ محسوسوی ځکه نو ما ته به يې تشريف راوړ او خپل اندامونه مبارک به يې زما د بدن سره په يو ځای کولو سره پريوتی چي ګرمي تر لاسه کړي ، ددې ځخه معلومه سوه چي د جنب بدن پاک وي نود هغه په پرته کيٰ هيڅ پرواه نسته بلکه جائز ده.

﴿۴۲۳﴾: وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَخْرُجُ مِنَ الْخَلَاءِ فَيُقْرِئُنَا الْقُرْآنَ وَيَأْكُلُ مَعَنَا اللَّحْمَ وَلَمْ يَكُنْ يَحْجُبُهُ أَوْ يَحْجُزُهُ عَنِ الْقُرْآنِ شَيْءٌ لَيْسَ الْجَنَابَةَ . رواه أبو داود والنسائي وروى ابن ماجه نحوه .

د حضرت علي ﷺ ځخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به د بيت الخلاء ځخه تشريف راوړ نو موږ ته به يې قرآن وايه او زموږ سره به يې غوښې خوړلې او د دې خبرو ځخه يې رسول الله ﷺ نه منعه کاوه او نه به يې د قرآن کريم د ويلو ځخه د جنابت ځخه پرته . ابوداؤد ، نسائي او ابن ماجه.

**تشريح** : د دې حديث ځخه د دوو مسئلو وضاحت کيږي اول خو دا چي د اوداسه ځخه پرته قرآن کريم ويل او ښودل جائز دي مګر په دې شرط سره چي په خپل لاسونو قرآن کريم مس نه کړي ځکه چي پرته د اوداسه ځخه قرآن کريم مس کول ناجائز دي.

﴿۴۲۴﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَقْرَأُ الْحَائِضُ وَلَا الْجُنُبُ شَيْئًا مِنَ الْقُرْآنِ . رواه الترمذي

د حضرت ابن عمر ﷺ ځخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : حائضه ښځه او جنب سړی دي قرآن کريم نه وايي . ترمذي،

**تشریح** : مطلب دادی چي کومه ښځه د حیض په ورځو کي وي یا کوم سړی د ناپاکۍ په حالت کي وي هغه دي قرآن کریم بالکل نه وایي تر دې چيْ د آیت څخه کم تلاوت دي هم نه کوي ، د اما اعظم او امام شافعي مذهب دادی چي حائضې او جنب ته د قرآن کریم تلاوت کول نه دی پکار که څه هم د یوه آیت څخه کم وي .

مګر د ځینو علماؤ په نزد حائضې او جنب ته د یوه آیت یا زیاته برخي ویل خو حرام دي البته د یوه آیت څخه کم تلاوت حرام نه دی، که حائضې او جنب د قرآن کریم یو برخه د تلاوت په مقصد نه بلکه د شکر په ارادې سره وویل نو جائز ده، مثلا یو حائضه یا جنب پر داسي موقع باندي هر کله چي د الله تعالی شکر ادا کول وي او داسي ووایي الحمد لله رب العالمین، نو په دې کي پرواه نسته .

﴿۴۲۵﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَجِّهُوْا هٰذِهِ الْبُيُوْتَ عَنِ الْمَسْجِدِ فَإِنِّيْ لَا أُحِلُّ الْمَسْجِدَ لِحَائِضٍ وَلَا جُنُبٍ . رواه أبو داود .

د حضرت عائشې (رض) څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : تاسو د خپلو کورونو دروازې د مسجد د لوري څخه واړوئ (یعني په مسجد کي دننه خپل لار مه جوړوئ) ځکه چي زه د حیض والا ښځو او د جنبو کسانو مسجد ته دننه تلل جائز نه ګڼم . ابوداؤد .

**تشریح** : مسجد د الله تعالی د کور کېدو په وجه یو مقدس او محترم ځای دی ددغه پاک ځای عظمت او احترام او ددې د تقدس غوښتنه ده چي یو داسي سړی داخل نسي چي د ناپاکۍ په حالت کي وي ځکه نو رسول الله ﷺ حکم وکړ چي د مسجد په لور په کورونو کي داسي دروازې چي په هغه کي د تیرېدو لپاره په مسجد کي تیریدل وي نو په دې صورت کي دي په مسجد کي نه تیریږي ، د امام شافعي او امام مالک رحمة الله علیهما مذهب دادی چي هیڅ جنب او حایضې ته په مسجد کي دننه تم کېدل جائز نه دي همداسي هغوئ ته په مسجد کي دننه تیریدل هم حرام دي ، دا حدیث د امام اعظم رحمة الله علیه د مذهب تائید کوي ځکه چي رسول الله ﷺ د جنب او حائضې په مسجد کي د داخلېدو څخه مطلقا منعه فرمایلې ده په هغه کي د تیرېدو یا تم کېدو یو قید نسته نو ددغه عاموالي تقاضا داده چي جنب او حائضه په مسجد کي د داخلېدو څخه منعه کړل سي که څه هم د تیرېدو لپاره مسجد کي داخل سي او که د تم کېدو لپاره .

﴿۴۲۶﴾: وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَدْخُلُ الْمَلَائِكَةُ بَيْتًا فِيْهِ

د حضرت علي ؓ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : ملائکي هغه کور ته نه ځي په کوم کور کي

صُوْرَةٌ وَلاَ كَلْبٌ وَلاَ جُنُبٌ . رواه أبو داود والنسائي .

چي عكس وي او نه هغه كور ته ځي چي په هغه كي سپی او يا يو څوك جُنب وي . ابوداؤد او نسائي .

**تشريح** : دلته د ملائكو څخه مراد د رحمت ملائكي دي يعني په كوم سراى كي چي دغه دري شيان وي نو هلته هغه ملائكي نه داخليږي كوم چي رحمت او بركت راوړي او د الله تعالى د ذكر اوريدو لپاره د آسمان څخه راكښته كيږي .

د تصوير مسئله داده : كه تصوير د ساه لرونكي شي وي او پر لوړ ځاى باندي وي د مثال په توګه پر ديوال باندي زړيدلي وي يا پر بام باندي لګيدلى وي يا پر پردو باندي عكسونه جوړ سوي وي نو په هغه سره د رحمت ملائكي په كور كي نه داخليږي ،.مګر كه عكس پر تلتك باندي وي يا د پښو اېښودو پر ځاى باندي وي نو په هغه كي پرواه نسته .

او كه عكس د ساه نه لرونكي شيانو وي د مثال په توګه غر، درخته يا مانۍ وغيره وي نو د هغه ساتل جائز دي او يا عكس د ساه لرونكي وي مګر د هغه سر پرې كړل سوى وي نو دا هم جائز دي، همدارنګه كوم عكس چي په داسي ځاى كي وي چيري په پښو كي لاندي كيږي مثلا پر فرش باندي وي يا پر بالښت وغيره باندي وي نو هغه ځاى هم د ملائكو ددخول مانع نه دى همداسي نابالغو انجونو ته په كور كي ناوكياني ساتل هم جائز دي .

داسي نوټونه يا سكې چي پر هغو عكسونه جوړ وي لكه څرنګه چي نن سبا دي د هغه په اړه دا ويل كيږي چي دد حديث د الفاظو څخه دا ثابتيږي كه چيري دا په كور كي وي نو هلته د رحمت ملائكي نه داخليږئ مګر منسئله داده چي په سراى كي د هغه ساتل جائز دي تر دې پوري چي هغه د ځان سره ساتل هم جائز دي ځكه چي مخكنيو او وروستنيو ټولو علماؤ داسي سكې د ځان سره ساتلي دي او په هغو يې راكړه وركړه كول او هيڅ عالم د هغه د اېښيدو څخه منعه نه ده كړې .

د سپيانو مسئله داده كه چيري په يو سراى كي سپی د شوق او فيشن لپاره وي نو دا جائز نه دي مګر كه چيري د ضرورت او حاجت لپاره وي مثلا د ښكار لپاره يا د فصلونو او حيوانانو د ساتني لپاره نو دا جائز دي او د هغه ساتل صحيح دي .

د جنب څخه مراد دلته هر جنب نه بلكه هغه جنب دى چي په غسل جنابت كي د سستۍ په وجه د زنډ كولو عادت يې وي يعني هغه په غسل كولو كي دومره زنډ كوي چي د لمانځه وخت هم ځيني تيرسي يا هغه جنب مراد دى چي اودس نه كوي . (د باب دوهم نمبر حديث وګورئ ) .

﴿۴۲۷﴾:وَعَنْ عَمَّارِ بْنِ يَاسِرٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَلاَثَةٌ لاَ تَقْرَبُهُمُ الْمَلاَئِكَةُ جِيْفَةُ الْكَافِرِ وَالْمُتَضَمِّخُ بِالْخَلُوْقِ وَالْجُنُبُ إِلاَّ أَنْ يَّتَوَضَّأَ . رواه أبو داود .

د حضرت عمار[۱] بن یاسر ﷛ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : درې کسه دي چي هغو ته ملائکي نه راځي ۱: د کافر بدن ته (که ژوندی وي یا مړ) ۲: د خلوق خوشبويي لګولو والا ته (د خلوق بوی او رنګ د زعفران څخه دي او سوروالي پر غالب وو د ښځو د مشابهت له وجي ملائکي نه ورځي د ښځو لپاره صحیح ده) ۳: جنب کس ته تر څو پوري چي هغه اودس ونه کړي . ابوداؤد .

**تشریح** : د جیفه څخه مراد د کافر بدن دی که هغه ژوندی وي یا مړ، هسي خو په اصل کي جیفه مردار ته وایي او څرګنده ده چي کافر هم د مردار په درجه کي دی ، ځکه چي هغه د شرابو او خنزیر څخه د پرهیز نه کولو په وجه نجس او ناپاک وي .

خلوق د یو ډول خوشبوئي نوم دی چي د زعفران وغیره څخه جوړیږي او رنګ لرونکي وي، ځکه د ښځو د مشابهت په وجه خلکو ته د هغه لګول ممنوع دي یوازي ښځي هغه استعمالولای سي، ځکه یو سړی هغه ولګوي نو د رحمت ملائکي هغه ته نژدې هم نه ورځي په هغه کي کبر او غرور پیدا کیږي او د ښځو سره مشابهت لري ، په دې کي اصل دې ته اشاره ده چي کوم سړی د سنت خلاف کار کوي که څه هم هغه په څرګنده په زیب او زینت او خوشبوئي سره معطر وي او په خلکو کي صاحب د عزت او احترام وي مګر د سنت خلاف عمل په وجه په

---

[۱] د نوموړي نوم عمار بن یاسر او کنیت یې ابوالیقضان دی، نوموړی د هغه کسانو څخه دی چي تر ټولو مخکي یې د اسلام په لور سبقت کړی وو، د هغه مور بې بې سمیه وه هغه لومړنۍ ښځه وه چي د الله تعالی په لار کي شهیده کړل سوه، دده مور او پلار په تر ټولو مخکي ایمان راوړونکو کي دي ، د عمار ﷛ شمیر د صحابه کرامو په هغه ډله کي کیږي چي د اسلام راوړلو په وجه د ظلم او ستم په هر ډول بټۍ کي واچول سول ، حضرت عمار ﷛ هغه وخت اسلام راوړی وو کوم وخت چي رسول الله ﷺ د حضرت ارقم ﷛ په کور کي پټ وو ، ده او صهیب بن سنان دواړو یو ځای اسلام راوړی وو ، عمار بن یاسر ﷛ ته د اسلام په لار کي ډیر تکلیفونه ورکړل سول تر دي چي مشرکینو دده په وهلو وهلو ستړي سول او دی د خپل ایمان څخه یو قدم هم تر شا نه سو، نو هغه یې په اور کي وسوځی په دغه دوران کي رسول الله ﷺ پر هغه تیر سو د هغه په اور کي لیدلو سره خپل لاس مبارک یې پر هغه راتیر کړ او وه یې فرمایل اې اوره ته پر عمار ﷛ باندي داسي یخ او سلامتی والا سه لکه څرنګه چي پر حضرت ابراهیم ﷵ باندي سوې وې ، کله چي هغه زخمي سو نو وصیت یې وکړ چي ما په خپلو جامو کي دفن کړئ ځکه چي زه په دغه جامو سره د الله تعالی په مخ کي وړاندي سم ، حضرت علي ﷛ هغه په خپلو جامو کي دفن کړ ، نوموړی د (۹۴) کالو په عمر په ربیع الاول (۳۷هـ) کال کي د صفین په غزا کي شهادت تر لاسه کړ.اسدالغابة.

حقيقت كي هغه نجس او د سپي څخه هم زيات خسيس دى .

د جنب په اړه د رسول الله ﷺ ارشاد د تهديد او زجر لپاره دى چي جنب دي د جنابت په غسل كي زنډ نه كوي ځكه چي په دې سره د جنب پاته كېدو عادت كيږي .

﴿۴۲۸﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ أَبِيْ بَكْرِ بْنِ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرِو بْنِ حَزْمٍ أَنَّ فِي الْكِتَابِ الَّذِيْ كَتَبَهُ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِعَمْرِو بْنِ حَزْمٍ أَنْ لاَّ يَمَسَّ الْقُرْآنَ إِلاَّ طَاهِرٌ . رواه مالك والدارقطني .

د حضرت عبدالله بن ابي بكر بن محمد بن عمرو بن حزم څخه روايت دى كوم ليك چي رسول الله ﷺ ابن حزم ته ليكلى وو په هغه كي دا الفاظ هم وه چي قرآن كريم ته دي يوازي پاك كسان لاس ور وړي . مالك او دار قطني .

**تشريح** : رسول الله ﷺ حضرت عمروبن حزم ﷜ د يمن د يو ښار عامل جوړ كړى وو او يو ليكلې هدايت نامه يې هغه ته وركړې وه چي په هغه كي د فرائضو ، صدقاتو او دياتو وغيره د احكامو او مسائلو په تفصيل سره تحرير كړى وو په دغه ليک كي دا هم وه چي راوي يې دلته بيانوي .

﴿۴۲۹﴾: وَعَنْ نَّافِعٍ قَالَ انْطَلَقْتُ مَعَ ابْنِ عُمَرَ فِيْ حَاجَةٍ فَقَضَى ابْنُ عُمَرَ حَاجَتَهُ وَكَانَ مِنْ حَدِيْثِهِ يَوْمَئِذٍ أَنْ قَالَ مَرَّ رَجُلٌ فِيْ سِكَّةٍ مِّنَ السِّكَكِ فَلَقِيَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَدْ خَرَجَ مِنْ غَائِطٍ أَوْ بَوْلٍ فَسَلَّمَ عَلَيْهِ فَلَمْ يَرُدَّ عَلَيْهِ حَتَّى كَادَ الرَّجُلُ أَنْ يَّتَوَارٰى فِي السِّكَّةِ ضَرَبَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِيَدَيْهِ عَلَى الْحَائِطِ وَمسحه بِهِمَا وَجْهَهُ ثُمَّ ضَرَبَ ضَرْبَةً أُخْرٰى فَمسحه ذِرَاعَيْهِ ثُمَّ رَدَّ عَلَى الرَّجُلِ السَّلاَمَ وَقَالَ إِنَّهُ لَمْ يَمْنَعْنِيْ أَنْ أَرُدَّ عَلَيْكَ السَّلاَمَ إِلاَّ أَنِّيْ لَمْ أَكُنْ عَلٰى طُهْرٍ . رواه أبو داود .

د حضرت نافع ﷜ څخه روايت دى چي زه د ابن عمر سره د قضاء حاجت لپاره ولاړم ، ابن عمر چي فراغت تر لاسه كړ په هغه ورځ چي هغه كوم حديث بيان كړ په هغه كي دا وه چي يو سړى په يوه كوڅه كي تيريدى نو د رسول الله ﷺ سره د هغه ملاقات وسو او رسول الله ﷺ د تشو يا ډكو بولو څخه راستنېدى هغه سړي رسول الله ﷺ ته سلام وكړ مگر رسول الله ﷺ هغه ته جواب ور نه كړ كوم وخت چي هغه كوڅې ته ورسيدى (د سترگو څخه ) پناه كېدى ، نو رسول الله ﷺ سمدستي پر ديوال خپل دواړه لاسونه ووهل او هغه يې پر مخ تير كړل بيا يې دوهم ځل لاسونه ووهل او پر دواړو لاسو يې و موږل (يعني تيمم يې وكړ) بيا يې د هغه سړي د سلام جواب وركړ او وه يې فرمايل نه وم منعه كړى زه چي رد كړى مي واى پر تا باندي سلام مگر دا چي زه نه وم په اوداسه كي . ابوداؤد .

**تشريح**: رسول الله ﷺ د هغه سړي د سلام جواب ځکه نه ورکړ چي په اصل کي سلام د الله تعالى نوم دى که څه هم په عامه توګه سره پر داسي موقع د سلام حقيقي معنا مراد نسي اخيستل کيداى بلکه د هغه څخه د سلامتى مراد اخيستل کيداى سي مګر بيا هم رسول الله ﷺ د هغه د اصل معنى احترام کولو سره پرته د اوداسه څخه د الله تعالى نوم اخيستل مناسب ونه ګڼل.

په دې باب کي مخکي څو حديثونه تير سوي دي د هغو څخه دا معلوميږي چي د بيت الخلاء څخه په راتلو سره به بې اودسه قرآن کريم ويل وبنودل او دا چي رسول الله ﷺ به بې اودسه ذکر کوى په ظاهره هغه حديث او دا حديث په خپل مينځ کي مخالف معلوميږي.

د دغه اختلاف دفع په دې ويلو سره کيږي چي د رسول الله ﷺ قرآن کريم ويل يا ذکر الله کول څرنګه چي مخکي په حديثونو کي تير سول پر آساني باندي عمل وو او دلته رسول الله ﷺ د امت د تعليم لپاره پر عزيمت (غوره) باندي عمل فرمايلى دى يعني دلته د رسول الله ﷺ دا ښودل مقصد دي چي بې اودسه د الله تعالى نوم اخيستل جائز خو دي مګر افضل او غوره داده چي په اوداسه سره د الله تعالى ذکر وکړل سي.

د دغه حديث څخه دوه شيان معلوم سول يو خو دا چي د سلام جواب ورکول واجب ډي، دوهم دا که چيري يو سړى د يو عذر په وجه د سلام جواب ور نه کړلاى سي نو د هغه لپاره مستحب ده چي د هغه څخه وروسته خپل عذر د کوم په وجه چي هغه د سلام جواب نه ور ورکړى د سلام کونکي په وړاندي بيان کړي چي هغه ته د غرور او تکبير نسبت ونه کړل سي يعني سلام کونکى دا فکر ونه کړي چي هغه د غرور او تکبر په وجه زما د سلام جواب نه دى راکړى.

﴿۴۳۰﴾: وَعَنِ الْمُهَاجِرِ بْنِ قُنْفُذٍ اَنَّهُ اَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ يَبُوْلُ فَسَلَّمَ عَلَيْهِ فَلَمْ يَرُدَّ عَلَيْهِ حَتّٰى تَوَضَّأَ ثُمَّ اعْتَذَرَ اِلَيْهِ فَقَالَ اِنِّيْ كَرِهْتُ اَنْ اَذْكُرَ اللّٰهَ عَزَّ وَجَلَّ اِلاَّ عَلٰى طُهْرٍ. رواه ابوداؤد و روي النسائي الى قوله حتى توضا و قال فلما توضا رد عليه.

د حضرت مهاجر[۱] بن قنفذ رضي الله عنه څخه روايت دى چي زه د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سوم او رسول الله ﷺ په دغه وخت کي تشي بولي کولې، ما رسول الله ﷺ ته سلام ادا کړ، رسول الله ﷺ تر څو پوري چي اودس نه وو کړى تر هغه وخته پوري يې د سلام جواب را نه کړ. بيا رسول الله ﷺ عذر وکړ

[۱] نوموړى قريشي تيمي دى، ويل کيږي چي مهاجر او قنفذ دواړه دده لقبونه دي. په اصل کي دده نوم عمرو بن خلف دى د مکي د فتح په ورځ يې اسلام راوړ او د هجرت څخه وروسته يې په بصره کي هستوګنه اختيار کړه او هم هلته وفات سوى دى.

او وه يې فرمايل ما ته بده ځرګنده سوه چي په ناپاکۍ سره د الله نوم واخلم . (ابوداؤد) نسائي تر حتي توضا پوري روايت کړی دی چي اودس يې وکړ او د سلام جواب يې ورکړ .

**تشريح** : د مکروه مطلب دا نه دی چي بې اودسه د الله تعالی نوم اخستل حرام دی بلکه ددې ارشاد مطلب دادی چي افضل او غوره داده چي د الله تعالی مقدس او مبارک نوم په اوداسه سره واخيستل سي او که چا بې اودسه د الله تعالی واخيست نو پر هغه څه ګناه نسته .

## الفصل الثالث

﴿۴۳۱﴾: عَنْ أُمِّ سَلْمَةَ قَالَتْ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَجْنِبُ ثُمَّ يَنَامُ ثُمَّ يَنْتَبِهُ ثُمَّ يَنَامُ . رواه أحمد .

د حضرت ام سلمة (رض) څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به د ناپاکۍ (جنابت) په حالت کي وو او بيده به سو بيا به راويښ سو او بيا به بيده سو .احمد

**تشريح** : ددې باب په دريم نمبر حديث کي تير سوي دي چي رسول الله ﷺ به کله د جنابت په حالت کي د بېده کېدو اراده وکړه نو اول به يې اودس وکړ او بيا به بيده کيدی، په دې حديث کي که څه هم ددې صراحت نسته چي رسول الله ﷺ به د جنابت په حالت کي مخکي اودس کوی مګر دلته هم مراد دادی چي رسول الله ﷺ به د اوداسه کولو څخه وروسته بيده کيدی .

﴿۴۳۲﴾: وَعَنْ شُعْبَةَ قَالَ إِنَّ ابْنَ عَبَّاسٍ كَانَ إِذَا اغْتَسَلَ مِنَ الْجَنَابَةِ يُفْرِغُ بِيَدِهِ الْيُمْنٰى عَلٰى يَدِهِ الْيُسْرٰى سَبْعَ مِرَارٍ ثُمَّ يَغْسِلُ فَرْجَهُ فَنَسِيَ مَرَّةً كَمْ أَفْرَغَ فَسَأَلَنِيْ .فَقُلْتُ لَا أَدْرِيْ فَقَالَ لَا أُمَّ لَكَ وَمَا يَمْنَعُكَ أَنْ تَدْرِيْ ثُمَّ يَتَوَضَّأُ وُضُوْءَهُ لِلصَّلَاةِ ثُمَّ يُفِيْضُ عَلٰى جِلْدِهِ الْمَاءَ ثُمَّ يَقُوْلُ هٰكَذَا كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَطَهَّرُ . رواه أبو داود

د حضرت شعبة څخه روايت دی چي ابن عباس ﷺ به د ناپاکۍ څخه غسل کاوه نو لومړی به يې د راسته لاس څخه پر چپه لاس اووه ځله اوبه واچولې بيا به يې اووه ځله شرمګاه پريولل بيا ځيني هير سو يو ځل يې څو ځله اوبه واچولې او زما څخه يې پوښتنه وکړه نو ما ورته وويل ما ته نه ده معلومه هغه وويل ستا مور دي نه وي څه شي ته منعه کړې ولي در ته نه ده معلومه بيا به ابن عباس اودس کاوه په شان د اوداسه دلمانځه او پر بدن به يې اوبه وبيولې بيا به يې ويل همداسي به رسول الله ﷺ پاکي کول . ابوداؤد .

**تشريح** : د جنابت د غسل په اړه د رسول الله ﷺ سره اړوند د ستر پريوللو څخه مخکي د لاسونو پريوللو په باره کي ددې څخه مخکي چي کوم حديثونه تير سوي دي هغه يا خو مطلق دي يعني

په هغو کي دا شمير نه دی ذکر سوی چي رسول الله ﷺ څو واره لاسونه پريولي وه يا په هغو کي شمير ذکر سوی دی ، هغه نه ثابتيږي چي رسول الله ﷺ څو واره لاسونه پريوللی وه يا په هغو کي شمير ذکر سوی دی هغه نه ثابتيږي چي رسول الله ﷺ لاس مبارک دوه واره پريولی دی که دري واره. د باب الغسل په اول فصل کي خپله د ابن عباس ؓ يو روايت تير سوی دی چي په هغه کي دا منقول دي چي رسول الله ﷺ خپل لاسونه پريولل مګر د هغه شمير نه دی ذکر سوی چي څو واره يې پريولل ، مګر دلته شعبه د حضرت ابن عباس ؓ دا قول نقل کوي چي هغه د جنابت د غسل په وخت کي اووه واره په اوبه اچولو سره لاسونه پريولل .

نو په دې اړه ويل کيږي چي د ابن عباس ؓ دا عمل به په يو خاص صورت کي وو يعني هغه ته به يو داسي صورت پيش سوی وي چي د هغه په وجه د زيات طهارت او پاکۍ حاصلولو لپاره هغه اووه واره پريولل ضروري ګڼلي وي يا د هغه تاويل به دا وي چي اووه واره د پريوللو حکم منسوخ کيدو خبر به ابن عباس ؓ ته نه وي رسيدلی ځکه هغه به د هغه لومړني حکم سره سم اووه واره پريولي وي، په دې حديث کي دې ته هم اشاره ده چي شاګرد ته د خپل شيخ په وړاندي په ډير هوښيارتوب سره او سيدل پکار دي چي د شيخ هر قول او هر عمل د هغه په ذهن کي راسي او شيخ ته دا حق حاصل دی چي هغه د شاګرد پر غفلت او بې پرواهي باندي هغه ته خبرتيا ورکړي .

| | |
|---|---|
| ﴿۴۳۳﴾: وَعَنْ أَبِي رَافِعٍ قَالَ إِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طَافَ ذَاتَ يَوْمٍ عَلَى نِسَائِهِ يَغْتَسِلُ عِنْدَ هٰذِهِ وَعِنْدَ هٰذِهِ قَالَ فَقُلْتُ لَهُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ أَلاَ تَجْعَلَهُ غُسْلاً وَاحِدًا آخِرًا قَالَ هٰذَا أَزْكٰى وَأَطْيَبُ وَأَطْهَرُ . رواه أحمد وأبو داود . | د حضرت ابورافع ؓ څخه روايت دی چي يوه ورځ رسول الله ﷺ خپلو ټولو بيبيانو ته ورغلی (يعني د ټولو سره يې کوروالي وکړل) د دې بي بي سره يې غسل وکړ او د هغه بي بي سره يې غسل وکړ غسل يې وکړ د هري يوې وروسته |

(يعني د هري بي بي سره يې د جماع وروسته غسل وکړ) ما وويل اې دالله رسوله ! تاسو د ټولو په پای کي يو غسل ولي وْنه کړ؟ رسول الله ﷺ وفرمايل : (د هر ځل جماع کولو وروسته غسل کول) ښه پاکي راولي او ډير ښه دی او د بدن پاکي راولي . احمد او ابوداؤد .

**تشريح** : د دې څخه مخکي د دې باب په پنځم نمبر حديث کي دا معلومه سوې ده چي رسول الله ﷺ يوه شپه د ټولو بيبيانو سره کوروالي وکړه او په پای کي يو وار غسل يې وکړ، او دلته دا بيان کيږئ چي رسول الله ﷺ يوه ورځ د ټولو بيبيانو سره کوروالي وکړه او د غسل طريقه يې دا اختيار

کړه چي د هري بي بي سره د جماع څخه د فراغت وروسته يې بيل بيل غسل وکړ، نو په دې دواړو روايتونو کي به دا تطبيق وي چي د رسول الله ﷺ هغه لومړنی حکم به د جواز بيان او د امت د اسانۍ لپاره وو يعني ددې خبري څرګندول مقصد وه چي د ټولو بيبيانو سره د کوروالۍ څخه د فراغت وروسته رسول الله ﷺ د هر وار جماع څخه وروسته بيل بيل غسل وکړ ،

رسول الله ﷺ د ابورافع ﷺ په جواب کي هر وار د غسل کولو چي کومه وجه بيان کړې ده په هغه کي يې درې الفاظ استعمال کړي دي : (۱) ازکی، (۲) اطيب (۳) اطهر ، د درې سره الفاظو په فرق واضح کولو سره علامه طيبي فرمايي چي د تطهير استعمال په ظاهري مناسبت سره دی او د تزکيې او تطيب د باطني مناسبت سره دی، يعني تطهير به د بد اخلاق ازاله لپاره وي او تزکيه او طيب به د ښو خصلتونو د تر لاسه کولو لپاره وي ، لکه ددې مطلب چي دا سو چي د غسل کولو سره خراب اخلاق مثلا غصه وغيره ليري کيږي او ښه اخلاق يعني علم ، تقوا وغيره تر لاسه کيږي .

﴿۴۳۴﴾: وَعَنِ الْحَكَمِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ نَهٰى رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَتَوَضَّأَ الرَّجُلُ بِفَضْلِ طَهُوْرِ الْمَرْأَةِ . رواه أبو داود وابن ماجه والترمذي وزاد أو قال بسؤرها . وقال هذا حديث حسن صحيح

د حضرت حکم[۱] بن عمرو ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ د دې څخه منعه فرمايلې ده چي سړی دي د ښځي د اوداسه يا غسل څخه په پاته سوو اوبو سره اودس وکړي . (ابوداؤد، ابن ماجه، ترمذي) ويلي دي دا حديث حسن صحيح دی .

**تشريح** : د (سؤر) لفظ دلته د غسل يا اوداسه د پاته اوبو په معنا دی ، ددې لغوي معنا پسخورده مراد نه ده ، ددې مطلب به دا وي چي راوي ته فقط په لفظ کي شک واقع سوی دی چي رسول الله ﷺ يا خو فضل ويلي دي او يا سوريې فرمايلي دي .

ددغه فصل په اووم نمبر حديث کي ددې حديث تذکره راغلې ده په دغه دواړو حديثونو کي ټکر واقع کيږي ، ددې وضاحت هلته سوی دی ، علامه سيد جمال الدين رحمة الله عليه فرمايي چي دا حديث او ددې څخه وروسته راتلونکی حديث څخه د ښځي د غسل يا اوداسه څخه پاته سوي اوبو سره د سړي د اودس کولو چي منعه ثابتيږي هغه دي پر نهي تنزيهي باندي

[۱] د نوموړي نو حکم ابن عمر دی د قبيله غفار په نسبت سره مشهور دی ، نوموړی صحابي دی ، د نبي کريم ﷺ د وفات څخه وروسته بصرې ته ولاړ، د هغه ميريزی ورور زياد د خراسان حاکم جوړ کړی وو ، د هغه وفات هم د خراسان په مرو نامي ځای کي په کال (۵۰هـ) کي سوی دی .

محمول کړل سي چي په دې کي حديث او په اووم نمبر حديث کي چي د هغه څخه دا ثابته سوې ده چي رسول الله ﷺ د خپل بي بي مبارکي د غسل څخه په پاته سوو اوبو سره غسل کړی وو تعارض پيدا نسي او دواړه حديثونه پر خپل خپل ځای قابل عمل دي .

﴿۴۳۵﴾: وَعَنْ حُمَيْدِ الْحِمْيَرِيِّ قَالَ لَقِيْتُ رَجُلاً صَحِبَ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَرْبَعَ سِنِيْنَ كَمَا صَحِبَهُ أَبُوْهُرَيْرَةَ قَالَ نَهٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ تَغْتَسِلَ الْمَرْأَةُ بِفَضْلِ الرَّجُلِ أَوْ يَغْتَسِلُ الرَّجُلُ بِفَضْلِ الْمَرْأَةِ . زَادَ مُسَدَّدٌ وَلْيَغْتَرِفَا جَمِيْعًا رواه أبو داود والنسائي وزاد أحمد فِيْ أَوَّلِهِ نَهٰى أَنْ يَّمْتَشِطَ أَحَدُنَا كُلَّ يَوْمٍ أَوْ يَبُوْلَ فِيْ مُغْتَسَلِهِ . ورواه ابن ماجه عن عبد اللّٰه بْنِ سَرْجَسٍ .

د حضرت حميد[1] الحميري څخه روايت دی چي ما يو سړی وليدی چي هغه د ابوهريرة په ډول څلور کاله د رسول الله ﷺ په صحبت کي تير کړی وه ، هغه سړي وويل رسول الله ﷺ د دې څخه منعه فرمايلې ده چي ښځه دي په پاته سوو اوبو سره غسل وکړي او يا سړی دي د ښځو په پاته سوو اوبو سره غسل وکړي . او ددې حديث په آخر کي مسدد دا الفاظ بيان کړي دي چي سړي او ښځي ته پکار دي چي دواړه د يوه لوښي څخه لپه په يو ځل اخلي او غسل سره وکړي، ابوداؤد ، نسائي او احمد ددې خبري څخه منعه کړې ده چي په موږ کي دي يو څوك هره ورځ ږمنځ کوي يا په غسل خانه کي تشي بولي کوي . ابن ماجه دا د عبدالله بن سرجس څخه روايت کړی دی .

**تشريح** : د هره ورځ ږمنځ کولو څخه يې ځکه منعه فرمايلې ده چي دا د هغه خلکو طريقه ده چي د هغوئ مقصد يوازي ښکلا او زينت وي نو مسنون طريقه داده چي ږمنځ کول په دريمه ورځ وکړل سي يعني په مينځ کي د يوې ورځي ناغه کول پکار دي ، د غسل کولو پر ځای د بولو کولو منعه ځکه سوې ده چي په دې سره وسوسې پيدا کيږي چي په عبادت کي د حضور قلب لپاره سدراه (د زړه د توجه مانع ) جوړيږي .

---

[1] د نوموړي نوم حميد بن عبدالرحمن دی د قبيله حمير سره د تعلق په وجه د حميري په نسبت سره مشهور دی . نوموړی يو جليل القدر تابعي دی د خپل علم او فضل په وجه د اهل بصره امام ګڼل کيدی ، د ابوهريره او ابن عباس رضي الله عنهما څخه د سماعت (اوريدو) شرف ورته تر لاسه دی .

# بَابُ اَحْكَامِ الْمِيَاهِ

## (د اوبو د احکامو بیان)

## الفصل الاول

﴿۴۳۶﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَايَبُوْلَنَّ اَحَدُكُمْ فِي الْمَاءِ الدَّائِمِ الَّذِيْ لَايَجْرِيْ ثُمَّ يَغْتَسِلُ فِيْهِ. متفق عليه وَ فِيْ رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ قَالَ لَا يَغْتَسِلُ اَحَدُكُمْ فِي الْمَاءِ الدَّائِمِ وَهُوَ جُنُبٌ قَالُوْا كَيْفَ يَفْعَلُ يَا اَبَاهُرَيْرَةَ قَالَ يَتَنَاوَلُهُ تَنَاوُلاً.

د حضرت ابوهريرة ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : په تاسو کي دي هيڅوك په هغه ولاړو اوبو کي چي جاري نه وي تشي بولي نه کوي چي بيا غسل هم په کوي. (بخاري او مسلم) او په مسلم کي دا الفاظ دي چي په تاسو کي دي هيڅوك د ناپاکۍ په حالت کي په ولاړو اوبو کي غسل نه کوي ، خلکو د ابوهريرة څخه پوښتنه وکړه چي نو څنګه وکړو؟ ابوهريرة ورته وويل د هغه څخه دي اوبه را واخلي يعني په لپه يا يو لوښي سره دي غسل وکړي.

**تشريح** : دلته چي په کومو کي د بولو کولو او بيا په هغه کي د غسل کولو څخه منعه کيږي نو د هغه څخه ماء قليل يعني لږ اوبه مراد دي ځکه چي زياتي اوبه ماء جاري دي يعني د بهيدونکو اوبو حکم لري او هغه په بولو وغيره سره نه ناپاکيږي او بيا په هغه کي غسل کول هم جائز دی.

ځينو علماؤ ويلي دي چي په ماء کثير (ډيرو اوبو) کي هم بولي کول منعه دي که څه هم هغه اوبه په بولو وغيره سره ناپاکه کيږي نه، ځکه که يو څوک په هغه کي بولي وکړي نو د هغه په ليدو سره نور خلک هم په هغه کي بولي کول پيل کوي د هغه نتيجه به دا وي چي په عامه توګه سره ټول خلک به په هغه کي د بولو کولو په عادت اخته سي چي د هغه په وجه به اوبه کرار کرار متغير کيږي هر کله چي په هغه کي ډيري بولي کيږي نو د اوبو رنګ، بوی او خوند به بدل سي او اوبه به د خپل اصلي حيثيت په ضائع کولو سره ناپاکه سي.

اوس په دغه حديث کي د پورتني حکم په باره کي ويل سوي دي چي لومړنی شکل يعني د اوبو د کمېدو په صورت کي خو دا نهي د حرمت لپاره ده ځکه چي په لږ اوبو کي بولو کولو سره اوبه ناپاکيږي ، په دوهم شکل يعني د اوبو د زياتوب په صورت کي دا نهي د کراهت لپاره ده.

اوس پاته سو دا سوال چي د شریعت په اصطلاح کي د کمو او بو او د زیاتو اوبو مقدار او د هغه حد څه دی ؟ نو په دې اړه به انشاء الله تعالی په راتلونکو مخونو کي پوره وضاحت وکړل سي . په دې هم پوه سئ چي په حدیث کي د اوبو سره د جاري یعني بهیدونکي قید ولي لګول سوی دی ، ددې قید وجه داده که اوبه جاري یعني بهیدونکي وي نو که څه هم هغه کمي وي یا زیاتي په هغه کي د نجاست مثلاً د بولو وغیره لوېدلو سره اوبه نه ناپاکه کیږي .

او علماؤ لیکلي دي چي دا ټول تفصیل د ورځي لپاره دی په شپه کي د جنات د بیري په وجه مطلقا په اوبو کي قضاء حاجت مکروه او منعه دی ځکه چي جنات د شپې هلته اوسیږي چیري چي اوبه وي ، اکثر ویالې ، تالابونه، وغیره د شپې د جناتو مسکن وي .

د حدیث د آخري برخي څخه معلومه سوه که یو جنب په اوبو کي لاس ووهي نو اوبه به مستعمل یعني ناقابل استعمال نه وي او که په هغه اوبو کي لاس ددې لپاره ووهي چي د خپلو لاسونو ناپاکي لیري کولو لپاره په هغه کي لاس پریولي نو په دې صورت کي به اوبه مستعمل یعني ناقابل استعمال سي .

﴿۴۳۷﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ نَهَى رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يُبَالَ فِي الْمَاءِ الرَّاكِدِ. (رواه مسلم)

د حضرت جابر ﷛ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ په ولاړو اوبو کي د تشو بولو کولو څخه منعه فرمایلې ده . مسلم .

﴿۴۳۸﴾: وَعَنِ السَّائِبِ بْنِ يَزِيْدَ قَالَ ذَهَبَتْ بِي خَالَتِي إِلَى رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَتْ يَا رَسُولَ اللّٰهِ إِنَّ ابْنَ أُخْتِي وَجِعٌ فَمسحه رَأْسِي وَدَعَا لِي بِالْبَرَكَةِ ثُمَّ تَوَضَّأَ فَشَرِبْتُ مِنْ وَضُوئِهِ ثُمَّ قُمْتُ خَلْفَ ظَهْرِهِ فَنَظَرْتُ إِلَى خَاتَمِ النُّبُوَّةِ بَيْنَ كَتِفَيْهِ مِثْلَ زِرِّ الْحَجَلَةِ . (متفق عليه)

د حضرت سائب بن یزید څخه روایت دی چي زما خاله زه د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر کړم او هغې وویل اې دالله رسوله ! زما دا خوریی ناروغ دی نو رسول الله ﷺ زما پر سر لاس را تیر کړ او زما لپاره یې د برکت دعاء وکړل . بیا رسول الله ﷺ اودس وکړ او ما د رسول الله ﷺ د اودس څخه پاته سوي اوبه و څښلې بیا زه د رسول الله ﷺ شا ته و دریدم او ما مُهرنبوت ولیدی چي د رسول الله ﷺ د اوږو په منځ کي وو او د چیرکټ د غوټۍ په شان ځلیدی . بخاري او مسلم .

**تشریح** : د اوداسه د اوبو څخه یا خو مراد دادی چي د رسول الله ﷺ د اودس کولو څخه وروسته

كومي اوبه چي په لوښي كي پاته سوي وي سائب ﷺهغه وڅښلې، يا مراد دادی چي كله رسول الله ﷺ اودس كوی نو كومي اوبه چي د رسول الله ﷺ د اوداسه د اندامونو څخه توی سوي وې سائب ﷺ د بركت تر لاسه كولو او د سعادت په خاطر هغه وڅښلې.

الله تعالی چي رسول الله ﷺ د نبوت او رسالت په منصب مشرف كولو سره دنيا ته راوليږی نو د رسول الله ﷺ د نبوت او رسالت د حقانيت او صداقت د دليل په توګه چيري چي نوري ډيري نښي او معجزې وركړل سوي دي نو هلته يوه لويه نښه د رسول الله ﷺ د اوږو په مينځ كي (مهر نبوت) يې هم ثبت كړ، سائب ﷺ د دغه مهر نبوت اندازه او د هغه هيبت بيان فرمايي چي هغه د چيركټ د غوټۍ په ډول وو، دغه نښي ته مهر نبوت ويل كيږي چي د رسول الله ﷺ د بعثت څخه مخكي پر انبياء عليهم السلام باندي به د الله تعالی د لوري كوم كتابونه نازليدل په هغه كي به رسول الله ﷺ د راتلو او بعثت خبر وركولو سره د رسول الله ﷺ دا نښه هم ښودل سوې وه چي د رسول الله ﷺ د اوږو په مينځ كي به مهرنبوت وي؛ كله چي رسول الله ﷺ مبعوث سو نو په دغه مهر نبوت سره وپيژندل سو چي رسول الله ﷺ هغه نبي آخر زمان دی چي د هغه د بعثت خبر په مخكنيو كتابونو كي وركړل سوی دی، دا مهرنبوت د رسول الله ﷺ د نبوت او رسالت نښه وګرځول سول، ددې څخه پرته علماء كرام ددې وجه تسميه نوري هم ليكلي دي خو دلته د اوږدوالي په وجه د ټولو ذكر نسي كيدای.

د مهر نبوت په اړه علماؤ ليكلي دي چي ددې په دباندي برخه كي د وحده لاشريك الفاظ مرقوم وه او په دننه برخه كي دا عبارت ليكلی وو (توجه حيث ما كنت فاتک منصور) يعني كوم لوري ته چي ته متوجه يې زموږ مرسته به ستا سره وي.

د مهرنبوت د وخت په اړه د علماؤ اختلاف دی ځينو حضراتو ويلي دي چي كله چي د رسول الله ﷺ سينه مباركه سق (څيرلو) سره وګنډل سوه نو د هغه څخه وروسته دا ظاهر سو، د ځينو علماؤ تحقيق دادی چي د رسول الله ﷺ د زيږيدني سره سم دا مهر ظاهر سو او ځينو حضراتو ويلي دي چي رسول الله ﷺ د دغه مهر سره پيدا سوی دی. والله اعلم.

## الفصل الثاني

| د حضرت ابن عمر ﷺ څخه روايت دی چي د رسول الله ﷺ څخه د هغه اوبو د حكم پوښتنه | ﴿۴۳۹﴾: عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ سُئِلَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْمَاءِ يَكُونُ فِي الْفَلَاةِ |
| --- | --- |

مِنْ الْأَرْضِ وَمَا يَنُوبُهُ مِنْ الدَّوَابِّ وَالسِّبَاعِ فَقَالَ إِذَا كَانَ الْمَاءُ قُلَّتَيْنِ لَمْ يَحْمِلْ الْخَبَثَ. رواه احمد و ابوداؤد والترمذي والنسائي والدارمي وابن ماجة وفي اخرى لابي داؤد فانه لاينجس .

وسول چي په ځنګل کي دننه په مځکه کي يو ځاى وي او حيوانان او نور ځنګلي ځناور پر هغه راځي او د هغه ځخه اوبه چښي او هلته بولي هم کوي ، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : که هغه اوبه د دووغټو منګيانو په اندازه وي نو هغه ناپاکي نه قبلوي .(احمد ، ابوداؤد ، ترمذي، نسائي ،دارمي ابن ماجه) خو د ابوداؤد په دوهم حديث کي دا منقول دي چي هغه اوبه ناپاکي نه دي .

**تشريح** : (قلة) لوى منګي ته وايي چي په هغه کي دوه نيم ژيان اوبه ځائيږي ، په قلتين يعني دوو منګيانو کي پنځه ژيان اوبه راځي ، د دوو منګيانو د اوبو وزن علماؤ پاو بالا شپږ منه ليکلى دى، ددې حديث سره سم د امام شافعي رحمة الله عليه مذهب دادى که اوبه د دوو منګيانو په اندازه وي او په هغه کي نجاست ولويږي نو تر ځو پوري چي د اوبو رنګ، بوى او خوند متغير نسي نو اوبه نه ناپاکه کيږي .

مګر تر ځو پوري چي ددې حديث د حيثيت تعلق دى په دې باره کي د علماؤ ډير اختلاف دى چي ايا دا حديث صحيح دى که يا، د سفر السعادت مصنف چي يو جليل القدر محدث دى ليکي چي د علماؤ د يو ډلي قول خو دادى چي حديث صحيح دى مګر د يو بلي ډلي وينا داده چي دا حديث صحيح نه دى .

علي بن مديني رحمة الله تعالى عليه چي د جليل القدر علماؤ او امام حديث او د امام بخاري استاد دى ليکلي دي چي دا حديث د رسول الله ﷺ ځخه ثابت نه دى .

او علماء ليکي چي دا حديث د اجماع صحابه پر خلاف دى ځکه چي يو وار د زمزم په ځاه کي يو حبشي ولويدى نو حضرت ابن عباس او حضرت بن زبير رضي الله عنهما دا حکم وکړ چي د ځاه ټولي اوبه راوکښل سي او دا واقعه د اکثرو صحابه کرامو په مخکي وسوه مګر هيچا يې مخالفت ونه کړ ، ددې ځخه پرته علماؤ دا هم ليکلي دي چي په دې مسئله کي د ناپاکۍ حد او مقدار ټاکلو په اړه نه خو حنفيه او نه شوافع ته داسي يو صحيح حديث لاس ته راغلى دى چي د هغه ځخه معلومه سي چي په نجاست لوېدو سره د ځومره مقدار اوبه ناپاکه کيږي او د ځومره مقدار اوبه نه ناپاکه کيږي .

امام طحاوي رحمة الله عليه چي د فن حديث يو جليل القدر امام او حنفي مذهب دى

فرمايي چي حديث قلتين يعني دا حديث كه څه هم صحيح دی مگر پر دې زمونږ د عمل نه كولو وجه داده چي په حديث كي د اوبو اندازه دوه قله (منگيان) ښودل سوي دي او د قلة څو معناوي دي غټ منگي ته هم وايي او ژي ته هم او غره څوكي ته هم وايي ، هر كله چي په يقين سره دا نسي ويل كيدای چي دلته په حديث كي د قلة څخه څه مراد دی نو په دې عمل څرنگه ممكن كيدای سي .

په هر حال ددې مسئلې تفصيل دادی چي علماء يوازي د حديث په ظاهري الفاظو عمل كوي د هغوئ مسلک دادی چي د نجاست وغيره په لوېدو سره اوبه ناپاكه كيږي كه اوبه كمي وي او كه زياتي رواني وي او كه ولاړي وي او كه څه هم د نجاست په لوېدو سره د اوبو رنگ ، خوندي او بوی متغير سي يا نه سي، دا حضرات په دليل كي ددې څخه وروسته د حديث دا الفاظ وړاندي كوي (ان الماء طهور لاينجسه شيئ ) يعني اوبه پاكي دي او هيڅ شی يې نه ناپاكه كوي، حال دا چي مطلقا اوبه نه دي بلكه زياتي اوبه دي، ددې څخه پرته د علماؤ او محدثينو مسلک دادی كه اوبه زياتي وي نو د نجاست په لوېدو سره نه ناپاكه كيږي او كه اوبه كمي وي نو د نجاست په لوېدو سره ناپاكه كيږي .

اوس ددې څخه وروسته د څلورو امامانو په نزد د زياتو او كمو اوبو په مقدار كي اختلاف دی، امام مالک رحمة الله عليه فرمايي چي د نجاست په لوېدو سره د كومو اوبو رنگ، خوند او بوی چي متغير نسي نو هغه ته به ماء كثير يعني زياتي اوبه ويل كيږي او كومي اوبه چي متغير سي هغه ته به ماء قليل يعني لږ اوبه ويل كيږي، د امام شافعي او امام محمد رحمة الله عليهما مذهب ددې حديث سره سم دادی چي كومي اوبه د دوو قلو په اندازه وي هغه ته به ماء كثير وايو او كومي اوبه چي د دوو قلو برابر نه وي هغه ته به ماء قليل ويل كيږي .

امام اعظم رحمة الله عليه او د هغوئ منونكي دا وايي كه د اوبو دومره مقدار وي چي د هغه يوه غاړه ښورولو سره دوهمه غاړه يو ځای نسي نو هغه ماء كثير دي او كه دوهمه غاړه ورسره وښوري نو هغه ماء قليل دی .

وروسته ځينو حنفي علماؤ لس په لس كي اوبو ته ماء كثير ويلي دي يعني دومره لوی حوض چي لس لاسه اوږد او لس لاسه پلن وي، او دومره ژور وي كه په لپه سره اوبه ځيني پورته كړل سي نو ځمكه څرگنده نسي ، داسي حوص ته لس په لس كي وايي، د داسي حوض په اوبو كي چي لس په لس كي وي داسي نجاست ولوېږي چي د لوېدو څخه وروسته نه معلوميږي لكه

بولي، وينه، شراب وغيره نو ثخلورو خواوو ته يې اودس كول جائز دى چيري چي غواړي اودس كولاى سي، البته په دومره لوى حوض كي كه دومره نجاست ولويږي چي د اوبو رنګ، بوى او خوند بدل سي نو اوبه به ناپاكه سي او كه د حوض شكل داوي چي اوږد خو شل لاسه او پلن پنځه لاسه وي يا داسي اوږد پنځه ويشت لاسه او پلن ثخلور لاسه وي نو دې ته به هم لس په لس كي ويل كيږي.

﴿۴۴۰﴾: وَ عَنْ أَبِي سَعِيدِ الْخُدْرِيِّ قَالَ قِيلَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ أَنَتَوَضَّأُ مِنْ بِئْرِ بُضَاعَةَ وَهِيَ بِئْرٌ يُلْقَى فِيهَا الْحِيَضُ وَلُحُومُ الْكِلَابِ وَالنَّتْنُ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ الْمَاءَ طَهُورٌ لَا يُنَجِّسُهُ شَيْءٌ . رواه احمد والترمذي وابوداؤد والنسائي .

د حضرت ابوسعيد الخدري ﷺ ثخه روايت دى چي د رسول الله ﷺ ثخه پوښتنه وسول اې دالله رسوله ! موږ د بضاعه د ثاه ثخه اودس كوو دا په مدينه كي يو ثاه وو چي په هغه كي به د حيض جامې د سپو غوښه او مرداري غورزول كېدل ، رسول الله ﷺ وفرمايل اوبه پاكي دي هغه هيڅ يو شى ناپاكه كولاى نه سي . احمد ، ترمذي، ابوداؤد او نسائي .

**تشريح** : بير بضاعه د مدينې منورې د يو ثاه نوم دى ، هغه په يو داسي ځاى كي واقع دى چي هلته به د نالې اوبه راتلې ، هغه نالې چي نجاست او غلاظت به پكښې وو هغه به په هغه ثاه كي لويدى مګر ويونكي په يو داسي انداز سره بيان كړى دى چي د هغه ثخه دا وهم كيږي چي خلكو به خپله په هغه كي نجاست غورځوئ ، حال دا چي دا غلطه ده ځكه چي دا ډول نجاست او د غلط شيانو كول خو عام مسلمان هم نسي كولاى، نو چيري به هغه خلک چي د داسي غير شرعي او غير اخلاقي شى كوى چي افضل المؤمنين وو .

په هر حال په هغه ثاه كي زياتي اوبه وې او چينه داره وو ځكه نو كومه مرداري چي به په هغه كي لوېدل په بهېدلو سره به بيرته ځيني وتل بلكه د علماؤ تحقيق خو دادى چي هغه وخت هغه ثاه جاري وو او د جاري نهر په ډول په يو باغ كي بهيدى د كوم چي د رسول الله ﷺ په اړه پوښتنه وسول نو رسول الله ﷺ د ثاه د دې صفت په وجه د هغه د اوبو په باره كي وې .

د حديث د ظاهري الفاظو ثخه دا ګڼل نه دي پكار چي په نجاست لوېدو سره اوبه نه ناپاكه كيږي كه هغه لږ وي او يا ډيري ، بلكه دا حكم د ماء كثير يعني ډيرو اوبو دى، د ماء قليل يعني د كمو اوبو دا حكم نه دى . د حنفيه د ځينو علماؤ دا خيال دى چي چينه لرونكى ثاه هم د جاري اوبو په حكم كي دى ، يعني كوم حكم چي د بهيدونو اوبو دى دا حكم د چينه لرونكي ثاه هم دى .

﴿۴۴۱﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ سَأَلَ رَجُلٌ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ إِنَّا نَرْكَبُ الْبَحْرَ وَنَحْمِلُ مَعَنَا الْقَلِيلَ مِنَ الْمَاءِ فَإِنْ تَوَضَّأْنَا بِهِ عَطِشْنَا أَفَنَتَوَضَّأُ مِنْ مَاءِ الْبَحْرِ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هُوَ الطَّهُورُ مَاؤُهُ الْحِلُّ مَيْتَتُهُ. رواه مالك والترمذي و ابوداؤد والنسائي وابن ماجة والدارمي .

د حضرت ابوهريرة ﷺ څخه روايت دی چي يو سړي د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وکړه اي دالله رسوله ! موږ په درياب کي ځو (يعني په کښتيو کي يو) او د ځان سره لږ اوبه وړو که موږ په دې اوبو اودس وکړو نو تږي به پاته سو ايا موږ د درياب په اوبو اودس وکړو؟ رسول الله ﷺ وفرمايل : د درياب اوبه پاکونکي دي د دې مردار (يعني مړ ماهی) حلال دی. مالك، ترمذي، ابوداؤد ، نسائي ، ابن ماجه او دارمي .

**تشريح** : (ميتة) هغه مردار حيوان ته وايي چي د حلالېدو څخه پرته مړ سي ، په دې حديث کي د ميتة څخه مراد ماهی دی ځکه چي هغه نه ذبح کوي د هغه ښکار کول او هغه د اوبو څخه راکښل د هغه د ذبح کولو برابر دی البته کوم ماهی چي په اوبو کي مړ سي هغه د حنفيه په نزد حلال نه دی. د اوبو په حيوانانو کي ماهی د ټولو علماؤ په اتفاق سره حلال دی ، د نورو حيوانانو په اړه اختلاف دی چي د هغه تفصيل د فقه په کتابو کي موجود دی .

﴿۴۴۲﴾: وَعَنْ اَبِيْ زَيْدٍ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُودٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَهُ لَيْلَةَ الْجِنِّ مَا فِي إِدَاوَتِكَ قَالَ قُلْتُ نَبِيذٌ قَالَ تَمْرَةٌ طَيِّبَةٌ وَمَاءٌ طَهُورٌ. رواه ابوداؤد و زاد احمد والترمذي فَتَوَضَّأَ مِنْهُ، و قال الترمذي ابو زيد مجهول و صح عن علقمة عن عبدالله بن مسعود قال لم اكن ليلة الجن مع رسول الله صلى الله عليه وسلم . رواه مسلم .

حضرت ابو زيد د عبدالله ابن مسعود ﷺ څخه روايت کوي چي رسول الله ﷺ ده ته د پيريانو په شپه (په کومه شپه چي رسول الله ﷺ ته د پيريانو ډله راغلې وه) وفرمايل : ستا په پتك کي څه شي دي ؟ ما عرض وکړ د (خرما) شيره ده ، رسول الله ﷺ وفرمايل خرماوي پاکي دي او اوبه يې پاکونکي دي (ابوداؤد) احمد او ترمذي دا الفاظ هم ليکلي دي چي رسول الله ﷺ په نبيذ (د خرما شيره) باندي اودس وکړ ، ترمذي ويلي دي چي ابو زيد مجهول دی او د عقلمه څخه ثابته ده چي هغه د عبدالله بن مسعود څخه نقل کړي دي چي زه د پيريانو په شپه د رسول الله ﷺ سره نه وم .مسلم

**تشريح** : (ليلة الجن) هغه شپې ته وايي چي په هغه کي د پيريانو يو ډله د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضره سوې وه، او رسول الله ﷺ هغوئ ته د اسلام دعوت ورکړ ، د هغوئ په مخکي يې قرآن کريم وو وايه د هغه وروسته هغه ډله خپل قوم ته راغلل او د اسلام د دعوت او د قرآن کريم د

تعلیماتو څخه یې هغوئ خبر کړل ، ددې پېښې ذکر د قرآن کریم په سورة جن کې هم سوی دی .

د (نبیذ تمر) شکل دادی چې خرماوې په اوبو کې واچول سي او هغه تر څو ورځو پوري همداسي په اوبو کې پرتې وي د هغه څخه وروسته شربت ډول شیان ځیني جوړ سي او یو ډول تیزي هم پکښې راسي، دا شربت ډیر تیز او تند نه وي حلال وي، منقول دی چې رسول الله ﷺ لپاره به دا نبیذ تمر جوړیدی ، په نبیذ تمر سره اودس کول مختلف فیه دی، د امام اعظم رحمة الله علیه مذهب دادی که د اوداسه لپاره خالص اوبه پیدا نسي نو په نبیذ تمر سره اودس کیدای سي ددې په شتون کې تیمم کول جائز نه دی .

امام شافعي رحمة الله علیه ددې مذهب سره اختلاف کوي ، د امام اعظم رحمة الله علیه دلیل پورتنی حدیث دی ، دا حدیث د امام شافعي رحمة الله علیه د مذهب خلاف دی ځکه شوافع دا حدیث ضعیف ثابتوي ، امام ترمذي هم دا خبره کوي چې د حدیث راوي ابو زید غیر معروف دی ځکه د هغه روایت سوی حدیث باندي د یو مذهب بنیاد نسي اېښودل کیدای ، امام ترمذي دوهم شی دا ثابتول غواړي چې د عبدالله بن مسعود ﷺ څخه روایت دی د هغه مقصد دا هم دی چې هر کله د عبدالله ابن مسعود ﷺ د رسول الله ﷺ سره په هغه شپه کې ملګرتیا ثابته نه ده نو د ابوزید دا روایت یقینا صحیح کیدای نه سي .

مګر تر څو پوري چې د حقیقت تعلق دی نو په دې کې هیڅ وجه نسته چې د امام اعظم رحمة الله علیه مذهب بر حق دی ځکه چې د امام ترمذي دا ویل چې ابو زید مجهول راوي دی د حدیث پر حقیقت باندي هیڅ اثر نه کیږئ ځکه چې د حدیث د راویانو د غیر معروف کېدو دعوا په نورو طریقو سره غلطه ثابتیږي .

دوهم اعتراض دا چې حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ په دې روایت کې د رسول الله ﷺ ملګری نه وو بالکل غلطه ده ځکه چې د ابن مسعود ﷺ شتون د نورو روایتونو څخه هم په تحقیق سره ثابته وه، په یوه روایت کې دا هم دي چې رسول الله ﷺ په دغه شپه کې جنات (پیریانو) ته د اسلام دعوت او د قرآن کریم تعلیمات ښودلو کې بوخت سو نو رسول الله ﷺ عبدالله بن مسعود ﷺ یو ځای کښېنوی او پر هغه شاخوا یې لیکه کښلو سره دایره جوړه کړه او هغه ته یې دا هدایت وکړ چې د هغه دایرې څخه دباندي ونه وځي .

د حضرت عقلمه رحمة الله علیه د روایت په صحت کې کلام نسته مګر د هغه مطلب دا بن مسعود ﷺ د د شتون څخه انکار نه دی بلکه د هغه مطلب دادی چې کله رسول الله ﷺ د پیریانو

سره په خبرو وو هغه وخت ابن مسعود ﷺ ورسره حاضر نه وو ، يا دا چي رسول الله ﷺ پيريانو ته تشريف يووړ نو ابن مسعود ﷺ هغه وخت ورسره نه وو بلکه د شپې په آخره كي په ورتلو سره د رسول الله ﷺ سره يې ملاقات وكړ . والله تعالى اعلم .

﴿۴۴۳﴾: وَ عَنْ كَبْشَةَ بِنْتِ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ وَكَانَتْ عِنْدَ ابْنِ أَبِي قَتَادَةَ أَنَّ أَبَا قَتَادَةَ دَخَلَ عَلَيْهَا فَسَكَبْتُ لَهُ وَضُوءًا فَجَاءَتْ هِرَّةٌ تَشْرَبُ مِنْهُ فَأَصْغَى لَهَا الْإِنَاءَ حَتَّى شَرِبَتْ قَالَتْ كَبْشَةُ فَرَآنِي أَنْظُرُ إِلَيْهِ فَقَالَ أَتَعْجَبِينَ يَا بِنْتَ أَخِي فَقُلْتُ نَعَمْ قَالَتْ فَقَالَ إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّهَا لَيْسَتْ بِنَجَسٍ إِنَّمَا هِيَ مِنَ الطَّوَّافِينَ عَلَيْكُمْ أَوْ الطَّوَّافَاتِ . رواه مالك و احمد و الترمذي و ابوداؤد والنسائي وابن ماجة والدارمي

د بي بي كبشة بنت كعب بن مالك څخه روايت دی او وه دا د ابوقتاده د زوی لاندي چي ابوقتاده هغې ته راغلی ما د هغه د اوداسه لپاره د اوبو لوښي ډك كړ پشي راغلل او د هغه لوښي څخه يې اوبه چېښل پيل كړل او ابو قتاده هغه لوښي كوږ كړ چي پشي په ښه ډول اوبه و چېښلې ، بي بي كبشة وايي ابو قتاده زه وليدم چي زه هغه ته ګورم نو وه يې ويل زما وريرې ! ايا ته په دې تعجب كوې ؟ ما ورته وويل هو. نو هغه وويل : رسول الله ﷺ وفرمايل چي دا ناپاكه نه ده هغه ستاسو په منځ كي ګرځېدونكې ده

**تشريح** : حضرت ابو قتاده ﷺ كبشه ته وريره ويلي دي حال دا چي هغه يې وريره نه وه ، ددې وجه داده چي په عربو كي په عامه توګه سره سړی مخاطب ته كه كوچنی وي وراره يا د اكا زوی او ښځي ته وريره ويلو سره مخاطب كوي كه څه هم هغه په حقيت كي د هغه قريب نه وي ځكه چي يو مسلمان د بل مسلمان ديني ورور دی ځكه هغه د اسلامي قرابت په وجه د هغه اولاد ته وراره يا وريره وايي .

په روايت كي طوافين او طوافات دواړه الفاظ استعمال سوي دي ، ددې مطلب دادی كه چيري پيشي نر وي نو د هغه لپاره طوافين لفظ به وي او كه پيشي ښځه وي نو د هغې لپاره به د طوافات لفظ وي . دا دواړه الفاظ دلته د خادم په معنا كي استمال كړل سوي دي ، ددې مطلب دادی چي پيشياني ستاسو خادم دي، هغوئ ته د خادم ويلو وجه داده چي دوئ هم د انسانانو په مختلفو طريقو سره خدمت كوي او د هغوئ د آرام او راحت په ځينو شيانو كي لوی معاون ثابتيږي مثلا تاواني حيوانان لكه مږه وغيره وژني ، يا دوئ ته خادم په دې وجه ويل سوي دي چي څرنګه د خادمانو په خبر اخيستو كي ثواب دی او څرنګه چي خادمان په كورونو كي ګرځي

راګرځي همداسي پيشياني هم په کورونو کي ګرځي راګرځي .

په هر حال د حديث مطلب دادی چي پيشاني هر وخت ستاسو سره د خادمانو په ډول اوسيږي او د کور په هره برخه کي ګرځي که د دوئ پسخورده ناپاکه وګرځول سي نو تاسو به په ډيره پريشاني کي اخته سئ ځکه نو دا حکم کيږي چي د پيشانو پسخورده پاکه ده ، لکه دا حديث چي پر دې دلالت کوي چي د پيشي پسخورده پاکه ده ، د امام شافعي رحمة الله عليه مذهب دادی چي د پيشي پسخورده ناپاکه نه ده بلکه پاکه ده .

د امام اعظم رحمة الله عليه مذهب دادی چي د پيشي پسخورده مکروه تنزيهي ده يعني که چيري د پيشي د پسخوردې اوبو وغيره څخه پرته نور نوري اوبه پيدا نسي نو په هغه اودس کول جائز دی، د هغه په شتون کي د تيمم کولو ضرورت نسته که د پيشي د پسخوردې اوبو څخه پرته نوري اوبه وي او د هغه سربيره په هغه اودس وکړل سي نو اودس به وسي مګر مکروه به وي .

امام صاحب په دې صورت کي دې ته مکروه هم ځکه وايي چي په يو بل حديث کي پيشي ته درنده ويل سوي دي مګر دا حديث د هغه بالکل برعکس دی او د درنده په اړه ښودل سوي دي چي هغه ناپاک وي مګر دا حديث د هغه بالکل برعکس دی ځکه په دغه دواړو حديثونو باندي نظر ساتلو سره يو داسي حکم نافذ کول پکار دي چي د دواړو حديثونو د مفهوم سره سم وي نو اوس به داسي ويل کيږي چي په کوم حديث کي پيشي ته درنده ويلو سره د هغه نجاست ته اشاره سوې ده هغه پر خپل ځای صحيح دي مګر په دې حديث کي د پيشي د نجاست حکم په کراهت کي بدل کړی دی نو د هغه پسخورده ته ناپاکه خو نه سو ويلای البته په مکروه ويلو کي څه پرواه نسته .

﴿۴۴۴﴾: وَعَنْ دَاوُدَ بْنِ صَالِحِ بْنِ دِيْنَارٍ عَنْ أُمِّهِ أَنَّ مَوْلَاتَهَا أَرْسَلَتْهَا بِهَرِيْسَةٍ إِلَى عَائِشَةَ قَالَتْ فَوَجَدْتُهَا تُصَلِّيْ فَأَشَارَتْ إِلَيَّ أَنْ ضَعِيْهَا فَجَاءَتْ هِرَّةٌ فَأَكَلَتْ مِنْهَا فَلَمَّا انْصَرَفَتْ عَائِشَةُ مِنْ صَلَاتِهَا أَكَلَتْ مِنْ حَيْثُ أَكَلَتِ الْهِرَّةُ فَقَالَتْ إِنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّهَا لَيْسَتْ بِنَجِسٍ إِنَّهَا مِنَ الطَّوَّافِيْنَ عَلَيْكُمْ وَإِنِّيْ رَأَيْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى

حضرت داؤد بن صالح بن دينار د خپل مور څخه روايت کوي چي د هغې آزادونکي د هغې په لاس بي بي عائشې ته تحفه وليږل نو هغې بي بي عائشة پر لمانځه وليدل ، بي بي عائشې زما په لور اشاره وکړه چي ته دا کښېږده نو تحفه کښېښودل سول چي پيشي راغله او د تحفې څخه يې وخوړل. کوم وخت چي بي بي عائشة د لمانځه څخه فارغه سوه نو د تحفې د هغه ځای

اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَوَضَّأُ بِفَضْلِهَا . رواه أبو داود .

ځخه يې خوراك پيل كړ د كوم ځاى ځخه چي پيشي خوراك كړى وو ، بيا يې وفرمايل : رسول الله ﷺ فرمايلي دي د پيشي خوړلى شى ناپاك نه دى . پيشي په تاسو كي گرځېدونكې ده بيا يې وويل ما رسول الله ﷺ د پيشي په پسخورده سره اودس كونكى ليدلى دى . ابوداؤد .

**تشريح** : د داؤد مور چي بي بي عائشې صديقې رضي الله عنها ته حريره يووړل نو هغه په لمانځه كي بوخته وه ځكه په لاس يا سر سره يې اشاره وكړه ، د هغې مطلب دا وو چي دا لوښى كښيږده ، ددې ځخه معلومه سوه چي په لمانځه داسي معمولي اشاره جائز ده ځكه چي دا عمل كثير نه دى لمونځ فاسد كونكى او ختمونكى شى خو يا خبري كول او يا عمل كثير دى .

د دغه حديث ځخه دا هم معلومه سوه چي رسول الله ﷺ خپله د پيشي د پسخوردې په اوبو سره اودس كړى دى ، د كومو علماؤ مذهب چي دادى چي د پيشي په پسخورده سره اودس كول مكروه تنزيهي دى مثلا امام ابوحنيفة رحمة الله عليه نو هغوئ ددې تاويل دا كوي چي د رسول الله ﷺ دا عمل د آساني او پر رخصت باندي د عمل كولو مترادف دى او دلته د جواز لپاره دى البته د كومو علماؤ په نزد چي د پيشي پسخورده پاكه ده هغوئ ته ددې حديث د تاويل كولو ضرورت نسته ځكه چي په دې سره خو د هغوئ د مذهب تائيد كيږي ، علماؤ ليكلي دي چي د حديثونو ځخه معلوميږي چي د پيشانو په ساتلو كي ځه پرواه نسته بلكه مستحب دي .

﴿۴۴۵﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ سُئِلَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَتَوَضَّأُ بِمَا أَفْضَلَتِ الْحُمُرُ ؟ قَالَ نَعَمْ وَبِمَا أَفْضَلَتِ السِّبَاعُ كُلُّهَا . رواه في شرح السنة .

د حضرت جابر ﷺ ځخه روهايت دى چي د رسول الله ﷺ ځخه پوښتنه وسول : ايا موږ په هغه اوبو اودس وكړو چي د خرو پسخورده وي ؟ رسول الله ﷺ وفرمايل :هو ، او د ټولو حيوانانو په پسخورده هم . شرح السنة .

**تشريح** : په دې مسئله كي د خرونو يا د غاترو پسخورده پاكه ده كه يا ، هيڅ يقيني خبره نسي ويل كيداى ځكه چي په دې مسئله كي چي كوم حديثونه منقول دي په هغو كي تعارض دى د ځينو حديثونو ځخه معلوميږئ چي د هغوئ پسخورده حرامه ده او د ځينو حديثونو ځخه د هغو د مباح كېدو خبره معلوميږي لكه ځرنگه چي په مرقاة كي دواړه ډوله حديثونه جمع كړل سوي دي نو د هغو په ظاهري تعارض ليدو سره د هغه په اړه يو حتمي فيصله نسي كيداى او بيا ددغه حديثو ځخه پرته د صحابه كرامو په مينځ كي هم ددې مسئلې په اړه اختلاف منقول دى ، ابن عمر ﷺ خو به د خرونو او غاترو پسخورده ناپاكه گڼل مگر ابن عباس ﷺ د هغه د پاكېدو قائل وو .

د دغه حدیث څخه په ظاهره دا معلومیږي چي د درندګانو پسخورده پاکه ده لکه څرنګه چي د امام شافعي رحمة الله علیه دا مذهب دی، مګر د امام ابوحنیفة رحمة الله علیه په نزد د درندګانو پسخورده ناپاکه ده او ددې وجه دا بیانوي چي هر کله یو درنده اوبه وغیره پسخورده کړي نو په هغه کي د هغه لعاب (ناوړي) یقینا لویږي او لعاب د غوښو څخه پیدا کیږي او ظاهره ده چي د درندګانو غوښه ناپاکه ده ځکه چي د هغوئ پسخوردې ته به هم ناپاک ویل کیږي.

او کوم چي ددغه حدیثونو تعلق دی چي د هغه څخه د درندګانو پسخورده پاکه معلومیږي په دې باره کي علماء وايي چي ددې حدیثونو په اړه یو یقیني خبره نسي ویل کیدای ځکه چي ددغه حدیثونو په صحت کي کلام کیږي چي ایا دا حدیثونه صحیح دي که یا، او که دا حدیثونه صحیح هم ومنل سي نو دا به ویل کیږي چي ددې حدیثونو څخه د درندګانو په کومو پسخورده اوبو د پاک کېدو ثبوت حاصلیږي ددې څخه هغه اوبه مراد دي چي په ځنګل کي په لوی لوی تالابونو کي جمع کیږي، ددې وضاحت په راتلونکو حدیثونو کي هم چي یحیی د ابوسعید څخه روایت کړي دي کیږي چي د هغه څخه په وضاحت سره ثابتیږي که درنده داسي اوبه پسخورده کړي چي ډیري زیاتي وي مثلا یو لوی تالاب وغیره کي اوبه وي نو هغه به پاکي وي او که اوبه لږ وي نو هغه به دد رندګانو په پسخورده سره ناپاکه کیږي.

دا خبره هم باید په ذهن کي وي چي که چیري دا خبره ومنل سي چي په دغه حدیثونو کي درنده او اوبه په عامه توګه مراد دي چي اوبه که څه هم لږ وي یا زیاتي د درندګانو په پسخورده کولو سره ناپاکه کیږي، نو ایا په دې شکل کي دا نه لازمیږي چي د سپیانو پسخوردې ته به هم پاک وویل سي حال دا چي هیڅوک د سپیانو پسخوردې ته پاک نه وايي، د کومو حدیثونو څخه چي د درندګانو پسخورده اوبو پاک کېدل معلومیږي د هغو څخه هغه اوبه مراد دي چي په ځنګل کي په لوی لوی تالابونو کي جمع کیږي او ډیري زیاتي وي.

دلته یوه بله مسئله هم واورئ چي په دې خو تاسو ټول پوهیږئ چي د سپي لعاب وغیره ناپاک وي دا وجه که د سپو لعاب وغیره پر جامې یا بدن باندي ولګیږي نو هغه په پریوللو سره پاکول ضروري کیږي، مګر دلته دا خبره یاد ساتل پکار دي که یو سپی د سړي د بدن یو برخه په خوله سره ونیول یا یو جامه یې په خوله کې ونیول نو ددې مسئله داده که سپي د غصې په حالت کي نیولې وي نو هغه به ناپاکه نه وي او که د غصې په حالت کي نه بلکه د لوبو په ووجه یې هغه

ونيول نو هغه به ناپاكه سي ،ځكه نو د بدن يا جامې هغه برخه پريولل ضروري دي ، ددې فرق وجه علماء دا ليكي چي هر كله سپی يو شی د غصې په حالت كي نيسي نو هغه په غاښونو سره نيسي او د هغه په غاښونو كي لوندوالی نه وي ځكه نو پر هغه شي باندي د ناپاكی اثر نه كيږي او هر كله چي يو شی د لوبو په توګه نيسي نو هغه په غاښونو سره نه نيسي بلكه په شونډانو سره يې نيسي او شونډي په لعاب وغيره سره لندې وي ځكه نو د هغه ناپاكي هغه شی هم ناپاكه كوي .

﴿۴۴۶﴾: وَعَنْ أُمِّ هَانِئٍ قَالَتْ اِغْتَسَلَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هُوَ وَمَيْمُوْنَةَ فِيْ قَصْعَةٍ فِيْهَا أَثَرُ الْعَجِيْنِ . رواه النسائي وابن ماجه .

د حضرت ام هانئ[1] (رض) څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ او بي بي ميمونې د لرګي د لوښي څخه غسل وكړ چي په هغه كي د اوړو اثر وو. نسائي او ابن ماجه

**تشريح** : د شوافع حضراتو په نزد په اوبو كي په تغير راتلو سره كه څه هم تغير په پاک او جائز شي سره راسي يا په ناپاک او ناجائز شي سره وي هغه اوبه د اوداسه او غسل د استعمال قابل نه پاته كيږي ځكه هغه حضرات ددې حديث تاويل دا كوي چي په كاشين كي دومره اوړه نه وه لګيدلي چي په هغه سره اوبه متغير سوي وای ځكه رسول الله ﷺ او بي بي ميمونې په هغه كي غسل وكړ.

مګر د حنفيه په نزد مسئله داده كه اوبه په يو پاک او جائز شي سره متغير سي هر كله چي اوبه ټينګي نسي نو په هغه سره اودس او غسل كول صحيح دی ځكه هغوئ ته ددې حديث د تاويل كولو ضرورت نسته .

## الفصل الثالث

﴿۴۴۷﴾: عَنْ يَحْيَى بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ قَالَ إِنَّ عُمَرَ خَرَجَ فِيْ رَكْبٍ فِيْهِمْ عَمْرُو بْنُ الْعَاصِ حَتّٰى وَرَدُوْا حَوْضًا فَقَالَ عَمْرُو يَا صَاحِبَ الْحَوْضِ هَلْ تَرِدُ حَوْضَكَ السِّبَاعُ فَقَالَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ يَا

د حضرت يحيى بن عبدالرحمن څخه روايت دی چي حضرت عمر ﷺ د يوې قافلې سره ولاړی چي په هغې كي عمرو بن العاص هم وو. تر دې چي يو حوض ته ورسېدل ، عمروبن العاص د حوض د خاوند څخه پوښتنه وكړل ايا ستا دا حوض ته

[1] د نوموړي نوم فاخته د مګر د ام هانئ په كنيت سره مشهوره ده د ابوطالب لور او د حضرت علي ﷺ سكه خور ده.

صَاحِبَ الْحَوْضِ لا تُخْبِرْنَا فَإِنَّا نَرِدُ عَلَى السِّبَاعِ وَتَرِدُ عَلَيْنَا . رواه مالك . وزاد رزين قَالَ زَادَ بَعْضُ الرُّوَاةِ فِيْ قَوْلِ عُمَرَ وَإِنِّيْ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ لَهَا مَا أَخَذَتْ فِيْ بُطُوْنِهَا وَمَا بَقِيَ فَهُوَ لَنَا طُهُوْرٌ وَشَرَابٌ .

درندگان هم راځي ، د دې په اوريدو سره حضرت عمر وفرمايل : اې د حوض خاونده د دې ښودلو ضرورت نسته ځكه چي كله موږ پر درندگانو راځو (يعني كله چي اوبو ته راځو) او كله درندگان پر موږ راځي (يعني درندگان زموږ څخه وړاندي راځي) مالك او رزين ويلي دي ځيني راويانو په دې حديث كي د حضرت عمر په قول كي دا زياتوب كړى دى چي ما د رسول الله ﷺ څخه داسي اوريدلي دي چي درندگان د يو شي څخه خپل نس ډك كړي نو هغه د هغوئ دي او څه چي پاته سي هغه زموږ دي پاكونكي او د څښلو وړ دي .

﴿۴۴۸﴾: وَعَنْ أَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سُئِلَ عَنِ الْحِيَاضِ الَّتِيْ بَيْنَ مَكَّةَ وَالْمَدِيْنَةِ تَرِدُهَا السِّبَاعُ وَالْكِلَابُ وَالْحُمُرُ عَنِ الطُّهْرِ مِنْهَا فَقَالَ لَهَا مَا حَمَلَتْ فِيْ بُطُوْنِهَا وَلَنَا مَا غَبَرَ طُهُوْرٌ . رواه ابن ماجه .

د حضرت ابوسعيد الخدري ﵁ څخه روايت دى چي د رسول الله ﷺ څخه د هغو حوضو څخه د پاكي حاصلولو په اړه پوښتنه وسول چي د مكې او مدينې په منځ كي دي او هغو ته درندگان، خرونه او سپي ټول راځي ، رسول الله ﷺ وفرمايل : د كوم شي څخه چي درندگان خپل نسونه ډك كړي هغه د هغوئ دي او زموږ لپاره هغه څه دي چي د هغوئ څخه پاته سي او هغه پاكونكي دي . ابن ماجه .

**تشريح** : په دغه دواړو حديثونو كي د درندگانو د پسخورده اوبو د پاكيدو چي كوم حكم بيانيږي هغه مطلقا د اوبو په باره كي نه دى بلكه دا حكم د هغه اوبو په اړه دى چي په تالابونو او حوضونو كي جمع كيږي .

﴿۴۴۹﴾: وَعَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ قَالَ لَا تَغْتَسِلُوْا بِالْمَاءِ الْمُشَمَّسِ فَإِنَّهُ يُوْرِثُ الْبَرَصَ . رواه الدارقطني .

د حضرت عمر بن الخطاب ﵁ څخه روايت دى چي په لمر تودو سوو اوبو سره غسل مه كوئ ځكه چي دا برص (د پيس ناروغي) پيدا كوي . دار قطني .

**تشريح** : په لمر د گرم سوو اوبو مطلب ځينو علماؤ دا اخذ كړى دى چي په دې سره غسل كول نه دى پكار چي په قصد سره لمر ته په ايښودو سره گرمي سوي وي مگر په ظاهره دا معلوميږي چي په دې كي تخصيص نسته يعني كه هغه اوبه په قصد ايښودو سره گرمي سوي وي او او يا اوبه په يو ځاى كي د مخكي څخه ايښودل سوي دي او په لمر راتلو سره هغه گرمي سوي وي .

حضرت میرک شاه رحمة الله علیه فرمایي چي دا حدیث یعني د حضرت عمر ﷺ قول ضعیف دی او د رسول الله ﷺ هیڅ حدیث په دې اړه منقول نه دی.

مګر امام شافعي رحمة الله علیه د حضرت عمر ﷺ د دې قول دوهم سند هم روایت کړی دی چي د هغه راوي ثقه او معتمد دی نو د دې په صحت کي هیڅ کلام به صحیح نه وي.

او کوم چي د حضرت عمر ﷺ د دې ارشاد مراد تعلق دی په دې اړه دا ویل کیږي چي د حضرت عمر ﷺ د ویلو مقصد دادی چي په داسي اوبو سره دې مطلقا غسل نه کیږي او نه دې سړی په داسي اوبو سره د غسل کولو عادت جوړوي ځکه چي د برص په ډول ضررناک مرض کي د اخته کېدو بیره پاته نسي، د مسئلې خبره داده چي په لمر سره ګرمي سوي اوبو سره غسل کولو کي څه پرواه نسته، د امام اعظم او امام مالک او امام احمد رحمة الله علیهم حضراتو په نزد په دې کي څه کراهیت نسته البته د امام شافعي رحمة الله علیه مذهب کي څه اختلاف دی مګر د هغوئ صحیح قول دادی چي په دې اوبو سره غسل کول مکروه دی مګر د هغوئ علماء متاخرین هم د دې درې سره امامانو سره دا مذهب اختیار کړی دی چي په دې کي کراهت نسته.

# بَابُ تَطْهِيرِ النَّجَاسَاتِ

## (د نجاستونو د پاکولو بیان)

## الفصل الاول

﴿۴۵۰﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا شَرِبَ الْكَلْبُ فِي إِنَاءِ أَحَدِكُمْ فَلْيَغْسِلْهُ سَبْعَ مَرَّاتٍ. متفق عليه و في رواية لمسلم قال طهور اناء احدكم اذا ولغ فيه الكلب ان يغسله سبع مرات اولهن بالتراب.

د حضرت ابوهریرة ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: هر کله چي ستاسو په لوښي کي سپی اوبه و چېښي نو هغه دي اووه ځله پریولي. بخاري او مسلم، او د مسلم په یوه روایت کي دا الفاظ دي ستاسو د کوم لوښي څخه چي سپی اوبه و چېښي د هغه د پاکولو صورت دادی چي هغه اووه ځله پریولئ او لومړی ځل یې په خاورو سره پریولئ.

**تشریح**: زیات محدثین او د دغه درو سره امامانو مذهب دادی که د یو چا په لوښي کي سپی

خوله ووهي نو هغه لوښی اووه واره پریولل پکار دی ، مګر د امام اعظم ابو حنیفة رحمة الله علیه دا حکم د نورو نجاستونو په حکم کي شمیرلو سره دا فرمایي چي هغه لوښی دی یوازي درې واره پرته د خاورو څخه پریولل کافي دي ، هغه وایي چي په حدیث کي د اووه واره حکم چي ورکول کیږئ هغه د وجوب پر طریقه نه دی بلکه د اختیار په توګه دی یا دا چي اووه واره د پریوللو حکم د اسلام په پیل کي وو چي وروسته منسوخ سو ، والله اعلم .

﴿۴۵۱﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَامَ أَعْرَابِيٌّ فَبَالَ فِي الْمَسْجِدِ فَتَنَاوَلَهُ النَّاسُ فَقَالَ لَهُمُ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَعُوْهُ وَهَرِيْقُوْا عَلٰى بَوْلِهِ سَجْلاً مِّنْ مَّاءٍ أَوْ ذُنُوْبًا مِّنْ مَّاءٍ فَإِنَّمَا بُعِثْتُمْ مُيَسِّرِيْنَ وَلَمْ تُبْعَثُوْا مُعَسِّرِيْنَ . رواه البخاري .

د حضرت ابوهریرة ﷺ څخه روایت دی چي صحرائي سړي په مسجد کي په ولاړي تشي بولي وکړې خلکو هغه ونیوی ، رسول الله ﷺ خلکو ته وفرمایل : دی پریږدئ او یو ستل اوبه پر بولو و بیوی تاسو پر خلکو د آسانی کولو لپاره رالیږل سوی یاست د سختۍ لپاره یې نه یاست رالیږل سوي . بخاري

**تشریح** : راوي ته شک دی چي رسول الله ﷺ سجلا من ماء وفرمایل او که ذنوبا من ماء یې فرمایلي دي ، ځکه هغوئ دواړه نقل کړي دي ، د سجل او ذنوب دواړو معنی د ستل ده مګر ددې په استعمال کي لږ فرق دی هغه دا چي سجل خو هغه ستل ته وایي چي په هغه کي اوبه وي که څه هم لږ وي یا زیاتي او ذنوب د اوبو څخه ډک ستل ته وایي ، ددې حدیث څخه د رسول الله ﷺ د زیات شفقت او رحمت او حلم اندازه لګول کیږي چي پر خپل امت باندي څومره مهربان او شفیق وو ، نه یوازي دا چي رسول الله ﷺ د هغه صحرائي غلطي معاف کړه او هغه ته یې هیڅ ونه ویل بلکه صحابه کرامو چي هغه ته بدرد وویل نو هغوئ ته یې ددې خبري احساس ورکړ چي تاسو د کوم پیغمبر ملګري یاست او د کوم امت کسان یاست د هغه ځانګړتیا داده چي نور خلک په سختۍ او پریشانۍ کي اخته نه کړل سي او نه پر یو غلطي باندي چي د ناپوهۍ په وجه وسي ورته بدرد وویل سي ، د رسول الله ﷺ ددې ارشاد څخه د امت لپاره دا تعلیم مقصد دی چي خلک په سختۍ او تکلیف کي وانه چول سي او نه ورسره داسي معامله وکړل سي چي په هغه سره دوهم سړی بدګمانه سي او خپل ځان په تنګۍ او سختۍ کي محسوس کړي .

دا حدیث ددې خبري دلیل دی چي که چیري نجاست د پریولل شي متغیر نه وي نو پاک دی که هغه پر بله جامه ، بدن او مځکه باندي ولویږي نو هغه شیان به ناپاک نه وي که څه هم په دې مسئله کي د علماؤ اختلاف دی مګر مختار او معتمد قول دا دی چي که چیري پریولل سوی شی

د نجاست د ځای ثخه هغه وخت ولویږي کله چي هغه د نجاست د ليري کېدو په وجه پاک سوی
وي نو په دې صورت کي به هغه پاک وي او هغه پرېولل سوی شی چي د نجاست د ځای ثخه د
پاکېدو مخکي بيل سوی وي ناپاک به وي او که پرېولل سوی شی متغير سي په داسي توګه چي
د اوبو رنګ، خوند او په بوی کي يې تبديلي راسي نو هغه په اتفاق سره ناپاک دی .

علامه طيبي شافعي رحمة الله عليه فرمايي چي دا حديث ددې خبري وضاحت کوي که
چيري مځکه د نجاست په وجه ناپاکه سي نو هغه په وچېدو سره نه پاکيږي يعني هغه ځای په
اوبو بيولو سره د نجاست په ليري کولو سره پاکيږي او هغه ځای ګروول يا د هغه ثخه خاوره
کښل او پورته کول ضروري نه دي .

مګر د امام اعظم رحمة الله عليه په نزد په وچېدو سره مځکه پاکيږي او که ثوک غواړي
چي د وچ کېدو ثخه مخکي پاکه سي نو د هغه ځای ثخه په خاورو ګروولو سره دي پورته کړل
سي چي هغه برخه پاکه سي .

علماء حنفيه ددې حديث تاويل دا کوي چي د دې حديث ثخه دا څرګنديږي چي خلکو د
مسجد د مځکي د هغه برخي چي د وچېدو ثخه مخکي هلته صحرائي بولي کړي وې خلکو
لمونځ کړی وي چي د هغه په وجه دا حکم ولګول سو چي ناپاکه مځکه پرته د اوبو بيولو ثخه نه
پاکيږي او کوم چي سوال د اوبو اچولو دی ددې وجه دا کيدی سي چي رسول الله ﷺ هغه وخت د
نجاست پر ځای د اوبو بيولو حکم ځکه ورکړی وي چي د بولو په نجاست کي ثه کمي وسي او د
بولو رنګ او د هغه بوی د اوبو بيولو په وجه ختم سي مګر د مځکي هغه برخه وچېدو ثخه
وروسته پاکه سوې وي ، په دې اړه ملا علي قاري رحمة الله عليه د مشکوة په شرح مرقاة کي
نور ډير دليلونه ليکلي دي چي هلته کتل کيدای سي .

﴿۴۵۲﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ بَيْنَمَا نَحْنُ فِي الْمَسْجِدِ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذْ جَاءَ أَعْرَابِيٌّ فَقَامَ يَبُولُ فِي الْمَسْجِدِ فَقَالَ أَصْحَابُ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَهْ مَهْ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تُزْرِمُوهُ دَعُوهُ فَتَرَكُوهُ حَتَّى بَالَ ثُمَّ إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَعَاهُ فَقَالَ لَهُ إِنَّ هَذِهِ الْمَسَاجِدَ لَا

د حضرت انس ﷺ ثخه روايت دی چي موږ د رسول الله ﷺ سره په مسجد کي ناست وو چي يو صحرائی سړی راغلی او ودرېدی په مسجد کي يې تشي بولي کول پيل کړل ، د رسول الله ﷺ صحابوو هغه ته وويل مه کوه (مه کوه) رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : دی د تشو بولو کولو ثخه مه منعه کوئ پر خپل حال يې پرېږدئ چي بولي

تَصْلُحُ لِشَيْءٍ مِنْ هَذَا الْبَوْلِ وَلاَ الْقَذَرِ إِنَّمَا هِيَ لِذِكْرِ اللّٰهِ عَزَّ وَجَلَّ وَالصَّلاَةِ وَقِرَاءَةِ الْقُرْآنِ أَوْ كَمَا قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ وَأَمَرَ رَجُلاً مِنَ الْقَوْمِ فَجَاءَ بِدَلْوٍ مِنْ مَاءٍ فَشَنَّهُ عَلَيْهِ . متفق عليه .

وکړي نو هغه پر خپل حال پرېښودل سو تر دې چي هغه تشي بولي وکړې. رسول الله ﷺ هغه را وغوښتی او هغه ته يې وويل : دا مسجدونه د بولو او مردارېو لپاره نه دي بلکه دا د ذکر الهي، لمونځ او قرآن کريم ويلو لپاره دي او يا لکه چي فرمايلي دي رسول الله ﷺ. حضرت انس وايي د دې وروسته رسول الله ﷺ د مسجد څخه يو سړي ته د اوبو راوړلو حکم وکړ نو هغه يو ستل اوبه راوړې او هغه يې پر هغه بولو و بيبولې . بخاري او مسلم.

﴿۴۵۳﴾: وَعَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ أَبِيْ بَكْرٍ قَالَتْ سَأَلَتِ امْرَأَةٌ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَتْ يَارَسُوْلَ اللّٰهِ أَرَأَيْتَ إِحْدَانَا إِذَا أَصَابَ ثَوْبَهَا الدَّمُ مِنَ الْحَيْضَةِ كَيْفَ تَصْنَعُ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَصَابَ ثَوْبَ إِحْدَاكُنَّ الدَّمُ مِنَ الْحَيْضَةِ فَلْتَقْرُصْهُ ثُمَّ لْتَنْضَحْهُ بِمَاءٍ ثُمَّ لِتُصَلِّ فِيهِ. متفق عليه

د حضرت اسماء بنت ابوبکر (رض) څخه روايت دی چي يوې ښځي د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وکړه اې دالله رسوله ! هر کله چي په موږ کي د يو چا پر جامو د حيض وينه توی سي نو هغه څه وکړي ؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : هر کله چي په تاسو کي د يو چا پر جامو د حيض وينه توی سي نو د هغه په وچېدو اول هغه په ګوتو و موږ او بيا يې په اوبو پرېولی بيا دي لمونځ ورسره وکړي . بخاري او مسلم .

﴿۴۵۴﴾: وَعَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ يَسَارٍ قَالَ سَأَلْتُ عَائِشَةَ عَنِ الْمَنِيِّ يُصِيبُ الثَّوْبَ فَقَالَتْ كُنْتُ أَغْسِلُهُ مِنْ ثَوْبِ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَيَخْرُجُ إِلَى الصَّلاَةِ وَأَثَرُ الْغَسْلِ فِيْ ثَوْبِهِ . متفق عليه

د حضرت سليمان [1]بن يسار ﷺ څخه روايت دی چي ما د بي بي عائشې څخه د مني په اړه پوښتنه وکړه چي پر جامو و لګيږي ، بي بي عائشې وويل : (د رسول الله ﷺ پر جامه به چي مني ولګېدل) نو ما به هغه پرېولل او هغه به لانده وه چي رسول الله ﷺ به د لمانځه لپاره تشريف يووړ . بخاري او مسلم .

**تشريح** : دا حديث پر دې خبره دلالت کوي چي مني ناپاکه دي ، که مني پر يو جامې وغيره باندي ولګيږي نو هغه په پرېوللو سره پاکول پکار دي ، د امام اعظم او امام مالک رحمة الله

---

[1] د نوموړي نوم سليمان بن يسار او کنيت يې ابوايوب دی ، نوموړی تابعي دی ، د (۵۳) کالو په عمر په کال (۱۰۷هـ) کي وفات سوی دی .

عليهما مذهب دادی ، مګر امام شافعي رحمة الله عليه فرمايي لكه څرنګه چي ګړنګ (د پزي څخه وتونكي مواد) پاک دي همداسي مني هم پاک دي .

﴿۴۵۵﴾: وَعَنِ الْأَسْوَدِ وَهَمَّامٍ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كُنْتُ أَفْرُكُ الْمَنِيَّ مِنْ ثَوْبِ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ . رواه مسلم.وَبِرِوَايَةِ عَلْقَمَةَ وَالْأَسْوَدِ عَنْ عَائِشَةَ نَحْوَهُ وَفِيْهِ ثُمَّ يُصَلِّيْ فِيْهِ .

حضرت اسود[1] او همام[2] د حضرت عائشې (رض) څخه روايت كوي چي ما به د رسول الله ﷺ د جامو څخه و چ مني ګرول (مسلم) او د عقلمه او اسود د بي بي عائشې په يوه روايت كي دا الفاظ هم دي چي رسول الله ﷺ به په هغه جامو سره لمونځ كاوه .

**تشريح** : دا حديث هم د امام اعظم ابو حنيفة رحمة الله عليه د قول سره سم د مني ناپاک كېدل په وضاحت سره ثابتوي څرنګه چي ددې حديث څخه معلومه سوه، د امام اعظم رحمة الله عليه مذهب هم دادی چي لانده مني پريولل پكار دي او ټينګ مني چي په جامه كي دننه سرايت نه كوي د وچېدو څخه وروسته په ګروولو او موږلو سره پاكول پكار دي .

﴿۴۵۶﴾: وَعَنْ أُمِّ قَيْسٍ بِنْتِ مِحْصَنٍ أَنَّهَا أَتَتْ بِابْنٍ لَّهَا صَغِيْرٍ لَمْ يَأْكُلِ الطَّعَامَ إِلَى رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَجْلَسَهُ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ حَجْرِهِ فَبَالَ عَلَى ثَوْبِهِ فَدَعَا بِمَاءٍ فَنَضَحَهُ وَلَمْ يَغْسِلْهُ . متفق عليه

د حضرت ام قيس[3] بنت محصن څخه روايت دی چي هغې خپل زوی چي دودی بې لا نه وه خوړلې (يعني تی يې رودی) رسول الله ﷺ ته بوتی رسول الله ﷺ هغه په غيږ كي كښينوی نو هغه د رسول الله ﷺ پر جامو تشي بولي وكړې رسول الله ﷺ اوبه را وغوښتلې او پر جامو يې و پاشلې او جامه يې نه پريولل . بخاري او مسلم .

**تشريح** : د امام شافعي رحمة الله عليه مذهب دادی چي شير خور (تی خوړونكی) ماشوم چي خوراک يې نه وي خوړلې كه چيري پر يو جامه وغيره باندي بولي وكړي نو د هغه د پريوللو ضرورت نسته بلكه پر هغه اوبه پاشل كيږي ، دا حديث هم په ظاهره د امام شافعي رحمة الله عليه د مذهب تائيد كوي مګر د امام ابو حنيفة رحمة الله عليه او امام مالک رحمة الله عليه مذهب دادی چي د.ماشوم بولي په هر حال كي پريولل ضروري دي ، په دې حديث كي د نفح لفظ

---

[1] اسود بن بلال محاربي تابعي دی په كال (۸۴هـ) كي وفات سوی دی .

[2] همام بن حارث نخفي تابعي دی او د حضرت عائشې رضي الله عنها څخه روايت كوي .

[3] ام قيس د محصن لور او د عكاشفه خور ده ، په پيل كي په مكه مكرمه كي د اسلام په دولت سره مشرف سوې ده .

چي راغلی دی او معنا یې د پاشلو ده ددې معنا دا دواړه حضرات پریولل وایي ، او بیا د حدیث په پای کي الفاظ (لایغسله) یعني رسول الله ﷺ بولي نه پریولې، ددې تاویل دا کوي چي رسول الله ﷺ په ښه موړلو موړلو سره نه پریولل بلکه د ماشوم بولي په معمولي توګه سره پر هغه او به بیولو سره پریولل یې کافي وګڼل، دا دواړه حضرات ددې حدیث مذکوره تاویل ځکه کوي چي نور حدیثونه مثلا (استنزهوا من البول) یعني د بولو څخه پاکي تر لاسه کړئ، څخه دا خبره په صراحت سره ثابتیږي چي د هریوه بولي پریولل پکار دي .

امام طحطاوي رحمة الله علیه فرمایي چي په دې حدیث کي د نفح څخه مراد پرته د موړلو او نښتېړلو څخه د اوبو بیول دي .

د دغه حدیث څخه دا معلومه سوه چي د ماشومانو ددعاء او برکت تر لاسه کولو لپاره بزرګانو او اولیاء الله ته بیول مستحب دي او د ماشومانو سره نرمي، تواضع، مینه او د شفقت معامله کول هم مستحب دي .

﴿۴۵۷﴾:وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبَّاسٍ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ إِذَا دُبِغَ الْإِهَابُ فَقَدْ طَهُرَ . رواه مسلم .

د حضرت عبدالله بن عباس ﷺ څخه روایت دی چي ما د رسول الله ﷺ څخه واوریدل چي فرمایل یې : هر کله چي پوست (څرمن) پوخ کړل سي یا په لمر کي وچ کړل سي نو هغه پاك سي . مسلم .

**تشریح** : پوست د ناپاکۍ او غیره څخه پاکولو ته دباغت (رنګ کړل سوی) وایي، د پوست دباغت پر څو ډوله کیږي یا خو پوست په پوستکو وغیره کي اچولو سره پخیږي ، یا په لمر کي د ابښودو سره هغه وچیږي او که پوست پرته د لمر څخه وچ کړل سي نو هغه ته به دباغت نه وایو ، په هر حال د دباغت په ذریعه پوست د څلورو امامانو په نزد پاکیږي ، اوس فرق یوازي دا دی چي د امام اعظم رحمة الله علیه په نزد د خنزیر او سړي د پوست څخه پرته هر ډول پوست پاکیږي ، مګر د امام شافعي رحمة الله علیه په نزد د سپي پوست هم نه پاکیږي، البته د سړي او خنیز پوست مستثنی دی، ځکه چي د سړي پوست د انسان دعظمت او بزرګي په وجه نه پاکیږي او د خنیز پوست ځکه نه پاکیږي چي هغه نجس عین دی .

﴿۴۵۸﴾: وَ عَنْهُ قَالَ تُصُدِّقَ عَلَى مَوْلَاةٍ لِمَيْمُونَةَ بِشَاةٍ فَمَاتَتْ فَمَرَّ بِهَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ هَلَّا أَخَذْتُمْ إِهَابَهَا فَدَبَغْتُمُوهُ فَانْتَفَعْتُمْ

د حضرت عبدالله بن عباس ﷺ څخه روایت دی چي د بي بي میمونې یوې آزادي سوې مینځي ته یو پسه په صدقه کي ورکړل سو هغه پسه مړ

بِهِ فَقَالُوا إِنَّهَا مَيْتَةٌ فَقَالَ إِنَّمَا حَرُمَ أَكْلُهَا. متفق عليه

سو . رسول الله ﷺ پر هغه خوا تيريدی نو وه يې فرمايل : تاسو به ددغه څخه پوست كښلی وای او هغه به مو رنګ كړی وای او ګټه به موځيني اخيستې وای ، خلكو عرض وكړ دا خو مردار دی ، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : د دې خوراك حرام دی. بخاري او مسلم .

**تشريح** : ددغه حديث څخه معلومه سوه چي مردار (يعني كوم حيوان چي پرته د حلالېدو څخه مړسي) د هغه خوراک حرام دی، او كوم اندامونه چي د ذبح كولو په صورت كي خوړل كيږئ مثلاً غوښه وغيره هغه د مړ كېدو وروسته حراميږي مګر ددې څخه پرته نور شيان مثلاً د دباغت (رنګولو)كولو سره پوست، غاښ، او ښكر وغيره څخه ګټه اخيستل يعني د هغو رانيول او پلورل، او د هغه په نورو صورتو كي استعمالول جائز دي .

﴿۴۵۹﴾: وَعَنْ سَوْدَةَ زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَتْ مَاتَتْ لَنَا شَاةٌ فَدَبَغْنَا مَسْكَهَا ثُمَّ مَا زِلْنَا نَنْبِذُ فِيهِ حَتّٰى صَارَ شَنًّا . رواه البخاري

د رسول الله ﷺ د زوجې حضرت سودة[1] (رض) څخه روايت دی چي زموږ يو پسه مړ سو موږ د هغه پوست رنګ كړ بيا به مو تل په هغه كي نبيذ (د خرما شيره) جوړول تر دې چي هغه پوست زوړ سو . بخاري .

## الفصل الثاني

﴿۴۶۰﴾: عَنْ لُبَابَةَ بِنْتِ الْحَارِثِ قَالَتْ كَانَ الْحُسَيْنُ بْنُ عَلِيٍّ فِي حَجْرِ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَبَالَ عَلٰى ثَوْبِهِ فَقُلْتُ الْبَسْ ثَوْبًا وَأَعْطِنِي إِزَارَكَ حَتّٰى أَغْسِلَهُ قَالَ إِنَّمَا يُغْسَلُ مِنْ بَوْلِ الْأُنْثٰى وَيُنْضَحُ مِنْ بَوْلِ الذَّكَرِ . رواه أحمد وأبو داود وابن ماجه . وفي رواية لأبي داود

د حضرت بي بي لبابة[2] بنت حارث څخه روايت دی چي حضرت حسين بن علي د رسول الله ﷺ په غيږ كي وو چي هغه د رسول الله ﷺ پر جامه تشي بولي وكړې ، ما عرض وكړ تاسو بله جامه واغوندئ او لنګ ما ته راكړئ چي زه يې پريولم، رسول الله ﷺ وفرمايل : د انجلۍ د تشو بولو څخه جامه پريولئ او د هلك په تشو بولو يوازي اوبه پاشئ ، احمد ،

---

[1] ام المؤمنين حضرت بي بي سوده ﷞ د زمعه لور وه ، د اسلام په پيل كي په اسلام مشرفه سوې وه ، په كال (۵۴هـ) په مدينه كي وفات سوه .

[2] د نوموړي نوم لبابه او د حارث لور ده ، كنيت يې ام فضل دی ، د حضرت عباس بن عبد المطلب ښځه ده او د ام المؤمنين بي بي ميمونې رضي الله عنها خور ده .

والنسائي عن أبي السمح قال يغسل من بول الجارية ويرش من بول الغلام .

ابوداؤد، ابن ماجه، او د ابوداؤد او نسائي په يوه روايت کي دا الفاظ دي چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د انجلۍ تشي بولي پريولل کيږي او د هلك پر تشو بولو اوبه پاشئ .

**تشریح** : امام طحاوي رحمة الله عليه فرمايي چي دلته د پاشلو څخه مراد د بولو پر ځای پرته د موږلو او نښتيږلو څخه د اوبو بيول دي، او د پريوللو څخه مراد په مبالغې سره پريولل دي، د بي بي عائشې رضي الله عنها روايت دی چي يو ماشوم د رسول الله ﷺ په خدمت کي راوستل سو او هغه د رسول الله ﷺ پر جامو تشي بولي وکړې، رسول الله ﷺ وفرمايل: پر دې اوبه ونتوئ، نو ددې څخه معلومه سوه چي د هلک د بولو هم د پريوللو حکم دی ، فرق يوازي دومره دی چي د هلک پر بولو يوازي اوبه پاشل کافي دي يعني د هغه د موږلو او نستيږلو ضرورت نسته، ځکه د هلکانو بولي د سوري د تنګوالي په وجه زياتي نه خپريږي او د انجونو بولي د سوري په وجه زياتي خپريږي ځکه نو د انجونو بولي په ښه ډول پريولل پکار دي .

﴿۴۶۱﴾: وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا وَطِئَ أَحَدُكُمْ بِنَعْلِهِ الْأَذٰى فَإِنَّ التُّرَابَ لَهُ طُهُوْرٌ . رواه أبو داود . ولابن ماجه معناه .

د حضرت ابوهريرة ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: هر کله چي په تاسو کي د يو چا څپلۍ په مرداري ولړل سي نو بيا به پر مځکه ولاړ سي او خاوره هغه مرداري پاکوي . ابوداؤد او ابن ماجه

**تشریح** : د مسئلې صورت دا دی چي د مثال په توګه يو سړي څپلۍ په پښو کړي پر لار روان دی چي ناڅاپه پر يو ځای باندي نجاست پروت وو هغه يې پر څپليو ولګيدی ، نو اوس به هغه پر پاکه مځکه ګرځي نو د مځکي په خاورو سره په موږلو سره د هغه څپلۍ پاکيږي، په دې مسئله کي د علما، اختلاف دی ، امام ابوحنيفة رحمة الله عليه او د هغوئ شاګرد امام محمد رحمة الله عليه قول دادی چي په دې حديث کي د نجاست څخه مراد هغه نجاست دی چي وچ وي نو هغه پر پاکه مځکه په موږلو سره هغه څپلۍ يا موزه پاکيږي او که نجاست وچ نه وي نو بيا په موږلو سره نجاست نه ايسته کيږي .

د امام ابوحنيفة رحمة الله عليه يو بل شاګرد امام ابويوسف او امام شافعي رحمة الله عليهما فرمايي چي دلته د حديث مراد عام دی ، يعني نجاست که وچ وي او که لوند وي هغه په موږلو سره پاکيږي مګر دا د امام شافعي رحمة الله عليه لومړی قول دی ، د هغه نوی مذهب

دادی چي هغه نجاست په هر حال کي په اوبو سره پريولل پکار دي يوازي پر مځکه موږلو سره نه پاکيږي.

په فقه حنفي کي فتوا د امام ابويوسف رحمة الله عليه پر قول ده ، که چيري څپلۍ يا موزې باناندي نجاست ولګيږي که هغه لوند وي او که وچ نو پر مځکه باندي په ښه ډول موږلو سره پاکيږي.

په دې هم پوه سئ چي پر دې مسئله د علماؤ دا اختلاف پر کلک نجاست لکه سوټي وغيره په باره کي دی ځکه چي نرى نجاست لکه بولي ، شراب وغيره په باره کي د ټولو په اتفاق سره مذهب دادی چي د هغه پريولل واجب دي.

﴿۴۶۲﴾: وَعَنْ أُمِّ سَلْمَةَ قَالَتْ لَهَا اِمْرَأَةٌ إِنِّي أُطِيْلُ ذَيْلِيْ وَأَمْشِيْ فِي الْمَكَانِ الْقَذِرِ قَالَتْ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُطَهِّرُهُ مَا بَعْدَهُ . رواه مالك وأحمد والترمذي وأبو داود والدارمي وقالا المرأة أم ولد لإبراهيم ابن عبد الرحمن بن عوف .

د حضرت ام سلمة (رض) څخه روايت دی چي هغې ته يوې ښځي وويل زما لمن اوږده ده او زه پر ناپاك ځاى تيريږم، بي بي ام سلمه ورته وويل رسول الله ﷺ فرمايلي دي چي ددې پسي شى هغه پاکوئ (يعني خاوره يا مځکه) . مالك، احمد، ترمذي، ابوداؤد او دارمي.

**تشريح** : د پوښتنه کونکي مطلب دا وو چي زما لمن ډيره اوږده ده کله چي زه ګرځم نو هغه پر مځکه کشيږي او کله چي زه پر يو ناپاک ځاى تيريږم نو دا خيال مي پيداسي چي شايد لمن ته مي نجاست رسيدلی وي ، نو په دې باره کي څه حکم دی؟ د دې په جواب کي ام سلمة رضي الله عنها د رسول الله ﷺ ارشاد نقل کړ چي د هغه مطلب دادی چي پر ناپاک ځاى باندي په تيريدو سره هر کله چي لمن ته نجاست ورسيږي نو وروسته پر پاک ځاى باندي په تلو سره هغه نجاست پر مځکه لګيدو سره ايسته کيږي چي په هغه سره جامه پاکيږي . دا حکم د وچ نجاست په اړه د خاص کولو وجه داده چي علماء پر دې اجماع او اتفاق دي چي که چيري جامه ناپاکه سي نو هغه د پريوللو څخه پرته نه پاکيږي ، پر خلاف د څپليو ، د تابعينو د يو ډلي دا قول دی که پر څپلۍ وغيره په نجاست لګيدو سره ناپاکه سي نو د هغه پاکي پر پاکه مځکه باندي موږلو سره پاکيداى سي که څه هم هغه نجاست لوند وي، څرنګه چي اوس ددې څخه مخکي د حديث په شرح کي د امام شافعي او امام ابويوسف رحمة الله عليهما مذهب بيان سوى دی. والله اعلم.

﴿۴۶۳﴾: وَعَنِ الْمِقْدَامِ بْنِ مَعْدِيْ كَرِبَ قَالَ نَهٰى رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ لُبْسِ جُلُوْدِ السِّبَاعِ وَالرُّكُوْبِ عَلَيْهَا . رواه أبو داود والنسائي .

د حضرت مقدام بن معدي كرب څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ منعه فرمايلې د درندگانو د پوست اغوستلو څخه او پر هغو د سپرېدو څخه يې هم منعه فرمايلې ده . ابوداؤد او نسائي .

**تشريح** : د دې ارشاد مطلب دادی چي د درندگانو مثلا زمری، پړانګ وغيره د پوست څخه جامه جوړول او اغوستل نه دی ښکار، او د درندگانو پوست هوارولو سره پر هغه ناسته يا د آس پر ځين اچولو سره پر هغه سپرېدل مناسب نه دي، ددې د استعمال څخه ځکه منعه فرمايل سوې دي چي دا د متكبرينو خلكو او د خاص شتمنو خلكو عادت دی، نو نيكو خلكو ته د هغوئ څخه پرهيز كول ښكار دی ، په دې صورت كي به دا ويل كيږي چي دا نهي تنزيهي ده مگر د كومو حضراتو په نزد چي د مردار حيوان ورېښته نجس وي چي هغه په دباغت (رنګولو) سره هم نه پاكيږي د هغوئ په نزد دا نهي تحريمي ده .

﴿۴۶۴﴾: وَعَنْ أَبِيْ الْمَلِيْحِ بْنِ أُسَامَةَ عَنْ أَبِيْهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهٰى عَنْ جُلُوْدِ السِّبَاعِ . رواه أحمد وأبو داود والنسائي وزاد الترمذي والدارمي أن تفترش .

حضرت ابو مليح بن اسامه د خپل پلار څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ د پوست د استعمال څخه منعه فرمايلې ده . احمد ، ابوداؤد ، نسائي، ترمذي، دارمي، دارمي او ترمذي دا هم ليكلي دي چي رسول الله ﷺ د درندگانو د پوست آوارولو څخه هم منعه فرمايلې ده.

﴿۴۶۵﴾: وَعَنْ أَبِيْ الْمَلِيْحِ أَنَّهُ كَرِهَ ثَمَنَ جُلُوْدِ السِّبَاعِ . رواه الترمذي في اللباس من جامعه وسنده جيد.

د حضرت ابوملیح څخه روايت دی چي هغه به د درندگانو د پوست قيمت بد گڼی . ترمذي.

**تشريح** : د دغه حديث مطلب دادی چي د درندگانو د پوست رانيول او پلورل هم مناسب نه دي ، دابن مالک رحمة الله عليه قول هم دادی او دا مذهب د ابو المليح هم دی ، په فتاوی قاضي خان كي ليكلي دي چي د ددرندگانو د پوست د دباغت كولو څخه مخكي پلورل باطل دي، د مشكوة په اصله نسخه كي د لفظ رواة څخه وروسته خالی ځای وو ، مذكوره عبارت وروسته زيات كړل سوی دي .

﴿۴۶۶﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُكَيْمٍ قَالَ أَتَانَا كِتَابُ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ لاَّ تَنْتَفِعُوْا مِنَ الْمَيْتَةِ بِإِهَابٍ وَلاَ عَصَبٍ . رواه الترمذي وأبو داود والنسائي وابن ماجه .

د حضرت عبدالله بن عكيم[1] ﷺ څخه روايت دى چي موږ ته د رسول الله ﷺ ليك راغلى (په هغه كي ليكلي وه) تاسو د مردار د پوست څخه ګټه مه اخلئ او نه د هغه د پلو څخه . ترمذي، ابوداؤد، نسائي او ابن ماجه.

**تشريح** : د دې حكم تعلق د هغه پوست او پلو سره دى چي دباغت كړل سوى نه وي ، يعني ددباغت څخه مخكي پوست او پلې په استعمال كي راوستل جائز نه دي، بلكه د پوست او پلو د دباغت كولو څخه وروسته استعمالول او د هغه ګټه تر لاسه كول جائز دي، د اكثرو حديثونو څخه دا ثابته ده او د اكثرو علماؤ مذهب هم دا دى .

﴿۴۶۷﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمَرَ أَنْ يَسْتَمْتَعَ بِجُلُوْدِ الْمَيْتَةِ إِذَا دُبِغَتْ . رواه مالك وأبو داود .

د حضرت عائشې (رض) څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د مردار حيوان د پوست څخه هغه وخت ګټه اخيستل كيداى سي چي هغه پوخ كړل سي.

**تشريح** : تر دې مخكي ددې باب په حديث (۴۵۸) كي په تشريح سره دا ښودل سوې ده چي د دباغت څخه وروسته د مردار حيوان د پوست څخه ګټه اخيستل كيداى سي يعني هغه په استعمال كي راوستل كيداى سي او د هغه رانيول او پلورل هم كيداى سي ، البته په دې مسئله كي د امام مالك رحمة الله عليه دوه روايتونه دي مګر د هغه ظاهري قول داد ى چي د مردار پوست د دباغت څخه وروسته پاكيږي خو مګر هغه د وچو شيانو او اوبو اېښودو لپاره استعمالېداى سي ، د اوبو څخه پرته نور نري او بهيدونكي شيانو لپاره نسي استعماليداى .

﴿۴۶۸﴾: وَعَنْ مَيْمُوْنَةَ قَالَتْ مَرَّ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رِجَالٌ مِّنْ قُرَيْشٍ يَّجُرُّوْنَ شَاةً لَّهُمْ مِثْلَ الْحِمَارِ فَقَالَ لَهُمْ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَوْ أَخَذْتُمْ إِهَابَهَا قَالُوْا إِنَّهَا مَيْتَةٌ فَقَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى

د حضرت ميمونه څخه روايت دى چي د قريشو يو ډلي خپل يو (مړ) پسه دا ډول را كشوئ لكه خر چي را كشول كيږي ، رسول الله ﷺ هغو ته وفرمايل : كاش تاسو ددې څخه پوست وكاږئ ، خلكو ورته وويل : دا خو مردار دى، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : اوبه او د

[1] حضرت عبدالله بن عكيم جهني د رسول الله ﷺ زمانه تر لاسه كړې ده، مګر دا خبره د تحقيق څخه ثابته نه ده چي هغه د رسول الله ﷺ د ملاقات شرف تر لاسه كړى دى كه يا .

اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُطَهِّرُهَا الْمَاءُ وَالْقَرَظُ . رواه أحمد وأبو داود .

كيكر(بانړ) پاڼي دا پاكوي . (يعني په ايشولو سره د مردار شي پوست پاكيږي) . احمد او ابوداؤد .

**تشريح** : د دباغت كولو څو طريقې دي مګر د كيكر په پاڼو او اوبو سره د دباغت څخه وروسته پوست په ښه ډول پاكيږي، ځكه چې رسول الله ﷺ په خاصه توګه ددې دواړو شيانو ذكر وفرمايه ، نو معلومه سوه چې د پوست د دباغت او طهارت يوازي پر دغه موقوف نه دى بلكه په نورو طريقو سره مثلا په لمر وغيره سره هم دباغت او طهارت كيږي البته دا به ويل كيږي چې ددې حديث سره سم د كيكر په پاڼو او اوبو سره دباغت كول مستحب دى .

﴿۴۶۹﴾: وَعَنْ سَلَمَةَ ابْنِ الْمُحَبَّقِ قَالَ إِنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَاءَ فِي غَزْوَةِ تَبُوْكَ عَلَى بَيْتٍ فَإِذَا قِرْبَةٌ مُعَلَّقَةٌ فَسَأَلَ الْمَاءَ فَقَالُوْا يَا رَسُوْلَ اللهِ إِنَّهَا مَيْتَةٌ فَقَالَ دِبَاغُهَا طُهُوْرُهَا . رواه أحمد وأبو داود .

د حضرت سلمه بن محبق څخه روايت دى چې رسول الله ﷺ د تبوك په غزا كي يو كور ته تشريف يوړ ناڅاپه رسول الله ﷺ هلته يو زړېدلى ژى وليدى رسول الله ﷺ هغه وغوښتى ، خلكو عرض وكړ اې د الله رسوله ! دا خو د مړه حيوان پوست دى، رسول الله ﷺ وفرمايل : ايشول ددې پاكونكى دى.احمد او ابوداؤد .

## الفصل الثالث

﴿۴۷۰﴾: وَعَنِ امْرَأَةٍ مِّنْ بَنِيْ عَبْدِ الْأَشْهَلِ قَالَتْ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللهِ إِنَّ لَنَا طَرِيْقًا إِلَى الْمَسْجِدِ مُنْتِنَةً فَكَيْفَ نَفْعَلُ إِذَا مُطِرْنَا فَقَالَ أَلَيْسَ بَعْدَهَا طَرِيْقٌ هِيَ أَطْيَبُ مِنْهَا قَالَتْ بَلَى قَالَ فَهٰذِهِ بِهٰذِهِ . رواه أبو داود

د بنو عبدالاشهل د يوې ښځي څخه روايت دى چې ما رسول الله ﷺ ته عرض وكړ اې دالله رسوله ! د مسجد په لور چې.كومه لار ده هغه مرداره ده هر كله چې پر موږ باران اوريږي نو موږ څه وكړو ؟ رسول الله ﷺ وفرمايل : ايا ددې څخه پرته بله پاكه لار نسته ؟ ما عرض وكړ چې هو، سته، رسول الله ﷺ وفرمايل نو دا پاكه لار د مرداري لاري په بدل كي ده . ابوداؤد .

**تشريح** : د دې باب په حديث نمبر (۴۶۲) په تشريح كي ددې مسئلې وضاحت سوى دى ، دلته هم ددې ارشاد مطلب دادى چې په چټلي او ناپاكي لاره سره چې كوم نجاست لګيږي هغه پر پاكه لاره باندي په تلو سره د مځكي سره پر موږلو باندي پاكيږي او دلته هم دا مقصد دى چې د رسول الله ﷺ د دغه ارشاد تعلق د ټينګ او كلك نجاست سره دى كه دخوشايي وغيره په ډول يو

نجاست ښپليو او موزې سره ولګيږي نو هغه په دغه طريقه سره پاکيږي ، او که د بولو وغيره په ډول نجاست ښپليو ، موزې، جامې يا د بدن يو برخي سره ولګيږي نو هغه په هر حال کي په پريوللو سره پاکيږي ، همدا سي د موزو او ښپليو څخه پرته که پر جامه باندي کلک نجاست ولګيږي نو پرته د پريوللو څخه جامه نه پاکيږي .

《۴۷۱》: وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ كُنَّا نُصَلِّيْ مَعَ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلاَ نَتَوَضَّأُ مِنَ الْمَوْطِئِ . رواه الترمذي .

د حضرت عبدالله بن مسعود ﷛ څخه روايت دی چي موږ د رسول الله ﷺ سره لمونځ کاوه او د لوښو پښو ګرځېدو وروسته به مو اودس نه کاوه.ترمذي.

**تشريح** : مطلب دادی چي موږ د لمانځه کولو لپاره د سرای څخه د اودس کولو لپاره تلو او مسجد ته په راتلو کي د لوڅي پښې په وجه پر پښو باندي يا ښپليو او موزو باندي چي نجاست لګيدلی وو هغه به پريولی .

ددې ارشاد په اړه به دا وويل سي چي ددې تعلق د وچ نجاست سره دی ، که وچ نجاست مثلا خوشايي وغيره پر پښو باندي يا ښپليو او موزو باندي ولګيږي نو د هغه د پريوللو ضرورت به نه وو ځکه چي پر پاکه مځکه باندي په تلو سره چي کوم ګرد او غبار پر پښو لګيدی نو هغه به نجاست پريولی ، لوند نجاست مثلا بولي وغيره په اړه دا مخکي هم ښودل سوي دي که دا ډول نجاست پر پښو غيره باندي ولګيږي نو د ټولو علماؤ په نزد دا متفق عليه مسئله ده چي هغه دي پريولل سي.

《۴۷۲》: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ كَانَتِ الْكِلاَبُ تُقْبِلُ وَتُدْبِرُ فِي الْمَسْجِدِ فِيْ زَمَانِ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمْ يَكُوْنُوْا يَرُشُّوْنَ شَيْئًا مِّنْ ذٰلِكَ . رواه البخاري

د حضرت ابن عمر ﷛ څخه روايت دی چي د رسول الله ﷺ په زمانه کي به سپيان مسجد ته دننه تلل او راتلل، او د هغوئ د تګ راتګ له کبله صحابه کرامو مسجد نه پريولی. بخاري.

**تشريح** : د اسلام په پيل کي په مسجدونو کي دروازې نه وې چي د هغه په وجه به سپيان مسجد ته دننه تلل او راتلل د هغوئ پښې به وچي وې ځکه د هغه شی د پريوللو ضرورت نه وو هر کله چي په مسجد کي دروازې لګيدل پيل سول نو ددې احتياط هم پيل سو .

《۴۷۳》: وَعَنِ الْبَرَاءِ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لاَ بَأْسَ بِبَوْلِ مَا يُؤْكَلُ لَحْمُهُ .

د حضرت براء ﷛ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د کوم حيوان غوښه چي خوړل

وفي رواية جابر قَالَ مَا أُكِلَ لَحْمُهُ فَلاَ بَأْسَ بِبَوْلِهِ . رواه أحمد والدارقطني .

کيږي د هغه د بولو هيڅ پروا نسته او د جابر په يوه روايت کي دا الفاظ دي هغه حيوان چي د هغه غوښه خوړل کيږي د هغه د بولو څخه هيڅ پروا نسته . احمد او دار قطني .

**تشريح** : د دغه حديث د ظاهري الفاظو څخه د اما مالک، اما م احمد ، امام محمد او ځينو شوافع حضراتو (رحمة الله عليهم) دا مسئله اخستې ده چي د کومو حيوانانو غوښه خوړل کيږي د هغوئ بولي پاکي دي مګر د امام اعظم رحمة الله عليه ، امام ابويوسف رحمة الله عليه او د ټولو علماؤ په نزد هغه نجس دي، دا حضرات وايي چي ددې حديث په مقابله کي يو عام حديث وارد دی چي (استنزهوا من البول فانه عامة عذاب القبر منه) يعني د بولو څخه پاکي تر لاسه کړئ ځکه چي د قبر عذاب اکثر په دې سره کيږي ، نو ددې حديث د عام والي په وجه ناپاک او نجس ثابتيږي ځکه د احتياط غوښتنه داده چي د کومو حيوانانو غوښه خوړل کيږي نو د هغه بولو ته دي هم ناپاک وويل سي .

# بَابُ الْمسح عَلَى الْخُفَّيْنِ

## (پر موزو باندي د مسحي کولو بيان)

پر موزو باندي د مسحي کولو جواز د سنت او آثار مشهوره څخه ثابت دی بلکه د حديث د حافظانو يو ډلي ددې صراحت کړی دی چي پر موزو باندي د مسحه کولو په اړه منقول حديث تواتر دي او ځيني محدثين ددې حديث د راوي صحابه کرامو شمير هم جمع کړی دی چي تر اتيا زيات صحابه کرامو دا حديث روايت کوي چي په هغو کي عشره مبشره هم شامل دي .

علامه ابن عبدالبر رحمة الله عليه وايي ما ته نه ده معلومه چي په علماء سلف کي چا ددې څخه انکار کړی وي ، او حسن بصري رحمة الله عليه فرمايي ما اويا صحابه کرام پر دې مسئله باندي عقيده لرونکي ليدلي دي، امام کرخي رحمة الله عليه فرمايي کوم سړی چي پر موزو باندي مسحه نه کوي يعني دا جائز نه ګڼي نو ما ته د هغه د کافر کېدو بيره ده ځکه چي ددې په جواز کي چي کوم حديثونه منقول دي هغه حد تواتر ته رسيدلي دي .

د امام اعظم ابو حنيفة رحمة الله عليه ارشاد دی چي زه پر موزو د مسحه کولو تر هغه وخته پوري قائل نه سوم تر څو پوري چي ددې پر جواز مشتمل حديثونه د لمر د رڼا په ډول ما ته را ونه رسيدل ، د هغه اقوالو او ارشاداتو څخه دا خبره واضحه سوه چي پر موزو باندي مسحه کول

جائز دي ددې په جواز کي هيڅ شک او هيڅ خبره نسته.

اوس تر دې وروسته په دې هم پوه سئ چي پر موزو باندي مسحه کول رخصت يعني آساني ده او پښې پريولل عظيمت يعني غوره دي، په هدايه کي ليکلي دي چي کوم سړی پر موزو باندي د مسحه کولو عقيده نه لري هغه بدعتي دی مګر کوم سړی چي په دې اړه عقيده خو لري مګر پر عظيمت يعني غوره باندي د عمل کولو په وجه پر موزو باندي مسحه نه کوي نو هغه په ثواب نازول کيږي، په مواهب لدينه کي منقول دي چي د علماء په نزد په دې کي اختلاف دی چي ايا پر موزو باندي مسحه کول افضل دي يا د هغه په کښلو سره د پښو پريولل افضل دي، د ځينو حضراتو رايه داده چي پر موزو باندي مسحه کول افضل دي ځکه چي په دې سره داهل بدعت يعني روافض او خوارج رد کيږي چي په دې مسئله کي طعن او تشنيع کوي، د امام احمد رحمة الله عليه مختار مذهب دادی او امام نووي رحمة الله عليه ويلي دي چي زموږ د علماؤ يعني د شوافع مذهب دادی چي پښې پريولل غوره دي، ځکه چي اصل دادی چي پر موزو باندي مسحه کول بالکل پرېښودل سي، صاحب د سفر السعادة فرمايي چي رسول الله ﷺ ته په دواړو کي څه تکليف نه وو يعني که موزې به يې په پښو کړي وي نو د پريوللو لپاره به يې هغه نه کښلې او که موزه به يې نه وه په پښه نو د مسحه کولو لپاره به يې هغه نه په پښو کولې.

په دې باره کي د علماؤ اختلاف دی مګر غوره او صحيح طريقه داده چي هر سړي ته پکار ده چي هغه په دې مسئله د سنت سره سم او موافق عمل وکړي. يعني د رسول الله ﷺ چي کوم تعامل ذکر سوی دی هغسي ټول مسلمانان په بې تکلفۍ سره پر هغه عمل وکړي.

[1] د شريعت پر اسلامي مسائلو او جزياتو باندي نظر لرونکي پوهيږي چي اسلام د خپل منونکو لپاره څومره آسانتياوي پيدا کړي دي دا حقيقت دی چي اسلام او د پيغمبر اسلام ﷺ دا بې پايه شفقت او محبت دی چي عالمګير او تر ټولو ريښتوني مذهب د انسان د عين فطرت مزاج جوړول دي، قدم پر قدم باندي داسي مسائلو سره واسطه لويږي چي په هغه کي اسلام او شارع اسلام امت ته ډيري آسانتياوي ورکړي دي چي د هغه پرته يقينا مسلمان په مشکلاتو او تکليفونو کي اخته کيږي ځکه چي پر سخت موقعو باندي مثلا د يخ په موسم کي د اودس کولو په وخت کي تر ټولو زيات تکليف په پښو پريوللو کي وي مګر شريعت ددې سختۍ او تکليف په وجه پر موزو باندي مسحه کول جائز ګرځولو سره پر امت باندي عظيم احسان کړی دی.

# الفصل الاول

﴿۴۷۴﴾: عَنْ شُرَيْحِ بْنِ هَانِئٍ قَالَ سَأَلْتُ عَلِيَّ بْنَ أَبِي طَالِبٍ عَنِ الْمسحه عَلَى الْخُفَّيْنِ فَقَالَ جَعَلَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ وَلَيَالِيَهُنَّ لِلْمُسَافِرِ وَيَوْمًا وَلَيْلَةً لِلْمُقِيمِ . رواه مسلم

د حضرت شريح بن هانئ ﷛ څخه روايت دی چي ما د حضرت علي ﷛ څخه پر موزو د مسحه په اړه پوښتنه وکړه ، حضرت علي ﷛ وويل رسول الله ﷺ (پر موزو د مسحه) وخت ټاکلی دی ، د مسافر لپاره درې ورځي او درې شپې او د مقيم لپاره يوه ورځ او شپه . مسلم.

**تشريح** : د مسافر لپاره پر موزو د مسحه کولو وخت درې ورځي او درې شپې دی، يعني هغه تر درو ورځو او شپو پوري د اوداسه پر وخت پر خپلو موزو باندي مسحه کولای سي او د مقيم لپاره د مسحه کولو وخت يوه ورځ او يوه شپه ده يعني هغه تر يوې ورځي او يوې شپې پوري پر خپلو موزو باندي مسحه کولای سي، ددغه موزو پيل به د جمهور علماؤ په نزد د هغه وخت څخه وي کله چي اودس مات سي ، د مثال په توګه يو مقيم سړي په غرمه کي د اودس کولو څخه وروسته موزې په پښو کړې او ماښام ته د هغه اودس مات سو نو د مسحه د وخت پيل به د هغه د ماښام څخه وي يعني هغه د راتلونکي ورځي تر ماښام پوري پر خپلو موزو باندي مسحه کولای سي.

﴿۴۷۵﴾: وَعَنِ الْمُغِيْرَةَ ابْنِ شُعْبَةَ أَنَّهُ غَزَا مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غَزوَةَ تَبُوكَ قَالَ الْمُغِيرَةُ فَتَبَرَّزَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قِبَلَ الْغَائِطِ فَحَمَلْتُ مَعَهُ إِدَاوَةً قَبْلَ الْفَجْرِ فَلَمَّا رَجَعَ اَخَذْتُ أُهَرِيقُ عَلَى يَدَيْهِ مِنْ الْإِدَاوَةِ فَغَسَلَ يَدَيْهِ وَ وَجْهَهُ وَعَلَيْهِ جُبَّةٌ مِّنْ صُوْفٍ ذَهَبَ يَحْسِرُ عَنْ ذِرَاعَيْهِ فَضَاقَ كُمُّ الْجُبَّة فَأَخْرَجَ يَدَيْهِ مِنْ تَحْتِ الْجُبَّةِ وَاَلْقَى الْجُبَّةَ عَلَى مَنْكِبَيْهِ وَغَسَلَ ذِرَاعَيْهِ ثُمَّ مسحه بِنَاصِيَتِهِ وَعَلَى الْعِمَامَةِ ثُمَّ اَهْوَيْتُ لِاَنْزِعَ خُفَّيْهِ فَقَالَ دَعْهُمَا فَإِنِّيْ اَدْخَلْتُهُمَا طَاهِرَتَيْنِ فَمسحه

د حضرت مغيرة بن شعبة ﷛ څخه روايت دی چي دی د رسول الله ﷺ سره د تبوك په غزا کي ملګری وو، د سهار څخه مخکي رسول الله ﷺ د حاجت لپاره ولاړی ما د رسول الله ﷺ لپاره د اوبو پتك يووړ کوم وخت چي رسول الله ﷺ راستون سو نو ما د رسول الله ﷺ په لاسو کي د پتك څخه اوبه اچول پيل کړل. رسول الله ﷺ دواړه لاسونه او مخ پريولل دا وخت رسول الله ﷺ د وړي چينه اغوستې وه رسول الله ﷺ د چيني لستوني را ونغښتل او لاسونه يې را ايستل غوښتل مګر لستوني تنګ وه پورته نه سول، رسول الله ﷺ د

عَلَيْهِمَا ثُمَّ رَكِبَ وَرَكِبْتُ فَانْتَهَيْنَا إِلَى الْقَوْمِ وَقَدْ قَامُوا إِلَى الصَّلَاةِ وَ يُصَلِّي بِهِمْ عَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ عَوْفٍ وَقَدْ رَكَعَ بِهِمْ رَكْعَةً فَلَمَّا أَحَسَّ بِالنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَهَبَ يَتَأَخَّرُ فَأَوْمَأَ إِلَيْهِ فَأَدْرَكَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِحْدَى الرَّكْعَتَيْنِ مَعَهُ فَلَمَّا سَلَّمَ قَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقُمْتُ مَعَهُ فَرَكَعْنَا الرَّكْعَةَ الَّتِي سَبَقَتْنَا. رواه مسلم.

چېنې څخه لاسونه را وایستل ا و چېنه یې پر اوږو واچول او لاسونه یې تر څنګلو پورې پريولل بیا رسول الله ﷺ پر تندي او لنګوټې مسحه وکړل ما و غوښتل چې د رسول الله ﷺ د پښو مبارکو موزې وکاږم چې رسول الله ﷺ پښې پریولي، رسول الله ﷺ وفرمایل : موزې پرېږده ځکه چې ما د اودس کولو څخه وروسته دا په پښو کړي دي ، رسول الله ﷺ پر دواړو موزو مسحه وکړه بیا سپور سو او زه هم سپور سوم او موږ یو مسجد ته ورسیدلو هغه خلکو دا وخت لمانځ کاوه او عبدالرحمن بن عوف هغو ته لمونځ ورکاوه هغو یو رکعت کړی وو هر کله چې هغه ته محسوسه سوه چې رسول الله ﷺ تشریف راوړ نو اراده یې وکړه چې را شا ته سي مګر رسول الله ﷺ پر ځای د قائم پاته کېدو اشاره ورته وکړه او رسول الله ﷺ په هغه پسې يو رکعت لمونځ وکړ بیا چې هغه سلام وګرزوی نو نبي کریم ﷺ ودرېدی او زه هم د رسول الله ﷺ سره ولاړ سوم او کوم رکعتونه چې تیر سوي وه هغه مو پوره کړل . مسلم.

**تشریح** : راوي د رسول الله ﷺ د اوداسه ذکر کړی دی مګر د خولې پريوللو او په پزه کې د اوبو اچولو ذکر یې نه دی کړی ، ددې وجه داده چې دا خو د راوي له خوا اختصار وو ځکه هغه ددغه دواړو شیانو ذکر کول ضروري ونه ګڼل یا دا چې د راوي څخه ددې ذکر کول هیر سوي دي یا په دې وجه یې ذکر ونه کړ چې دا دواړه شیان هم د مخ په حد کې راځي یوازې د مخ پريوللو ذکر یې کافي وګڼی.

پر لنګوټې د مسحې کولو معنی داده چې رسول الله ﷺ د سر پر څلورمه برخه باندې د مسحې کولو څخه وروسته پر ټول سر باندې د مسحې کولو پر ځای پر لنګوټې باندې مسحه وکړه چې پر ټول سر باندې د مسحې کولو سنت ادا سي ، ددې وضاحت په باب الوضوء کې هم سوی دی . (وګورئ حدیث نمبر ۳۶۷) . په هر حال ددغه حدیث څخه پنځه شیان ثابتیږي :

۱. رسول الله ﷺ د سهار څخه مخکې د قضاء حاجت لپاره تشریف يووړ ، ددې څخه دا ثابته سوه چې د عبادت مثلا د لمانځه وغیره د وخت پیل کېدو څخه مخکې د هغه عبادت لپاره تیاري کول مستحب دي .

۲. مغيره بن شعبة ﷺ د اوداسه پر وخت د رسول الله ﷺ د اوداسه پر اندامونو اوبه واچولې، ددې څخه معلومه سوه که دوهم سړی اودس ور وکړي نو جائز ده .

۳. کله چي رسول الله ﷺ د قضاء حاجت او اودس کولو څخه د فارغېدو سره تشريف راوړ نو عبدالرحمن بن عوف ﷺ خلکو ته لمونځ ورکوی ، هر کله چي هغه د آدب په وجه تر شا کېدل وغوښتل چي رسول الله ﷺ امامت وکړي نو رسول الله ﷺ هغه منعه کړ او خپله يې هم آخري رکعت د هغه په اقتداء کي وکړ ، ددې څخه معلومه سوه که يو افضل سړی په لمانځه کي د ځان څخه په کم درجې والا سړي پسي اقتدا وکړي نو جائز ده او دا هم ثابته سوه چي د لمانځه لپاره د امام لپاره معصوم (د گناه څخه پاک) کېدل شرط نه دي، په دې سره د اماميه ډلي رد کيږي چي هغوئ وايي چي د امام معصوم کېدل شرط دي .

۴. د حديث د آخري الفاظو څخه دا ثابته سوه چي د کوم سړي يو رکعت د امام سره پاته سي نو د هغه د ادا کولو لپاره هغه وخت درېدل پکار دي کله چي امام سلام وگرځوي ، د امام شافعي رحمة الله عليه په نزد د تللي رکعت رکعت ادا کولو لپاره د امام سلام گرځولو څخه مخکي ولاړېدل جائز نه دي او د حنفيه علماؤ په نزد د سلام گرځولو څخه مخکي ولاړېدل مکروه تحريمي دي مگر په دې صورت کي هر کله چي دا بيره وي که د امام د سلام انتظار وکړل سي نو لمونځ به فاسد سي نو مخکي هم ولاړېدل جائز دي، مثلا د سهار په لمانځه کي امام يو رکعت مخکي کړی وو يو سړی په دوهم رکعت کي راغلی او گډون يې وکړ اوس هغه ته يو رکعت وروسته ادا کول پکار دي مگر صورت حال دادی که د امام سره د سلام گرځولو انتظار کوي نو هغه ته بيره وي چي لمر به راوخيږي چي د هغه په نتيجه کي به لمونځ فاسد سي نو د هغه لپاره به دا جائز وي چي هغه د امام د سلام گرځولو څخه مخکي ولاړ سي او لمونځ پوره کړي، ددې وضاحت د فقه په کتابونو کي په ښه ډول سره سوی دی ددې تفصيل هلته وگورئ.

۵. د دې حديث څخه معلومه سوه چي د جماعت پر وخت که امام موجود نه وي او د هغه په راتلو کي زنډ کيږي او دا هم معلومه نه وي چي هغه کله راځي نو دا مستحب ده چي د امام انتظار ونه کړل سي بلکه يو دوهم سړی دي لمونځ ورکول پيل کړي او که د امام ځای مسجد ته نژدې وي نو هغه د جماعت پر وخت کېدو خبرول مستحب دي .

## الفصل الثاني

﴿۴۷۶﴾: عَنْ أَبِي بَكْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ رَخَّصَ لِلْمُسَافِرِ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ وَلَيَالِيَهُنَّ وَلِلْمُقِيمِ يَوْمًا وَّلَيْلَةً إِذَا تَطَهَّرَ فَلَبِسَ خُفَّيْهِ أَنْ يَّمسحهِ عَلَيْهِمَا. رواه الأثرم في سننه وابن خزيمة والدارقطني وقال الخطابي هو صحيح الإسناد هكذا في المنتقى

حضرت ابوبکرة د رسول الله ﷺ څخه روایت کوي چي رسول الله ﷺ درې ورځي او درې شپې مسافر او یوه ورځ او شپه مقیم ته اجازه ورکړې ده چي اودس وکړي او موزې یې په پښه کړي وي نو پر دواړو موزو دي مسحه وکړل سي.

﴿۴۷۷﴾: وَعَنْ صَفْوَانَ بْنِ عَسَّالٍ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَأْمُرُنَا إِذَا كُنَّا سَفَرًا اَنْ لَّا نَنْزِعَ خِفَافَنَا ثَلٰثَةَ اَيَّامٍ وَّلَيَالِيَهُنَّ اِلاَّ مِنْ جَنَابَةٍ وَّلٰكِنْ مِّنْ غَائِطٍ وَّ بَوْلٍ وَّ نَوْمٍ. رواه الترمذي والنسائي.

د حضرت صفوان بن عسال ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ په سفر کي موږ ته حکم کاوه چي تردرو ورځو او درو شپو پوري خپلي موزې د پښو څخه مه کاږئ پرته د دې څخه چي ناپاکه سئ او غسل در باندي واجب سي مگر د تشو بولو، ډکو بولو او خوب څخه وروسته د موزو کښلو ضرورت نسته. ترمذي او نسائي.

**تشريح**: مطلب دادی چي د خوب څخه د را پورته کېدو یا د تشو او ډکو بولو کولو څخه وروسته د اوداسه کولو په صورت کي تر هغه وخته پوري چي د مسافر یا مقیم لپاره دی د پښو پریوللو لپاره موزې کښل نه دي پکار بلکه پر موزو باندي مسحه کول پکار دي او د جنابت په حالت کي یعني هر کله چي غسل واجب سي نو د غسل کولو لپاره موزې کښل ضروري دي ځکه چي په دغه حالت کي پر موزو باندي مسحه کول صحيح نه ده.

﴿۴۷۸﴾: وَعَنِ الْمُغِيْرَةَ بْنِ شُعْبَةَ قَالَ وَضَّأْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ غَزْوَةِ تَبُوْكَ فَمسحه أَعْلَى الْخُفِّ وَأَسْفَلَهُ. رواه أبو داود والترمذي وابن ماجه وقال الترمذي هذا حديث معلول وسألت أبا زرعة ومحمدا يعني البخاري عن هذا الحديث فقالا ليس بصحيح. وكذا ضعفه أبو داود.

د حضرت مغيرة بن شعبة څخه روایت دی چي د تبوک د غزا په ورځ ما رسول الله ﷺ ته د اوداسه لپاره اوبه وراچولې رسول الله ﷺ د موزو سربیره او لاندي مسحه وکړل، ابوداؤد، ترمذي، ابن ماجه، ترمذي ویلي دي دا حدیث معلول دی او ما د ابوذرعه او محمد یعني بخاري څخه ددې حدیث حال معلوم کړ نو هغه وویل صحیح نه دی او داسي ابوداؤد هم دې ته ضعيف ویلي دي.

**تشریح** : د امام مالک رحمة الله عليه او امام شافعي رحمة الله عليه په نزد پر پشت قدم (سربېره برخه) يعني د موزو سربیره مسحه کول واجب ده او د موزو پر لاندي برخه (تليان) باندي مسحه کول سنت ده ، مګر د امام اعظم ابوحنيفة رحمة الله عليه او امام احمد رحمة الله عليه مذهب دادی چي مسحه دي يوازي پر پشت قدم يعني د موزو پر سربیره برخه وکړل سي ، دا دواړه حضرات وايي چي دا حديث چي د هغه څخه د موزو دواړو خواوو ته د مسحه کولو اثبات کيږي خپله د صحت معيار ته نه دی رسيدلی ځکه چي علماء ددې په صحت کي کلام کړی دی ، داسي حديثونه ډير زيات منقول دي چي ددې حديث بالکل برعکس دي او د هغه څخه دا معلوميږي چي مسحه دي يوازي پر پشت قدم باندي وکړل سي نو عمل به پر هغه حديث کيږي ، د محدثينو په اصطلاح کي حديث معلول هغه حديث ته وايي چي په هغه کي داسي سبب پټ وي چي ددې خبري تقاضا کوي چي ددې حديث سره سم دي عمل ونه کړل سي .

د دغه حديث د ضعيف کېدو دوې وجهي دي: لومړی خو دا چي مغيره رضي الله عنه پوري ددې حديث رسول ثابت نه دي بلکه د هغه سند تر بولاو پوري چي د مغيره مولی او کاتب وو رسيږي ، دوهمه خبره داده چي دا حديث ثور ابن يزيد د رجاء ابن حيوة څخه روايت کړی دی او رجاء ابن حيوة د حضرت مغيره د کاتب څخه روايت کړی دی حال دا چي د رجاء څخه د ثور اوريدل ثابت نه دي بلکه تر ټولو لويه وجه داده چي ددې مضمون کوم حديث (۴۷۵) چي د حضرت مغيره څخه په مختلفو سندونو سره منقول دی او معيار صحت ته رسيدلی دی په هغه کي مطلقا ددې خبري ذکر سوی دی چي رسول الله ﷺ پر موزو باندي مسحه کړې وه ، سربیره او لاندي د مسحه کولو وضاحت منقول نه دی ، بيا د مغيره رضي الله عنه يو بل روايت هم دی چي ددې ورو ستنه راځي په هغه کي هم په وضاحت سره منقول دي چي رسول الله ﷺ پر موزو سربیره مسحه وکړه ، نو معلومه سوه چي په دې حديث کي اضطراب دی او دا هغه اسباب دي چي د هغه په وجه دغه حديث ته ضعيف ويل کيږي .

| | |
|---|---|
| ﴿۴۷۹﴾: وَعَنْهُ أَنَّهُ قَالَ رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَمسحه عَلَى الْخُفَّيْنِ عَلَى ظَاهِرِهِمَا . رواه الترمذي وأبو داود . | د حضرت مغيره بن شعبه رضي الله عنه څخه روايت دی چي ما رسول الله ﷺ وليدی چي د موزو سربیره يې مسحه وکړل. ترمذي او ابوداؤد . |

**تشریح** : پر موزو د مسحه کولو طريقه داده چي د راسته لاس ګوتي د راسته لاس پر پنجه ، د چپه لاس ګوتي د چپه پښې پر پنجه کښېښودل سي بيا هغه په راکشولو سره د بجلکو تر سربیره

برخي پوري راوستل سي ، دلته دا خيال بايد وي چي ګوتي خلاصي کنبېښودل سي او يو ځای نه کړل سي ، پر موزو باندي د مسحه کولو سنت طريقه خو داده او که يو څا په يوې ګوتي سره داسي مسحه وکړه چي هر وار تازه اوبه اخلي او هر واريې پر نوري ځای راکشوي نو مسحه به جائز وي او که داسي نه وي نو بيا جائز نه ده، ددې څخه پرته نوري ډيري طريقې د فقه په کتابونو کي ليکل سوي دي ، د تفصيل لپاره هلته مراجعه کيدای سي .

﴿۴۸۰﴾: وَعَنْهُ قَالَ تَوَضَّأَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمسحه عَلَى الْجَوْرَبَيْنِ وَالنَّعْلَيْنِ . رواه أحمد والترمذي وأبو داود وابن ماجه .

د حضرت مغيره بن شعبه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ اودس وکړ او پر جورابو او څپليو باندي يې مسحه وکړه . احمد ، ترمذي، ابوداؤد او ابن ماجه .

**تشريح** : په قاموس کي ليکلي دي چي (جورب) د پښې لفافې ته وايي لکه څرنګه چي زموږ په نزد جوراب يا موزه ته ويل کيږي ، ددې څو ډولونه دي ، ددې تفصيل په چلپي کي په ډير وضاحت سره مذکور دی دلته د هغه ځيني احکام او مسائل ليکل کيږي .

په حنفي مذهب کي پر جوربين يعني موزو باندي مسحه هغه وخت صحيح کيږي هر کله چي هغه مجلد وي يعني پر هغه سربيره پوست لګيدلی وي يا منعل وي يعني يوازي لاندي يې پوست وي او ثخنين وي ، ثخنين هغه موزو ته وايي چي د هغه په پښو کولو سره يو فرسخ[۱] تللای سي )، او هغه پرته د تړلو څخه پر پنډۍ باندي لګيدلي وي او نه د هغه دننه برخه معلوميږي او نه د هغه دننه اوبه تللای سي، د چلپي د عبارت څخه دا هم معلوميږي که چيري جوربين منعلين بغير ثخنين وي نو پر هغه به مسحه جائز نه وي نو پر منعلين باندي به هغه وخت مسحه جائز وي هر کله چي ثخنين (ټينګي) هم وي، د امام شافعي رحمة الله عليه په نزد پر جورابو باندي مسحه صحيح نه ده که څه هم هغه منعل وي، ځکه دا حديث د حنفيه د لوري پر هغوئ حجت دی چي د هغه څخه دا ثابتيږي چي رسول الله ﷺ پر جورابو باندي مسحه فرمايلې ده او حضرت علي ﷺ ، ابن مسعود ﷺ انس بن مالک ﷺ او د حضرت عمر ابن خطاب ﷺ په اړه هم منقول دي چي هغو پر هغه مسحه کړې ده ، د حديث په پای کي دا فرمايل سوي دي چي رسول الله ﷺ د نعلين سره پر جوربين باندي هم مسحه وکړه نو دلته د نعلين د مفهوم په تعين کي احتمال دی اول خو دا چي ددې څخه څپلۍ مراد دي يعني رسول الله ﷺ پر جورابو باندي د

[۱] - فرسخ تقريبا پاو کم څلور ميله فاصلې ته وايي

څپليو سره مسحه وکړه، په عربو کي هغه وخت داسي څپلي استعماليدې چي بالکل د چمپل په ډول به وې او پر هغو به داسي تسمه لګيدلې وه چي د هغه په پښو کولو څخه وروسته د پښې پورته برخه به خلاصه وه چي د هغه په وجه پر موزو باندي په مسحه کولو کي څه خنډ نه کيدی، او يا ددې څخه مراد دادی چي رسول الله ﷺ پر هغه جوربين باندي مسحه وکړه چي د هغه لاندي پوست لګيدلی وو.

## الفصل الثالث

﴿۴۸۱﴾: عَنِ الْمُغِيْرَةَ قَالَ مسحه رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى الْخُفَّيْنِ فَقُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللهِ نَسِيْتَ ؟ قَالَ بَلْ أَنْتَ نَسِيْتَ بِهٰذَا أَمَرَنِيْ رَبِّيْ عَزَّ وَجَلَّ . رواه أحمد وأبو داود .

د حضرت مغيرة ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ پر موزو مسحه وکړل، ما عرض وکړ اې داالله رسوله ! ايا ستاسو هير سول! رسول الله ﷺ وفرمايل: نه، بلکه ستا څخه هير سول زما رب ما ته ددې حکم راکړی دی. احمد او ابوداؤد.

﴿۴۸۲﴾: وَعَنْ عَلِيٍّ أَنَّهُ قَالَ لَوْ كَانَ الدِّيْنُ بِالرَّأْيِ لَكَانَ أَسْفَلُ الْخُفِّ أَوْلَى بِالْمسحه مِنْ أَعْلَاهُ وَقَدْ رَأَيْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَمسحه عَلَى ظَاهِرِ خُفَّيْهِ. رواه أبو داود للدارمي معناه .

د حضرت علي ﷺ څخه روايت دی که چيري دين پر رايه باندي واى نو د موزو د سربيره مسحه کولو څخه به د موزو لاندي مسحه کول غوره واى، حال دا چي ما خپله وليدل چي رسول الله ﷺ به د موزو سربيره مسحه کول. ابوداؤد او دارمي.

**تشريح**: د حضرت علي ﷺ د ارشاد مطلب دادی چي ناپاکي او نجاست د موزو لاندي خوا ته لګيږي ځکه نو د عقل غوښتنه داده چي کومي خوا ته د نجاست او ناپاکی لګيدو شبه وي هغه خوا ته د پاکی لپاره مسحه هم کول پکار دي مګر په شريعت کي صراحتا دا راغلي دي چي مسحه سربيره خوا ته کول پکار ده ځکه نو اوس عقل ته ددخل ورکولو هيڅ ځای نه دی پاته سوی.

ددې څخه معلومه سوه چي د شريعت په مسائلو او احکامو کي عقل ته دخل ورکول نه دي پکار ځکه چي عقل کامل د شريعت تابع وي چي د الله حکمتونو او د هغه مراد او مفهوم په معلومولو کي عقل مطلقا عاجز دی، نو عاقل ته پکار ده چي هغه هر ډول د شريعت تابع او پابند اوسي، د عقل تابع نه جوړيږي ځکه چي کفار او اکثر فلاسفه او حکماء او اهل هواء او

هوس پر خپل عقل باندي د باور کولو په وجه او د عقل د تابع کېدو په وجه د گمراهۍ او ضلالت په کنده کي لويدلي دي ، ددې باب دا آخري حديث دی ځکه نو مناسب ده چي ددې په ضمن کي د مسحه سره متعلق مسائل ذکر کړل سي :

۱. که چيري موزې په يو ځای کي د درو گوتو په اندازه څيري سي نو پر هغه مسحه نه صحيح کيږي ، همداسي که موزه لږ لږ څو ځايه په دومره اندازه څيري وي که هغه ټول يو ځای کړل سي نو هغه ددرو گوتو په اندازه وي نو پر هغه هم مسحه نه صحيح کيږي، او که دواړي موزې لږ لږ په دومره اندازه څيري وي که هغه جمع کړل سي نو ددرو گوتو په اندازه وي نو ددې اعتبار نه وي بلکه پر هغه به مسحه صحيح وي .

۲. په کومو شيانو سره چي اودس ماتيږي په هغه سره د موزو مسحه هم ماتيږي .

۳. د بې اودسه کېدو څخه وروسته د موزو په کښلو سره مسحه ماتيږي .

۴. د مسحه د وخت ختمېدو څخه وروسته مسحه ماتيږي په دې شرط چي د يخ په وجه د پښو د ضائع کېدو بيره نه وي مگر که د يخ سختوالی او يا يو ناروغۍ په وجه دا بيره وي او په کښلو سره به پښه ضائع سي نو د مسحه د وخت ختمېدو څخه وروسته مسحه نه ماتيږي تر څو پوري چي بيره پاته وي مسحه به هم باقي وي .

۵. که د موزو کښلو يا د وخت ختمېدو په وجه مسحه ماته سي او اودس پاته وي نو په داسي صورت کي د نوي اودس کولو ضرورت نسته بلکه يوازي د پښو په پرېولو سره د موزو په پښو کول به کافي وي .

۶. که د نيمي څخه زياته پښه د موزې څخه دباندي راووځي نو مسحه ماتيږي .

۷. که مقيم مسحه وکړه او د يوې شپې او ورځي تيرېدو څخه مخکي مسافر سو نو هغه دي د مسحه لپاره دسفر وخت پوره کړي يعني درې ورځي او درې شپې دي مسحه کوي ، همداسي که مسافر مسحه وکړه او بيا مقيم سو نو هغه ته پکار ده چي د يوې ورځي او يوې شپې څخه وروسته موزې وکاږي ځکه چي د هغه وخت پوره سوی دی .

۸. که يو معذور مثلاً د ماپښين په وخت کي په اودس کولو سره موزې په پښو کړې نو د کوم عذر په وجه چي هغه معذور دی د هغه څخه پرته که په يو دوهم شي سره د هغه اودس مات سي نو د هغه لپاره د مسحه د وخت لپاره پر موزو باندي مسحه کول جائز ده او بيا د مسحه د وخت ختمېدو څخه وروسته به مسحه ماته سي .

# بَابُ التَّيَمُّمِ

## (د تیمم بیان)

تیمم د اوداسه او غسل قائم مقام (پر ځای) دی ، د تیمم معنی په لغت کي د قصد ده، او د شریعت په اصطلاح کي د تیمم څخه مراد پر پاکه مځکه قصد کول یا د هغه شي قصد کول چي د خاورو قائم مقام وي لکه ډبره، چونه وغیره او د طهارت په نیت سره هغه پر لاس او مخ باندي راتیرول.

په دغه مسئله کي د علماؤ اختلاف دی چي د تیمم لپاره دوه ضربونه (واري وهل) دي او که یو ضرب دی، د امام اعظم، امام ابویوسف، امام محمد ، او امام مالک (رحمة الله علیهم) مذهب دادی چي د تیمم لپاره دوه ضربونه دي یعني پر پاکه خاوره یا د هغه قائم مقام مثلا پاکه چونه، ډبره او داسي نورو باندي دوه واره لاس وهل پکار دي، یو ضرب خو د مخ لپاره او دوهم ضرب تر څنګلو پوري د دواړو لاسونو لپاره دی، د امام شافعي رحمة الله علیه هم مختار مذهب دادی او د ځینو حنفیانو هم دا مذهب دی. مګر د امام احمد ابن حنبل رحمة الله علیه مذهب او د امام شافعي رحمة الله علیه پخوانی قول دادی چي د تیمم لپاره یو ضرب دی یعني تیمم کونکي ته پکار ده چي یو وار پر پاکه خاوره وغیره باندي لاس وهلو سره هغه دي پر مخ او لاسونو تر څنګلو پوري راتیر کړي، د امام اوزاعي ، عطاء او مکحول رحمة الله علیهم څخه هم دا منقول دي، د دواړو ډلو د مذهب او مسلک په تائید کي حدیثونه منقول دي چي مخته به انشاء الله راسي، او د هغه حسب موقع شرح او وضاحت به هم وسي، دلته مناسب ده چي د تمیم په اړه یو څو احکام او هغه صورتونه ذکر کړل سي چي په هغه کي تیمم جائز دی ، تیمم په لاندینیو صورتونو کي جائز کیږي :

۱. دومره اوبه چي د اوداسه او غسل لپاره کافي وي د ځان سره موجود نه وي بلکه یو میل یا د میل څخه زیاتي لیري وي.

---

[۱] تیمم په پنځم هجري کال کي پیل سو ، په قرآن کریم کي ارشاد دی : فَلَمْ تَجِدُواْ مَاء فَتَيَمَّمُواْ صَعِيدًا طَيِّبًا فَامْسَحُواْ بِوُجُوهِكُمْ وَأَيْدِيكُمْ .... ، ژباړه : که تاسو اوبه پیدا نه کړئ نو پر پاکه مځکه باندي تیمم وکړي یعني پر خپل مخونو او لاسونو باندي لاس د مځکي په جنس وهلو سره راتیر کړئ.

۲. اوبه موجود وي مګر د يو چا امانت وي او يا د چا څخه غصب کړل سوي وي.
۳. د اوبو تر خپل بيه زيات ګرانېدل.
۴. د اوبو د بيي نه موجود کېدل، که څه هم اوبه پور تر لاسه کېدای سي يا نه، د پور اخيستو په صورت کي پر دې قادر وي يا نه وي، مګر که په خپل ملکيت کي مال وي او د يو ټاکلي وخت پر وعده باندي پور تر لاسه کيدای سي نو پوره اخيستل پکار دي.
۵. د اوبو په استعمال سره د يو مرض پيدا کېدو يا زياتېدو بيره وي يا دا بيره وي که اوبه استعمال کړل سي نو په روغتيا کي به زنډ وسي.
۶. يخ دومره سخت وي چي د اوبو په استعمال سره د يو اندام د ضائع کېدو يا د يو ناروغۍ پيدا کېدو بيره وي او ګرمي اوبه پيدا کېدل ممکن نه وي.
۷. د دښمن يا درنده بيره وي مثلا اوبه په داسي ځای کي وي چي هلته درنده وغيره راځي يا موجود وي، يا په لاره کي د غلو بيره وي، يا د يو چا پور پر باندي وي او يا د يو چا سره يې دښمني وي او دا خيال يې وي که د اوبو اخيستلو لپاره ورسم نو پوروړی يا دښمن به يې ونيسي او تکليف به ورکړي، يا اوبه د يو بدمعاش او فاسق سره وي او ښځي ته د هغه په تر لاسه کولو کي د بې حرمتۍ بيره وي.
۸. اوبه يې د خوراک او څښاک د ضرورت لپاره اينبي وي که هغه په اودس يا غسل کي مصرف کړي نو په هغه ضرورت کي به نقصان راسي مثلا د اوړو اغښلو لپاره يا د غوښو وغيره پخولو لپاره يې اينبي وي، يا اوبه دومره وي که چيري په اوداسه يا غسل کي مصرف کړل سي نو د تندي بيره به وي که څه هم د خپل تندي يا د بل د تندي يا د يو حيوان د تندي بيره وي، په دې شرط چي يو داسي تدبيره نسي کيدای چي مستعملي اوبه د حيوانانو په کار راسي.
۹. د څاه څخه د اوبو راکښلو شی نه وي او نه يو جامه وي چي هغه په څاه کي اچولو سره لنده کړي او بيا د هغې په نښتيړلو سره طهارت تر لاسه کړي يا اوبه په يو منګي وغيره کي موجود وي او يو شي د اوبو راکښلو لپاره نه وي او نه د منګي په راکښته کولو سره اوبه اخيستل کيدای سي او لاس مردار وي او يو دوهم داسي سړی نه وي چي اوبه راوکاږي يا د هغه لاس پريولي.
۱۰. د اوبو هيرېدل، مثلا د يو چا سره اوبه سته مګر هغه ځيني هيري سوي دي او د هغه دا خيال

دی چې زما سره او به نسته .

## د تیمم کولو سنت او مستحب طریقه داده :

اول دي په بسم الله ویلو سره د تیمم نیت وکړي ، بیا خپل دواړه لاسونه پر داسي خاورو باندي چې هغه ته نجاست نه وي رسیدلی یا د هغه نجاست په پریوللو سره زائل (ایسته) سوی وي د ورغوي د خوا څخه په خلاصولو سره دي ووهي د هغه څخه وروسته د لاسونو په پورته کولو سره دي د هغه خاوره وڅنډي بیا پوره دواړه لاسونه دي پر خپل مخ راتیر کړي چې هیڅ ځای داسي پاته نسي چیري چې لاس ونه رسیږي، بیا دي همداسي دواړه لاسونه دي پر خاورو ووهي او د هغه خاوره دي وڅنډي او د چپه لاس دري ګوتي پرته د کلمې د ګوتي څخه او بټې ګوتي څخه د راسته لاس د ګوتو پر شا اېښودو سره تر څنګلو پوري راتیر کړي داسي چې د راسته لاس ورغوی هم ولګیږي او د څنګلو مسحه هم وسي بیا پاته ګوتي او د لاس ورغوی دوهم جوا ته په اېښودو سره تر ګوتو پوري راتیر کړي همداسي دي د چپه لاس مسحه هم وکړي، د اوداسه او غسل دواړو د تیمم طریقه داده او یو تیمم د دواړو لپاره کافي دی که د دواړو نیت وکړل سي .

## د تیمم یو څو احکام[۱] او مسائل دادي :

۱. د تیمم پر وخت نیت کول فرض او د نیت صورت دادی چې د کومي بې اودسی په وجه تیمم کیږئ د هغه څخهٔ د طهارت نیت دي وکړل سي ، یا د کوم شي لپاره چې تیمم کیږي د هغه نیت دي وکړل سي مثلا د جنازې د لمانځه لپاره تیمم وکړي یا د قرآن کریم د تلاوت لپاره تیمم کوي نو د هغه نیت دي وکړي یا د یو داسي عبادت مقصوده نیّت وکړل سي چې پرته د طهارت څخه نسي کیدای .
۲. د تیمم کولو په وخت کي د تیمم د اندامونو څخه داسي شیان لیري کول فرض دي چې د هغه په وجه خاوره بدن ته نه رسیږي لکه تیل، وازګه او داسي نور ...
۳. د تنګي ګوتمی ، غوږوالي او بنګړیانو کښل واجب دي .
۴. که چیري د یو نښي څخه د اوبو نژدې کېدل معلوم سي نو د هغه په لټه پسي سل قدمه خپله یا بل استول واجب دي .

---

[۱] دا ټول احکام او مسائل د عبدالشکور لکهنوي د کتاب څخه را اخیستل سوي دي .

۵. که د یو بل چا سره اوبه وي او د هغه څخه امید لري چي اوبه به ورکړي نو د هغه څخه
۶. غوښتل واجب دي.
۷. په ترتیب سره تیمم کول سنت دی په کوم ترتیب چي رسول الله ﷺ تیمم کړی دی، یعني اول د مخ مسحه او بیا د دواړو لاسونو مسحه.
۸. د مخ د مسحه کولو وروسته د ږیري خلالول سنت دي.
۹. د چا چي تر آخري وخته پوري د اوبو پیدا کېدو غالب ګمان وي نو هغه ته د لمانځه تر آخر وخته پوري د اوبو انتظار کول مستحب دي، مثلا د څاه څخه د اوبو راکښلو یو شی نه وي او دا غالب ګمان یې وي چي تر آخري وخته پوري به رسی او سلواغه پیدا سي، یا یو سړی په ریل ګاډي کي سپور وي او دد ې خبري په یقین سره معلوم وي چي تر اخري وخته پوري ریل ګاډی هغه ځای ته رسیږي چیري چي اوبه وي.
۱۰. تیمم د لمانځه د وخت د تنګوالي په وجه واجب کیږي د وخت په شروع کي واجب نه دی.
۱۱. که دلمانځه دومره وخت وي چي د تیمم او لمانځه کولو وخت وي نو تیمم واجب کیږئ او که وخت نه وي نو تیمم واجب نه دی.
۱۲. د کومو شیانو لپاره چي اودس فرض دی د هغو لپاره د اوداسه تیمم هم فرض دی او د کومو شیانو لپاره چي اودس واجب دی د هغه لپاره د اوداسه تیمم واجب دی او د کومو شیانو لپاره چي اودس سنت یا مستحب دی د هغو لپاره د اوداسه تیمم هم سنت او مستحب دی، او همدا حال د غسل هم دی.
۱۳. که یو سړی د جنابت په حالت کي وي او مسجد ته د هغه د تللو سخت ضرورت وي نو د هغه لپاره تیمم کول واجب دي.
۱۴. د کومو عباداتو لپاره چي د حدث اکبر (یعني جنابت) او حدث اصغر (یعني په کوم چي اودس ماتیږي) څخه طهارت شرط نه وي لکه سلام او د سلام جواب او داسي نور نو د هغو لپاره د غسل او اوداسه دواړو تیمم بیله عذره کیدای سي او په کومو عباداتو کي چي یوازي په حدیث اصغر سره طهارت شرط نه وي لکه د قرآن کریم تلاوت، اذان او داسي نور نو د هغو لپاره هم تیمم بیله عذر کیدای سي.
۱۵. که د چا سره مشکوک اوبه وي لکه د خره د پسخوردې اوبه نو په داسي حالت کي که چیري د اوداسه ضرورت وي نو اول اودس او که د غسل ضرورت وي نو غسل کول پکار دي او د

هغه وروسته تیمم کول پکار دي.
۱۶. که چیري هغه عذر د کوم په وجه چي تیمم سوی دی د د خلکو د لوري وي نو کله چي هغه عذر ختم سي نو څومره لمنځونه چي هغه په تیمم سره کړي دي د هولو بیا کول پکار دي، مثلا یو سړی په بندیخانه کي وي او بندیخانې چوکیدار هغه ته اوبه نه ورکوي او یا هغه ته یو څوک ووایي که تا اودس وکړ نو تا به مړ کړم.
۱۷. پر یوه ځای یا یوه ډبره وغیره باندي د ډیرو خلکو یو په بل پسې تیمم کول صحیح دی.
۱۸. کوم څوک چي پر اوبو او خاورو دواړو باندي قادر نه وي هغه عذر که د اوبو او خاورو نه موجودوالی وي یا د یو ناروغۍ په وجه وي نو هغه ته پکار ده چي لمونځ بیله طهارته وکړي او بیا هغه لمنځونه په طهارت سره راوګرځوي، مثلا یو سړی په ریل ګاډي کي سپور دی او د لمانځه وخت سو او نه اوبه وي چي اودس په وکړي او نه خاوره یا بل داسي شی چي پر هغه تیمم وکړي او هلته دلمانځه وخت هم ختمیږي نو هغه ته پکار ده چي په داسي حالت کي بیله طهارت لمونځ وکړي، همدارنګه یو سړی په بندیخانه کي وي او هغه پر پاکو اوبو یا خاورو قادر نه وي نو هغه دي بې اودسه او بې تیممه لمونځ وکړي مګر د هغه په دواړو صورتونو کي د لمانځه راګرځول ضروري دي.

## الفصل الاول

﴿۴۸۳﴾: عَنْ حُذَيْفَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فُضِّلْنَا عَلَى النَّاسِ بِثَلَاثٍ جُعِلَتْ صُفُوفُنَا كَصُفُوفِ الْمَلَائِكَةِ وَجُعِلَتْ لَنَا الْأَرْضُ كُلُّهَا مَسْجِدًا وَجُعِلَتْ تُرْبَتُهَا لَنَا طَهُورًا إِذَا لَمْ نَجِدْ الْمَاءَ. رواه مسلم.

د حضرت حذیفة ﷺ څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: موږ ته تر نورو امتونو په درو شیانو کي فضیلت راکړل سوی دی ۱: یو خو دا چي ز موږ صفونه د ملائکو د صفو په ډول جوړ سوي دي ۲: دوهم ټوله مځکه زموږ لپاره مسجد ګرزول سوې ده ۳: دریم د مځکي خاوره زموږ لپاره پاکونکې ګرزول سوې ده کوم وخت چي اوبه پیدا نه کړو. مسلم.

**تشریح**: د رسول الله ﷺ د دغه امت څخه مخکي په دنیا کي چي څومره امتونه پیدا سوي دي، هسي خو د هغو ټولو په مقابله کي دغه امت د خپل خصوصیاتو او امتیازاتو په وجه تر ټولو

غوره او افضل دی، په عظمت او فضیلت کي هيڅ يو امت د دغه امت مماثل نه دی ، مګر دلته د رسول الله ﷺ د دغه امت ځيني امتيازي ځانګړتياوو ته چي د الله تعالی د لوري پر دغه امت باندي د بې پايه انعاماتو او احسانونو په نتيجه کي دي اشاره فرمايي چي د دغه شيانو په وجه زما امت ته پر نورو امتونو باندي فضيلت او فوقيت ورکړل سوی دی .

همدارنګه اول شی چي رسول الله ﷺ يې فرمايي چي (په لمانځه يا جهاد کي) د دغه امت صفونه د ملائکو د صفونو په ډول دي ، يعني کوم ملائکي چي په صف بندي سره د الله تعالی عبادت کوي د کوم په وجه چي هغوئ ته مقام قرب مير دی او بې پايه بزرګي او سعادت وي همدارنګه دغه امت ته هم په جهاد يا لمانځه کي د صف بندۍ او د جماعت په وجه د الله تعالی قرب حاصليږي او ددې په وجه دغه امت ته پر پخوانيو امتونو باندي فضيلت دی ځکه چي په پخواني امتونو کي صف بندي او جماعت نه وو ، هغه خلکو چي څرنګه غوښتل لمونځ کوي مګر الله تعالی دغه امت د جماعت حکم وکړ يعني د سعادت او نيک بختۍ پر دغه عظيمه لاره يې روان کړل چي د جماعت او صف بندۍ چي څومره زياته پابندي وکړل سي نو د سعادت او نيک بختۍ او د قرب الهي دروازې به خلاصيږي .

دوهم شی رسول الله ﷺ دا وفرمايه چي الله تعالی پر نورو امتونو باندي پر دغه امت دا هم لوی احسان فرمايلی دی چي د دغه امت ټولو خلکو لپاره ټوله مځکه د سجدې ځای ګرځولې ده چي بنده د مځکي پر کومه پاکه برخه باندي د الله تعالی مخ کي کښته سي او لمونځ وکړي د هغه لمونځ به قبول سي ددې پر خلاف د نورو امتونو لپاره دا سهولت او فضيلت نه وو د هغه خلکو لمنځونه په کنائس او بيع (چي د مخکنيو امتونو د عبادت خانو نومونه دي) ددې څخه پرته بل يو ځای د دوئ عبادت جائز نه وو .

دريم شی رسول الله ﷺ دا وفرمايه چي د دغه امت لپاره الله تعالی د تيمم د جائز کېدو په وجه پر نورو امتونو باندي عظيم فضيلت ورکړی دی يعني که چيري اوبه نه وي يا د اوبو پر استعمال قدرت نه وي يا د اوبو د استعمال څخه معذور وي نو په پاکو خاورو باندي په تيمم کولو سره لمونځ دي وکړي نو لمونځ به يې صحيح سي .

په هر حال ددې حديث مطلب دادی چي په دغه درو شيانو کي موږ ته پر نورو امتونو باندي فضيلت او بزرګي راکړل سوې چي موږ د جماعت د لمانځه حکم سوی دی او پر دې باندي د بې شميره اجر او انعام وعده ورکړل سوې ده، ټوله مځکه زموږ لپاره مسجد ګرځول سوې ده چي

چیري مو زړه وي هلته لمونځ وکړو نو لمونځ به جائز وي، او چیري چي اوبه نه وي یا د اوبو پر استعمال باندي قدرت نه وي نو په پاکه خاوره سره تیمم دي وکړي او لمونځ دي وکړي.

د دې حدیث څخه په څرګنده خو دا معلومیږي چي تیمم یوازي په خاوره سره کول پکار دی او په بل شي سره تیمم کول صحیح نه دي لکه د حضرت امام شافعي رحمة الله علیه او داسي نورو مذهب چي دی، مګر حضرت امام اعظم ابوحنیفة رحمة الله علیه، حضرت امام مالک رحمة الله علیه او حضرت امام محمد رحمة الله علیه په نزد تیمم په هر هغه شي باندي صحیح دی کوم چي د مځکي د جنس څخه وي، د مځکي د جنس اطلاق پر هغه شیانو باندي کیږي کوم چي په اور کي په سوځلو سره نه پخیږي او نه نرم کیږي او نه ایري کیږي، لکه خاوره، ډبره، چونه او داسي نور شیان، د دغه حضراتو دلیل د رسول الله ﷺ دغه ارشاد دی کوم چي د حضرت جابر ؓ څخه په بخاري کي منقول دی چي: (جلعت لي الارض مسجدا وطهوار) یعني مځکه زما لپاره مسجد او پاکونکې ګرځول سوې ده.

په دغه ارشاد کي لفظ د ارض استعمال کړل سوی دی چي د هر هغه شي مفهوم ورکوي کوم چي د مځکي د جنس څخه وي،

﴿۴۸۴﴾: وَعَنْ عِمْرَانَ قَالَ كُنَّا فِيْ سَفَرٍ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَصَلّٰى بِالنَّاسِ فَلَمَّا انْفَتَلَ مِنْ صَلٰوتِهٖ اِذَا هُوَ بِرَجُلٍ مُعْتَزِلٍ لَمْ يُصَلِّ مَعَ الْقَوْمِ فَقَالَ مَا مَنَعَكَ يَا فُلَانُ أَنْ تُصَلِّيَ مَعَ الْقَوْمِ قَالَ اَصَابَتْنِيْ جَنَابَةٌ وَ لَامَاءَ قَالَ عَلَيْكَ بِالصَّعِيْدِ فَإِنَّهٗ يَكْفِيْكَ. متفق عليه

د حضرت عمران ؓ څخه روایت دی چي موږ د رسول الله ﷺ سره په سفر کي وو رسول الله ﷺ خلکو ته لمونځ ورکړ کله چي د لمانځه څخه فارغ سو نو نا څاپه یې یو سړی ولیدی چي یوازي ناست وو او هغه د خلکو سره لمونځ نه وو کړی رسول الله ﷺ هغه ته وفرمایل: اې فلانه! تا د خلکو سره لمونځ ولي نه وکړ؟ هغه وویل زه ناپاک وم او د غسل لپاره اوبه نه وې، رسول الله ﷺ ورته وفرمایل: نو ستا لپاره خاوره بس وه (یعني تیمم پکار وو). بخاري او مسلم.

﴿۴۸۵﴾: وَعَنْ عَمَّارٍ قَالَ جَاءَ رَجُلٌ إِلٰى عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ فَقَالَ إِنِّيْ أَجْنَبْتُ فَلَمْ أُصِبِ الْمَاءَ فَقَالَ عَمَّارُ لِعُمَرَ أَمَا تَذْكُرُ أَنَّا كُنَّا فِيْ سَفَرٍ أَنَا وَأَنْتَ فَأَمَّا أَنْتَ فَلَمْ تُصَلِّ وَأَمَّا أَنَا فَتَمَعَّكْتُ فَصَلَّيْتُ فَذَكَرْتُ

د حضرت عمار ؓ څخه روایت دی چي یو سړی حضرت عمر ؓ ته راغلی او عرض یې وکړ چي زه ناپاکه سوی یم او اوبه نسته، عمار وایي ما حضرت عمر ته وویل ایا ستاسو هغه پېښه په یاد ده کوم وخت چي موږ په سفر کي وو یعني زه

لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ إِنَّمَا كَانَ يَكْفِيْكَ هٰكَذَا فَضَرَبَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِكَفَّيْهِ الْأَرْضَ وَنَفَخَ فِيْهِمَا ثُمَّ مسحه بِهِمَا وَجْهَهُ وَكَفَّيْهِ . رواه البخاري ولمسلم نحوه وفيه قال إنما يكفيك أن تضرب بيديك الأرض ثم تنفخ ثم تمسحه بهما وجهك وكفيك .

او ته دواړه جنب سوي وو تاسو خو لمونځ نه وکړ خو زه پر خاوره و لغړېدم او لمونځ مي وکړ بیا ما رسول الله ﷺ ته د دې یادونه وکړه رسول الله ﷺ وفرمایل تا ته دا بس وه او نبي کریم ﷺ پر مځکه دواړه لاسونه ووهل او لاسونه یې پوه کړل بیا یې دواړه لاسونه پر مخ او لاسونو را تیر کړل (بخاري) او د مسلم په یوه روایت کي آخري الفاظ دادی چي رسول الله ﷺ وفرمایل : ستا لپاره دا بس وه چي دواړه لاسونه دي پر مځکه وهلي وای بیا دي پوه کړي وای او بیا دي هغه پر خپل مخ او لاسو را تیر کړي وای .

**تشریح** : په دغه حدیث کي د حضرت عمر ﷺ جواب نه دی ذکر سوی مګر د حدیث د ځینو نورو نسخو څخه منقول دي چي حضرت عمر ﷺ د هغه سړي په جواب کي وفرمایل : (لاتصل) یعني تر ځو چي اوبه پیدا نه سي لمونځ مه کوه، همدارنګه د حضرت عمر ﷺ مذهب همدا وو چي د جنب لپاره تیمم جائز نه وو، یا کیدای سي چي حضرت عمر ﷺ د مسئلې پوښتونکي پر سوال باندي سکوت اختیار کړی وي ، ددې وجه دا وه چي د جنب لپاره د تیمم حکم د هغه په ذهن کي نه وو ، همدارنګه حضرت عمار ﷺ ټوله واقعه بیان کړه ددې لپاره چي د حضرت عمر ﷺ په ذهن کي دا خبره راسي چي د جنب لپاره هم تیمم جائز دی، حضرت عمار ﷺ چي کومه واقعه بیان کړه په هغه کي د حضرت عمر ﷺ په اړه چي یې دا وویل چي هغه د غسل لپاره د اوبو د نه شتون په وجه د جنابت په حالت کي لمونځ وکړي ، ددې وجه دا وه چي حضرت عمر ﷺ به فکر کړی وي چي کیدای سي د لمانځه په آخر وخت پوري اوبه پیدا سي ددې لپاره هغه دا مناسب وګڼل چي د اوبو پیدا کېدو وروسته به غسل وکړم او لمونځ به اداسي او یا ددې وجه دا وه چي کیدای سي دده په ذهن کي دا خبره وه چي تیمم خو یوازي د اوداسه قائم مقام دی د غسل قائم مقام نه دی .

په څرګنده خو دا وجه قیاس ته نژدې ده چي د هغه ددې عقیدې سبب دا وو چي هغه ته د پوري مسئلې حقیقت معلوم نه وو او بیا دا چي هغه ته پر دغه مسئله باندي د رسول الله ﷺ څخه د سوال کولو اتفاق نه وو سوی ددې لپاره هغه دا فکر وکړ چي تیمم یوازي د اوداسه قائم مقام دی د غسل نه دی حال دا چي په اتفاق سره د ټولو په نزد تیمم څرنګه چي د اوداسه قائم مقام دی همدارنګه د غسل قائم مقام هم دی .

حضرت عمار ﷺ د خپل ځان په اړه فرمایي چي پر دغه موقع باندي ما بله طریقه اختیار کړه

هغه دا چي زه په خاورو کي ولغړېدم او د هغه وروسته مي لمونځ وکړ ددې وجه دا وه چي د هغه په ذهن کي هم دغه مسئله په پوره وضاحت سره نه وه ددې لپاره هغه دا قیاس وکړ چي څه ډول په غسل کي پر ټولو اندامونو باندي اوبه بیول کیږي همدارنګه خاوره هم د بدن ټولو اندامونو ته رسول پکار ده نو ځکه په خاورو کي ولغړېدی.

رسول الله ﷺ حضرت عمار ﷺ ته د تیمم د طریقې ښودلو لپاره خپل دواړه لاسونه پر مځکه ووهل بیا یې پر لاسونو پوه کړل او خاوره یې وڅنډل ددې لپاره چي خاوره پر مخ ونه لویږي د کوم په وجه چي د مخ حالت خراب سي کوم چي د مثله په حکم دی چي ممنوع کار دی، مثله دې ته وایي چي د بدن یو اندام پرې کړل سي یا یو داسي طریقه اختیار کړل سي په کوم کي چي په خلقي توګه په اندامونو کي فرق راسي او د الله تعالی تخلیق خراب کړل سي ، ددې څخه معلومه سوه چي کوم خلک خپل مخونه بدلوي یا بل څه په کوي نو هغه په سختي ګمراهۍ کي اخته دي.

دا حدیث پر دې خبره دلالت کوي چي د تیمم لپاره پر مځکه باندي یو وار لاس وهل کافي دي لکه د نورو حضراتو چي هم دا مذهب دی ، مګر د امام اعظم ، حضرت امام شافعي او حضرت امام مالک مذهب دادی چي د تیمم لپاره پر خاوره باندي دوه واره لاس وهل پکار دي یو وار پر مخ باندي راتیر کړل سي او دوهم وار پر لاسو باندي تر څنګلو پوري راتیر کړل سي ،له دې کبله حضرت شیخ محي السنة رحمة الله علیه ددې حدیث توجیه دا فرمایي چي :

د رسول الله ﷺ مقصد یوازي دا وو چي حضرت عمار ﷺ ته پر خاورو باندي د لاس وهلو کیفیت وښیي چي د جنابت لپاره تیمم داسي کوه ، په خاوره کي د لغړېدو ضرورت نسته، ددې لپاره چي د رسول الله ﷺ مقصد د پوره تیمم د کیفیت بیانول نه وه ددې لپاره حضرت عمار ﷺ هم د حدیث د روایت په وخت کي یو وار پر مځکه لاس وهل د ښووني په توګه ذکر کړل ، همدا وجه چي ددغه حدیث څخه پرته د حضرت عمار ﷺ څخه چي کوم حدیثونه د تیمم په اړه منقول دي په هغو کي په صراحت سره د دوه واره لاس وهلو ذکر سوی دی.

دا خبره هم باید په ذهن کي وي چي په حدیث کي د کفین څخه تر ذرعین ، یعني تر څنګلو پوري لاس مراد دی د کوم چي مطلب داسو چي رسول الله ﷺ خپل لاس تر څنګلو پوري مسحه کړه.

﴿۴۸۶﴾:وَعَنْ أَبِي الْجُهَيْمِ بْنِ الْحَارِثِ بْنِ الصِّمَّةِ قَالَ مَرَرْتُ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ يَبُوْلُ فَسَلَّمْتُ عَلَيْهِ فَلَمْ يَرُدَّ عَلَيَّ حَتّٰى قَامَ إِلَى جِدَارٍ فَحَتَّهُ بِعَصًى كَانَتْ مَعَهُ ثُمَّ وَضَعَ يَدَيْهِ عَلَى الْجِدَارِ فَمسحه وَجْهَهُ وَذِرَاعَيْهِ ثُمَّ رَدَّ عَلَيَّ . ولم أجد هذه الرواية في الصحيحين ولا في كتاب الحميدي ولكن ذكره في شرح السنة وقال هذا حديث حسن

د حضرت ابو الجهيم بن الحارث بن الصمة ﷺ څخه روايت دى چي زه د رسول الله ﷺ سره نژدې تير سوم چي هغه تشي بولي كولې ما ورته سلام ادا كړ خو هغه جواب رانه كړ تر دې چي رسول الله ﷺ ودرېدى او په لكړه سره يې ديوال و گروه او خپل دواړه لاسونه يې پر ديوال كښېښودل او پر مخ او لاسونو يې دواړه لاسونه تير كړل بيا يې زما د سلام جواب راكړ ، (په بخاري او مسلم كي دا روايت ما پيدا نه كړ او نه مي په كتاب حميدي كي وليدى البته په شرح السنة كي ذكر دى او ويلي يې دي چي دا حديث حسن دى).

**تشريح** : رسول الله ﷺ په خپل لكړه سره د ديوال خاوره ځكه وتوږل چي د هغه په وجه غبار پورته سي چي په هغه سره تيمم كول افضل او غوره دى او د ثواب د زياتوب باعث دى، دا حديث پر دې دلالت كوي چي د الله تعالى ذكر په طهارت سره كول مستحب دى او همدارنگه هر وخت پاک او صاف اوسيدل هم مستحب دى .

## الفصل الثاني

﴿۴۸۷﴾: عَنْ أَبِيْ ذَرٍّ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ الصَّعِيْدَ الطَّيِّبَ وَضُوْءُ الْمُسْلِمِ وَإِنْ لَمْ يَجِدِ الْمَاءَ عَشْرَ سِنِيْنَ فَإِذَا وَجَدَ الْمَاءَ فَلْيَمَسَّهُ بَشَرَهُ فَإِنَّ ذٰلِكَ خَيْرٌ . رواه أحمد والترمذي وأبو داود . وروى النسائي نحوه إلى قوله عشر سنين .

دحضرت ابو ذر ﷺ څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل : كه مسلمان لس كاله اوبه تر لاسه نه كړي نو خاوره دده لپاره پاكونكې ده هر كله چي اوبه پيدا كړي نو په هغه سره دي بدن پريولي او دا غوره ده .

**تشريح** : د لسو كالو عمر د تحديد (حد معلومولو) لپاره نه ذى بلكه د كثرت لپاره دى يعني كه چيري دومره اوږد وخت هم اوبه پيدا نسي نو د غسل يا اوداسه لپاره تيمم كولاى سي او بيا وروسته كله چي دومره اوبه پيداسي چي د غسل يا اوداسه لپاره كافي وي او د څښلو د ضرورت څخه زياتي وي او د هغه پر استعمال قادر هم وي نو غسل يا اودس كول پكار دى ځكه په دغه صورت كي به غسل او اودس كول واجب دي او تيمم كول به جائز نه وي .

دا حدیث پر دې خبره دلالت کوي چي د لمانځه د وخت په ختمېدو سره تیمم نه ماتیږي بلکه ددې حکم د اوداسه په ډول دی چي تر څو پوري اودس مات نه سي په یوه اوداسه سره څومره فرض یا نفل چي غواړي کولای سي همدارنګه په یوه تیمم سره هم د څو وختو لمونځ کولای سي ، د حضرت امام ابوحنیفة رحمة الله علیه هم دا مذهب دی ، مګر د حضرت امام شافعي رحمة الله علیه په نزد تیمم د معذور د اوداسه په ډول دی لکه څرنګه چي د لمانځه د وخت په تېرېدو سره د معذور اودس ماتیږي همدارنګه د لمانځه د وخت په ختمېدو سره تیمم هم ماتیږي .

﴿۴۸۸﴾:وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ خَرَجْنَا فِيْ سَفَرٍ فَأَصَابَ رَجُلاً مِّنَّا حَجَرٌ فَشَجَّهُ فِيْ رَأْسِهِ فَاحْتَلَمَ فَسَأَلَ أَصْحَابَهُ هَلْ تَجِدُوْنَ لِيْ رُخْصَةً فِي التَّيَمُّمِ قَالُوْا مَا نَجِدُ لَكَ رُخْصَةً وَأَنْتَ تَقْدِرُ عَلَى الْمَاءِ فَاغْتَسَلَ فَمَاتَ فَلَمَّا قَدِمْنَا عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أُخْبِرَ بِذٰلِكَ فَقَالَ قَتَلُوْهُ قَتَلَهُمُ اللّٰهُ أَلاَّ سَأَلُوْا إِذْ لَمْ يَعْلَمُوْا فَإِنَّمَا شِفَاءُ الْعَيِّ السُّؤَالُ إِنَّمَا كَانَ يَكْفِيْهِ أَنْ يَّتَيَمَّمَ وَيُعَصِّبَ عَلَى جُرْحِهِ خِرْقَةً ثُمَّ يَمسحه عَلَيْهَا وَيَغْسِلُ سَائِرَ جَسَدِهِ . رواه أبو داود . ورواه ابن ماجه عن عطاء بن أبي رباح عن ابن عباس .

د حضرت جابر ﷛ څخه روایت دی چي موږ په سفر ووتلو او په موږ کي یو سړي پر ډبري ولګېدی او د هغه سر زخمي سو بیا احتلام ورته پېښ سو هغه د خپلو ملګرو څخه پوښتنه وکړه چي په داسي حالت کي تیمم جائز دی؟ هغوئ ورته وویل په داسي حالت کي چي ته اوبه استعمالولای سې موږ ستا لپاره د تیمم کوم جواز نه وینو ، هغه غسل وکړ او مړ سو ، کله چي موږ د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سو او ددې پېښي خبر مو ورکړی نو رسول الله ﷺ وفرمایل :خلکو هغه مړ کړی الله دي هغوئ ووژني کومه خبره چي هغوئ ته څرګنده نه وه نو هغوئ ولي معلومه نه کړه د ناپوهۍ د ناروغۍ علاج پوښتنه کول دي ، یقینا د هغه لپاره تیمم جائز وو او د غسل کولو په صورت کي هغه ته پکار وه چي هغه د خپل زخم پر پټۍ مسحه کړې وای او ټول بدن یې پریولی وای . ابوداؤد او ابن ماجه د عطاء بن ابي رباح او هغه د ابن عباس ﷛ څخه روایت کړی دی .

**تشریح** : ځیني وختونه بې علمي او په یو مسئله کي ناخبري د یوې ډیري غټې واقعي سبب جوړیږي ، همدارنګه دلته هم داسي سوي دي چي کله هغه ژوبل سوي سړي د خپل عذر په اړه د خپل ملګرو څخه مشوره واخیستل چي ایا په داسي حالت کي چي زما پر سر باندي زخم دی او

[1] په کومو شیانو چي اودس ماتیږي په هغه شیانو تیمم هم ماتیږي او په کومو شیانو سره چي غسل واجبیږي په هغه سره د غسل تیمم هم ماتیږي د زیات معلومات لپاره د علم فقه کتابونه وګورئ .

اوبه دده زخم لپاره تاواني دي نو ایا د ناپاکی لیري کولو لپاره د غسل پر ځای تیمم کولای سم ؟ نو ملګرو يې د مسئلې څخه د ناخبرۍ په وجه او د علم کم علمۍ په وجه ددغه آیت (فلم تجدوا ماء فتیمموا) مطلب دا واخیستی چې تیمم یوازې په هغه صورت کې جائز دی چې کله اوبه موجود نه وي او که چیرې اوبه موجود وي نو تیمم به جائز نه وي ، هغه کس ته يې وویل ستا لپاره د تیمم جائز کېدو هیڅ سوال هم نه پاته کیږي،حال دا چې هغوئ دا فکر ونه کړ چې د تیمم نه صحیح کېدو دا صورت دی چې کله اوبه موجود وي او د هغه سربیره پر هغه د استعمال قدرت هم وي او د استعمال په وجه د یو تاوان او ضرر بیره هم نه وي ، هغه بېچاره ددغه خلکو پر علم او فهم باندې باور وکړ او په دغه حالت کې يې غسل وکړ او د هغه نتیجه دا سول چې اوبو په زخم کې زیاتوب راویستی او ددغه زخم په وجه هغه کس وفات سو .

په هر حال دا حدیث پر دې دلالت کوي چې پر داسې موقع باندې هم تیمم کول پکار دي او ددې سره سره د ټول بدن پرېولل هم پکار دي لکه نبي کریم ﷺ چې وفرمایل، د حضرت امام شافعي رحمة الله علیه مذهب دادی ، مګر د امام اعظم ابو حنیفة رحمة الله علیه په نزد د دواړو څخه یو شی کافي دی، حنفیه د شوافعو جواب داسې ورکوي چې دا حدیث ضعیف دی او بیا د قیاس خلاف هم دی ځکه چې ددې څخه د بدل او مبدل منه جمع لازمه سوې ده .

او که یو چا ته دا بیره وي چې د اوبو په استعمال سره مرض زیاتیږي یا په روغتیا کې زنډ کیږي نو په داسې صورت کې د حضرت امام اعظم او حضرت امام مالک رحمة الله علیهما په نزد هغه ته تییم او لمونځ کول پکار دی او وروسته د لمانځه قضا راوړل ضروري نه ده ، د شوافع هم تقریبا هم دغه مذهب د ی.

که د یو چا پر یو اندام باندې زخم وي یا دانه وي او پر هغه باندې پټۍ لګېدلې وي نو په دغه صورت کې د حضرت امام شافعي رحمة الله علیه مذهب دادی که چیرې د پټۍ په خلاصولو سره د ځان د هلاکېدو بیره وي نو هغه ته پکار ده چې پر پټۍ باندې مسحه وکړي او تیمم وکړي ، مګر د حضرت امام اعظم رحمة الله علیه او حضرت امام مالک رحمة الله علیه فرمایي چې کله د یو چا د بدن یو برخه زخمي وي او یو برخه روغه وي نو دا دې وکتل سي چې زخمي برخه څومره ده او روغه برخه څومره ده که چیرې زیاته برخه روغه وي نو هغه به پرېولې او پر زخم باندې به مسحه کوي او که زیاته برخه زخمي وي تو تیمم به کوي او پرېولل به ساقط ىسي ، د امام احمد بن حنبل رحمة الله علیه مسئله داده چې کومه برخه روغه وي هغه دې پرېولل

سي او د زخم دي لپاره تيمم وكړل سي .

﴿۴۸۹﴾: وَعَنْ أَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ قَالَ خَرَجَ رَجُلَانِ فِيْ سَفَرٍ فَحَضَرَتِ الصَّلَاةُ وَلَيْسَ مَعَهُمَا مَاءٌ فَتَيَمَّمَا صَعِيْدًا طَيِّبًا فَصَلَّيَا ثُمَّ وَجَدَا الْمَاءَ فِي الْوَقْتِ فَأَعَادَ أَحَدُهُمَا الصَّلَاةَ بِوُضُوْءٍ وَلَمْ يُعِدِ الْآخَرَ ثُمَّ أَتَيَا رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرَ ذٰلِكَ فَقَالَ لِلَّذِيْ لَمْ يُعِدْ أَصَبْتَ السُّنَّةَ وَأَجْزَأَتْكَ صَلَاتُكَ وَقَالَ لِلَّذِيْ تَوَضَّأَ وَأَعَادَ لَكَ الْأَجْرُ مَرَّتَيْنِ . رواه أبو داود والدارمي وروى النسائي نحوه . وقد روى هو وأبو داود أيضا عن عطاء بن يسار مرسلا

د حضرت ابوسعيد الخدري ﷺ څخه روايت دی چي دوه کسان په سفر روان سول د لمانځه وخت سو او د هغوئ سره اوبه نه وې دواړو په پاکه خاوره تيمم وکړ او لمونځ يي ادا کړ بيا يې په همدغه وخت کي دننه اوبه پيدا کړې په هغوئ کي يوه اودس وکړ او لمونځ يې دوهم ځل وکړ او دوهم کس ونه کړ ، بيا هغوئ دواړه د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سول او پېښه يې بيان کړل ، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : چا چي لمونځ دوهم ځل نه وو کړی هغه ته يې وفرمايل تا په سنت عمل وکړ او ستا لمونځ صحيح سو او چا چي اودس او لمونځ دوهم ځل وکړ هغه ته يې وفرمايل : تا ته به دوچنده ثواب درکړل سي . (ابوداؤد)

**تشريح** : څرنګه چي د اوبو نه پيدا کېدو په صورت کي که چيري اوبه پيدا سي او د لمانځه وخت هم پاته وي نو د هغه لمانځه راګرځول ضروري دي ددې لپاره چي رسول الله ﷺ هغه کس ته چا چي لمونځ نه وو راګرځولی وفرمايل تا پر سنت عمل وکړ يعني د شريعت حکم خو همدغه دی ددې لپاره تا د شريعت د حکم پابندي وکړه چي په تيمم سره د لمانځه کولو سربيره لمونځ دي نه راوګرځوئ ، دوهم کس ته رسول الله ﷺ وفرمايل چي ته د دوه برابر ثواب وړ يې چي يو ثواب د فرض د ادا کولو او دوهم ثواب د نفل ادا کولو .

په دې مسئله کي د علماء په اتفاق سره فيصله ده چي تيمم کونکی د لمانځه د فارغه کېدو څخه وروسته که چيري اوبه ووينې او هغه ته اوبه تر لاسه سي نو د هغه لپاره د لمانځه راګرځول ضروري نه دي که څه هم د لمانځه وخت پاته وي .

مګر که چيري داسي صورت وي چي يو کس د تيمم کولو وروسته لمونځ پيل کړی او د لمانځه په مينځ کي اوبه پيدا سوې نو اوس به هغه څه کوي ؟ ايا لمونځ ختم کړي او بيا په اوداسه کولو سره لمونځ وکړي او که په خپل تيمم سره لمونځ پوره کړي ؟ په دې مسئله کي د علماؤ اختلاف دی ، د جمهورو علماؤ مذهب دا دی چي هغه کس ته د لمانځه ختم کول نه دي

پکار بلکه هغه دي لمونځ پوره کړي او لمونځ به يې صحيح سي .
مګر د حضرت امام اعظم ابو حنيفة رحمة الله عليه او حضرت امام احمد رحمة الله عليه يو قول دادی چي په دغه صورت کي به د هغه کس تيمم باطل سي نو هغه ته د لمانځه ماتول او په اوبو سره د اودس کولو او بيا دوهم وار لمونځ کول پکار دي .

## الفصل الثالث

﴿۴۹۰﴾: عَنْ اَبِي الْجُهَيْمِ ابْنِ الْحَارِثِ بْنِ الصِّمَّةِ قَالَ أَقْبَلَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ نَحْوِ بِئْرِ جَمَلٍ فَلَقِيَهُ رَجُلٌ فَسَلَّمَ عَلَيْهِ فَلَمْ يَرُدَّ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَيْهِ حَتّٰى أَقْبَلَ عَلَى الْجِدَارِ فَمسحه وَجْهَهُ وَيَدَيْهِ ثُمَّ رَدَّ عَلَيْهِ السَّلَامَ . متفق عليه .

د حضرت ابوالجهيم بن الحارث بن الصمة ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ د جمل د څاه په لور تشريف راوړ او دده مبارک سره يو سړی مخامخ سو او سلام يې وکړ مګر رسول الله ﷺ د هغه د سلام جواب ور نه کړ تر دې چي رسول الله ﷺ يو ديوال ته ورغلی او پر خپل مخ او لاسو يې مسحه (تيمم) وکړل او بيا يې د سلام جواب ورکړ . بخاري او مسلم .

﴿۴۹۱﴾: وَعَنْ عَمَّارِ بْنِ يَاسِرٍ أَنَّهُ كَانَ يُحَدِّثُ أَنَّهُمْ تَمَسَّحُوْا وَهُمْ مَعَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالصَّعِيْدِ لِصَلَاةِ الْفَجْرِ فَضَرَبُوْا بِأَكُفِّهِمُ الصَّعِيْدَ ثُمَّ مَسَحُوْا بِوُجُوْهِهِمْ مَسْحَةً وَّاحِدَةً ثُمَّ عَادُوْا فَضَرَبُوْا بِأَكُفِّهِمُ الصَّعِيْدَ مَرَّةً أُخْرٰى فَمَسَحُوْا بِأَيْدِيْهِمْ كُلِّهَا إِلَى الْمَنَاكِبِ وَالآبَاطِ مِنْ بُطُوْنِ أَيْدِيْهِمْ . رواه أبو داود .

د حضرت عمار بن ياسر ﷺ څخه روايت دی چي صحابه کرام سره يو ځای وه هغوئ د سهار د لمانځه لپاره پر پاکه خاوره تيمم وکړ هغوئ خپل دواړه لاسونه په خاوره ووهل او پر خپل مخو يې يو ځل مسحه وکړه بيا يې دوهم ځل پر خاوره لاس ووهی او د لاسونو مسحه يې وکړه يعني د دواړو لاسونو تر اوږو پوري او په بغلو کي يې خپل لاسونه ور دننه کړل . ابوداؤد .

**تشريح** : د حديث په آخري جملې کي (مِن بطون ايديهم) کي د من لفظ د ابتداء لپاره دی يعني هغه اول د لاسو پر دننه خوا لاس راتير کړ نه د لاسو پر سربيره خوا ، لکه فقهاء چي ليکلي دي چي اول د لاسو پر سربيره خوا مسحه کول مستحب ده او يا ددې معنا داده چي هغه د ورغوو څخه تيمم کول پيل کړل ، دغه معني زياته مناسبه ده .
صحابه کرامو لاسونه تر بغلو او اوږو پوري مسحه کړل ددې وجه دا وه چي هغوئ دا خيال

وکړ چي د تيمم په آيت کي د يد يعني لاس لفظ ذکر دی کوم چي مطلق دی ، د دغه آيت څخه دا په صراحت سره نه معلوميږي چي لاسونه تر کوم ځاى پوري مسحه کړل سي ، د دې کبله د دغه اطلاق غوښتنه داده چي يد يعني لاس چي د ګوتو څخه تر اوږې پوري برخي ته وايي نو پر دغه ټوله برخه دي مسحه وکړل سي د دې وجي څخه صحابه کرامو پر ټوله لاس مسحه وکړه ، او کوم چي د مسئلې تعلق دی نو دا به وويل سي چي دا د صحابه کرامو خپل اجتهاد وو ځکه جمهورو علماؤ چي د لاسو پر څنګلو پوري د مسحه کولو کوم حکم کړی دی د دې وجه داده چي تيمم د اوداسه قائم مقام دی او د اوداسه په اړه په قرآن کريم کي په صراحت سره دا ښودل سوي دي چي لاسونو تر څنګلو پوري پريولل فرض دي له دې کبله په اصل يعني اوداسه کي لاسونه تر څنګلو پوري پريولل کيږي نو د اوداسه په قائم مقام يعني تيمم کي هم لاسونه تر څنګلو پوري مسحه کول پکار دي .

او بيا د دې څخه مخکي چي د تيمم په اړه کوم احکام نقل سوي وه پر دغه حديث باندي ځرنګه چي باب ختم کيږي د دې لپاره دا مناسب ده چي د تيمم يو څو نور احکام او مسائل کوم چي مخکي ذکر سوي نه دي دلته ذکر کړل سي . مخکي ويل سوي دي چي تيمم په هغه شيانو کول پکار دي کوم چي د مځکي د جنس څخه وي لکه خاوره، ريګ، چونه، رانجه، ډبره او داسي نورو سره تيمم کيداى سي ، همدارنګه د غميانو څخه پرته په نورو ټولو جواهراتو سره هم تيمم کيداى سي .

په دې هم پوه سئ چي د تيمم کولو لپاره پر دغه شيانو باندي کوم چي د مځکي د جنس څخه وي پر هغو باندي ګرد او غبار کېدل ضروري نه دي يعني پر دغه پورتنيو شيانو باندي د غبار او ګرد نه کېدو په صورت کي پر هغو تيمم کول جائز دی ، مګر که چيري پر يو داسي شي باندي تيمم وکړل سي چي د مځکي د جنس څخه نه وي نو پر هغه باندي ګرد کېدل ضروري دي ، د ګرد نه کېدو په صورت کي به تيمم جائز نه وي مثلا پر لرګي، جامې او يا داسي بل شي باندي که چيري ګرد وي نو پر هغو باندي تيمم کول جائز دی .

**د تيمم د جواز لپاره څلور شرطونه دي :**

۱. د اوبو د استعمال څخه حقيقتا يا حکما عاجز وي .

۲. پر کوم شي چي تيمم کوي د هغه پاکېدل .

۳. استيعاب يعني د تيمم پر هر اندام باندي په داسي ډول لاس را تيرول چي هيڅ يو ځاى د

مسحه څخه پاته نسي.

۴. نیت، په دې اړه مخکې ویل سوي دي چې لمونځ په هغه تیمم سره صحیح کیږئ په کوم کې چې د طهارت نیت وکړل سي، په دې اړه د حدث یا جنابت تاکل شرط نه دي، یا د هغه مقصوده عبادت نیت سوی وي کوم چې بیله طهارت نه صحیح کیږي، که چیري کافر د اسلام قبلولو لپاره تیمم وکړي یا یو څوک مسجد ته د ننوتلو لپاره تیمم وکړي او بیا دا وغواړي چې په هغه تیمم سره لمونځ هم وکړي نو لمونځ به په هغه تیمم سره جائز نه وي.

د جنب، بې اودسه، حائضې او نفاسي والا ښځو ټولو لپاره د تیمم یوه طریقه ده کوم چې مخکې ذکر سوې ده.

# بَابُ الْغُسلِ الْمَسْنُوْنِ

## (د سنت غسل بیان)

## الفصل الاول

﴿۴۹۲﴾: عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا جَاءَ أَحَدُكُمُ الْجُمُعَةَ فَلْيَغْتَسِلْ. متفق عليه.

د حضرت ابن عمر ﷛ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل: هر کله چې په تاسو کې یو څوک د جمعې د لمانځه لپاره راځي نو هغه ته پکار دي چې اول غسل وکړي. بخاري او مسلم.

**تشریح**: مختار مذهب دا دی چې غسل د جمعې د لمانځه لپاره دی په دغه طهارت سره د جمعې لمونځ ادا کول پکار دي، مګر ځیني حضرات وایي چې غسل د جمعې د ورځې د تعظیم او احترام لپاره دی، په هر حال د ټولو علماؤ په نزد د جمعې د لمانځه لپاره غسل کول مستحب مؤکد دی، مګر د حضرت امام مالک ﷫ یو روایت دا دی چې د جمعې د لمانځه لپاره غسل کول واجب دی.

﴿۴۹۳﴾: وَعَنْ أَبِي سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْغُسْلُ يَوْمَ الْجُمُعَةِ وَاجِبٌ عَلَى كُلِّ مُحْتَلِمٍ. متفق عليه.

د حضرت ابو سعید الخدري ﷛ څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل: د جمعې په ورځ غسل پر هر بالغ سړي واجب دی. بخاري او مسلم

**تشریح**: د واجب مطلب دا نه دی که چیري یو څوک د جمعې په ورځ غسل ونه کړي نو هغه به

گناه كار وي بلكه ددې مفهوم دادی چې دا ثابته سوې ده چې د جمعې په ورځ غسل پرېښودل مناسب نه دی، دا بالكل داسي ده لكه زموږ چې د يو حقدار د رعايت په اړه وايو چې د فلاني كس رعايت پر موږ باندي واجب دی.

علماء ليكي چې دلته او په ځينو نورو ځايونو كي د واجب لفظ استعمالول د مستحب مؤكد لپاره راځي او ددې وجه په خاصه توګه داده چې د اسلام په پيل كي مسجدونه ډېر تنګ او كوچني وه او مسلمانانو د وړيو استعمال كوی او محنت او سخت كارونه يې هم ډېر كول او د هغه په وجه پر هغوئ خوله ډېره راتلل نو د هغه د بوی په وجه شاوخوا خلكو تكليف محسوس كوی ددې لپاره رسول الله ﷺ په دغه حكم كي د واجب لفظ استعمال كړی ددې لپاره چې خلك د جمعې د ورځي غسل ژر قبول كړي او په دې سره په پابندي سره عمل وكړي.

﴿۴۹۴﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَقٌّ لِلّٰهِ عَلَى كُلِّ مُسْلِمٍ أَنْ يَغْتَسِلَ فِي كُلِّ سَبْعَةِ أَيَّامٍ يَغْسِلُ فِيْهِ رَأْسَهُ وَجَسَدَهُ. متفق عليه

د حضرت ابوهريرة ﷺ څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل: د هر مسلمان لپاره ضروري ده چې هغه په هره اوومه ورځ غسل وكړي چې په هغه كي سر او بدن پريولي. بخاري او مسلم.

# الفصل الثاني

﴿۴۹۵﴾: عَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ تَوَضَّأَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ فَبِهَا وَنِعِمَتْ وَمَنِ اغْتَسَلَ فَالْغُسْلُ أَفْضَلُ. رواه أحمد وأبو داود والترمذي والنسائي والدارمي.

د حضرت سمرة بن جندب ﷺ څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل: كوم چا چې د جمعې په ورځ اودس وكړ هغه فرض ادا كړل او دا ډېر ښه فرض دی او چا چې غسل وكړ نو غسل غوره دی. احمد، ابوداؤد، ترمذي، نسائي او دارمي.

**تشريح**: د (فبها و نعمت) مطلب دادی چې (فبها بفريضة اخذوا نعمت الفريضة) يعني چا چې د لمانځه لپاره غسل وكړ هغه نو فرض ادا كړل او ډېر ښه فرض يې ادا كړ.

ددې څخه مخكي چې د حضرت ابوسعيد خدري ﷺ روايت تير سوی دی د هغه څخه دا معلومه سوه چې د جمعې په ورځ غسل كول واجب دی مګر دا حديث په صراحت سره پر دې خبره دلالت كوي چې د جمعې په ورځ غسل كول واجب نه دی بلكه سنت دی.

﴿۴۹۶﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ غَسَّلَ مَيِّتًا فَلْيَغْتَسِلْ . رواه ابن ماجه، وزاد أحمد والترمذي وأبو داود وَمَنْ حَمَلَهُ فَلْيَتَوَضَّأْ .

د حضرت ابوهريرة ﷛ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : چا چي مړي ته غسل ورکړ نو هغه ته پکار دي چي هغه خپله هم غسل وکړي .(ابن ماجه) احمد ، ترمذي او ابوداؤد دا الفاظ زيات ليکلي دي او څوك چي مړی پورته کړي هغه دي اودس وکړي. ابن ماجه .

**تشريح** : ددغه حديث څخه دوه شيان معلوم سول : اول خو دا چي کوم څوک مړي ته غسل ورکړي نو د مړي د غسل څخه د فارغ کېدو وروسته خپله هم غسل وکړي ځکه کيدای سي چي مړي د غسل ورکولو په وخت کي څاڅکي وغيره لګيدلي وي له دې کبله د پاکۍ او صفائي لپاره غسل کول پکار دي، د اکثرو علماؤ په نزد مړي ته د غسل ورکولو څخه وروسته غسل کول د استحباب په درجه کي دی ځکه په يوه حديث کي دي چي : که تاسو مړي ته غسل ورکړئ نو پر تاسو باندي غسل لازم نه دی .

د دغه حديث څخه دوهم شی دا معلوميږي چي کله يو څوک د جنازې پورته کولو اراده وکړي نو هغه ته اودس کول پکار دی ددې وجه داده چي کله يو څوک په اوداسه سره جنازه پورته کوي نو کله چي د لمانځه ورکولو پر ځای جنازه ايږدي او د جنازې لمونځ پيل کيږي نو هغه به سمدستي د جنازې په لمانځه کي ګډون وکړي ، دا به نه وي چي هغه جنازه کښيږدي او د اوداسه کولو لپاره ولاړ سي او هلته لمونځ ځيني تير سي ، ددغه حکم په اړه هم په اتفاق سره د ټولو رايه داده چي دغه حکم د استحباب په درجه کي دی يعني د جنازې پورته کولو څخه مخکي اودس کول مستحب دی ، ضروري او واجب نه دی .

﴿۴۹۷﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَغْتَسِلُ مِنْ أَرْبَعٍ مِّنَ الْجَنَابَةِ وَ يَوْمِ الْجُمُعَةِ وَمِنَ الْحِجَامَةِ وَمِنْ غُسْلِ الْمَيِّتِ . رواه أبو داود .

د حضرت عائشي (رض) څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ به د څلورو وجو څخه غسل فرمايه ۱: د جنابت څخه ۲:د جمعې په ورځ ۳: د ښکر لګولو په وجه ۴: مړي ته د غسل ورکولو له کبله . ابوداؤد.

**تشريح** : که چيري د يغتسل لفظي ترجمه وکړل سي نو د هغه معنی به دا وي چي رسول الله ﷺ به ددغه څلورو شيانو په وجه غسل کوی مګر د نبي کريم ﷺ په اړه دا ثابت نه دي چي مړي ته يې غسل ورکړی دی، ځکه نو د يغتسل ترجمهٔ دا کيږي چي رسول الله ﷺ به ددغه څلورو شيانو په

وجه د غسل کولو حکم ورکوی.

په هر حال ددغه څلورو شيانو څخه د جنابت غسل خو فرض دی او نور ټول مستحب دي، د ښکر لګولو يعني ويني کښلو د غسل کولو حکم د صفائي لپاره دی لکه د ويني کښلو وروسته چي غسل کول پکار دي چي ددې په وجه وينه وغيره پر بدن لګيدلې وي او د هغه څخه پاکي تر لاسه کړل سي.

﴿۴۹۸﴾: وَعَنْ قَيْسِ بْنِ عَاصِمٍ أَنَّهُ أَسْلَمَ فَأَمَرَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يَّغْتَسِلَ بِمَاءٍ وَّسِدْرٍ. رواه الترمذي وأبو داود والنسائي.

د حضرت قيس[1] بن عاصم ﷺ څخه روايت دی چي هغه مسلمان سو نو رسول الله ﷺ هغه ته دا حکم ورکړ چي هغه دي د بيرو په پاڼو او اوبو سره غسل وکړي. ترمذي، ابوداؤد او نسائي

**تشريح**: که يو کافر په داسي حالت کي مسلمان سي چي هغه د جنابت په حالت کي وي نو په دغه صورت کي پر هغه غسل کول واجب دی، او که د جنابت په حالت کي نه وي نو بيا د اسلام راوړلو څخه وروسته د هغه لپاره غسل کول مستحب دی، او په دې اړه صحيح او اولی قول دادی که يو کافر مسلمان کېدل غواړي نو د هغه دي اول کلمه شهادت ووايي د هغه څخه وروسته دي غسل وکړي، همدارنګه د هغه لپاره دا سنت دي چي د لمبېدو څخه مخکي سر وخريي، رسول الله ﷺ حضرت قيس ﷺ ته په اوبو او د بيري په پاڼو سره د غسل کولو حکم ورکړ چي پاکي او صفائي په پوره توګه تر لاسه سي.

## الفصل الثالث

﴿۴۹۹﴾: عَنْ عِكْرِمَةَ أَنَّ نَاسًا مِّنْ أَهْلِ الْعِرَاقِ جَاءُوْا فَقَالُوْا يَا ابْنَ عَبَّاسٍ أَتَرَى الْغُسْلَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ وَاجِبًا قَالَ لاَ وَلٰكِنَّهُ أَطْهَرُ وَخَيْرٌ لِّمَنِ اغْتَسَلَ وَمَنْ لَّمْ يَغْتَسِلْ فَلَيْسَ عَلَيْهِ بِوَاجِبٍ. وَسَأُخْبِرُكُمْ كَيْفَ بَدْءُ الْغُسْلِ كَانَ النَّاسُ مَجْهُوْدِيْنَ يَلْبَسُوْنَ الصُّوْفَ وَيَعْمَلُوْنَ عَلٰى ظُهُوْرِهِمْ وَكَانَ مَسْجِدُهُمْ ضَيِّقًا

د حضرت عکرمه ﷺ څخه روايت دی چي د عراق خلك راغلل او ابن عباس ته يې وويل چي ستاسو په نزد د جمعې په ورځ غسل کول واجب دي؟ ابن عباس ورته وويل :يا، مګر. ډېر پاکونکی دی او کوم څوك چي غسل وکړي د هغه لپاره غوره ده او څوك چي غسل ونه کړي نو پر هغه واجب نه دی او زه ذا درته ښيم چي د (جمعې)

[1] - د حضرت قيس بن عاصم کنيت ابو علي بن عبدالبر دی.

مُقَارِبَ السَّقْفِ إِنَّمَا هُوَ عَرِيْشٌ فَخَرَجَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِيْ يَوْمٍ حَارٍ وَعَرِقَ النَّاسُ فِيْ ذٰلِكَ الصُّوْفِ حَتّٰى ثَارَتْ مِنْهُمْ رِيَاحٌ اٰذٰى بِذٰلِكَ بَعْضُهُمْ بَعْضًا . فَلَمَّا وَجَدَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تِلْكَ الرِّيْحُ قَالَ يَاأَيُّهَا النَّاسُ إِذَا كَانَ هٰذَا الْيَوْمُ فَاغْتَسِلُوْا وَلْيَمَسَّ أَحَدُكُمْ أَفْضَلَ مَا يَجِدُ مِنْ دُهْنِهِ وَطِيْبِهِ . قَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ ثُمَّ جَاءَ اللهُ بِالْخَيْرِ وَلَبِسُوْا غَيْرَ الصُّوْفِ وَكُفُوا الْعَمَلَ وَوُسِّعَ مَسْجِدُهُمْ وَذَهَبَ بَعْضُ الَّذِيْ كَانَ يُؤْذِيْ بَعْضُهُمْ بَعْضًا مِنَ الْعَرَقِ . رواه أبو داود .

د غسل پیل څنګه وسو ځیني غریبو خلکو به په هغه زمانه کي د وړیې جامې اغوستلې او پر شا به یې شیان وړل د هغوئ مسجد تنګ وو او د مسجد بامونه کښته وه یعني دیوالونه یې جګ نه وه بامونه یې د خرماوو د څانګو وو ، یوه ورځ د جمعې په ورځ چي سخته ګرمي وه نبي کریم ﷺ تشریف راوړ خلك د هغه وړیې له کبله په خولو کي لانده وه د هغو څخه بوی خپور سو چي ځیني خلکو ته تکلیف ورسیدی هر کله چي رسول الله ﷺ ته بوی راغلی نو رسول الله ﷺ خلکو ته وفرمایل : هر کله چي د جمعې ورځ سي نو تاسو غسل کوئ او پکار ده چي په تاسو کي هر یو د غسل کولو څخه وروسته ښه تیل او خوشبویي استعمال کړي ، ابن عباس وايي د دې وروسته الله تعالی خلکو ته شتمني ورکړه او دخلکو د وړیې پر ځای ښه جامې واغوستلې د سختو کارونو څخه خلاص سول او مسجدونه پراخ سول او د خولو له کبله چي کوم تکلیف خلکو ته رسیدی د هغو څخه ډیر امن تر لاسه سو . ابوداؤد .

**تشریح** : د اسلام په پیل کي د مسلمانانو ژوند د محنت، مشقت او تنګۍ څخه ډک وو، داسي صحابه کرام ډیر کم وه چي شتمن او خوشحاله وه، زیات هغه خلک وه چي ټوله ورځ به یې محنت او مشقت کوی ، په ځنګلو او ښارو کي به یې مزدوري کول همداسي هغه حضرات په مشکلاتو او پریشانیو کي لوېدو سره د خپل دین او ایمان او بېدل یې کول، مګر د تنګۍ او پریشانۍ دغه زمانه تر ډیره وخته پوري نه وه هر کله چي د اسلام د حقیقت آواز د مکې او مدینې څخه په وتلو سره د نړۍ نورو برخو ته ورسیدی او د مسلمانانو لښکر د الله تعالی او د هغه د رسول د نامه لوړولو لپاره دا ټولي سختۍ او پریشانۍ د لاري تو ښه جوړولو سره د قیصر او کسری په ډول د والیانو حشمت او سطوت او شان او شوکت سره وجنګېدل چي د هغه په نتیجه کي هغوئ د دنیا پر اکثرو برخو باندي د خپل فتح او نصرت بیرغ ودروی نو د تنګۍ او پریشانۍ هغه دور الله تعالی په پراخۍ او وسعت سره بدل کړ اوس مسلمانان نادار او پریشانه نه وه پاته سوي بلکه شتمن او خوشحاله سول او د محنت او مشقت ځای د دنیا نعمتو او

هوسايي واخيست.

په دغه حديث كي حضرت ابن عباس ﷺ د جمعې په ورځ د غسل د حكم وجه بيانولو سره د مسلمانانو د هغه زمانې يوه خاكه وړاندي كړې ده چي مخكي مسلمانان دومره نادار او لاس تنګي وه چي نه خو د هغوئ سره د اغوستلو مناسب جامې وي او نه نوري آساني وې، بلكه هغه خلكو ټوله ورځ محنت او مزدوري كولو سربيره وچه ډوډۍ خوړل او وړۍ به يې اغوستلې چي د هغه په وجه به په سخته ګرمي كي خولې پر راتللې نو په مسجد كي نژدې ناست خلكو ته به د خولو د بوى په وجه تكليف كيدى، بيا چي وروسته الله تعالى پر هغوئ د مال دروازې خلاصي كړې نو هغوئ پرته د كوښښ او محنت څخه شتمن او خوشحاله سول او د الله تعالى پر هغوئ د ژوند بې پايه پراخي راوستل.

د حديث په پاى كي لفظ د بعضا من العرق كي لفظ د من د بعض لفظ د بيان لپاره دى او دلته د بعض څخه مراد اكثر دي، همداسي ددې جملې معنى به دا وي چي د اكثرو خلكو خولې چي په خپلو كي خلكو ته تكليف رسوى د خوشحالۍ او د ژوند د اسبابو د پراخۍ په وجه ختم سو.

په هر حال د ابن عباس ﷺ ددې ارشاد مطلب دادى چي د خولو د بدبويي د كثرت په وجه د اسلام په پيل كي د جمعې په ورځ غسل واجب وو، مګر هر كله چي د ژوند اسباب زيات او د مسلمانانو د خوشحالۍ په وجه دا شى كم سو نو د غسل د وجوب حكم منسوخ سو او د هغه پر ځاى غسل سنت سو، همداسي اوس د جمعې په ورځ غسل كول واجب نه بلكه سنت دى.

۞۞۞۞

# بَابُ الْحَيْضِ

## (د حيض بيان)

حيض په لغت كي جاري كېدو ته وايي او د شريعت په اصطلاح كي حيض هغهويني ته وايي چي د ښځي د رحم څخه د يو ناروغۍ او ولادت پرته جاري كېږي چي په اصطلاح كي ورته مياشتنۍ وينه هم وايي ، همداسي د رحم څخه چي كومه وينه د يو ناروغۍ په وجه راوځي هغه ته استحاضه او كومه وينه چي د ولادت څخه وروسته جاري وي هغه ته نفاس وايي .

د حيض وخت كم تر كمه درې ورځي او زيات لس ورځي دى، په دغه وخت چي وينه د خالص سپين والي څخه پرته په كوم رنګ كي راسي هغه به د حيض وينه شميرل كيږي يعني د حيض د ويني رنګ سور هم وي او تور يا شين هم او ژړ او د خاورو په رنګ هم وي، د حيض په ورځو كي لمونځ او روژه نيول نه دي پكار ، البته د حيض تيريدو څخه وروسته روژې خو به قضاء راوړي مګر د لمانځه قضا به نه وي ، مناسب ده چي دلته د حيض يو څو مسائل او احكام (د علم الفقه څخه اخيستل سوي) ذكر كړل سي :

١. كه يوه ښځه د خوب څخه په راكښېنستو سره وينه ووينې نو د هغې حيض به د هغه وخت څخه شميرل كيږي كله چي راكښينستلې وي او د هغه څخه مخكي نه شميرل كيږي، او كه يوه ښځه د خوب څخه د راكښېنستو وروسته خپل ځان پاك ووينې نو كله چي بيده سوې وي د هغه وخت څخه به پاكه ګڼل كيږي .
٢. د حيض او نفاس په حالت كي د ښځي د نامه او زنګون په مينځ كي بدن ته كتل يا د هغې سره خپل بدن يو ځاى كول په دې شرط چي جامه په مينځ كي نه وي مكروه تحريمي دى او جماع كول حرام دي .
٣. د حيض والا ښځه كه چا ته قرآن كريم ښيي نو هغې ته د يوه يوه لفظ په اوربدو جائز دي مګر د يوه پوره آيت ويل هغې ته ناجائز دي .
٤. د حيض او نفاس په حالت كي د ښځي څخه مچه اخيستل د هغې پسخورده وغيره څښل او د هغې سره غاړه په غاړه پريوتل او د هغې د نامه سربيره او تر زنګون لاندي بدن سره خپل بدن يو ځاى كول (كه چيري يو جامه په مينځ كي نه وي او د نامه او زنګون په مينځ كي د جامې سره يو ځاى كېدل جائز دي بلكه د حيض په وجه د ښځي څخه بيل بيده كېدل يا د

هغې د اختلاط څخه ځان ساتل مکروه دي .

۵. د کومي ښځي حيض چي د لس ورځو او شپو څخه په کم راتلو سره بند سوی وي نو د هغې سره پرته د غسل کولو څخه د ويني د بندېدو سره جماع کول جائز دي او د کومي ښځي وينه چي د لس ورځو او شپو څخه په کم راتلو سره بنده سوې وي نو که چيري دا د هغې د عادت څخه په کم راتلو سره بنده سوې وي نو د هغې سره جماع جائز نه دي تر څو پوري چي د هغې عادت پوره نسي که څه هم چي غسل يې کړی وي او د عادت سره سم په راتلو سره وينه بنده سوې وي ، نو تر څو چي غسل ونه کړي يا د يو لمانځه وخت تير نسي جماع جائز نه ده، د لمانځه د وخت تيرېدو څخه وروسته پرته د غسل څخه هم جائز ده، د لمانځه د وخت تيرېدو څخه مقصد دادی چي چيري د وخت په پيل کي وينه بنده سوه نو پاته وخت ټول تير سي او که چيري په آخر وخت کي وينه بنده سوه نو دومره وخت کېدل ضروري دي چي په هغه کي په غسل کولو سره د لمانځه د نيت کولو وخت وي او که تر دې هم کم وخت پاته وي نو بيا ددې اعتبار نسته او د دوهم لمانځه پوره وخت تيرېدل ضروري دي او همدا حکم د نفاس هم دی ، که د څلوېښت ورځو په راتلو سره پيدا سوې وي نو د ويني د بندېدو سره پرته د غسل څخه او که تر څلوېښت ورځو څخه په کم راتلو سره بنده سوې وي او دا د عادت څخه هم کم وي نو د عادت تيرېدو څخه وروسته او که د عادت سره سم بنده سوې وي نو د غسل څخه وروسته يا د لمانځه د وخت تيرېدو څخه وروسته جماع وغيره جائز ده، مګر په دغه ټولو صورتو کي مستحب دادي چي پرته د غسل څخه جماع ونه کړل سي .

٦. د کومي ښځي وينه چي د لسو ورځو او شپو څخه کم بنده سوې وي او د عادت ناکل کېدو په صورت کي د عادت څخه هم کم وي نو پر هغې باندي د لمانځه د آخر مستحب وخت پوري په غسل کي زنډ کول واجب دي ، په دې خيال سره چي کيدای سي بيا وينه راسي ، د مثال په توګه د لمانځه د پيل په وخت کي وينه بنده سوه نو د ماخستن اخر مستحب وخت يعني تر نيمي شپې پوري هغې ته په غسل کي زنډ کول پکا ردی او د کومي ښځي حيض چي لس ورځي يا د عادت دټاکل کېدو په صورت کي د عادت سره سم بند سوی وي نو د هغې لپاره د لمانځه تر آخر مستحب وخت پوري په غسل کي زنډ کول مستحب دی .

٧. که يوه ښځه د حيض د زمانې څخه پرته يو داسي دواء استعمال کړي چي په هغه سره وينه راسي نو هغه حيض نه دی ، د مثال په توګه يوې ښځي ته په يوه مياشت کي پنځه ورځي

حيض راځي نو د هغې د حيض د پنځلسو ورځو څخه وروسته د يو دواء په استعمالولو سره وينه راسي نو هغه به حيض نه وي.

۸. که چيري د يو عادت والا ښځي وينه جاري سي او برابر جاري وي او هغې ته دا ياد نه وي چي ما ته څو ورځي حيض راتلی يا دا چي په ياد يې نه وي چي د مياشتي په کومه نېټه حيض پيل کيدی او کله ختميدی، يا دواړې خبري يې ياد نه وي نو هغې ته پکار ده چي پر غالب ګمان باندي عمل وکړي يعني کومه زمانه چي هغه د حيض زمانه خيال کړي په هغه زمانه کي د حيض پر احکامو باندي عمل وکړي او کومه زمانه چي د طهارت زمانه خيال کړي په هغه زمانه کي د طهارت پر احکامو عمل کوي، او که د هغې ګمان يوې خوا ته نه وي نو هغې ته د هر لمانځه پر وخت په تازه اودس کولو سره لمونځ کول پکار دی او روژې دي هم نيسي ، مګر کله چي د هغې مرض دفع سي نو د روژو قضا به راوړي او که هغې ته د شک کيفيت وي نو په دې کي دوه صورتونه دي : لومړی صورت دا دی چي هغې ته د يو زمانې په نسبت دا شک وي چي د حيض زمانه ده که د طهر ، نو په دې صورت کي د هر لمانځه پر وخت دي نوی اودس کولو سره لمونځ کوي ، دوهم صورت دا دی چي هغې ته د يو زمانې په نسبت شک وي چي دا زمانه د حيض ده او که د طهر يا د حيض څخه د خارج کېدو نو په دې صورت کي دي هغه د هر لمانځه پر وخت په غسل کولو سره لمونځ کوي.

## الفصل الاول

﴿۵۰۰﴾: وَعَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ أَنَّ الْيَهُودَ كَانُوا إِذَا حَاضَتْ الْمَرْأَةُ فِيهِمْ لَمْ يُؤَاكِلُوهَا وَلَمْ يُجَامِعُوهُنَّ فِي الْبُيُوتِ فَسَأَلَ أَصْحَابُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ النَّبِيَّ فَأَنْزَلَ اللّٰهُ تَعَالَى : وَيَسْأَلُونَكَ عَنْ الْمَحِيضِ قُلْ هُوَ أَذًى فَاعْتَزِلُوا النِّسَاءَ فِي الْمَحِيضِ إِلَى آخِرِ الْآيَةِ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اصْنَعُوا كُلَّ شَيْءٍ إِلَّا النِّكَاحَ فَبَلَغَ ذَلِكَ الْيَهُودَ فَقَالُوا مَا يُرِيدُ هَذَا

د حضرت انس ابن مالك ﷺ څخه روايت دی چي په يهودو کي به کله يوه ښځه حائضه سوه نو هغو خلکو به خوراك او څښناك نه ورسره کاوه او نه به يې په خپلو کورو کي يوځای کولې ، د رسول الله ﷺ صحابه کرامو د رسول الله ﷺ څخه د حائضې ښځي حکم و پوښتی نو الله تعالی دا آيت نازل کړ : وَيَسْأَلُونَكَ عَنْ الْمَحِيضِ الخ . (اې پيغمبره خلك ستاسو څخه د حيض د حکم پوښتنه کوي ...) (د دې آيت په نازلېدو سره)

الرَّجُلُ أَنْ يَدَعَ مِنْ أَمْرِنَا شَيْئًا إِلاَّ خَالَفَنَا فِيهِ فَجَاءَ أُسَيْدُ بْنُ حُضَيْرٍ وَعَبَّادُ بْنُ بِشْرٍ فَقَالاَ يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّ الْيَهُودَ يَقُولُ كَذَا وَكَذَا أَفَلاَ نُجَامِعُهُنَّ فَتَغَيَّرَ وَجْهُ رَسُولِ اللَّهِ ﷺ حَتَّى ظَنَنَّا أَنْ قَدْ وَجَدَ عَلَيْهِمَا فَخَرَجَا فَاسْتَقْبَلَهُمَا هَدِيَّةٌ مِنْ لَبَنٍ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَرْسَلَ فِي آثَارِهِمَا فَسَقَاهُمَا فَعَرَفَا أَنْ لَمْ يَجِدْ عَلَيْهِمَا . رواه مسلم

رسول الله ﷺ وفرمايل : د حائضې ښځې سره تاسو هر څه كوئ خو جماع (كوروالي) مه ورسره كوئ، ټولو يهودو ته دا خرګنده سوه نو هغوئ وويل دا سړی چي زموږ كوم ديني امر ته متوجه سي نو په هغه كي ضرور زموږ مخالفت كوي، نو اسيد بن حضير او عباد بن بشر دواړه راغلل او عرض يې وكړ اې د الله رسوله ! يهود داسي داسي وايي ايا اوس موږ د هغوئ سره نه كښينو ، د دې په اورېدو سره د رسول الله ﷺ د مخ مبارك رنګ بدل سو تر دې چي موږ دا خيال وكړ چي رسول الله ﷺ ددغه دوو كسانو څخه خفه سو نو هغه دواړه كسان د باندي ووتل نو هغوئ دواړو وليدل چي نبي كريم ﷺ ته په يوه لوښي كي د شېدو تحفه راوړل سوې ده رسول الله ﷺ هغوئ د راغوښتلو لپاره يو بل سړی وليږه كوم وخت چي هغوئ راغلل نو د واړو ته يې شېدې وركړې بيا هغه خلك پوه سول چي رسول الله ﷺ نا راض نه وو . مسلم .

**تشريح** : پوره آيت كريمه دادی :

وَيَسْأَلُونَكَ عَنِ الْمَحِيضِ قُلْ هُوَ أَذًى فَاعْتَزِلُواْ النِّسَاء فِي الْمَحِيضِ وَلاَ تَقْرَبُوهُنَّ حَتَّىَ يَطْهُرْنَ

سورة البقرة آية ۲۲۲

ژباړه : او (اې محمد ﷺ صحابه كرام) ستا څخه د حيض په اړه پوښتنه كوي نو ته ورته ووايه چي هغه خو نجاست دی نو د حيض په ورځو كي د ښځو څخه منعه وكړئ تر څو چي هغوئ پاكي نسي د هغوئ سره كوروالي مه كوئ .

نو رسول الله ﷺ ددې آيت په تفسير كي وفرمايل چي الله تعالی د حيض په ورځو كي د ښځو څخه منعه اختيارولو او د هغوئ سره د كوروالي نه كولو چي كوم حكم كړی دی د هغه مطلب دادی چي د خپلو بيبيانو سره د حيض په ورځو كي جماع مه كوئ او ددې پرته ټول شيان جائز دي يعني د هغوئ سره خوراك ، څښاك، په كورونو كي اوسيدل، پريوتل، ناسته او تر دې چي د هغه ښځي د نامه سربيره برخي سره خپل بدن يو ځای كول يا لاس وروړل دا ټول شيان جائز دي .

د دغه آيت كريمه څخه معلومه سوه چي د حيض په ورځو كي كه يو سړی جماع وكړي نو سخت ګناه كار دی ولي چي دا حرام دی، كه يو سړی د خپلي ښځي سره د حيض په ورځو كي په

دا کښلو سره جماع وکړي چي دا حلال او جائز کار دي نو هغه کافر کيږي، ځکه چي د هغه حرام کېدل په قرآن کريم ثابت دی.

دواړو صحابه کرامو چي د يهودو په خبرو اورېدو سره د رسول الله ﷺ په خدمت کي چي کومه عرضه وړاندي کړې وه د هغه څخه دا نتيجه مه اخلئ چي خدای مه کړه د هغوئ په ذهن کي د هغه حکم څه ارزښت نه وو يا دا چي د يو اسلامي حکم په مقابله کي د يهوديانو د خبري هغوئ ته زيات خيال وو بلکه د هغوئ مطلب خو يوازي دا وو چي که چيري تاسو اجازه راکوئ نو موږ به د خپلو ښځيانو سره د حيض په ورځو کي ناسته او ولاړه پرېږدو او د هغوئ سره به خوراک او څښاک پرېږدو، يهود چي کوم طعن (پيغور) راکوي نو هغه به بيا نه وي او موږ به په خپل مينځ کي په الفت او يووالي سره اوسو.

﴿۵۰۱﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كُنْتُ أَغْتَسِلُ أَنَا وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ إِنَاءٍ وَّاحِدٍ وَكِلَانَا جُنُبٌ وَكَانَ يَأْمُرُنِيْ فَأَتَّزِرُ فَيُبَاشِرُنِيْ وَأَنَا حَائِضٌ وكَانَ يُخْرِجُ رَأْسَهُ إِلَيَّ وَهُوَ مُعْتَكِفٌ فَأَغْسِلُهُ وَأَنَا حَائِضٌ .متفق عليه

د حضرت عائشي (رض) څخه روايت دی چي ما او رسول الله ﷺ به د يوه لوښي څخه غسل کاوه او موږ دواړه به جنب وو او رسول الله ﷺ به ما ته حکم راکاوه ما به د ده مبارك لنگ تړی رسول الله ﷺ به خپل بدن زما د بدن سره لگوی (يعني د لنگ سربيره) او زه به د حيض په حالت کي وم او رسول الله ﷺ به د اعتکاف په حالت کي خپل سر مبارك د مسجد څخه د باندي را وايستی او ما به د حيض په حالت کي دده مبارك سر پريولی. بخاري او مسلم.

**تشريح**: د عربو د قاعدې او معمول سره سم يو لوي لوښی چي د طشت (تالی) په ډول وو د اوبو څخه ډک د رسول الله ﷺ او بي بي عائشي رضي الله عنها په مينځ کي اېښودل کيدی او دواړو د هغه څخه په لپه اوبو اخيستلو سره غسل کوئ.

د دغه حديث څخه معلومه سوه چي د حائضي ښځي د بدن د هغه برخي څخه گټه اخيستل چي د نامه لاندي او د زنگون سربيره وي حرام دي يعني هلته لاس وړل او جماع کول منعه دي، ددي وضاحت په نورو حديثونو کي هم سوی دی او دا مذهب د امام ابو حنيفة، امام ابويوسف، امام شافعي او امام مالک رحمة الله عليهم دی.

امام محمد رحمة الله عليه، امام احمد رحمة الله عليه او د ځينو شوافع مذهب دادی چي د حائضه ښځي سره يوازي په شرمگاه کي دخول کول حرام دی.

د بي بي عائشې رضي الله عنها حجره (خونه) د مسجد سره بالكل يو ځاى وه تر دې چې د هغې دروازه هم د مسجد پر لور خلاصه وه ، رسول الله ﷺ چي به په اعتكاف كي وو نو سر مبارك به يې د هغه دروازې څخه د حجرې په لور را وايستى او هلته به بي بي عائشه رضي الله عنها كښېنستل او د رسول الله ﷺ مبارك سر به يې پرېولى ، نو ددې څخه معلومه سوه كه چيري يو سړى په اعتكاف كي ناست وي او د خپل بدن يو برخه د مسجد څخه راوباسي نو په دې سره اعتكاف نه باطلېږي .

﴿۵۰۲﴾: وَعَنْهَا قَالَتْ كُنْتُ أَشْرَبُ وَأَنَا حَائِضٌ ثُمَّ أُنَاوِلُهُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَيَضَعُ فَاهُ عَلَى مَوْضِعِ فِيَّ فَيَشْرَبُ وَأَتَعَرَّقُ الْعَرْقَ وَأَنَا حَائِضٌ ثُمَّ أُنَاوِلُهُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَيَضَعُ فَاهُ عَلَى مَوْضِعِ فِيَّ . رواه مسلم.

د حضرت عائشې (رض) څخه روايت دى چي ما به د حيض په حالت کي اوبه چښنلې بيا به مي رسول الله ﷺ ته (په هغه لوښي كي) پاتې اوبه يا تازه اوبه وركړې او رسول الله ﷺ به پر هغه ځاى خوله اېښودل پر كوم ځاى چي به ما اوبه چښنلې وې او د حيض په حالت كي به ما د غوښو هډوكي چورله بيا به مي هغه هډوكي رسول الله ﷺ ته وركړل او رسول الله ﷺ به د هم هغه ځاى څخه چورل د كوم ځاى څخه چي به ما چورلي وه . مسلم .

**تشريح** : د رسول الله ﷺ دا عمل كول په دوو وجهو وو : لومړى خو دا چي د رسول الله ﷺ د بي بي عائشې رضي الله عنها سره زياته مينه وه، او دوهم دا چي د يهودو مخالفت يې مقصد وو، يهوديانو خو به د حائضې ښځي سره په كور كي او سيدل او هغې ته لاس ور وړل هم نه خوښول ، او دېخوا ته دا معمول وو چي بي بي عائشې رضي الله عنها به د حيض په حالت كي په لوښي كي پر كوم ځاى خوله لګولو سره اوبه څښنلې نو رسول الله ﷺ به هم پر هغه ځاى خوله لګولو سره اوبه څښنلې ، او بي بي عائشې رضي الله عنها چي به پر كوم ځاى لګولو سره د هډوكي څخه غوښه خوړل نو رسول الله ﷺ به هم د هغه ځاى څخه په خوله لګولو سره د هډوكي څخه غوښه شكول .

دا حديث پر دې خبره دلالت كوي چي د حائضې ښځي سره خوراك، څښاك، ناسته او ولاړه جائز دي او ددې حديث څخه دا هم معلومه سوه چي د حائضې ښځي د بدن اندامونه نجس او ناپاك نه دي .

﴿٥٠٣﴾: وَعَنْهَا قَالَتْ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَّكِئُ فِيْ حَجْرِيْ وَأَنَا حَائِضٌ ثُمَّ يَقْرَأُ الْقُرْآنَ. متفق عليه.

د حضرت عايشې (رض) څخه روايت دی چې کله به زه د حيض په حالت کې وم نو رسول الله ﷺ به زما په غيږ کې تکيه لگول او کښېنستی به او بيا به يې قرآن کريم وايه. بخاري او مسلم

**تشريح**: دغه حديث شريف هم ددې خبرې وضاحت وکړ چې حائضه ښځه په ظاهري توګه پاکه وي، د هغې ناپاکي يوازې حکما وي، که حائضه ښځه ظاهرا پاکه نه وي او د هغې د بدن اندامونه نجس واي نو رسول الله ﷺ به د بي بي عائشې صديقې رضي الله عنها په غيږ کې په تکيه لگولو سره کله چې هغه د حيض په حالت کې وه نه کښېنستی او نه به يې په داسې ناسته سره قرآن کريم وايه.

﴿٥٠٤﴾: وَعَنْهَا قَالَتْ قَالَ لِي رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. نَاوِلِيْنِي الْخُمْرَةَ مِنَ الْمَسْجِدِ قَالَتْ فَقُلْتُ إِنِّي حَائِضٌ فَقَالَ إِنَّ حَيْضَتَكِ لَيْسَتْ فِي يَدِكِ. رواه مسلم

د حضرت عائشې (رض) څخه روايت دی چې ما ته رسول الله ﷺ د مسجد څخه حکم راکړ: چې مصله پورته کړه او ما ته يې راکړه ما عرض وکړ چې زه په حيض کې يم رسول الله ﷺ وفرمايل ستا حيض ستا په لاس کې نه دی. مسلم.

**تشريح**: د دغه حديث څخه معلومه سوه چې حائضه ښځه د مسجد څخه د باندې دربدو سره د مسجد څخه دننه يو شی را پورته کړي نو جائز ده ځکه چې حائضې ښځې ته يوازې په مسجد کې دننه ورتلل منعه دي نه په مسجد کې لاس داخلول.

﴿٥٠٥﴾: وَعَنْ مَيْمُوْنَةَ قَالَتْ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّيْ فِيْ مِرْطٍ بَعْضُهُ عَلَيَّ وَبَعْضُهُ عَلَيْهِ وَأَنَا حَائِضٌ. متفق عليه

د حضرت ميمونې (رض) څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ به پر څادر لمونځ کاوه چې د هغه ځيني برخه به پر ما او ځيني به پر رسول الله ﷺ پرته وه او زه به د حيض په حالت کې وم. بخاري او مسلم

**تشريح**: دغه حديث شريف ددې خبرې وضاحت وکړ چې د حائضې ښځې ټول بدن ناپاک نه وي بلکه د هغې د شرمگاه څخه پرته چې د هغې د شرمگاه څخه پرته ټول بدن پاک دی، ځکه که چيري د حائضې ښځې ټول بدن ناپاک وای نو په داسې څادر کې به لمونځ نه صحيح کيدای چې د هغه ځيني برخه دي پر لمونځ کونکي وي او ځيني برخه دې پر ناپاکي او نجاست باندې وي.

سيد جمال الدين رحمة الله عليه فرمايي چې صاحب تخريج ليکلي دي چې ما دغه حديث

په صحيحين يعني بخاري او مسلم كي په دغه الفاظو سره نه دی ليدلی ، البته په هغو كي او په ابوداؤد كي د دغه ډول مضمون حديثونه مذكور دي .

## الفصل الثاني

﴿۵۰۶﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ أَتٰى حَائِضًا أَوِ امْرَأَةً فِيْ دُبُرِهَا أَوْ كَاهِنًا فَقَدْ كَفَرَ بِمَا أُنْزِلَ عَلٰى مُحَمَّدٍ . رواه الترمذي وابن ماجه والدارمي وفي روايتهما فصدقه بما يقول فقد كفر . وقال الترمذي لا نعرف هذا الحديث إلا من حديث حكيم الأثرم عن أبي تيمية عن أبي هريرة

د حضرت ابوهريرة ؓ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل : كوم څوك چي د حائضه ښځي سره جماع وكړي يا د ښځي د ډكو بولو په ځای كي جماع وكړي يا جادوگر ته ولاړ سي نو هغه د هغه شي څخه انكار كوي كوم چي پر محمد ﷺ نازل سوی دی (ترمذي، ابن ماجه ، دارمي) د ابن ماجه او دارمي په روايت كي دا الفاظ هم دي چي كوډگر څه ووايي او دی د هغه تصديق وكړي نو هغه كافر سو . ترمذي، ابن ماجه او دارمي .

**تشريح** : د دې ارشاد مطلب دادی كه يو سړی په حلال او جائز گڼلو سره د يوې حائضې ښځي سره كوروالي وكړي يا د ښځي سره د شا په خوا كي بدفعلي وكړي يا كاهن ته ورسي او هغه ورته د غيبو شيانو په اړه يو څه ووايي او هغه يې رېښتوي وگڼي نو هغه كافر كيږي .

او كه دا صورت وي چي يو سړی د حائضې ښځي سره جماع يا لواطت وكړي مگر په دې پوهيږي چي دا حلال او جائز نه دي بلكه حرام او ناجائز دي نو كافر كيږي خو نه مگر فاسق كيږي ، همداسي كه يو سړی كاهن ته ورسي او هغه چي ورته كوم شيان ښودلي وي هغه رېښتيا ونه گڼي نو په دې سره به هم فاسق وي ، په دې صورت كي د حديث معنی به دا وي چي كوم سړي داسي وكړل نو لكه هغه چي كفران نعمت (يعني د نعمت څخه انكار) وكړ .

كاهن هغه سړي ته وايي چي د راتلونكو پېښو په اړه خبر وركوي ، او نجومي هغه ته وايي چي د ستورو په مرسته خبر وركوي ، د كاهن او نجومي يو حكم دی څرنگه چي كاهن ته د غيب د خبرو معلومولو لپاره ورتلل منعه دي او د هغه پر خبرو يقين كول كفر دی همداسي نجومي ته تلل هم فسق او د هغه ښوول سوي خبري رېښتيا گڼل كفر دی .

په دې حديث كي د شا د خوا د بدفعلۍ په اړه چي يوازي د ښځي كوم قيد لگول سوی دی نو

هغه پر دې خبره دلالت کوي چې د سړي (هلک) سره بد فعلي کول تر دې هم زيات بد کار دی.

﴿۵۰۷﴾: وَعَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ قَالَ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللهِ مَا يَحِلُّ لِيْ مِنِ امْرَأَتِيْ وَهِيَ حَائِضٌ ؟ قَالَ مَا فَوْقَ الْإِزَارِ وَالتَّعَفُّفُ عَنْ ذٰلِكَ أَفْضَلُ . رواه رزين وقال محيي السنة إسناده ليس بقوي .

د حضرت معاذ بن جبل ﷛ څخه روايت دی چې ما رسول الله ﷺ ته عرض وکړ اې د الله رسوله ! زما د ښځې څخه هر کله چې هغه حائضه وي ما ته څه شي حلال دی ؟ رسول الله ﷺ راته وفرمايل : د لنګ (جامو) سربيره چې هر شی وي هغه درته حلال دی او ددې څخه ځان ساتل هم غوره دي . رزين. محي السنة فرمايي چې ددې حديث سند قوی نه دی.

**تشريح** : د حديث مطلب دادی چې د ښځې د حيض په حالت کې د هغې د لونګ سربيره لاس وغيره لګول يا د لونګ سره اختلاط کول يا مچه اخيستل او تر غاړه کېدل دا ټول جائز دي ، مګر ددغه شيانو څخه هم پرهيز کولو ته افضل او غوره ځکه ويل سوي دي چې کيدای سي ددغه کارونو په وجه نفساني خواهش را پورته سي او د جذبات څخه په مغلوب کېدو سره جماع وکړي ځکه نو د حرام کار څخه د ځان ساتنې لپاره مناسب دي چې ددغه کارونو څخه هم پرهيز وکړل سي کوم چې ددې لپاره سبب جوړيږي.

او کوم چې د رسول الله ﷺ د ذات اقدس سوال دی په دې اړه منقول دي چې رسول الله ﷺ به د بي بي عائشې رضي الله عنها د لونګ سربيره لاس وغيره وهی او اختلاط به يې کوی ، ددې وجه دا وه چې رسول الله ﷺ پر خپل نفس او جذباتو باندې قادر وو ، ددې پر خلاف د نورو خلکو څخه ددې توقع نسي کيدای چې هغوئ د رسول الله ﷺ په ډول پر خپل جذباتو او نفس باندې واک ولري . په هر حال د مذهب په اعتبار دا حديث هم د حنفيه تائيد کوي .

﴿۵۰۸﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا وَقَعَ الرَّجُلُ بِأَهْلِهِ وَهِيَ حَائِضٌ فَلْيَتَصَدَّقْ بِنِصْفِ دِيْنَارٍ . رواه الترمذي وأبو داود النسائي والدارمي وابن ماجه .

د حضرت ابن عباس ﷛ څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل : هر کله چې يو سړی د خپلې حائضې ښځې سره جماع وکړي نو هغه ته پکار دي چې هغه نيم دينار خيرات کړي . ترمذي، ابوداؤد ، نسائي، دارمي او ابن ماجه .

**تشريح** : يو دينار څلور نيمې ماشې سره زر وي ، که سره زر په سل روپۍ توله وي نو يو دينار د شپږو روپو سو ، او نيم دينا ددرو روپو سو ، خطابي ويلي دي چې د اکثرو علماؤ پر دې اتفاق دی که يو سړي د خپل حائضې ښځې سره جماع وکړي نو د هغې کفاره يوازې استغفار دی،

امام اعظم ابو حنيفة رحمة الله عليه او د امام شافعي رحمة الله عليه دا مذهب دی، مګر امام شافعي رحمة الله عليه دا هم فرمايي که يو سړی د خپل ښځي سره هغه وخت جماع وکړي چي د هغې وينه جاري وي نو هغه ته يو دينار صدقه کول مستحب دي همداسي که د چا ويني د قطع کېدو څخه وروسته صحبت وکړل سي نو هغه ته نيم دينار صدقه کول مستحب دي.

ابن همام حنفي رحمة الله عليه هم دا فرمايي که يو سړی د خپل ښځي سره په دې ګڼلو سره کوروالي وکړي چي دا حلال کار دی نو هغه کافر کيږي او کوم سړی چي د حرام ګڼلو سره دا کار وکړي نو هغه ګناه کبيره وکړه، نو د هغه لپاره ضروري ده چي د الله تعالی په دربار کي پر دغه حرام کار صادرېدو باندي په شرمناک کېدو سره د توبې او استغفار غوښتونکی سي او يو دينار يا نيم دينار د استحباب په وجه صدقه کړي، محدثين فرمايي چي دا حديث پر ابن عباس ﷺ باندي مرسل يا موقوف دی ځکه چي ددې حديث تر رسول الله ﷺ پوري مرفوع متصل کېدل ثابت نه دي.

﴿۵۰۹﴾: وَعَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِذَا كَانَ دَمًا أَحْمَرَ فَدِينَارٌ وَإِذَا كَانَ دَمًا أَصْفَرَ فَنِصْفُ دِينَارٍ. رواه الترمذي.

د حضرت ابن عباس ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د حيض په حالت کي د جماع کولو له کبله چي کومه کفاره ورکول کيږي د هغې صورت دادی که چيري وينه سره وي نو يو دينار او که وينه ژړه وي نو نيم دينار (صدقه به ورکوي) ترمذي.

**تشريح**: مطلب دادی چي د حيض په حالت کي په جماع کولو سره چي کومه صدقه ورکول کيږي د هغې صورت دادی چي د جماع پر وخت که د حيض د ويني رنګ سور وي نو يو دينار صدقه کول ضروري دی او که د حيض د ويني رنګ ژړ وي نو نيم دينار صدقه کول پکار دی، ګوم علماء چي دا وايي چي د حيض په پيل کي د صحبت کولو په وجه يو دينار او د قطع کېدو په حالت کي نيم دينار صدقه کول مستحب دی نو هغوئ ددغه حديث څخه استدلال کوي ځکه چي په پيل کي د حيض د ويني رنګ سور وي او په آخر کي ژړ وي.

## الفصل الثالث

﴿ ٥١٠ ﴾: عَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ قَالَ إِنَّ رَجُلاً سَأَلَ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ مَا يَحِلُّ لِيْ مِنِ امْرَأَتِيْ وَهِيَ حَائِضٌ ؟ فَقَالَ لَهُ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَشُدُّ عَلَيْهَا إِزَارَهَا ثُمَّ شَأْنُكَ بِأَعْلاَهَا . رواه مالك والدارمي مرسلا .

د حضرت زید بن اسلم ﷺ څخه روایت دی چي یو سړي د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وکړه چي زما لپاره زما د ښځي څخه هر کله چي هغه په حیض کي وي څه شي حلال دی ؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمایل ته د هغې لونګ د هغې د بدن سره ښه وتړه او بیا د لونګ سربیره ستا کار دی (یعني د نامه سربیره اختلاط مباح دی) مالك او دارمي

﴿ ٥١١ ﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كُنْتُ إِذَا حِضْتُ نَزَلْتُ عَنِ الْمِثَالِ عَلَى الْحَصِيْرِ فَلَمْ تَقْرُبْ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَمْ تَدْنُ مِنْهُ حَتّٰى تَطْهُرَ . رواه أبو داود .

د حضرت عائشې (رض) څخه روایت دی چي کله به زه په حیض کي وم نو د بسترې څخه به بوریا ته راتلم نه به رسول الله ﷺ هغه ته نژدې ورتلی او نه به نژدې کېدل دا رسول الله ﷺ ته تر څو پوري چي به پاکه نه وه. ابوداؤد

**تشریح** : په ښکاره خو دا حدیث د هغه حدیثونو بالکل برعکس دی چي د هغو څخه دا ثابتیږي چي سول الله ﷺ به د خپلو بیبیانو مبارکو سره د هغوئ د حیض په حالت کي هم نشیني اختیارول ، خپله د بي بي عائشې رضي الله عنها داسي حدیثونه روایت دي چي په هغو کي هم هغه ښودل سوي دي چي رسول الله ﷺ د هغې سره د حیض په ورځو کي اختلاط کوی .

ددغه ټکر ختمولو لپاره به دا وویل سي چي دا حدیث د هغه حدیثونو لپاره منسوخ دی ، لکه چي د قرآن کریم آیت دی چي (ولا تقربوهن حتی یطهرن) یعني هغوئ ته مه نژدې کیږئ تر څو چي پاکي نسي، ددې مطلب دا بیانیږي چي د هغوئ سره جماع مه کوئ تر څو پوري چي پاکي نسي ، دلته د حدیث الفاظ (فلم یقرب) کي د (ي) په زور سره او راء په پیښ سره ده، همداسي (لم تدن حتی تطهر) دواړه حرف په ت سره دي، د مشکوة په صحیح نسخو کي همداسي الفاظ مذکور دي مګر په سخه د سید جمال الدین په حاشیه کي لیکلي دي چي صحیح داسي فلم نقرب، د نون او راء په زیر سره دي او د رسول الله ﷺ لام ته زیر دی، همداسي لم تدن مخکي د نون په زور او د دوهم نون په پیښ سره وي او په لفظ نطهر کي هم نون دی ، او میرک شاه لیکلي دي چي په اصل ابوداؤد کي دا الفاظ هم داسي دي .

# بَابُ الْمُسْتَحَاضَةِ

## (د مستحاضې بیان)

## الفصل الاول

﴿۵۱۲﴾: عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ جَاءَتْ فَاطِمَةُ بِنْتُ أَبِي حُبَيْشٍ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَتْ يَا رَسُولَ اللّٰهِ إِنِّي امْرَأَةٌ أُسْتَحَاضُ فَلاَ أَطْهُرُ أَفَأَدَعُ الصَّلاَةَ فَقَالَ لاَ إِنَّمَا ذَلِكِ عِرْقٌ وَلَيْسَ بِالْحَيْضَةِ فَإِذَا أَقْبَلَتْ الْحَيْضَةُ فَدَعِي الصَّلاَةَ وَإِذَا أَدْبَرَتْ فَاغْسِلِي عَنْكِ الدَّمَ ثُمَّ صَلِّي. متفق علیه

د حضرت عائشې (رض) څخه روایت دی چې فاطمة بنت ابو جبیش د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضره سول او عرض یې وکړ۔ای دالله رسوله! زه یوه داسې ښځه یم چې وینه مي راځي او نه پاکیږم ، نو ایا په داسې حالت کې لمونځ پریږدم ، رسول الله ﷺ ورته وفرمایل:نه، دا وینه خو د یو رگ وینه ده د حیض وینه نه ده کله چې ستا حیض راسي نو لمونځ پریږده او کله چې ولاړ سي نو خپل وینه پریوله (یعني غسل وکړه او لمونځ کوه) . بخاري او مسلم .

**تشریح** : په دې مسئله کې که یو ښځه مستحاضه سي او هغه هر وخت د استحاضې په وینه سره ناپاکه وي نو د هغې لپاره څه حکم دی ؟ امام اعظم ابو حنیفة رحمة الله علیه فرمایي که چیري هغه داسې ښځه وي چې معتاده وي یعني د هغې د حیض ورځې ټاکلي وي ، مثلاً هغې ته په هره میاشت کې پنځه یا شپږ ورځې وینه راتلل نو هر کله چې هغه مستحاضه سي نو هغې ته پکار ده چې هغه ورځې په کوم کې چې حیض ورته راتلی د حیض ورځې وګرځوي او په هغه ورځو کې دي لمونځ وغیره پریږدي او هر کله چې هغه ورځې پوره سي نو د وینې پریوللو سره دې غسل وکړي او لمونځ وغیره دې پیل کړي . او که هغه مبتدیه وي یعني داسې ښځه وي چې د لومړني حیض راتلو څخه وروسته هغه مستحاضه سوه چې د هغې په نتیجه کې د استحاضې وینه جاري وي نو هغې ته پکار ده چې هغه د حیض انتهائي وخت یعني لس ورځې د ایام حیض ګرځولو سره په هغه ورځو کې لمونځ وغیره پریږدي او وروسته په غسل کولو او وینه پریوللو سره لمونځ وغیره پیل کړي، په دې صورت کې به د نورو امامانو په نزد عمیل پر تمیز باندي وي یعني که وینه د تور رنګ وي نو هغه به د حیض وینه وګرځول سي او که د وینې رنګ تور نه وي نو هغې

ته د استحاضې وينه ويل کيږي لکه څرنګه چي په راتلونکي حديث کي دا خبره معلوميږي،
مګر امام اعظم ابوحنيفة رحمة الله عليه ددې حديث په باره کي کوم چي وړاندي راځي او د
حضرت عروه رضي الله عنه روايت کي فرمايي چي دا حديث په دوو طريقو سره روايت کړل سوی دی يو
خو د هغه څخه مرسل او دوهم مضطرب او دا عجيبه خبره ده چي د ويني په رنګ کي د امتياز
خبره يوازي د عروه په روايت کي مذکوره ده کوم چي حال يې معلوم سو چي يو په يوه طريقه خو
مرسل دی او په دوهمه طريقه سره مضطر ، نو پر دغه حديث باندي د يو مذهب بنياد ايښودل
لکه د هغه مذهب کمزوری کول دي او دغه حديث چي پورته تير سو چي په هغه کي د دواړو
اعتبار دی او زموږ دليل صحيح دی ، نو په دغه حديث باندي عمل کول غوره دي او په ظاهره
معلوميږي چي فاطمه بنت حبيش رضي الله عنها چي هغې د رسول الله ﷺ په خدمت کي
حاضريدو سره حکم پوښتلی وو معتاده وه . امام شافعي رحمة الله عليه فرمايي چې
مستحاضې ته پکار ده چي د هر فرض لمانځه لپاره خپل شرمګاه پريولي ، او امام اعظم
ابوحنيفة رحمة الله عليه فرمايي هر کله چي د لمانځه وخت سي نو خپل شرمګاه دې پريولي او
بيا تر دې د يو شي په ټوټو سره ژر ژر دې اودس وکړي ددې څخه وروسته چي کومه وينه جاري
وي په هغه کي به هغه معذوره وي نو تر آخر وخت پوري چي هغه څه غواړي وه دې يې وايي .

## الفصل الثاني

﴿۵۱۳﴾: عَنْ عُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ عَنْ فَاطِمَةَ بِنْتِ أَبِيْ حُبَيْشٍ أَنَّهَا كَانَتْ تُسْتَحَاضُ فَقَالَ لَهَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا كَانَ دَمُ الْحَيْضِ فَإِنَّهُ دَمٌ أَسْوَدُ يُعْرَفُ فَإِذَا كَانَ ذٰلِكَ فَأَمْسِكِيْ عَنِ الصَّلَاةِ فَإِذَا كَانَ الْآخَرُ فَتَوَضَّئِيْ وَصَلِّيْ فَإِنَّمَا هُوَ عِرْقٌ . رواه أبو داود والنسائي

حضرت عروة[1] بن زبير د بي بي فاطمې بنت ابي حبيش څخه روايت کوي چي فاطمې ووېل هغه به مستحاضه کيدل نو نبي کريم ﷺ هغې ته وفرمايل : هر کله چي د حيض وينه وي نو هغه توره وينه وي چي پيژندل کيږي که دا وي نو لمونځ مه کوه او که دا بله وي يعني (د تور رنګ نه وي) نو اودس وکړه او لمونځ کوه ځکه چي هغه د رګ وينه ده . ابوداؤد او نسائي.

**تشريح** : د دې حديث په اړه ددې څخه د مخکي حديث په تشريح کي ښودل سوي ده چي دا حديث د هغه امامانو دليل دی چي دا وايي چي مستحاضه دي د حيض د ورځو په لړه کي پر

[1] حضرت عروه رضي الله عنه د زبير بن العوام زوی او عظيم المرتبت تابعي دی. نوموړی په (۲۲هـ) کي زيږيدلی دی . ۱۲

تمیز باندي عمل کوي ، که د ویني رنګ تینګ تور وي نو هغه د حیض وینه ګرځولو سره په هغه ورځو کي دي لمونځ وغیره پریږدي او که رنګ يې تینګ تور نه وي نو بیا دي د استحاضه وینه وګڼي او لمونځ او روژه دي ادا کوي ، دلته دا هم ښودل سوي دي چي دا حدیث د صحیح درجې ته نه رسیږي ځکه دا د یو مذهب بنیاد ګرځول د هغه مذهب د کمزوری ظاهرولو برابر دی .

په هر حال دلته د ویني چي کوم رنګونه ښودل سوي دي هغه دائمي او په کلي توګه سره نه دي بلکه رسول الله ﷺ د ویني رنګ د اکثرو په اعتبار فرمایلي دی ځکه چي کله د حیض وینه د سور رنګ څخه پرته بل رنګ هم وي . حنفیه حضرات ددې حدیث وضاحت دا کوي چي که چیري دا حدیث صحیح هم ومنل سي نو ددې محمول به دا وي چي دا تمیز د هغې عادت وي که د هغې د حیض وینه د تور رنګ وه نو د استحاضه په حالت کي د حیض په ورځو کي چي د ویني رنګ تور وي نو هغه به د حیض وینه وګرځول سي ، هر کله چي د هغې د عادت ورځي تیري سي او په هغه ورځو کي د ویني رنګ تور مائل سرخي وغیره وي نو د هغه څخه وروسته به د حیض وینه نسي شمیرل کېدای ځکه چي د هغې عادت سره سم د ویني رنګ اوس تور پاته نه سو .

﴿۵۱۴﴾: وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ قَالَتْ إِنَّ امْرَأَةً كَانَتْ تُهْرَاقُ الدَّمَ عَلَى عَهْدِ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاسْتَفْتَتْ لَهَا أُمُّ سَلَمَةَ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ لِتَنْظُرْ عَدَدَ اللَّيَالِيْ وَالْأَيَّامِ الَّتِيْ كَانَتْ تَحِيْضُهُنَّ مِنَ الشَّهْرِ قَبْلَ أَنْ يُصِيْبَهَا الَّذِيْ أَصَابَهَا فَلْتَتْرُكِ الصَّلَاةَ قَدْرَ ذٰلِكَ مِنَ الشَّهْرِ فَإِذَا خَلَّفَتْ ذٰلِكَ فَلْتَغْتَسِلْ ثُمَّ لْتَسْتَثْفِرْ بِثَوْبٍ ثُمَّ لْتُصَلِّ .

رواه مالك وأبو داود والدارمي وروى النسائي معناه .

د حضرت ام سلمة (رض) څخه روایت دی چي د رسول الله ﷺ په زمانه کي یوې ښځي ته تل وینه ورتلل نو بي بي ام سلمې د هغې ښځي لپاره د رسول الله ﷺ څخه د فتوا پوښتنه وکړه ، رسول الله ﷺ ورته وفرمایل : هغې ته پکار دي چي د دې ناروغي څخه وړاندي (دخپل حیض) ورځي او شپې شمیر کړي په کومو کي چي د هغې د هري میاشتي وینه راتله ، هغه دي د هري میاشني د هغو ورځو برابر لمونځ پریږدي او هر کله چي هغه ورځي تیري سي نو هغې ته پکار دي چي غسل وکړي او د جامو لنګ دي ووهي په منځ کي د دوو ورنو او بیا دي لمونځ کوي .مالك، ابوداؤد، دارمي او نسائي .

**تشریح** : مستحاضې ښځي ته پکار ده چي تر څو پوري کېدای سي هغه دي کپړه وغیره داسي وتړي چي وینه تر خپل وس پوري ودریږي ، که د کپړې وغیره په تړلو سره او احتیاط کولو سربیره هم وینه راځي نو په هغه سره په لمانځه کي څه اثر نه لویږي لمونځ به صحیح سي او قضاء

راوړل ضروري نه دي دا حکم د سلس البول د ناروغ هم دی.

﴿۵۱۵﴾: وَعَنْ عَدِيِّ بْنِ ثَابِتٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ قَالَ يَحْيَى ابْنُ مَعِينٍ جَدُّ عَدِيٍّ إِسْمُهُ دِينَارٌ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ قَالَ فِي الْمُسْتَحَاضَةِ تَدَعُ الصَّلَاةَ أَيَّامَ أَقْرَائِهَا الَّتِي كَانَتْ تَحِيضُ فِيهَا ثُمَّ تَغْتَسِلُ وَتَتَوَضَّأُ عِنْدَ كُلِّ صَلَاةٍ وَتَصُومُ وَتُصَلِّي. رواه الترمذي و ابوداؤد .

حضرت عدي بن ثابت د خپل پلار ځخه او هغه د عدي د نیکه ځخه روایت کوي چي یحیی بن معین چي د عدي نیکه دی د هغه نوم دینار دی وویل چي رسول الله ﷺ د مستحاضې په اړه فرمایل: چي هغه دي د حیض په هغو ورځو کي چي د هغې عادت دی لمونځ پریږدي بیا دي غسل وکړي او د لمانځه لپاره دي نوی اودس وکړي او روژې دي هم نیسي او لمونځ دي هم کوي. ترمذي او ابوداؤد.

**تشریح**: دا حدیث ضعیف دی او د یو بل روایت الفاظ دا دی: (فتوضا بوقت کل صلوة) یعني مستحاضه ښځه دي د هر لمانځه لپاره اودس کوي.

﴿۵۱۶﴾: وَعَنْ حَمْنَةَ بِنْتِ جَحْشٍ قَالَتْ كُنْتُ أُسْتَحَاضُ حَيْضَةً كَثِيرَةً شَدِيدَةً فَأَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَسْتَفْتِيهِ وَأُخْبِرُهُ فَوَجَدْتُهُ فِي بَيْتِ أُخْتِي زَيْنَبَ بِنْتِ جَحْشٍ فَقُلْتُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ إِنِّي أُسْتَحَاضُ حَيْضَةً كَثِيرَةً شَدِيدَةً فَمَا تَأْمُرُنِي فِيهَا قَدْ مَنَعَتْنِي الصَّلَاةَ وَ الصِّيَامَ قَالَ أَنْعَتُ لَكِ الْكُرْسُفَ فَإِنَّهُ يُذْهِبُ الدَّمَ قَالَتْ هُوَ أَكْثَرُ مِنْ ذَلِكَ قَالَ فَتَلَجَّمِي قَالَتْ هُوَ أَكْثَرُ مِنْ ذَلِكَ قَالَ فَاتَّخِذِي ثَوْبًا قَالَتْ هُوَ أَكْثَرُ مِنْ ذَلِكَ إِنَّمَا أَثُجُّ ثَجًّا فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَآمُرُكِ بِأَمْرَيْنِ أَيَّهُمَا صَنَعْتِ أَجْزَأَ عَنْكِ من الاخر وَإِنْ قَوِيتِ عَلَيْهِمَا فَأَنْتِ أَعْلَمُ قَالَ لها إِنَّمَا هذه رَكْضَةٌ مِنْ ركضات الشَّيْطَانِ فَتَحَيَّضِي سِتَّةَ أَيَّامٍ أَوْ

د حضرت حمنة بنت جحش (رض) ځخه روایت دی چي زه په ډیر سخت او زیات حیض کي اخته سوم نو د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضره سوم چي دی مبارك په خبر کړم او ددې حکم ځیني و غواړم نو ما رسول الله ﷺ د خپل خور زینب بنت جحش په کور کي پیدا کړ ما عرض وکړ اې دالله رسوله ! زه په سخت حیض کي اخته یم په دې باره کي تاسو ما ته څه حکم راکړئ ؟ دې خو زه د روژې او لمانځه ځخه محرومه کړې یم. رسول الله ﷺ راته وفرمایل: زه ستا لپاره د پمبوو استعمال تجویز کوم چي هغه وینه لیري کوي، ما عرض وکړ هغه ددې ځخه هم زیاته ده رسول الله ﷺ وفرمایل د واګي په ډول زړوکی ونغاړه هغې وویل ددې ځخه هم زیاته ده، رسول الله ﷺ ورته وفرمایل (په لونګ کي دننه) زړوکی ورته

سَبْعَةَ أَيَّامٍ فِي عِلْمِ اللّٰهِ ثُمَّ اغْتَسِلِي حتى إِذَا رَأَيْتِ أَنَّكِ قَدْ طَهُرْتِ وَاسْتَنْقَأْتِ فَصَلِّي ثَلٰثًا وَّعِشْرِيْنَ لَيْلَةً اَوْ أَرْبَعًا وَعِشْرِينَ لَيْلَةً وَصُومِي فَإِنَّ ذٰلِكِ يُجْزِئُكِ وَكَذٰلِكِ فَافْعَلِي كل شهر كَمَا تَحِيضُ النِّسَاءُ وَكَمَا يَطْهُرْنَ مِيقَاتِ حَيْضِهِنَّ وَطُهْرِهِنَّ وَإِنْ قَوِيتِ عَلَى أَنْ تُؤَخِّرِينَ الظُّهْرَ وَتُعَجِّلِينَ الْعَصْرَ فَتَغْتَسِلِينَ وَتَجْمَعِيْنَ بَيْنَ الصَّلٰوتَيْنِ الظُّهْرَ وَالْعَصْرَ وَ تُؤَخِّرِينَ الْمَغْرِبَ وَتُعَجِّلِينَ الْعِشَاءَ تَغْتَسِلِينَ وَتَجْمَعِينَ بَيْنَ الصَّلَاتَيْنِ فَافْعَلِي وَتَغْتَسِلِينَ مَعَ الْفَجْرِ فَافْعَلِي وَصُومِي إِنْ قَدَرْتِ عَلَى ذٰلِكَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهٰذَا أَعْجَبُ الْأَمْرَيْنِ إِلَيَّ. رواه احمد و ابوداؤد والترمذي

کنبېږده هغې وويل هغه ددې څخه هم زياته ده ، يعني د باران په ډول وينه را څخه ځي. نبي کريم ﷺ ورته وفرمايل : زه تا ته د دوو خبرو حکم درکوم په کوم چي ته عمل وکړې ستا لپاره بس ده که چيري توان لرې نو په دواړو عمل وکړه د خپل حال څخه ته زياته خبرداره يې د دې وروسته رسول الله ﷺ وفرمايل چي دا (ستا حيض) د شيطان لته ده په دې وينه کي شپږ يا اووه ورځي خو د الله په علم کي (يعني د راوي څخه هيره ده چي شپږ ورځي دي که اووه ورځي دي) حيض شمير کړه او بيا غسل وکړه تر دې چي ته ووينې چي پاکه سوې نو تر درويشتو يا څليرويشتو ورځو او شپو پوري لمونځ کوه او روژه نيسه دا ستا لپاره بس دي او داسي په هره مياشت کي کوه څنګه چي د نورو ښځو حيض کيږي او بيا د حيض څخه پاکيږي او که ستا دا په وس کي وي چي د ماپښين په لمانځه کي ځنډ کوې او د مازديګر په لمانځه کي تلوار کوه نو په يوه غسل يې کوه او د ماپښين او مازديګر لمنځونه يوځای کوه همداسي د ماښام په لمانځه کي ځنډ کوه او د ماخستن په لمانځه کي تلوار کوه او په يوه غسل دا دواړه لمنځونه يو ځای کوه او د سهار د لمانځه لپاره هم غسل کوه که دي په توان کي وي داسي ته کوه او روژې نيسه که طاقت دي وي پر دغه کار، د دې وروسته رسول الله ﷺ وفرمايل او دا حکم (يعني آخري حکم) ما ته د دواړو حکمونو څخه غوره معلوميږي . احمد. ابوداؤد او ترمذي.

**تشريح** : هسي خو د استحاضې راتلل د ناروغۍ په وجه وي، مګر رسول الله ﷺ ددې نسبت د شيطان طرف ته فرمايلی دی چي دا د شيطان د چل څخه يو چل دی، ددې وجه داده چي په دې صورت خطا ايستلو او په عبادت کي د خلل اچولو لپاره شيطان ته موقع په لاس ورسي ، هغه ددې موقع څخه په ګټه پورته کولو سره په پاکۍ او لمانځه وغيره کي فساد اچوي، دا وجه ده چي رسول الله ﷺ د استحاضې حقيقت بيانولو سره پوښتنه کونکي ته دوه حکم ورکړل چي په

هغه عمل كولو سره شيطان په خپل مقصد كي كامياب كيدای نسي، په هغو كي رسول الله ﷺ يو حكم دا وركړ چي (فتحيضي ستتة ايام او سبعة ايام) يعني شپږ ورځي يا اووه ورځي د حيض ورځي وګرځوه، ددې مطلب دادی چي په داسي صورت كي هره مياشت د عادت سره سم شپږ ورځي يا اووه ورځي د حيض احكام جاري وساته ، ددې ښځه په څرګنده دا معلوميږي چي پوښتنه كونكې معتاده (په ناروغی اخته) ده، او د هغې ښځه د حيض د ورځو معمول او عادت هير سوی وو ، يعني هغې ته ياد نه وه چي د حيض وينه ورته په هره مياشت كي شپږ ورځي راتلل او كه اووه ورځي راتلل ، ځكه رسول الله ﷺ هغې ته وفرمايل چي ته پر خپل يقين او ګمان باندي عمل كوه كه ستا يقين دا وايي چي عادت د شپږو ورځو وو نو په دې صورت كي شپږ ورځي د حيض وګرځوه او كه ددې خبري ګمان غالب وي چي عادت د اوو ورځو وو نو بيا اووه ورځي د حيض ورځي وګرځوه، بيا د هغه ښځه وروسته رسول الله ﷺ (في علم الله) فرمايلو سره دې خبري ته اشاره وفرمايل چي ته په هر حال پر خپل يقين او ګمان باندي عمل كوه مګر ددې خبري علم پر هر صورت الله تعالى ته دی چي ستا عادت څه وو، ځكه چي د غيب خبري خو هغه پيژني ، او يا په ستة ايام او سبعة ايام كي كه چيري لفظ د او د شک لپاره وي نو (في علم الله) به د راوي قول وي چي د والله اعلم په معنا به وي، په دې صورت كي به ددې معنى دا وي چي رسول الله ﷺ يا خو ستة ايام فرمايلي دي او يا سبعة ايام يې فرمايلي دي. او الله تعالى ښه پوهيږي .رسول الله ﷺ چي پوښتنه كونكي ته دا وفرمايل چي څرنګه ښځي پر خپل خپل وخت باندي د حيض په ورځو كي وي او بيا پر وخت باندي پاكيږي ته هم هره مياشت هم هغسي كوه ، نو ددې مطلب دادی ي څرنګه ستا په ډول هغه ښځي چي د خپل عادت ورځي هيري كړي او بيا هغوئ خپل ايام ګرځوي ته هم خپل هم هغسي ايام (ورځي) وګرځوه . يعني كه د هغوئ د حيض وخت اوله مياشت وه نو ته هم اوله مياشت ايام حيض ګرځوه او كه د هغوئ د حيض وخت د مياشتي په مينځ كي وي نو ته د حيض ورځي د مياشت مينځ ګرځوه همداسي كه د هغوئ د حيض وخت د مياشتي آخري برخه وي نو ته هم د مياشتي آخري برخه د حيض ورځي وګرځوه .

په هر حال د لومړني حكم خلاصه داده چي ته د خپل حيض وخت كه هغه اووه ورځي وي يا شپږ ورځي پوره كړه او د هغه وروسته غسل وكړه او بيا د هر لمانځه لپاره غسل كوه .

دوهم حكم رسول الله ﷺ دا وفرمايه چي د دوو لمنځونو په مينځ كي داسي وخت غسل كوه چي د يوه لمانځه آخري وخت وي او د دوهم لمانځه ابتدائي وخت وي، بيا ددې ښځه وروسته

دواړه لمنځونه يو ځاى كوه ، همداسي د ماپښين او ماښام لمونځ په زړه سره كولو لپاره چي ويل سوي دي . په دې كي دوه احتماله دي اول خو ددې زړه مطلب دا كيداى سي چي د وخت ختمېدو څخه وروسته دي لمونځ وكړل سي ، مثلا د ماپښين او مازديګر په وخت كي ادا كړل سي همداسي د ماښام او ماخستن لمونځ د ماخستن په وخت كي وكړل سي لكه څرنګه چي د امام شافعي رحمة الله عليه د مذهب سره سم مسافر دوه لمنځونه په داسي جمع كولو سره كولاى سي .

دوهم احتمال داداى چي د ماپښين لمونځ بالكل په آخر وخت كي وكړل سي او د مازديګر لمونځ بالكل په ابتداء كي وكړل سي ، همداسي د ماښام لمونځ بالكل په آخر وخت كي وكړل سي او د ماخستن لمونځ په پيل كي وكړل سي لكه څرنګه چي په حنفي مذهب كي د مسافر لپاره د جمع بين الصلوتين دا تاويل كيږي او دې ته جمع صوري وايي ، ددې څخه وروسته راتلونكى حديث هم ددې وضاحت كوي ، نو ددغه دوهم حكم حاصل داداى چي هره ورځ يو غسل د ماپښين او مازديګر د لمنځو لپاره وكړل سي او يو غسل د ماښام او ماخستن د لمانځه لپاره همداسي يو غسل د سهار لپاره وكړل سي .

په دې خبره هم پوه سئ چي د لومړني حكم خلاصه كولو سره چي دا ښودل سوي دي چي د هر لمانځه لپاره دي غسل كول كيږي ددې صراحت په حديث كي خو نسته مګر په دغه ارشاد (ان قويت على ان توخرين ... الخ) كي دې ته اشاره سوې ده ځكه چي د هغه عبارت څخه د پوښتنه كونكي د لمانځه لپاره د غسل څخه عاجز كېدل مفهوم كيږي او دا مذهب د امير المؤمنين حضرت علي ﷺ، عبدالله ابن مسعود ﷺ ، ابن زبير ﷺ او نورو دى ، او د ابن عباس ﷺ مذهب داداى چي دوه لمنځونه دي په يوه غسل سره يو ځاى وكړل سي او دا مذهب حديث ته زيات نژدې او مطابق دى، ځكه چي په دې كي زياته اساني ده په نسبت ددې چي د هر لمانځه لپاره غسل وكړل سي ، رسول الله ﷺ هم ددې په ويلو سره اشاره كړې ده چي (هذا اعجب الامرين الي) يعني د دوو لمنځو لپاره غسل كول ما ته د دوهم امر يعني د هر لمانځه لپاره غسل كولو څخه زيات خوښ دى، او ددغه دوهم حكم خوښولو وجه دا وه چي د رسول الله ﷺ عادت شريف دا وو چي د امت لپاره به يې هغه شى خوښوى كوم چي به آسان وو . او كوم چي د حنفيه تعلق دى د هغوئ په نزد دا حكم منسوخ دى چي په دواړو صورتو كي د غسل حكم پر معالجه باندې محمول دى يعني رسول الله ﷺ د غسل حكم ځكه وركړى دى چي په دې سره د وينې زياتوب او د

هغه زور ختم سي .

## الفصل الثالث

﴿۵۱۷﴾: عَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ عُمَيْسٍ قَالَتْ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللهِ إِنَّ فَاطِمَةَ بِنْتِ أَبِيْ حُبَيْشٍ اُسْتُحِيْضَتْ مُنْذُ كَذَا وَكَذَا فَلَمْ تُصَلِّ فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سُبْحَانَ اللهِ إِنَّ هٰذَا مِنَ الشَّيْطَانِ لِتَجْلِسْ فِيْ مِرْكَنٍ فَإِذَا رَأَتْ صُفَارَةً فَوْقَ الْمَاءِ فَلْتَغْتَسِلْ لِلظُّهْرِ وَالْعَصْرِ غُسْلاً وَّاحِدًا وَتَغْتَسِلْ لِلْمَغْرِبِ وَالْعِشَاءِ غُسْلاً وَّاحِدًا وَتَغْتَسِلِ لِلْفَجْرِ غُسْلاً وَّاحِدًا وَتَوَضَّأْ فِيْمَا بَيْنَ ذٰلِكَ . رواه أبو داود وقال رَوٰى مُجَاهِدُ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ لَمَّا اشْتَدَّ عَلَيْهَا الْغُسْلُ أَمَرَهَا أَنْ تَجْمَعَ بَيْنَ الصَّلَاتَيْنِ .

د حضرت اسماء بنت عميس (رض) څخه روايت دى چي ما رسول الله ﷺ ته عرض وکړ چي فاطمة بنت حبيش د دومره دومره وخت څخه په حيض کي سوې ده هغه لمونځ نه کوي ، رسول الله ﷺ وفرمايل : سبحان الله په تحقيق سره دا (لمونځ پرېښودل ددې بې له پوښتني د مسئلې) د شيطان له لوري دى هغه ته پکار دي چي په هغه ټپ کي کښيني هر کله چي د ټپ د اوبو سربيره ژړوالى ووينې نو د ماپښين او مازديګر لپاره دي يو غسل وکړي او د ماښام او ماخستن لپاره دي يو غسل وکړي او بيا د سهار لپاره دي يو غسل وکړي او ددې په منځ کي دي اودس وکړي (يعني د دواړو لمنځو په منځ کي) ابوداؤد ، مجاهد د ابن عباس څخه روايت وکړ هر کله چي هغې ته د هر لمانځه لپاره غسل کول ستونزمن سول نو هغې ته يې دوه لمنځونه په يوه غسل کولو حکم ورکړ .

**تشريح** : هر کله چي د ماپښين وخت بالکل آخر سي نو پر لمر باندي لږ ژړوالى راځي بلکه د زوال څخه وروسته تغير کېدل پيل کيږي ، نو رسول الله ﷺ په ټپ کي د لېدو لپاره ځکه وفرمايل چي هغه ژړوالى په اوبو کي په آسانۍ سره معلوميږي ، هغه ژړوالى په زياتېدو زياتېدو سره ماښام نژدې پوره کيږي نو هغه وخت لمونځ کول مکروه دي ، مګر رسول الله ﷺ چي د کوم ژړوالي په اړه فرمايلي دي دا د هغه ژړوالي څخه پرته دى کوم چي د مازديګر څخه وروسته وي او هغه د لمانځه لپاره د کراهت وخت وي .